يَهْدِيْ إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهٖ

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقيقي انداز کښې
علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمي تحفه

# رُشْدُ الْقُرْآن

## فِيْ تَفْسِيْرِ آيَاتِ الْقُرْآن

اووم جلد

له ابتداء د سورة ق نه تر آخره سورة الناس پورې

تاليف

شيخ القرآن والحديث حضرت مولانا اُسيدُالله صاحب رحمه الله

جديد مكتبه رشيديه
محله جنگي قصه خواني پشاور
091-2580074

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يَهۡدِيۤ اِلَى الرُّشۡدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ وَلَنۡ نُّشۡرِكَ بِرَبِّنَاۤ اَحَدًا

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقيقى
انداز کښې، علمى او الهامى نکاتو باندې مشتمل ، لاجوابه علمى تحفه




# رشد القران

## فى تفسير آيات القرآن

اووم جلد

**له ابتداء د سورة ق نه تر اخر د سورة الناس پورې**

تاليف
شيخ القرآن والحديث
حضرت مولانا أسيد الله صاحب رحمه الله

جديد مكتبه رشيديه
محله جنگى قصه خوانى پشاور 091-2580074

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ



د کتاب نوم : رشد القران فی تفسیر آیات القرآن

تالیف : شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا أُسید الله صاحب رحمه الله

تصحیح ونظر ثانی : مولانا تقی الله صاحب

جلد : اووم

صفحات : ٦٩٤

چاپ اول ځل : ٢٠١٧ء

جدید مکتبه رشیدیه
محله جنگی قصه خوانی پشاور 091-2580074

د کتاب تر لاسه کولو ځایونه

- پشاور
- اکوړه خټک
- کوټه
- پروان
- کندوز
- غزنی
- جلال آباد
- قندهار
- بغلان
- لوګر
- خوست

| | | |
|---|---|---|
| ركوعاتها (۳) | **سورة ق مكية** | آياتها (۴۵) |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | | |

## ترتيبها حسب التسلسل (۵۰) وحسب النزول (۳۴)

سورة ق مكىّ دي، نزلت بعدالمرسلات وقبل البلد.

**ربط** : څرنگه چه مشركين دَتوحيدنه انكاركوي(چه دااصل الاصول دي)نودغه شان دوئ دَ قيامت حشر نشر،سزا جزاء،نه هم انكاركوي،نوماقبل سورتونو،سورة محمّد،سورة فتح، سورة حجرات كښ ذكراواثبات دَتوحيد اوشو،بالسنان،پدې سورة كښ دَ دويم اصل بيان دې چه قيامت دې.

### دسورة دَمضامينواجمالى خلاصه

سورة ق نه ورستومسئله دَقيامت ذكركيږي په هرسورة كښ دَماقبل نه على سبيل الترقى،اوتوحيدچه اصل الاصول دې نوورسره ورسره دَهغې بيان هم كيږي،په ابتداء كښ تمهيددې دعوې دَسورة ته بياذكردَدعوې دې چه(كذلك الخروج)اوبياپه هغې دوه دلائل عقليه ذكردي،يوتفصيلى بل مختصر،اومنونكوته بشارات اونه منونكوته تخويفات،زجرونه هم ذكركيږي،اوپه آخركښ مسئله دَتوحيد.

### تفصيلى خلاصه

**تمهيد مع الزجر**:آيت نمبر۱تا۳ او ديكښې د مشركينو دوه شبهې نقل كيږي

**دعوه دَسورت** :آيت نمبر۱۱ كذلك الخروج ده

**دوه دلائل عقليوؤ بيان دي**:

اول دليل عقلى: آيت نمبر۶ تر ۱۱پورې.

دويم دليل عقلى:آيت نمبر ۳۸

**درې تخويفات ذكركيږي**:

(۱)اول تخويف:آيت ۱۲تر۱۴

(۲)تخويف ثانى:آيت نمبر۱۲تر ۳۰

(۳)تخویف ثالث آیت ۳۶، ۳۷

یو بشارت ذکرکیږی، آیت ۳۱.۳۵

تسلی برائی نبی ﷺ ۳۹ تا آخر.

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۝١ بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ

قٓ،قسم دې په قرآن چه خاونددَشرافت دې،بلکه دا کافران تعجب کوی دَدینه چه راغلې دې دوئ ته

مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيْبٌ ۝٢ ءَاِذَا

یرونکې دَ دوئ دَ جنس نه پس وائی کافران دا یوشئ عجیب دې،آیا(مونږبه بیاژوندی کیږو)کله چه

مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ۝٣ قَدْ عَلِمْنَا

مړه شو مونږ او شو مونږ خاورې دا(بیاژوندی کیدل) واپسي لرې ده ،په تحقیق سره معلوم دی مونږته

مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِيْظٌ ۝٤

هغه چه کموی ئی زمکه د دَوئ نه او زمونږسره کتاب دې حفاظت کونکې(دَعملونودَدوئ).

بَلْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ فِيْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ ۝٥

بلکه دوئ تکذیب اوکړو د حق کله چه راغې دوئ ته نودوئ په خبروګډوډوکښ دی

اَفَلَمْ يَنْظُرُوْٓا اِلَى السَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنٰهَا وَ زَيَّنّٰهَا

آیا نه ګوری دوئ اسمان ته دَ پاسه دَدوئ چه څه رنګه جوړکړیدې مونږهغه اوښائسته کړیدې مودې

وَ مَا لَهَا مِنْ فُرُوْجٍ ۝٦ وَالْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا وَ اَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ

اونشته دې په هغې کښ څه چاؤد(سورې) اوزمکه غوړه ولی ده مونږهغه او ایخی دی مونږپدیکښ مضبوط غرونه

وَ اَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍۭ بَهِيْجٍ ۝٧ تَبْصِرَةً وَّ ذِكْرٰى

اوزرغون کړی مودی پدیکښ دَ هر قسمه بوټونه تر و تازه. دَ پاره دَ پوهه کولو او دَپاره دَنصیحت

| لِكُلِّ عَبۡدٍ مُّنِيبٍ ﴿٨﴾ |
|---|
| دَهرهغهبنده چه رجوع کونکي وي الله ﷻ ته، |

﴿قٓ﴾دادَمقطعاتوقرآنيه ؤنه دي چه قطعي اوحقيقي معنى ئې الله ﷻ ته معلومه ده، او راجح قول دا دي چې دا حروف د تحدي دپاره راوړلې شوي دي.

﴿وَٱلۡقُرۡءَانِ ٱلۡمَجِيدِ﴾داقسم دې اوقسم براى استشهاددې اوجواب قسم ئې محذوف دې چه "انک لرسولٌ صادقٌ" يا "لتبعثنّ بعد الموت" دې چې مابعد آيت په دې دليل دې ، يعني دا دعزت او شرافت والا كتاب په دې گواهي وركوي چې ته د الله ﷻ برحق رسول ئې او بعث حق دې ،﴿ٱلۡمَجِيدِ﴾ يعنى ذو المجد و الشرف على غيره من الكتب، يا ﴿ٱلۡمَجِيدِ﴾ صفت بحال متعلقه دې يعنى مجيدٌصاحبه،چاچه ايزده كړواوعمل ئې پرې اوكړو نوعندالله اوعندالناس به عزت مندشي(كشاف).

﴿بَلۡ عَجِبُوٓاْ﴾دا اضراب دې د جواب قسم محذوف نه او د مشركينو اعتراض به طور شكوه نقل كيږي ، چې ته اګرچې د الله ﷻ برحق رسول ئې او بعث به خامخا كيږي او دا قرآن هم په دې گواه دې خو ددې باوجود دا مشركان ستا په نبوت او بعث بعد الموت باندې اعتراض او حيرت و تعجب اظهار كوي چې دې څنګه رسول كيدې شي ، رسول خو فرشته پكار ده ، بشر كيدې نشي ، اوبيا دې چې د مرګ نه ورستو احوال بيانه وي دادَ كومه ځايه راغلي دي(مُّنذِرٞ مِّنۡهُمۡ )ديكښې اشاره ده ديته چې د دوئ دپاره باعث تعجب اموره دوه وو:(١)يو د بشر نبي كيدل (٢) او بل انذار يعني مرګ نه روستو احوالو سره دوئ يرول ﴿أَن جَآءَهُم﴾اى لان جاءهم﴿مِّنۡهُمۡ﴾من جنسهم،﴿هَٰذَا﴾مشارُاليه بشريت دَرسول او بعث دي.

﴿أَءِذَا مِتۡنَا﴾ دا د مشركانو دليل دې په عدم امكان د بعث، چې مونږ مړه شو او خاورې خاورې ذرې ذرې شو او اجزا خو په زمكه كښې ميلاؤ او نوم نشان خو روک شي نو بيا دا څنګه كيدې شي چې دا ټول را جمع كړې شي او بيا ورله وجود او حيات وركړې شي !!! ﴿ذَٰلِكَ﴾يعنى دابعث بعدالموت﴿رَجۡعُۢ بَعِيدٞ﴾اى بعيدٌ عن العقل والامكان،يعنى داخو دَ عقل نه

ډیره لرې ده؛ ځکه چې (۱) یو خو دا اجزاوو پته نه لګي (۲) او بل د دې نه بیا ځنګه ژوندې پیدا کیږي.

﴿ قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنقُصُ الْأَرْضُ ﴾ دا جواب دې د مشرکینو د دلیل ، او دلیل عقلي دې په امکان د بعث، چې بعث بالکل آسان او ممکن دې ، ځکه چې الله ﷻ علیم ذات دې ، د ستاسو د وجود یوې یوې ذرې علم ورسره دې ، هغه به د زمکې نه را اوباسي ،او قدیر دې چې دې ذرو نه به بیا دوباره انسان جوړ کړي او حیات به ورله ورکړي ،

﴿ قد علمنا ما تنقص ﴾ دا د دوئ د **استبعاد اول شق جواب دې** چه دیکښې الله ﷻ لره د علم محیط اثبات دې ، چې زمکه دَانسان غوښه،هډوکی،ویخته وغیره زاړه کړی اوونی خوری،ریزه ریزه ئی کړی لیکن بیاهم داټول اجزاء مونږته معلوم وی او مونږ سره په یو محفوظ کتاب کښ درج وی،لهذا دَ دوئ وراسته اجزاء معلومول مونږ ته قطعًا مشکل امر نه دې،د بخاري شریف روایت دې چه نبیﷺ فرمائی: لَيْسَ مِنَ الإِنْسَانِ شَيْءٌ إِلَّا يَبْلَى، إِلَّا عَظْمًا وَاحِدًا وَهُوَ عَجْبُ الذَّنَبِ، وَمِنْهُ يُرَكَّبُ الخَلْقُ يَوْمَ القِيَامَةِ وفی روایة لمسلم: «كُلُّ ابْنِ آدَمَ يَأْكُلُهُ التُّرَابُ، إِلَّا عَجْبَ الذَّنَبِ، مِنْهُ خُلِقَ وَفِيهِ يُرَكَّبُ» .یعنی دَانسان ټول بدن خاورې کیږی مګر یو هډوکې نه خاوری کیږی چه هغه عجبُ الذنب،دې (پښتوکښ دې هډوکی ته "لکمونې" وائی)د دینه پیدا شوې دې او هم دینه به دَ انسان دوباره تخلیق کیږی.

﴿وَعِندَنَا كِتَابٌ حَفِيظٌ ﴾حفیظ یاپمعنی دَمحفوظ دې یعنی دَهرتغیرنه محفوظ دې یا پمعنی دَ حافظ دې،اومراد ورنه یالوحِ محفوظ یا علم الهی دې.

﴿بَلْ كَذَّبُوا ﴾دادَ بل عجبوا نه اضراب دې ، یعني دوئ د تعجب د پاره څه واقعي باعث نشته ځکه چې دوئ د الله ﷻ علم محیط او قدرت تامه دواړه مني ، بلکه اصل مسئله د دوئ عناد ده ، چې هغې د وجهې نه حق نه انکار کوي او په ګډو وډو ئي سر دې ، ﴿بِالْحَقِّ﴾ ای بالامر الظاهر البین، مراد ورنه بعث بعدالموت دې﴿فَهُمْ فِي أَمْرٍ مَّرِيجٍ ﴾ "مریج" پمعنی دَمختلط اومتلبس سره دې،یعنی داکافران په ګډوډاومتزلزل احوالو،اقوالوکښ مبتلادی،یو طرف ته د الله ﷻ علم محیط او قدرت تامه مني او بل طرف ته د بعث نه انکار کوي ،دغه شان د الله

ﷺ رسول په باره کښې کله وائی چې دا (نعوذبالله) ساحر دې، کله وائی کاذب دې، کله وائی کاهن دې، کله وائی شاعر دې، یا "مریج" پمعنی دَ فاسد سره دې یقال مرجت المعدةُ اذافسدت.

﴿ أَفَلَمْ يَنظُرُوٓاْ إِلَى ٱلسَّمَآءِ ﴾دا د **دوئ استبعاد دویم شق جواب** دې چې دیکښې الله ﷻ له قدرت تامه اثبات شوې دې ،چې کوم ذات چې دومره لویو لویو کارونو باندې قادر دې ، آسمانونه ، زمکه ، غرونه وغیره پیدا کولې شي نو انسان بیا ژوندې کول هغه ته څه مشکل دي !!! ﴿ أَفَلَمْ يَنظُرُوٓاْ إِلَى ٱلسَّمَآءِ ﴾دیکښې د علویاتو بیان دې ﴿ كَيْفَ بَنَيْنَٰهَا ﴾ای بلاعمدٍ،یعنی داڅومره لوئ عظیم الشان چهت ئی بغیردَستن نه اودره ولې دې،دې ته په نظرِدَعبرت سره اوګورئ،﴿وَزَيَّنَّٰهَا ﴾ اوبیائی په ستورو یا طبعی منظر سره مزین کړیدې،﴿فُرُوجٍ ﴾ جمع دَ "فرج" ده "شق" (چاود) ته وائی مراددادې چه دَهرعیب اونقصان نه سالم دې،نودادَ"ابواب السّمآء"سره منافی نه دې.

﴿وَٱلْأَرْضَ مَدَدْنَٰهَا ﴾دې کښې دَ سفلیاتو ذکر دې یعنی علویات تولوباندې الله ﷻ قادردې﴿وَٱلْأَرْض ﴾ "منصوب" علی شریطة التفسیردې ﴿مَدَدْنَٰهَا ﴾ یعنی زمکه موخوره کړې اوغوړه ولی ده،هرچه ده نظریه دَاهل هیئت چه زمکه کرّه ده،نودَدې آیت سره مَخالفه نده ځکه چه کرّه چه کله ډیره لویه وی نودَهغې هره هره حصه په نظرباندې خوره سطح راځی﴿وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَٰسِيَ﴾ جمع دَ"راسیٌ"ده،یادَ"راسیةٌ"ده،دَ"رُسوٌ"نه مشتق دې،پمعنی دَثبات دَاجساموثقیله ؤ سره، نودَ"رواسی"معنی داده چه پاخه غرونه چه پخپله هم نه خوزیږی دَخپل ځائ نه اوزمکه ئی هم دَ خوځیدو نه منع کړیده،کقوله تعالی"رواسی ان تمیدبکم"اودغه رنګه په حدیث کښې هم مذکور دی چه کله الله ﷻ زمکه پیدا اکړه نوخوزیدله نودَپاسه نه ئی ورباندې دَغرونومیخونه اووهل نو اودریدله،﴿ مِن كُلِّ زَوْجٍ ﴾یعنی دازمکه موپه هرقسمه تازه بوټوسره زرغونه کړیده اورونق مو ورکړیدې .یازوج پمعنی دَجوړې سره دې نوداپدې دلالت کوی چه په بوټوکښې هم مذکرمؤنث شته دي.

﴿تَبۡصِرَةً وَذِكۡرَىٰ﴾ مفعول له دي د ماقبل ټولو افعالو (( بنينا، زينا، مددنا، القينا، او انبتنا)) د پاره على وجه التنازع، او علت دي دَ دې کارونو، ((تبصرة)) او ((ذکری)) کښې فرق دا دې چې "تبصرة" په مقابله کښې "جهل" راځي او "ذکری" په مقابله کښې "غفلت" راځي، يعني په دې صنائعو کښې غور و فکر کولو سره د الله ﷻ د قدرتونو نه جاهل ته، معرفت نصيب کيږي او غافل ته ورسره ياد دهاني کيږي، خو شرط دا دې چې دې جاهل او غافل کښې دوه صفاته وي: يو عبديت او بل انابت، يعني دا کس متکبره او ضدي او معاند نه وي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَنَزَّلۡنَا | مِنَ | ٱلسَّمَآءِ | مَآءً | مُّبَٰرَكًا | فَأَنۢبَتۡنَا بِهِۦ |
| اوراورولې دی مونږ | دَطرفه | دَاسمان نه | اوبه | مبارکې | نو رازغون کړي دي مونږ په هغې سره |
| جَنَّٰتٖ وَحَبَّ ٱلۡحَصِيدِ ۝٩ وَٱلنَّخۡلَ بَاسِقَٰتٖ لَّهَا طَلۡعٞ نَّضِيدٞ ۝١٠ رِّزۡقًا | | | | | |
| باغونه او دانې (د هغه فصل)چه ريبلې شی، او کجورې دنګې دنګې چه وي دَ هغې وږی لاندې باندې ، دَ پاره دَ رزق | | | | | |
| لِّلۡعِبَادِۖ وَأَحۡيَيۡنَا بِهِۦ بَلۡدَةٗ مَّيۡتٗاۚ كَذَٰلِكَ ٱلۡخُرُوجُ ۝١١ | | | | | |
| دَ بندګانو ، او را ژوندئ کړه مونږ په هغې سره مړه (وچه) زمکه ، هم دغه شان به راوتل وی(ستاسودَقبرونونه). | | | | | |

﴿وَنَزَّلۡنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ﴾داهم دَ ماقبل دليل عقلی حصه ده، او د الله ﷻ قدرت مظاهر پکښې بيانيږي، ﴿مَآءً مُّبَٰرَكًا﴾يعنی کثيرالمنافع، ﴿وَحَبَّ ٱلۡحَصِيدِ﴾ "الحصيد"صفت دې دَموصوف محذوف دپاره، چی هغه الزرع يا النبت دې ،يعنی دانی دَ هغه بوټوچه"لو" کولیشی. ﴿وَٱلنَّخۡلَ﴾ عطف دې په﴿جَنَّٰتٖ﴾ باندې﴿بَاسِقَٰتٖ﴾ دنګی دنګی کجورې يابمعنی"حوامل"سره دې. ﴿رِّزۡقًا﴾ مفعول له دې، ای انبتناهاللرزق،

﴿ كَذَٰلِكَ ٱلۡخُرُوجُ ﴾دادَسورة **مرکزی دعوه** ده، چه لکه څرنګه چه باران سره مړه زمکه راژوندئ شی، په زمکه بوټی نه وي بيا را زرغون شي ، بلکه څنو بوټو د تخم پته په زمکې کښ هم نه لګي خو بيا ئي هم الله ﷻ را پيدا کړي ، نودغه شان به دَقيامت په ورځ الله ﷻ مړه انسانان دَ زمکې نه دوباره راژوندی کړی ، برابره خبره ده چې د هغه اجزاء زمکې خوړلي وي

او که محفوظ وي . او د بخاري او مسلم په روايت کښې دا هم راغلي دي ،چې قيامت په ورځ به الله ﷻ باران اوکړي نو دې باران سره به انسانان داسې ژوندي کيږي او پيدا کيږي لکه چې بوټي ورسره پيدا کيږي ،

| |
|---|
| كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَّأَصْحٰبُ الرَّسِّ وَثَمُودُ ﴿١٢﴾ وَعَادٌ |
| تکذيب کړې وو مخکښې دَدوئ نه قوم دَنوح عليه السلام اوخاوندانودکوهي اوثموديانو،اوعاديانو |
| وَفِرْعَوْنُ وَإِخْوَانُ لُوطٍ ﴿١٣﴾ وَّأَصْحٰبُ الْأَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ ۚ كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ |
| اوفرعون اوورونړودلوط عليه السلام،اوخاوندانودبنړ(ځنګل)اوقوم دتبع،هريوتکذيب کړې ووڈرسولانو، |
| فَحَقَّ وَعِيدِ ﴿١٤﴾ أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ ۚ بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ |
| پس ثابت شو(په هغوئ)عذاب ځما.آيامونږستړي شوي يوپه اول ځل پيداکولو،بلکه دوئ په شک کښې دی |
| مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٥﴾ |
| دَپيداکيدو نوی نه. |

﴿ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ ﴾ پديکښې مکذبينو اومنکرينو ته تخويف دنيوی بيانيږی، او ضمنًا تسلی ده حضور ﷺ ته يعنی لکه ځرنګه چه دغه سرکشو قومونو تکذيب اوکړو نو دَ الله ﷻ عذاب پرې راغې نو دغه شان به اې اهل مکه ؤ په تاسوعذاب راشی که تکذيب کوئ.
په آياتونو مذکورؤ کښې چه دَ کومو قومونو ذکر دې دَ دوئ دَ هلاکت واقعات مخکښې سورتونو لکه اعراف، حجر، فرقان، دخان وغيره کښې تيرشويدی.

﴿وَأَصْحٰبُ الرَّسِّ ﴾مشهور قول په بناء دوئ ته پيغمبر حضرت حنظله بن صفوان عليه السلام راليږلې شوې وؤ نور تحقيق دَسورة فرقان آيت(۳۸)کښې وګورئ.﴿ وَإِخْوَانُ لُوطٍ ﴾ مراد دَ رونړو نه نسبی رونړه نه دی بلکه دوئ ته اخوان دَ لوط صرف دَمصاهرت(سخرګنئ)په وجه وئيلې شويدې(روح المعانی)﴿وَأَصْحٰبُ الْأَيْكَةِ ﴾قوم دَشعيب عليه السلام﴿وَقَوْمُ تُبَّعٍ﴾دَدې تفسيرپه سورة الدخان(۳۷)کښې شويدې چه داحميری بادشاه وؤپخپله مؤمن وؤليکن قوم ئې کافروؤ.

﴿ كُلٌّ كَذَّبَ ٱلرُّسُلَ ﴾ كذّب مفرد دَ وجهې دَ لفظ دَ كل نه راوړلې شواو مراد دَ كلية نه تكثير دې كقوله تعالى واوتيت من كل شئ، ځکه چه په قوم نوح وغيره كښ بعضو ايمان راوړې وؤ كقوله تعالى فما آمن معه الاقليل

﴿أَفَعَيِينَا بِٱلْخَلْقِ ٱلْأَوَّلِ ﴾دازجردې منكرينودَقيامت ته استفهام دَتوبيخ دَپاره دې، ((افعيينا)) دا عيّت الحمامة بالبيضة نه ماخو ذ دې ، او دا تعبير هغه وخت استعماليږي چې كله كونترې د اګۍ اچولو وخت راشي خو په دې نه پوهيږي چې چرته ئي واچوي ، او كله چې واچوي نو بيا په دې نه پوهيږي چې اوس ئي حفاظت څنګه اوكړي ، نو خپله اګۍ ئي راغستې يو خوا بل خوا ګرځي او څه بن ورله نه ورځي چې څه پرې اوكړي ، او دغه شان عرب وائي : اعياني دواءک ، كله چې د مرض تشخيص ورنه اونشي ، نو دلته ئي معني عاجزه كيدل ، متحير كيدل او تردد كښې اچيدل ده ، نو الله ﷻ منكرينو د بعث ته فرمائي چې مونږ تاسو اول ځل پيدا كړي يئ ،حالانكه د تاسو څه سابقه مثال هم نه وو، هر انسان له جداجدا صورت ورګول وو، د پلار خوي ترتيب وو، او نور داسې ډير امور وو چې هغه قيامت په ورځ پيدا كولو كښې نشته ، خو دې باوجود الله ﷻ نه ستاسو د اول پيدائش نه عاجزه شوې دې او نه د څه تردد او تذبذب كښې مبتلا شوې دې نو دوباره پيدا كولو كښې بيا د استبعاد څه خبر ده!!

﴿بَلْ هُمْ فِى لَبْسٍ﴾يعنى نه مونږ عاجزه شوي يو او نه داكافران دَالله ﷻ دَقدرت نه انكار كولې شى بلكه اصل داده چه دوئ دَوقوع قيامت او دَ دوباره پيدا كيدلوپه باره كښې په شک كښې دى.

| |
|---|
| وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ ۖ وَنَحْنُ |
| اوپه تحقيق سره پيداكړيدې مونږانسان اومونږپوهيږو په هغه چه وسوسې اچوى، دَ هغى نفس دَ ده اومونږ |
| أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ ﴿١٦﴾ إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ |
| زيات نزدې يو ده ته دَرګ دَمرئ نه،كله چه اخلى دوه اخستونكى(فرشتې)، چې خى طرف ته |

وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ﴿١٧﴾ مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ﴿١٨﴾

اودگس طرف ته ناستې وی . نه رااوباسی انسان دَخولې نه څه خبره مگرپه خوادَهغه کښې نگهبان تيار وي (ليکلوته).

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ وَنَعْلَمُ﴾ داتخويف اخروی دې،اودَبيان سابق تتمه ده چه په انسان باندې زمونږقدرت کامله هم شته دې اوعلم کامل هم،نولهذادَانسان دوباره راژوندی کول مونږته مشکل نه دی.﴿خَلَقْنَا الْإِنسَانَ﴾ دَقدرت کامله بيان دې﴿وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِۦ﴾ دَعلم کامل بيان دې،چه مونږدَانسان دَهرقول اوفعل نه خبرداريو ، تر دې چه دَ هغه په پټو خبرو چه دَ وسوسی په طريقه دَهغه په زړه کښې تيريږی هغه هم مونږته معلوم دی.«به» کښې هاء، ضمير 'ما' ته راجع دې،اوداهم کيديشی چی «الانسان» ته راجع وی ،دی صورت کښې به معنی داسی وی:دَده نفس چې د ده سره کومې پټې خبرې کوي مونږ ته د هغې هم پته ده .

﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ﴾مراددَقرب نه دَجمهورومفسرينوپه نزدقرب علمی دې﴿حَبْلِ الْوَرِيدِ﴾ اضافت بيانی دې،«حبل الوريد»شه رگ يعنی دَځټ هغه غټ رگ ته وائی چه دَهغی په پرې کيدلو سره انسان مړ کيږی ، ممکنه ده چه دا کنايه وی دَ روح او نفس نه، نومطلب دادې چه مونږ دَ علم په اعتبارسره انسان ته دَده دَروح اونفس نه هم زيات نزدې يو ،ځومره چه الله ﷻ دَانسان په احوالوباندی عالم اوخبرداردې دومره انسان پخپل ځان ندې عالم،علامه ابن کثير رحمه الله په نزد دَ 'نحن' نه مرادفرشتې دی،ذات يا علم دَالله ﷻ نه دې مراد،يعنی زمونږ فرشتې انسان ته دَشه رگ نه زياتی قريبی دی.

﴿إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ﴾'اذ'متعلق دې دَ'اقرب'سره يعنی مونږ زيات قريب يوانسان ته دَحبل الوريد دَ هغه نه،کله چه فرشتې دَهغه اعمال ليکی،نوپديکښې اشاره ده ديته چه الله ﷻ دومره زيات عالم دې دَ انسان د احوالو او اعمالو نگراني د پاره د فرشتو مقرر کولو ته ئی حاجت نشته دې،فرشتوتقررخوصرف دَظاهری اتمام حجت دپاره دې(روح المعانی). لکه په حديث کښې دی چه فرشتې دَ يو بنده نيک عمل بره اوړی اودَهغی ډيرې خوبيانې بيانوی ، ترکومه پورې چه الله ﷻ غواړی هغه به وړی.بيابه ورته الله ﷻ هغوئ ته القاء اوکړی چه تاسو صرف ځما دَ بنده دَ عمل محافظې يئ او څه دَ هغه دَزړه نگران يم ځمادې بنده داعمل ځما دَ

رضا دَ پاره نه دې کړې تاسو داپه جهنم کښې اوليکئ، او دَ يوبنده به داسې عمل راوړی چه دَ هغې به تحقير کوی او هغه به ډيرکم ګڼړی، اوهغه عمل به هم ترکومه پورې چه دَ الله ﷻ خوښه وی، وړی، بيا ورته الله ﷻ القاء اوکړی چه تاسوځما دَ بنده صرف دَ عمل محافظی يئ، ځه دَ هغه دَ زړه نګران يم، ځما دې بنده دا عمل ځما دَ رضاء د پاره کړيدې دا دَ نيکانو په دفترکښې اوليکئ (روح المعانی بحواله ابن مبارک وابن ابی الدنيافی الاخلاص)

﴿ يَتَلَقَّى ﴾ پمعنی دَ يأخذ سره دې، ﴿ الْمُتَلَقِّيَانِ ﴾ هغه دوه فرشتې چه په هر انسان مقررې دی، او دَ هغه افعال، اقوال، اعمال ليکی او دوئ ته کراماً کاتبين ويلې کيږی. ﴿ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ﴾ "قعيد" په وزن دَ فعيل دې اطلاق ئی په واحد او په متعددو يوشانته کيږی، ځکه واحد ذکر شو ورنه "قعيدان" پکار وؤ، يا په عبارة کښې حذف دې ای عن اليمين قعيدوعن الشمال قعيد.

**فائده**: دقرآن ظاهر نه صرف دومره خبره معلوميږي چې دا دوه فرشتې دي ، يوه ښي طرف ته وي او بله ګس طرف ته ، خو د مکان تعيين ئي نه قرآن کښې راغلې دې او نه په صحيح احاديثو کښې ، البته بعضو سلفو نه مروي دي چې دا د انسان په اوګو باندې ناستې وي او بعض فرمائي چې د انسان په داړو باندې ناستې وي ، ليکن اصح داده چه علم دَ دې مفوض دې الله ﷻ ته، زمونږ عقول ئی ادراک نشی کولې اونه ئی مونږ مشاهده کولې شو.

﴿ مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ ﴾ يعنی انسان چه دَخولې نه څه قسمه خبره رااوباسی که خيروی که شر، دا فرشتې ورته تيارې ناستې وی، اوليکی ئی، په دې مسئله کښې اختلاف دې چه آيا دَ انسان هرقول ليکلې شی ياصرف هغه چه په هغی کښې ثواب ياعقاب وی؟ نو امام مالک رحمه الله وغيره علماء فرمائی چه هرڅيزليکی "حتی الانين فی المرض" صاحب دَروح المعانی ليکی چه ولي شرح الجوهرة للقاني: "مما يجبُ اعتقاده انّ لله تعالى ملائكةً يكتبون افعال العباد من خير او شرٍ او غيرهما قولاً كانت اوعملاً او اعتقاداً ، همّا كانت او عزما او تقريراً ، اختارهم سبحانه لذلک فهم لايهملون من شانهم شيئًا فعلوه قصداً او تعمداً او ذهولاً و نسياناً".

بعضِ علماؤ دَابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړيدی چه صرف هغه کلمات ليکلې شی چه دَثواب يا عقاب مدار وی پرې، بعضِ علماؤو د دواړو قولونو په مينځ کښې داسې تطبيق کړيدې چه

ابتداءً هر كلمه ليكلې شي ليكن چه كله دَده اعمال پيش كولې شي نو مباحات ورنه محوه كړې شي، او دا معنى ده دَالله ﷻ د يمحوالله مايشاء ويثبت والله اعلم.

﴿مِن قَوْلٍ﴾ ذكردَقول دي خو فعل پكښې هم په دلالت النص سره داخل دې، او دغه شان دا ترينه هم معلوميږي چه فرشتې دَانسان دَزړه خيالات اووساوس نه ليكي كمافى الحديث، إِنَّ اللَّهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِي مَا حَدَّثَتْ بِهِ أَنْفُسَهَا، مَا لَمْ تَعْمَلْ أَوْ تَتَكَلَّمْ

﴿رَقِيبٌ﴾ يعنى فرشته چه دَده قول ساتنه كوى ﴿عَتِيدٌ﴾ تياره اوحاضره. دادواړه هم په وزن دَفعيل دي په مفرد او متعدد ئې اطلاق يو شانته كيږى ، كه دَ آيت كريمه استحضار وى نو دَ مسلمانانو نه به چرته هم گناه نه صادريږى خصوصاً گناه دَژبې.

| |
|---|
| وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ذٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ ⑲ |
| اورابه شى سختئ دَمرگ په رشتياسره اوبه ويلې شى ده ته داهغه دې چه ته به دَهغې نه تختيدلې، |
| وَنُفِخَ فِي الصُّورِ ذٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيدِ ⑳ وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ |
| اووبه پوكلې شى په شپيلئ كښ ،دا ورځ دَ عذاب ده،اوراشى به هر نفس ورسره به وى يو شړونكې |
| وَّشَهِيدٌ ㉑ لَقَدْ كُنتَ فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا فَكَشَفْنَا عَنكَ |
| اوگواهى كونكې ورته به اوويلې شى چه يقيناً وې ته په غفلت كښ دَدې ورځې نه نولرې كړله مونږ ستانه |
| غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ ㉒ |
| پرده ،ستانونظرستانن ورځ تيزدې. |

﴿وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ﴾ داتخويف دې ، په دلائلو سره د بعث اثبات كولو نه ورستو اوس الله ﷻ د بعث پوره احوال به طور تخويف بيانوي ، او دې آيت كښې تخويف دې په ذكر دَ حالت دَ مرگ سره،يعني مرگ او دهغې سختئ راتلل يقيني دي د هغې دپاره تياري اوكړه ، تعبيرپه ماضى سره دلته اودغه رنگه په مابعد كښ دَوجه دَ تيقن نه شويدې، ﴿سَكْرَةُ

﴿ٱلۡمَوۡتِ﴾ دَمرګ په شدت سره چه کومه بی هوشی اوسختی وی هغی ته وائی، په قراءت دَابن مسعودﷺکښې ((سکرات الموت)) په جمع سره راغلې دې، داموافق دې دَهغه حدیث سره چه بخاری، ترمذی وغیره ذکرکړیدې چه حضورﷺباندې چه کله دغه حالت راغې نوخپل لاسونه مبارک به ئی په اوبوکښې اووهل اوبیابه ئي په مخ مبارک باندې مسح کول اوفرمائیل به ئی ((لااله الاّالله ان للموت سکرات)). ﴿بِٱلۡحَقِّ﴾ باء دَملابست دپاره ده او حال دې د ((سکرة))نه، ای متلبسةً بالحق، مرګ دَحق سره راغې، یعنی دَمرګ سکرات راتلل یقینی دی، کقوله تعالی کل نفسٍ ذائقة الموت، او یا ((باء)) د پاره د تعدیه ده ، یعني دَ مرګ سختئ حقیقت څرګند کړو. یعنی دَ مرګ په وخت کښې به دَ هغو وعدو حقیقت ښکاره شی کوم به چه اللهﷻ او دَ هغه انبیاؤو کولې﴿ذَٰلِكَ﴾دینه مخکښې یقال له عند الموت مقدردې، اواشاره ده مرګ ته ﴿تَحِيدُ﴾ای تَهربُ وتفرّ.

﴿وَنُفِخَ فِي ٱلصُّورِ﴾ دیکښې د قیامت واقع کیدلو منظر بیان دې ،چې صور به پو کړې شي او قیامت به واقع شي ،﴿ذَٰلِكَ﴾ اشاره نفخ ته ده.﴿يَوۡمُ ٱلۡوَعِيدِ﴾یعنی داورځ دَ واقع کیدلو دَ عذاب ده کافرانولره، یا وعید عبارت دې دَعذاب موعودنه یعنی داورځ دَ واقع کیدلو دَ وعدې ده.

﴿ وَجَآءَتۡ كُلُّ نَفۡسٍ﴾ دیکښې د کافر حساب کتاب د پاره راوستلو منظر بیان دې ، چې چې دوه فرشتې به پرې مسلطې وي او یوه به ئي محشر طرف ته راکاږي او بله پرې ګواهي کوي ، ((کل نفسٍ)) ابن عاشور رحمه الله متعدد قرائنو په وجه فرمائي چې دینه مراد نفس کافر دې ، او بعض مفسرین فرمائي چې دې نه مرادهرسړې دې مؤمن وي او که کافر ، نیک وي او که فاسق، اګرچه په اختلاف دَنفوسو سره به په کیفیت دَسوق اوشهادة کښې اختلاف وی . ٠

﴿سَآئِقٞ وَشَهِيدٞ﴾دینه(١)هغه دوه فرشتې مراددی چه په اذیتلقی المتلقیان کښې ئی ذکراوشویعنی یوه به ملک الحسنات وی اوبله ملک السیئات(٢)بعضِ وائی چه سائق فرشته ده چه میدان حشرته به انسان راکاږی اودَشهید نه مرادجوارح دَانسان دی(٣)اصح داده(کما فی البحر) چه سائق هم اسم جنس دې تولې هغه فرشتې ورنه مراددی چه داسوق ورته حواله

شوې وی او "شهید" هم اسم جنس دې تول گواهی کونکی ورنه مراددی که کراماً کاتبین وی، که جوارح وی اوکه زمکه.په حدیث کښې دی "لایسمع مدیٰ صوت المؤذن انسٌ ولاجنٌ ولاشئ الاشهدله یوم القیامة".

﴿ لَّقَدْ كُنتَ فِي غَفْلَةٍ ﴾ دیکښې د حساب کتاب د پاره پیشئ منظر بیان دې ، او خطاب کافر ته دې ،او دینه مخکښې " یقال للکافر الغافل " مقدر دې، یعنی کافر چه کله دَ هغی حقائقو معاینه اوکړی دَ کومو تصدیق به ئی چه په دنیا کښې نه کولو نو ورته اوبه ویلې شی چه په دنیا کښې ته دَ کوم څیز نه منکر وې نو هغه نن په تا نازل شو اوس ئی ښه اوګوره.﴿مِّنْ هَٰذَا﴾ اشاره حالاتو دَ محشر ته ده،یا عملنامې ته ده،﴿فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَاءَكَ ﴾ یعنی مونږ لرې کړه ستانه هغه پرده چه هغې دَ معاد امور ستا نه پټ کړی وو،چه هغه دَ غفلت،انهماک او محبت ساتل دَ دنیا دَ څیزونو سره او دَ خواهشات نفسانیه ؤپرده وه،﴿فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ﴾یعنی نظردی نن ښه تیزدې اوښه لګی ځکه چه مانع زائله شو.

| |
|---|
| وَقَالَ قَرِينُهُ هَٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ ﴿٢٣﴾ أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٢٤﴾ |
| اواوبه وائی ملګرې دَده داهغه دې چه ماسره حاضردې،وغورځوئ په جهنم کښې هرکافرضدکونکې. |
| مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ ﴿٢٥﴾ الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ |
| دیرمنع کونکې دَخیر،ظالم،شک کونکې(په دین کښې)هغه کافرچه ګرځولې ئې دې دَالله ﷻ سره اله بل، |
| فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ ﴿٢٦﴾ قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ |
| پس وغورځوئ دې په عذاب سخت کښې،اوبه وائی ملګرې دَده(شیطان)اې ربه زمونږنه وؤګمراه کړې مادې په زوره |
| وَلَٰكِن كَانَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ ﴿٢٧﴾ قَالَ لَا تَخْتَصِمُوا لَدَيَّ |
| لیکن وؤدې پخپله په ګمرا هئ لرې کښې دَحق نه،اوبه وائې الله ﷻ چه مه کوئ جګړې ځماپه خواکښې |

| |
|---|
| وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ ﴿٢٨﴾ مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ |
| اوپه تحقيق سره مخکښې مې ليږلې وُو تاسو ته يرول . نشي بدليدلې هيڅ خبره«فيصله»ځماپه خواکښې |
| وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿٢٩﴾ |
| اونه يم ځه هيڅ ظلم کونکې په بندګانوخپلو. |

﴿وَقَالَ قَرِيْنُهٗ﴾ ديکښې د جرم ثبوت بيان دې چې کومه فرشته د ده په اعمالو ليکلو مقرر وه هغه به دده ټوله عمل نامه الله ﷻ په دربار کښې پيش کړې چې ما سره د ده دا جرائم ليکلي شوي دي ، مراد دَ «قرين» نه يافرشته ده چه کومه دَده دَعملونوپه ليکلومقرره وه او﴿هٰذَا﴾ اشاره دې کافر او د ده عملنامې ته ده، يا ورنه مرادشيطان دې چه کوم دنياکښې دَده سره ملګرې وؤ،کقوله تعالى: نقيّض له شيطاناً فهو له قرين(الزخرف:٣٦)په حديث کښې دي: ما من احدٍ الاّ و قد وُكّل به قرينه من الجنّ قالوا:ولا انت يارسول الله قال: ولا انا الاّ انّ الله تعالى اعانني عليه فاسلم فلا يامرني الاّ بخير.او﴿هٰذَا﴾اشاره کافرسړي ته ده،يعنى شيطان به وائي چه دامجرم حاضردې چه ماغواکړې وؤاوګمراه کړې مې وؤاوجهنم ته مې تيارکړيدې.«هذا» مبتدا دې او «ما لدي» ورنه بدل دې او«عتيد» خبر دې د اسم اشارې ،

﴿أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ﴾دا خطاب دې دَ طرفه دَ الله ﷻ نه فرشتو ته ، او ديکښې د فيصلې بيان دې چې الله ﷻ به د ده دَ جرمونو په وجه د ده په حق کښې د جهنم فيصله اوکړي ،په صيغې دَ "القيا" کښې مختلف اقوال دي:

(١)داچه دادَتثنيه صيغه ده،يعنى دوؤفرشتوته حکم دې، او دا دوه فرشتې ياهغه ملک الحسنات اوملک السيئات دی يا دَ جهنم دوه نورې داروغه دی چه يوه به ئي دَ سر نه او بله دَ خپو نه اونيسى او جهنم ته به ئي اوغورزه وى کقوله تعالى "فيوخذبالنواصى والاقدام" (الرحمٰن)

(٢)دا دَ مفرد صيغه ده،په آخر کښې الف بدل دَ نون تاکيدخفيفه نه راغلې دې په اصل کښې "القينْ" دي

(۳)بعضِ وائی دلته صیغه د تثنیة دپاره د تکرار د فعل ده ، یعني کله د فعل تکرار اظهار په صورت د صیغې د تثنیې سره کیږي، نو ګویا دا په اصل کښ"الق الق" دي ، لکه "قِفا نبکِ من..." په اصل کښ"قف قف"دي.

(۴)بعضِ وائی دامحمول دي په محاورې دَ عربو چه دوئ واحدته خطاب په تثنیه سره کوی.

﴿كُلَّ كَفَّارٍ﴾ دیکښې د فیصلې وجوهات بیانیږي ، چې په دوئ د جهنم فیصله د شپږ وجوهاتو او صفاتو په بنیاد شوې ده ، «کفار» دا **اول صفت او وجه** ده ، چې دې ډیر ناشکره دي ، د الله نعمتونو شکریه ئي په ایمان راوړلو سره نه ده ادا کړې ، ﴿عَنِيدٍ﴾ **دویم صفت** او وجهې بیان دې ، چې ډیر لوئ معاند وو ، حق خبره ئي صرف ضد او عناد په وجه نه منله ، (مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ)**دریم صفت** او وجهې بیان دې ،چې خپله خو ئي هڅې خیر او اسلام نه قبولو چې نور خلق ئي ترینه هم منع کولو او په لار کښې ورته رکاوټونه اچول (مُعْتَدٍ )**خلورم صفت** دې ، چې لوئ ظالم وو ، خلقو باندې به ئي ظلم زیاتې کولو او مسلمانانو ته به ئي تکلیفونه رسول (مُرِيبٍ )دا **پنځم صفت** او وجهې بیان دې ، چې هغه تشکیک دې ،" مریب" وائي بل په شک کښې اچونکي ته ،یعني د اسلام تعلیماتو او احکاماتو باندې به ئي مختلف قسم اعتراضات کولو او د دین راهنمایانو باندې به ئي مختلف الزمات لګولو او هغې سره به ئي د تشکیک او بې اعتمادي فضا جوړوله،﴿ الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ ﴾ دا**شپږم صفت** او وجه ده ، چې هغه شرک دې. ﴿ الَّذِي ﴾ مبتداءدې متضمن دې معنی دَشرط لره او﴿فَأَلْقِيَاهُ﴾ ئی خبردې.

﴿قَالَ قَرِينُهُ﴾ مراددَ«قرين » نه ارجح قول مطابق شيطان دې ، یعني دې چې کله دا فیصله واوري ، نو خان بچ کولو د پاره به ټوله ملبه په شیطان اوغورځوي او د دې ګناهونو ذمه دار او قصور وار به هغه اوګرځوي ، نو شیطان به ورته په جواب کښ اووائی چه ﴿رَبَّنَا مَآ أَطْغَيْتُهُۥ﴾ چه ما خو په زور نه ووګمراه کړې بلکه ماخوصرف دعوت ورکړې ووګمراهئ ته ، او

ده پخپل اختیارسره قبول کړې وؤ . داسې مضمون په سورة ابراهیم(۲۲)کښې هم تیردې
((وَمَاكَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ....))

﴿ قَالَ لَا تَخْتَصِمُوا لَدَيَّ ﴾ الله ﷻ به ورته اوس وائي چې بس، بحث مباحثه نوره ختمه کړئ، دې هیڅ فائده نشته ، ما په دنیا کښې خپل رسولان تاسو ته رالیږلي وو ، او هغوئ تاسو ته د کفر وعیدونه بیان کړي او اتمام حجت ئې درباندې کړې وو ، لهذا اوس د جهنم ته تلو فیصله کښې نه څه تبدیلی کیدې شي او نه دا فیصله په بې انصافئ باندې مبني ده.﴿بِالْوَعِيدِ ﴾ مرادورنه دادقول دَالله ﷻ دي،((لاملئنّ جهنم من الجنّة والنّاس اجمعين)) (السجدة:۱۳) او دغه شان دا قول د الله ﷻ ((ان الله لایغفر ان یشرک به ))﴿ الْقَوْلُ ﴾ الف لام عهد خارجي دې مرادورنه داقول دَالله ﷻ دي چه﴿أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ ﴾.

| |
|---|
| **يَوْمَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ وَتَقُولُ هَلْ مِن مَّزِيدٍ ۞** |
| په هغه ورځ چه اووایومونږجهنم ته چه آیاته ډک شوې اوهغه به اوائی آیا څه نور هم شته |

﴿يَوْمَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ ﴾ د فیصلې نه بعد اوس د دوئ د ټهکانې حالت بیانیږي ، "یوم"دپاره عامل مقدردې چه"انذر"دې یعنی اې پیغمبره ﷺ چه داخلق دَهغه ورځې نه اوویره وه چه په کومه ورځ مونږ بې شماره کافران جهنم ته غورځولونه ورستو دَ هغه نه تپوس اوکړو چه ﴿هَلِ امْتَلَأْتِ﴾ آیاته ډک شوې؟ نوفوج در فوج مجرمان هضمولو باوجود به جهنم جواب اوکړی چه ﴿هَلْ مِن مَّزِيدٍ﴾ نور خلق هم را اوغورځوئ ځماخیټه لا نه ده ډکه شوې،شاید چه داخلق پدې سره اوویریږی چه مونږ څومره خطرناکی ټهکانې ته روان یو ،اودَخپل عمل نه منع شی .

ترمذی دَ انس ﷜ نه روایت کړیدې چه حضور ﷺ فرمائی چه "قَالَ: لاَ تَزَالُ جَهَنَّمُ تَقُولُ: هَلْ مِنْ مَزِيدٍ، حَتَّى يَضَعَ فِيهَا رَبُّ العِزَّةِ قَدَمَهُ فَتَقُولُ: قَطْ قَطْ وَعِزَّتِكَ، وَيُزْوَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ.

یعنی په جهنم کښې به دوزخیان غورځولې کیږی اوهغه به هل من مزید وائی،حتّی چه الله ربُّ العزة به په هغې باندې خپل قدم (کمایلیق بشانه)کیدی نوهغه به یوبل سره راټول شی اووائی به چې ستا د عزت قسم بس بس،

او په بخاري او مسلم يو روايت كښې دي چې په جنّت كښې به هم ځائ خالي وی نو دَهغې ډكوولو دپاره به الله ﷻ نور مخلوق هلته پيدا كړی او هغوئ به پكښې آباد كړی.

**لطيفه**: يو بزرګ ته چاعرض اوكړو چه په حديث مذكور كښې چه دكوم مخلوق ذكر دې دا خو ډير خوش قسمته دی چه پيدا كيدو سره جنّت ته داخل كړې شول، هغه ورته اوفرمايل چه دوئ ته به دَجنت څه مزه ملاؤ شی ؟ ځكه چه دوئ دَ دنيا تكليفونه نه دی ليدلی، قبر، حشر منازل ئی نه دی ليدلی، دَجنت دَراحت اوارام به دوئ سره څه قدر وی؟ قدر خوبه ئي مونږ سره وی چه دَ دنيا تكليفونه، دَ قبر، حشر سختئ موليدلی دی.

**تنبيه**: حديث مذكوره په احاديثو دَصفاتو كښې مشهور حديث دې، پديكښې دَالله ﷻ دَ قدم ذكر دې، چه دا دَ متشابهاتو نه دې، چه معنى حقيقي ئی الله ﷻ ته معلومه ده، البته اكثر متكلمين او بعضِ سلف دَدې تاويل صحيحه كوی چه موافق ذې دَقواعدشرعيه وُسره او نصوص شرعيؤ سره، نو دوئ وائی چه داكنايه ده دَ "اذلال" نه يعني كله چه دَدوزخ طغيانی زياته شی نو الله ﷻ به ئي ذليل كړی، دَ دې "اذلال" نه تعبير په "وضع قدم" سره شويدې

بعضِ علماؤ اشكال كړيدې چه الله ﷻ وعده كړيده چه: لاملئنّ جهنم من الجنّة النّاس اجمعين (هود: ۱۱۹) نو چه دې ډک كړيشی نو دَ﴿هَلْ مِن مَّزِيدٍ﴾ څه مطلب دې، جواب (۱) دادې چه مراد دَامتلاء (ډكولو) نه دادې چه دَدَه يو طبقه به هم خالي نه وی اګرچه نور خالي ځايونه به پكښې وی، لكه خلق وائی "كلې دَخلقونه ډک شوهيڅ خالي كور پكښې نشته دې" حالانكه لارې كوڅې اوميدانونه خالي وی.

(۲) بعضِ وائی چه داپه اعتبار دَحالينو دې، خالي والې او دَ﴿هَلْ مِن مَّزِيدٍ﴾ مطالبه په اول الدخول كښې ده، بيا پكښې نور مخلوق واچولې شی نو ډک به شی (۳) بعضِ وائی چه جهنم به ډک وی ليكن په كافرانو او په عصاتو باندې دَ ډيرغضب په وجه به وائی چه ﴿هَلْ مِن مَّزِيدٍ﴾.

| وَأُزْلِفَتِ | الْجَنَّةُ | لِلْمُتَّقِينَ | غَيْرَ | بَعِيدٍ | هَٰذَا (۳۱) |
|---|---|---|---|---|---|
| اورانزدې به كړيشی جنت پرهيزګارانوته نه به وی لرې (ورته به اوويلې شی) دا هغه جنت دې | | | | | |

| |
|---|
| مَا تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ اَوَّابٍ حَفِيْظٍ ۝ مَنْ |
| چه وعده به ئي كيدله تاسو سره دَ پاره دَ هر رجوع كونكي حفاظت كونكي ﴿ دَ حقوق الله ﴾ . هغه څوک چه |
| خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ ۝ اُدْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ |
| يريدلي وي دَالله جل جلاله نه په غيبه سره او راغلي وى په زړه رجوع كونكي سره.داخل شئ دي جنت ته په سلامتئ سره، |
| ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ ۝ لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ فِيْهَا وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ ۝ |
| داورځ دَهميش والى ده،وى به دَدوئ لپاره هغه څه چه غواړى ئى په جنت كښ او زمونږ سره شته څه نور هم |

﴿وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِينَ﴾دابشارت اخرويه دې متقينو ته،چه دوئ ته به جنّت بالكل نيزدې راوستلې شي چې دوئ به ميدان حشر نه دهغي نعمتونو مشاهده كوي او خوشحاله كيږي به ورته او دغه شان ورته په تګ او داخليدو كښې به هم ورته هيڅ قسم تكليف نه وي ، (وَأُزْلِفَت)د "ازلاف" نه ماخوذ دې ، قريب كولو او نيزدې كولو ته وائي ، او دا د جنت نيزدې كول به حقيقتا وي چې الله جل جلاله به ئي حشر ځائ ته بالكل نيزدې راولي او دوئ به د دې نعمتونو مشاهده كوي ، لكه جهنم به باره كښې چې راځي: « وبرزت الجحيم لمن يرى »، (غَيْرَ بَعِيدٍ ) منصوب دې بناء بر طرفيت ،اي: مكانا غير بعيد، يعني دوئ ته بالكل نيزدې ځائ ته راوستلې شي ،

﴿هَٰذَا﴾ دَدينه مخكښ يُقال لهم " مقدردې،يعنى جنتيانوته به اوئيلې شى چه داهغه جنت دې چه دَهراوّاب اوحفيظ سره به ئى وعده كيدله ، «هذا»اشاره جنت ته ده، او اشاره د مذكر ورته په اعتبار د مسمى سره راوړلې شوې ده چې هغه مكان دې ،او مسمى اعتبار سره مذكر اشاره هم راوړلې شي او مؤنث هم ، خواه لفظ او اسم ئې مذكر وي يا مؤنث ، د تذكير او تانيث احكامات په هغې نه جاري كيږي ،بلكه د دې تعلق الفاظو سره دې ،(ابو السعود) (مَا تُوعَدُونَ ) حكايت د حال ماضي دې ، نو صيغه دمضارع ده خو معني ئې ماضي ده ، اي كنتم توعدون به في الدنيا

﴿ لِكُلِّ أَوَّابٍ حَفِيظٍ﴾ جنت د داخلیدلو مستحق کسانو اوصاف بیانیږي: «اواب » دا ئي **اول صفت** دي او دي معنی ده "کثیر الرّجوع" الله ﷻ ته یعنی چه کوم سړي بار بار الله ﷻ طرف ته رجوع کوی، یعني که ګناه ترینه اوشي نو فورا توبه اوباسي او الله جل جلاله ته رجوع اوکړي ، معصیت نه طاعت طرف ته او غفلت نه د ذکر طرف ته رجوع کونکي وي ، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او مجاهد رحمه الله. دَ﴿أَوَّابٍ﴾ معنی کوی چه "هو الّذی یذکر ذنوبه في الخلوة فیستغفر الله منها" هغه چه په تنهایئ کښ خپل ګناهونویادوی اودهغې نه استغفارکوی. حضرت عبید بن عمیر رحمه الله فرمائی چه﴿أَوَّابٍ﴾ هغه دي "هو الّذی لایجلس مجلسً حتّی یستغفر الله تعالی فیه" یعنی چه په هرمجلس کښ استغفارکوی،

(حَفِيظٍ)دا ئي **دويم صفت** دي،او دَ "حفیظ" معنی ده د الله ﷻ د احکاماتو حفاظت کونکي، چې په هغې پوره کولو کښې نه سستي کوي او نه ئي ضائع کولو ته پریګدي ، لکه حدیث شریف کښې راخي چې نبي کریم ﷺ یو ځل ابن عباس رضي الله عنهما ته او فرمائیل : یا غلام احفظ الله یحفظک. چې اې ماشومه د الله ﷻ د احکاماتو حفاظت کوه الله به د ستا حفاظت کوي.

﴿مَّنْ خَشِيَ ٱلرَّحْمَٰنَ ﴾دا ئي **دريم صفت** دې ، چې هغه غيب باندې ايمان راوړل دي .

(وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيبٍ )دا ئي **څلورم صفت** دې ، چې د انابت په صفت مستقیم پاتې وي حتي چې مرګ ورته هم په دې حال کښې راغلې وي او الله ﷻ ته دې صفت سره حاضر شوې وي .

﴿ٱدْخُلُوهَا بِسَلَٰمٍ﴾ اي : یقال لهم : ادخلوها، دا ئي د جزا او بدلې اعلان دې چې تاسو بدله دا جنت دې دیته داخل شئ «بسلام» دا داسې ټهکانه ده چې دیکښې به تاسو هر قسم تکلیف ، پریشانئ ، غم او مصیبت نه په امن او سلامتئ کښې وئ ،(ذَٰلِكَ يَوْمُ ٱلْخُلُودِ )نن ورځ نه دا د ستاسو مستقل ټهکانه ده او دا نعمتونه به ستاسو سره هیمشه د پاره وي ، زوال به پرې نه راخي ، (لَهُم مَّا يَشَآءُونَ فِيهَا )چې څه غواړئ هغه به درته میلاویږي ، نه څه ممانعت شته او نه د عدم موجودګئ احتمال ، بلکه هر څه به مهیا او حاضر خدمت وي ، (وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ )یعني دې

چې څه غواړي هغه خو به ورله خود وي بلکه داسې ئیزونه به ورله هم وي چې د به نه د هغې مطالبه کړې وي او نه به د ده حاشیه خیال کښې راغلي وي. او هم داسې نعمتونو په باره کښې حدیث کښې راغلي دي "ما لاعینٌ رأت ولااذنٌ سمعت ولاخطرعلی قلب بشر"چه نه به هغه دَ جنتیانو سترګو لیدلی وی نه به ئي غوږونو اوریدلی وی.نه به ئي دَ هغې تصورَپه زړه کښ تیرشوې وی (اللّهم ارزقناها)

حضرت انس او جابر رضی الله عنهما فرمائی چه "مزید" نه مراد دیدار الهی دې،النظرالی وجهه تعالی (مسلم) چه جنتیانو ته به نصیب کیږی او دا به ورته دَ ټولو نعمتونو نه زیات محبوب وی"رزقناالله بمنه وفضله"

او یو مطلب د "مزید" دا هم بیان شوې دې چې دینه مراد هغه نعمتونه او اجرونه دي چې هغه د عمل په سبب میلاو شوي نعمتونو نه علاوه دي.

| |
|---|
| وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا |
| او ډیرهلاک کړیدی مونږمخکښ دَدوئ نه ډلې چه ووهغوئ زیات سخت دَدوئ نه په نیولو(قوت)کښ |
| فَنَقَّبُوْا فِي الْبِلَادِ هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ ﴿٣٦﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى |
| نو اوګرځیدل هغوئ په ښارونو کښ . آیا شته دې ځائ دَ خلاصی ، بیشکه پدیکښ خامخانصیحت دې |
| لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ ﴿٣٧﴾ |
| لپاره دَهغه چاچه وی هغه لره زړه یا کیږدی غوږ او دې حاضر وی (متوجه وی) |

﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم ﴾داتخویف دنیوی دې اهل مکې ته "کم"خبریه دې یعنی مونږدَدې اهل مکې نه مخکښ ډیرخلق دَ هغوئ دَ کفر په وجه هلاک کړیدی حالانکه هغوئ په بدنی قوت اومالی قوت کښ دَدوئ نه زیات وو،لیکن دَ دې باوجود زمونږ دَ عذاب نه بچ نشول نو تاسو هم دَ دینه عبرت اونصیحت واخلئ،ایمان راوړئ.

﴿ فَنَقَّبُوا فِى الْبِلَدِ ﴾ ((نقبوا)) د نقب نه دې او "نقب" په معنی "ثقب" سره دې ، "ثقب" سوري ته وائي . نو د" تنقیب معني دۀ سوري کول، یعني خاروته ئي سوري کړل او دلته دا

کنايه ده د تذليل او تسخير نه ، "فاء" د پاره د تفريع ده ، يعني داسې قوت او مال خو ورله ورکړي وو چې ټوله زمکه ئي ځان له مسخر کړې وه ، کاروبارونه ئي پکښې شروع کړي وو . غټې غټې بنګلې او قلعې ئي پکښې قائم کړې وې . فصل او کروندې ئي پکښې کولې او د هغې دپاره ئي ډيمونه جوړ کړي وو وغيره،(کما في قوله تعالى: واثاروا الارض وعمروها اکثر مما عمروها) خو چې کله عذاب پرې راغې نو دې هر څه باوجود بيا ئي د پناه او بچ کيدو ځائ نه وو ،(ابو السعود، التحرير والتنوير)

تنقيب په معنى د "سير" ګرځيدلو سره هم راځي او دې صورت کښې به ئي معنى داسې شي چې دمرګ نه دبچ کيدلو دپاره په زمکه کښې ډير اوګرځيدل را اوګرځيدل او د پناه ځائ تالاش کړو ليکن چه کله زمونږعذاب راغې نو هيڅ ځائ ورته دخلاصيدلو ملاؤنه شو

دبحث او تالاش په معنى کښې هم استعماليږي . او دې صورت باندې به ئي معنى داسې وي ، چې کله پرې د الله ﷻ عذاب راغې نو بيا ئي د پناه ځائيونه ډير تالاش کړو خو چرته ورته هم ځائ نشو ميلاو. (روح)

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾ اشاره اهلاک ته ده،يعنى دَدې تيرشوى قومونو په هلاکت کښې لوئ نصيحت اوعبرت دې دَپاره دَهغه چا چه صلاحيت پکښې وى.﴿لِمَن كَانَ لَهُ قَلْبٌ﴾ اى عقلٌ يعنى پخپله پکښې پوهه وى،اودَقرآن په بيان کښې فکرکوليشى،دې کښې مرتبې دَاجتهادته اشاره ده﴿أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ﴾ مرتبې دَتقليدته اشاره ده چه پخپله نه پوهيږى نوبل ته غوږکيدى،﴿وَهُوَ شَهِيدٌ﴾ يعنى په قلب اودماغوسره حاضروى.

| |
|---|
| وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ |
| اوبه تحقيق سره مونږپيداکړيدى اسمانونه اوزمکه اوهغه څه چه په مينځ دَدې دواړوکښې دى په مقدارد شپږوورځوکښې، |
| وَّمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ ﴿٣٨﴾ فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ |
| اوندې رسيدلې مونږته هيڅ ستړلې والې،پس صبرکوه ته اې پيغمبره! په هغه څه چه دوئ ئې وائى اوپاکى بيانوه |

بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ۝ وَمِنَ الَّيْلِ

سره د حمد د خپل رب مخکښې دَ راختلو دَ نور نه او مخکښې دډوبيدلونه.اوپه څه حصې دَشپې کښې

فَسَبِّحْهُ وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ ۝

نوپاکي بيانوه دالله ﷻ اوورستودَسجدونه.

﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ﴾دادويم دليل دې په ثبوت دَقيامت،چه هغه ذات چه دَ تولو کائناتو په پيدا کولو باندې نه دې ستړې شوې نوهغه قادر دې په دوباره پيدا کولو دَ انسانانو ، قتادہ رحمہ اللہ وغيره وائی چه پدې آيت کښې رد او تکذيب دې دَ يهوديانو په قول چه هغوئ وائی چه الله ﷻ ابتدأ دَ خلق دَ اتوار ورځی نه کړيده او دَ جمعی په ورځ ورنه فارغ شويدې اوذَهفته په ورځ ئی(نعوذبالله)ارام کړيدې ځکه چه ستړې شوې وؤ.سبحانه وتعالی عما يقولون علواًکبيراً.

﴿فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴾دَشپږو ورځونه مرادمتعارفې ورځې نه دی مراد بلکه مقدار دَ شپږو ورځو مراد دې.﴿وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ﴾ "من"زائده دې دَپاره تاکيد،اوتنوين په﴿لُّغُوبٍ﴾کښې دَ تحقير د پاره دې، يعنی مونږ ته لږغونته ستړې والې هم نه دې را رسيدلې،

﴿فَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ ﴾داتسلی ده حضورﷺ ته،چه په يادِالهی کښې مشغول اوسه نو دَ دې کافرانو معاندانه خبرو ته به دی توجه نه وی،﴿عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ ﴾ داعام دې قول مذکور دَ يهوديانو ته شامل دې او دَ مشرکانو ويناګانو ته هم شامل دې چه کله وائی ته کاذب ئی،کله وائی ساحر ئی ، کله وائی مجنون ئی، کله وائی"انّ هذالشئ عجيب" وغيره .

اشرف علی تهانوی رحمہ اللہ فرمائی داآيت په دې دلالت کوی چه په شدائدوکښې قوی ذريعه دَ تسلی، الله ﷻ طرف ته رجوع کول دی.

﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾اکثرمفسرین فرمائی چه پدې آیت کښې دَصلوات خمسوُدَفرضیت بیان دي،نو﴿قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ﴾ نه مراد دَ سهارمونځ دې اودَ﴿وَقَبْلَ الْغُرُوبِ﴾ نه دَ ماسپخین، مازیگر مونځونه مراددی،﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ﴾ نه مراددَماښام،ماسخوتن مونځونه مراددی.

(۲)بعض مفسرین وائی داآیت دَفرضیت دَصلوات خمسه وُنه قبل نازل شویدې نو پدیکښې دَ پنځوؤ مونځونو دَ فرضیت بیان نه دې بلکه دَ درې مونځونو بیان دې، سهار، مازیگر او دَ تهجد مونځ،

(۳)بعضِ وائی چه په دې کښې دَ مونځ بیان نه دې بلکه دَ عامو تسبیحاتو بیان دې، لکه "سبحان الله و بحمده" وئیل. په بخاری اومسلم کښې دَابوهریرهؓ نه روایت دې چه کوم سړې په ورځ کښې سل(۱۰۰) ځله، سبحان الله و بحمده،اووائی دَهغه گناهونه به معاف شی اگرچه دَ سمندر دَ زگ برابر ولې نه وي ،«بخاري» دغه شان دَابوهریرهؓ په یوروایت کښې دی چه کوم سړې سهاراوماښام سل(۱۰۰)سل(۱۰۰)ځله سبحان الله وائی قیامت په ورځ به دَده نه زیات بهترعمل کونکې بل څوک نوی ماسویٰ دَهغه چانه چه هغه دغه تسبیح دغه مقداریازیات دَدې نه وئیلی وی.

﴿وَأَدْبَارَ السُّجُودِ﴾یعنی دَسجدونه ورستوهم دَاللهﷻ تسبیح کوه(۱)بعض وائی دینه مرادهغه تسبیحات وئیل او اذکار دي چې فرض نه ورستو وئیلو فضائل راغلیدي . (۲)بعضِ وائی دینه مرادسنن اونوافل دی(۳)بعضِ وائی دینه مراددرې رکعاته وتر دی.

| |
|---|
| وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴿٤١﴾ يَوْمَ يَسْمَعُونَ |
| اوغوږکیده،په هغه ورځ چه اوازوکړی اوازکونکې دَځائ نزدې نه،په هغه ورځ چه واؤرې به دوئ |
| الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ ﴿٤٢﴾ إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ |
| چغه په حقه سره،داورځ دَراوتلوده«دَقبرونونه»،بیشکه صرف هم مونږژوندی کول کوؤاومړه کول کوؤ |
| وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ﴿٤٣﴾ يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا |
| اوهم مونږته رجوع دَخلقوده،په هغه ورځ چه وچوی زمکه دَدوئ نه ( نو را اوځی به دوئ)په جلدئ سره، |

| |
|---|
| ذٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيْرٌ ۝٤٤ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ وَمَآ اَنْتَ |
| دادوباره ژوندی کول مونږ ته بالکل اسان دی، مونږ ښه پوهه یوو په هغه څه چې دوئ ئې وائی اونه ئې ته |
| عَلَيْهِمْ بِجَبَّارٍ فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ ۝٤٥ |
| په دوئ باندې زور کونکې (مسلط) پس نصیحت اوکړه په قرآن سره هغه چاته چې یریږي ځما د عذاب نه |

﴿وَاسْتَمِعْ﴾دا هم تسلي ده چې اې پیغمبره ، ته صبر کوه او د قیامت ورځ راتلو انتظار کوه او هغې صیحې ته غوږ کیده چې هغې سره به دوئ د قبرونونه راوتلل شروع شي او الله ﷻ دربار کښې به ئې پیشي وي او الله ﷻ به ورنه د دې هر څه حساب واخلي ، «استمع » یا په خپله معنې کښې دې او مفعول ئې محذوف دې ، اي : استمع النداء او الصيحة يا "استمع" په معنی دَ "انتظر" دې.

﴿مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ﴾دَدې په تعین کښې اختلاف دې(١)بعض وائی دینه مراد ،صخره بیت المقدس،دې ځکه چه دا آسمان ته دَنوروځایونوزیات قریب دې،اسرافیل علیه السلام به پدې باندې اودریږی او دا آواز به کوی : ايتها العظامُ البالية و الاوصال المتقطعةُ و اللحومُ المتمزّقةُ و الشعورُ المتفرقةُ ان الله يأمركنّ ان تجتمعن لفصل القضاء"یعنی اې زړوهډکو ، او اې بندنو بیل بیل شوؤ او اې غوښو ټوټې ټوټې شوؤ ،اې ویښتوخواره خواره شوؤ! الله ﷻ امر کوی تاسو ته چه راغونډ شئ دَپاره دَ فیصلې دَ قضاء.

(٢)بعض وائی چه دَهرانسان دَقدم لاندې به دغه اوازکیږی(٣)اصح داده چه هرسړې به دااوازداسې آوری چه خیال به کوی چه دااوازماسره خواشاکښې نزدې کیږی،

﴿يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ﴾دادَ﴿يَوْمَ يُنَادِ﴾ نه بدل دې مراددَ﴿ الصَّيْحَةَ ﴾ نه نفخه ثانیه ده،﴿بِالْحَقِّ﴾ یعنی دابه یقینی اوازوی څه خیال اووهم به نه وی.

﴿يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ﴾بدل بعدبدل دې،﴿ سِرَاعًا ﴾ جمع دَ"سریع"ده حال دې دَمقدرنه،ای فیخرجون سراعًا،یعنی زمکه به اوشلیږی نوخلق به ټول په منډه منډه راووځی،په حدیث کښې

دی چه دامنډې وهل به ملک شام طرف ته وی،چه هلته صخره بیت المقدس باندې به اسرافیل علیه السلام دغه نداکوی(معارف القرآن).

﴿ ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴾تقدیم دَجارمجروردلالت کوی په اختصاص باندې یعنی دا حشر دَ خلقو صرف مونږ ته اسان دې،بل څوک دَدې قدرت نه لری،

﴿نَّحْنُ أَعْلَمُ ﴾تسلی ده حضور ﷺ ته، ﴿وَمَآ أَنتَ عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ ﴾یعنی ته په دوئ مسلط نه ئی چه مجبوره ئی کړې ایمان راوړو ته،بلکه ستا کار خو صرف دعوت ورکول دی، ﴿ فَذَكِّرْ بِالْقُرْءَانِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ﴾په اصل کښې وعیدی دې حالتِ وقف پوجه ئ ساقطه شوه،یعنی ته په قرآن سره وعظ او نصیحت اوکړه هغه چا ته چه څما دَ عذاب نه یریږی. یعنی ستا دعوت او وعظ خو اګرچه عام دې لیکن اثر به ورنه صرف هغه اخلی چه څما دَ عذاب او وعید نه یریږی، حضرت قتاده رحمه الله چه به داآیت اولوستلونودادعابه ئی کوله.اللّهم اجعلنامّن یَخافُ وعیدکَ ویرجوا موعودکَ یا بارّ ، یا رحیم.

| رکوعاتها (۳) | سورة الذاريات مكية | اٰیاتها (۶۰) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | په نوم دالله ﷻ چه بيحده مهربان اورحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۵۱) وحسب النزول (۶۷)**

نزلت بعدالاحقاف وقبل الغاشية

**ربط**: پدې سورة کښ مسئله دَقيامت على سبيل الترقى دَماقبل نه بيانيږى، ماقبل کښ ذکرشو چه ﴿ذَٰلِكَ يَوۡمُ ٱلۡخُرُوجِ﴾ يعنى قيامت حق دې هرسړې به دَقبرنه دوباره ژوندې کيږى. دې سورة کښ دى چه ﴿ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٞ ۝ وَإِنَّ ٱلدِّينَ لَوَٰقِعٞ ﴾ حشربه هم کيږى اوحساب به هم کيږى.

**دسورة دَمضامينو اجمالى خلاصه**

ابتداء کښ جزاءسزاباندې شواهد ذکرکيږى، اودَحشرنشريوه نمونه، اثبات دعوى دپاره دوه عقلى دليلونه. په درميان کښ دَتخويف دنيوى پنځه (۵) نمونى، اورفع عذاب دپاره دَامورِثلاثه ؤبيان. زجرونه اوبشارات هم دى پکښ.

**تفصيلى خلاصه**

آيت نمبر ۳ ، ۴ څلور شواهد په دعوى باندى ذکر کيږى.
آيت نمبر ۵ ، ۶ کښ دعوه ذکر کيږى
آيت ۷ ، حشر محشر نمونى بيان دې
آيت ۸ ، ۹ زجر دې مشرکينو ته.
آيت ۱۰ ، تر ۱۴ ، تخويف اخروى دې.
آيت نمبر ۱۵ تا ۱۹ بشارت دې او دنجات علت بيان دې چې هغې تفصيل په درې امورو سره شوې دې.
آيت ۲۰ تر ۲۳ کښ اول دليل عقلى او دهغى ثمرى ذکر دى. دا مشتمل دې درى قسمه دلائلو باندى. (۱) دليل آفاقى (۲) انفسى (۳) علوى
آيت ۲۴ تر ۳۷ ، تخويف دنيوى اوله نمونه از قوم لوط.

آیت ۳۸ تر ۴۰ تخویف دنیوی دویمه نمونه از فرعون.
آیت ۴۱، ۴۲ ،تخویف دنیوی دریمه نمونه ازعاد.
آیت۴۳، ۴۵ تخویف دنیوی څلورمه نمونه از ثمود.
آیت ۴۶ تخویف دنیوی پنځمه نمونه ازقوم نوح.
آیت ۴۷، تر ۵۱ دویم دلیل عقلی او دَهغی مقتضا ذکر دي.
آیت ۵۲، ۵۸تسلی برائ رسول.
آیت ۵۹، ۶۰ تخویف برائ مشرکین.

**تمت خلاصة السورة اجمالاً وتفصيلاً**

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالذّٰرِيٰتِ | ذَرْوًا ① | فَالْحٰمِلٰتِ | وِقْرًا ② | فَالْجٰرِيٰتِ | يُسْرًا ③ | | |
| قسم په هواګانوچه الوخونکی وی په الوخولو سره ، بیاپورته کونکی دی بوج لره. بیا چلیدونکی دی په نرمئ سره، | | | | | | | |
| فَالْمُقَسِّمٰتِ | اَمْرًا ④ | اِنَّمَا | تُوْعَدُوْنَ | لَصَادِقٌ ⑤ | | | |
| بیاتقسیمونکی دی امر دَ الله ﷻ، بیشکه هغه څه تاسوسره ئی وعده کیږی خامخاوعده ریشتنی ده، | | | | | | | |
| وَّاِنَّ | الدِّيْنَ | لَوَاقِعٌ ⑥ | وَالسَّمَآءِ | ذَاتِ | الْحُبُكِ ⑦ | اِنَّكُمْ | |
| اوبیشکه چه قیامت خامخا واقع کیدونکې دې، قسم په اسمان چه بنائست والا دې‌په ستورو، بیشکه تاسو | | | | | | | |
| لَفِيْ | قَوْلٍ | مُّخْتَلِفٍ ⑧ | يُّؤْفَكُ | عَنْهُ | مَنْ | اُفِكَ ⑨ | |
| خامخاپه ګډو وډو خبرو کښې (اموخته) یئ، اړه ولي شی دَ قیامت نه هغه څوک چه اړه ولي شوې وی دَ خیر نه، | | | | | | | |

﴿وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا﴾ پدې آیاتونوکښ په اثبات دَقیامت اوپه جزاءسزاباندې شواهد ذکر دی، دَ دې الفاظو په تفسیرکښ دَ مفسرینو دوه اقوال دی:

**یو قول دا دې** چه دا څلور واړه مختلف صفات دي د یو موصوف ، چه "الرّیاح" دې، ﴿وَالذّٰرِيٰتِ﴾ یعنی قسم په هغوهواګانو چه دوړی او نور څیزونه الوخوی په الوخولو سره،یو بل آیت کښې هم د هوا دې صفت ته اشاره شوې ده : «فاصبح هشیما تذروه الرياح» ﴿فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا﴾ دلته هم"الرّیاح"موصوف مقدردې،یعنی قسم په هغه هواګانوچه اوچته وی بار دَ وریځو،

﴿وِقۡرٗا﴾ بار نه مرادوريځې دی لکه بل ځائ کښې راغلي دي «حتی اذا اقلت سحابا ثقالا»
﴿فَٱلۡجَٰرِيَٰتِ يُسۡرٗا﴾ يعنی قسم په هغوهواګانوچه نرمئ سره چليږی. ﴿فَٱلۡمُقَسِّمَٰتِ أَمۡرًا﴾ قسم په هغه هواګانوچه تقسيموی امر دَ الله ﷻ لره.يعنی په يو ځائ کښې باران دَرحمت اوکړی اوپه بل ځائ کښې ګلئ اووره وی.

**دويم قول دا دي** چه دا څلورواړه دَمختلفوڅيزونودپاره صفات دی.﴿وَٱلذَّٰرِيَٰتِ﴾ صفت دې دَ الرّياح دپاره،﴿فَٱلۡحَٰمِلَٰتِ﴾ صفت دې دَ السحاب دپاره.﴿وِقۡرٗا﴾ نه مرادبار دَ أبو دې يعنی قسم په هغه وريځوچه بار دَ اوبو اوچتونکی دی،بعضوورنه حاملې ښځې مرادکړيدی چه بار دَحمل ئی أوچت کړي وی.﴿فَٱلۡجَٰرِيَٰتِ﴾ دا صفت دې دَ السُفن دپاره،يعنی قسم په هغه کشتوچه په سردَاوبوپه نرمئ سره چليږی. ﴿فَٱلۡمُقَسِّمَٰتِ﴾ داصفت دې دَ الملائکة دپاره،يعنی فرشتې چه په مخلوق کښې دَ رزق،باران،وغيره تقسيم دَتقدير الهی مطابق کوی.

﴿إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٞ﴾ داجواب قسم دې،دَاول دوؤقسمونوسره متعلق دې،يعنی لکه څرنګه چه هواګانې راوالوځی اوخورې ورې وريځې راجمع کړی نودغه شان بهٔ الله ﷻ هم ستاسو اجزاء راجمع کړی. او دَ وعدې نه مراد وعده دَ بعث بعدالموت ده . «ان» حرف مشبه بالفعل دې ،او«ما» په «انماتوعدون» کښې کافه نه ده،بلکه موصوله ده،او«لصادق» خبر دې دَ«ان».

﴿وَإِنَّ ٱلدِّينَ لَوَٰقِعٞ﴾ دا هم جواب قسم دې او اخری دوه قسمونو سره متعلق دې،يعنی څرنګه چه هواګانې اوچليږی بعضِ ځايونوکښې دَرحمت باران اوکړی بعضِ ځايونوکښې دَ عذاب، نو دغه شان به حساب کتاب خامخاکيږی بعضِ خلقوباندې به دَرحمت باران اوشی چه مؤمنان به جنت داخل شی اوبعضوباندې دَعذاب،چه کافران به جهنم ته لاړشی.

﴿وَٱلسَّمَآءِ ذَاتِ ٱلۡحُبُكِ﴾ دابل شاهددې په ثبوت دَ قيامت او دَ حشر نشر يو نمونی ذکر دی، ﴿ٱلۡحُبُكِ﴾ جمع دَ حبيکة ده،لاروته وائی، حبکُ الرّمل دَ شګو په بيابان کښې دَ هوا په چليدو سره چه کومې لارې او لهرونه جوړ شی هغې ته وائی. حبکُ الماء په ولاړو اوبو باندې

دَ هوا په چليدو سره چه کومې چپې او لهرونه جوړ شی،هغې ته وائی، "حبک الشعر" ويخته کمسئ کول. چونکه دې لاروسره حسن اوښائست راځی نوځکه دَ ﴿ذَاتِ ٱلْحُبُكِ﴾ معنی په خاوند دَ زينت او ښائست په ستورو او سپوږمئ وغيره سره کيږی (۲)بعضو "حبک" پخپله لفظی معنی محمول کړيدې،نومعنی داده چه قسم په آسمان چه لارو والا دې، اَو مراد دَ لارُو نه يا دَ فرشتو دَ تلو راتلو لارې دی يا دَ ستورو لارې مراد دی

(۳)بعضو ئی معنی"المتقنة البنيان" کړيده،يعنی قسم په مضبوط آسمان (۴) بعضو ئی معنی په"جالی دار"سره هم کړيده،دَشپې په وخت کښ چه کله تياره وی اوآسمان بالکل صفانه ښکاری اوستوری موجود وی نو داسې محسوسيږی لکه چه دَستوروجال غوړه ولې شوې وی(والله اعلم).

او جواب قسم محذوف دې چې انکم لتحشرونّ دې، قسم او جواب قسم کښ مناسبت دا دې چه څنګه چې آسمان لارې لارې دې تاسو ته نه خکاری. څنګه چې هغې کښ موجود اشياوؤ کښ تغير راځی،سپوګمئ اول بالکل وړه وی،ورو ورو غټې کيږی، حتی چه بدر کامل شی،بيا په زوال شی حتی چې بالکل غيبه شی هغې نه بعد ئې بيا الله ﷻ راپيدا کړی، ستوري د ورځې نه ښکاري او چې شپه شي نو بيا را ظاهر شي نو دغه شان به تاسو هم په مرګ سره څه ساعت د پاره پټ شئ او قيامت په ورځ خو به الله ﷻ دوباره را ژوندي کوي.

عامو مفسرينو جواب قسم «انکم لفي قول مختلف» ګرځولې دې،دې صورت باندې قسم او جواب کښ مناسبت دادې چې څرنګه آسمان لارې لارې دې .دغه شان تاسو اقوال هم نبی ﷺ باره کښ مضطرب دی،څوک ورته څه وائی اوڅوک څه؟

﴿إِنَّكُمْ لَفِى قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ﴾ دا زجر دې اهل مکې‌و ته ، چې حشر نشر دومره شواهد ، نمونې او دلائل تاسو ته بيان شو خو دې باوجود تاسو په ګډو وډو سر دې «قول مختلف» نه مراد په اقوالو کښې اختلاف او تذبذب دې چې (۱) څوک په قيامت په راتلو کښې شک کوئ او څوک ترينه صفا انکار کوئ (۲) څوک قرآن ته سحر وايئ ، اوڅوک ورته شعر (۳) نبي ﷺ ته کله ساحر وائي ، کله دروغ ژن ، او کله مجنون . نو دا تذبذب ستاسو په ناحق والي ښکاره دليل دې،

بعض وائي خطاب په ﴿ إِنَّكُمْ ﴾ كښ عام دي مؤمن، كافردواړوته، اود ﴿ قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ﴾ نه مراددادي چه بعض په حضور ﷺ ايمان راوړى لكه صحابه كرام ﷺ اوبعض ئى تكذيب كوى لكه كافران (بحرمحيط).

﴿ يُؤْفَكُ عَنْهُ ﴾ يعني دومره دلائلو او شواهدو بيان نه ورستو هم كه څوك د حشر نشر او د قيامت د وقوع نه انكار كوي نو دا ازلي بد بخته دي ، هدايت ئي په قسمت كښې نشته «عنه» كښې ضمير ياراجع دي «ما» ته په «انما توعدون» كښ. چى هغى مصداق حشر دي. اى يُصرفُ عن الايمان بالحشر ، يعنى دَحشر نه به هغه څوك انكاراواعراض كوى چه په حقيقت كښ هغه دَ هر خير نه محرومه شوې وى.

بعضو مفسرينو ليكلي دي چې "عن" دلته د پاره د سببيت دي . لكه په دې قول د الله ﷻ كښې «أإنا لتاركوا آلهتنا عن قولك» او ضميرراجع دي «قول مختلف» ته ، يعني دې ګډو وډو خبر په وجه كه څوك ايمان نه اوړي او ترينه متاثره كيږي نو دې ازلي شقي او بد بخته دي ، (اضواء البيان).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُتِلَ | الْخَرّٰصُوْنَ ⑩ | الَّذِيْنَ | هُمْ | فِيْ | غَمْرَةٍ | سَاهُوْنَ ⑪ | يَسْـَٔلُوْنَ |
| لعنت دې وي په اټكل كونكو ، | | هغه چه | هغوئ | په | غفلت كښ | بى هوشه(بى خبره)دى، | تپوس كوى دوئ |
| اَيَّانَ | يَوْمُ | الدِّيْنِ ⑫ | يَوْمَ | هُمْ | عَلَى النَّارِ | يُفْتَنُوْنَ ⑬ | ذُوْقُوْا |
| چه كله به وى | ورځ | دَقيامت، | هغه ورځ چه | دوئ به | په اورباندې | سيزلې شى، | (ورته به اووئيلې شى)اوڅكئ |
| فِتْنَتَكُمْ | هٰذَا | الَّذِيْ | كُنْتُمْ | بِهٖ | تَسْتَعْجِلُوْنَ ⑭ | | |
| عذاب خپل،داهغه | عذاب دې | چې | تاسو | پرې | تادي كوله | | |

﴿ قُتِلَ الْخَرّٰصُوْنَ ﴾ تخويف اخروى دې منكرينودَقيامت ته، چه نن خو ترينه په غفلت كښ پراته دى اوتعجب او استهزا وربورى كوى او د قيامت په راتلو تلوار كوي خو په دغه ورځ به دوئ د الله ﷻ رحمت نه لرې وي او په اور به سيزلې شي . ﴿ قُتِلَ ﴾ بمعنى "لعن" ﴿ يَسْـَٔلُوْنَ ﴾ يعنى استهزاءً تپوس كوى چه قيامت چه ته ورنه مونږ يره وې هغه به كله راځى. ﴿ يَوْمَ ﴾ متعلق دې په

مقدر پورې، يعنى واقع كيږى به قيامت په هغه ورځ چه دوئ به په اُوركښ سوزولې كيږى.﴿ يُفۡتَنُونَ ﴾ بمعنى يُحرقون﴿ذُوقُوا﴾دينه مخكښ يقال لهم مقدردي﴿فِتۡنَتَكُمۡ﴾فتنه پمعنى دَعذاب سره دي.

| |
|---|
| إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٖ وَعُيُونٍ ۝١٥ ءَاخِذِينَ مَآ ءَاتَىٰهُمۡ |
| بيشكه متقيان به په جنتونوكښ اوپه چينوكښ وى . اغستونكى به وى د هغه څه چې وركوى به دوئ ته |
| رَبُّهُمۡۚ إِنَّهُمۡ كَانُواْ قَبۡلَ ذَٰلِكَ مُحۡسِنِينَ ۝١٦ كَانُواْ قَلِيلٗا مِّنَ ٱلَّيۡلِ |
| رب دَدوئ، بيشكه وۇدوئ مخكښ دَدينه په دنياكښ نيكى كونكى. وۇ دوئ به لږشانى دَشپې |
| مَا يَهۡجَعُونَ ۝١٧ وَبِٱلۡأَسۡحَارِ هُمۡ يَسۡتَغۡفِرُونَ ۝١٨ وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ |
| خوب كولو. اوپه وخت دَسحرونو كښ به دوئ مغفرت غوښتلو.اوپه مالونودَدوئ كښ حق(حصه)وۇ |
| لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ ۝١٩ |
| دَسوال كونكى اونه كونكى لپاره. |

﴿ إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٖ وَعُيُونٍ ﴾ دا بشارت اخرويه دې چې آخرت كښ به متقيان او مؤمنان په جنتونو او چينو كښ به وى،او قسم قسم نعمتونه به ورته دَالله ﷻ دَطرفه ميلاويږى. ﴿ءَاخِذِينَ مَآ ءَاتَىٰهُمۡ ﴾اخذين پمعنى دَقابلين،راضين سره د)ې.ما" نه مراد ثواب او نعمتونه دَ جنت دى،يعنى پدى نعمتونو به خوشحاله وى او خوشحالئ سره به يې قبولوى.

﴿إِنَّهُمۡ كَانُواْ قَبۡلَ ذَٰلِكَ مُحۡسِنِينَ ﴾دا د ماقبل تعليل دې چې دا نعمتونه به ورته په وجه د احسان ميلاويږي ، او احسان په تفصيل كښې دلته درې امور بيان شوي دي:

(١)نفلى عبادات : يعنى فرضى عبادات اداكول خو هسى هم ضرورى دى ،خو دَ هغى سره سره نفلى عباداتو اهتمام كول.

(٢)استغفار : كوم گناهونه اوخطاگانى انسان نه اوشى په هغى باندى اصرار كولو په ځاى استغفار كول.

(٣)انفاق: يعنى نورو سره همدرى كول او هغوئ ضروريات پوره كول.

﴿ كَانُوا۟ قَلِيلًا مِّنَ ٱلَّيْلِ ﴾ دا **اول امر** دي ، چې فرضي عبادت خو پريږده چې د نفلي عبادت به ئي دومره اهتمام کولو چې د شپې لږه حصه به ئي آرام له او نوره به ئي عبادت له ورکوله .

﴿مَا يَهْجَعُونَ ﴾دَ هجوع نه مشتق دي پمعنی دَ نوم في الليل .

آسان اوزيات غوره ترکيب دَ دي آيت دا دي چه «ما» زائده ده .«يهجعون» جمله خبر دې د فعل ناقص،«قليلاً» يا مفعول فيه مقدم دې دَ«يهجعون» يا ورله مفعول مطلق دي باعتبار دَموصوف سره ، اي زمانا قليلا،او هجوعا قليلا .«من الليل» دا صفت دې د «قليلاً» . نومطلب داشوچه دوئ به دَشپې ډيرکم اوده کيدل اواکثره حصه به ئي په عبادت کښ تيره وله.اى ينامون قليلاًمن الليل ويصلّون اکثره(قرطبى)

بعضِ وائى چه"ما"نافيه دې اى کانواقليلاًمن الليل لايهجعون.نومطلب دادې چه ټوله شپه به نه اوده کيدل،دَشپې په څه حصه کښ به ئى عبادت کولو ،ابن کثيرﷺدَابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړيدى چه هغه فرمائى چه: لم تکن تمضى عليهم ليلة الاّ يأخذون منها و لو شيئًا،يعنى داسې شپه پدوئ نه ده تيره شوې چه عبادت ئى پکښ نه وى کړې اګرکه لږ وى. (روح المعانى).

﴿وَبِٱلْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾ دا **دويم امر** دې ، چه دوئ پخپل عبادت غرورنه کوى بلکه دَ خپل قصوراوکوتاهئ اقرارکوى،په ﴿وَبِٱلْأَسْحَارِ﴾ کښ اشاره ده ديته چه عبادت او تهجد دَ دوئ متصل وى دَ سهار سره،

﴿ وَفِىٓ أَمْوَٰلِهِمْ حَقٌّ ﴾دا **دريم امر** دې چه دَ مخلوق سره ښيګړې کوى،دَ﴿حَقٌّ ﴾نه بعضو زکوٰة مرادکړيدې يعنى زکوٰة ورکوى،ليکن چونکه داآيت مکى دې اوحکم دَ زکوٰة تفصيلاً په مدينه کښ نازل شويدې نو په دې وجه غوره داده چه دَزکوٰة نه علاوه حق ورنه مراددې لکه نفلى صدقه،صله رحمى،دَميلمه اکرام کول وغيره،په حديث کښ دى"انّ فى المال حقا سوىٰ الزکاة" ﴿لِّلسَّآئِلِ وَٱلْمَحْرُومِ﴾سائل خوظاهردې چه هغه چاته وائى دَخلقونه دَخپل حاجت پوره کولو سوال کوى"محروم"بعضِ وائى هغه دې چه دَسوال کولونه اجتناب کوى خپل حاجت خلقوته نه ښکاره کوى،بعضِ وائى چه هغه سړې چه دَهغه هرڅه دَ څه آفت په وجه تباه شوي وى اودې محروم پاتې وى.

| |
|---|
| وَفِي الْأَرْضِ اٰيٰتٌ لِّلْمُوْقِنِيْنَ ﴿٢٠﴾ وَفِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿٢١﴾ |
| اوپه زمكه كښې ډير دلائل دَتوحيد دى دَ پاره دَ يقين كونكو . او په خانونو ستاسو كښې هم . آيا نو تاسو نه وينئ. |
| وَفِي السَّمَآءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوْعَدُوْنَ ﴿٢٢﴾ فَوَرَبِّ السَّمَآءِ |
| اوپه اسمان كښې دي رزق ستاسواوهغه څه چه تاسوسره ئې وعده كيږي.پس قسم دې په رب دَاسمانونو |
| وَالْاَرْضِ اِنَّهٗ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَآ اَنَّكُمْ تَنْطِقُوْنَ ﴿٢٣﴾ |
| اودَزمكې چه بيشكه دا خامخا حق دې پشان دَ دې چه تاسو خبرې كوئ . |

﴿وَفِى ٱلۡأَرۡضِ ءَايَٰتٌ﴾ **دادليل عقلى افاقي** دې په ثبوت دَقيامت ،چه په زمكه كښې په وقوع دَ حشر او بعث بعد الموت باندې ډير دلائل دى،كقوله تعالى: ومن آيته انک ترى الارض خاشعة فاذا انزلنا عليها الماء اهتزت و ربت انّ الّذى احياهالمحى الموتىٰ حم سجده:٣٩ ﴿لِّلۡمُوقِنِينَ﴾ يعنى دپاره دَهغه خلقوچه دَيقين طلب كونكى دى،

﴿وَفِىٓ أَنفُسِكُمۡ﴾ **دادليل عقلى انفسى** دې، يعنى انسان چه پخپل بدن اواعضاؤپه تركيب اوتناسب باندې غوروكړى نودَده دپاره پدې كښې ډيردلائل دى چه كوم ذات پدې قادردې نوهغه څماپه دوباره پيداكولوباندې هم قادردې،كقوله تعالى: ا لم يکُ نطفةً من منىّ يمنىٰ...ا ليس ذلک بقادرٍ على ان يحى الموتى(القيامة).

﴿وَفِى ٱلسَّمَآءِ رِزۡقُكُمۡ﴾ **دادليل عقلى علوى** دې،يعنى كوم الله ﷻ سره زمونږ رزق ليكلې شويدې او مونږ ته په وخت مقرر ميلاويږى ،نو دغه شان هغه سره قيامت وخت هم ليكلې شويدې،او په وخت مقرر باندى به ضرور راځى،څنگه چې عدم علم دَ تعين دَ رزق دَليل نه دې دَعدم وجود د رزق، نو دغه شان عدم علم په وخت مقرر د قيامت، دليل نه دې دَ قيامت په نه واقع كيدلو. «رزقكم» مضاف مقدر دې اې اسباب رزقكم يعنى په آسمان كښې ستاسو دَ روزئ اسباب دى لكه نور سپوږمئ اوباران چه سبب دَرزق دې،حسن بصرى رحمه الله به چه كله وريځه اوليده نو خپلو ملگرو ته به ئې اوفرمائيل:فيه والله رزقكم ولكنّكم تُحرَمونه بخطاياكم.

پدې کښې ستاسو رزق دې ليکن تاسو ورنه دخپلو گناهونو په وجه محروم يئ. بعض وائی مطلب دادې چه وفی السماء تقدير رزقکم يعنی دَ انسان رزق او هر هغه څيز چه دوئ سره ئی وعدې کيږی تول په لوح محفوظ کښې ليکلی شويدی.

﴿وَمَا تُوعَدُونَ﴾ مراد ورنه وعده دبعث بعدالموت ده، مطلب دادې چه کچرته تاسو په عدم بعثت باندې استدلال په وجه دعدم تعين دَ وقت مقررسره کوئ نو دَ دې جواب دادې چه دَ قيامت وقت مقررعلم الله سره دې، نودعدم تعين نه استدلال په عدم وقوع باندې نشئ کولې نو په ﴿رِزْقُكُمْ﴾ کښې اشاره ده دېته چه لکه څرنګه باوجود دينه چې د رزق ميلاويدو وخت مقرر مونږ ته معلوم نه وي ، خو وجود دَ رزق يقينی وي نودغه سـن قيامت راتلل هم يقينی دي اګرچې مونږ ته ئي د متعين وخت پته نشته.

﴿فَوَرَبِّ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ﴾ دا ثمره ده د ماقبل دلائلو، چې دماقبل دلائلونه دا ثابت شوه قيامت وقوع به کيږي او د دې وقوع داسې يقيني دې لکه چې تاسو په خپلوخبرو يقين دې چې دا زمونږ خبرې دی ،او ضمير په «انه» کښې راجع دې حشرته يعنی داراتلل دَ حشر او بعث بعدالموت داسې يقينی دی لکه څرنګه چه تاسو پخپلو خبرو يقين کوئ چه دا زمونږ خبرې دی او ياراجع دې رزق ته، يعنی تاسو ته خپل مقرر رزق ملاويدل يقينی دی.

| |
|---|
| هَلْ أَتٰىكَ حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرٰهِيمَ الْمُكْرَمِينَ ۝ إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ |
| آيا راغلې ده تاته قصه دَميلمنو دَابراهيم عليه السلام چه عزت مندوؤ، کله چه داخل شول دوئ په ابراهيم عليه السلام، |
| فَقَالُوا سَلٰمًا ؕ قَالَ سَلٰمٌ ۚ قَوْمٌ مُّنْكَرُونَ ۝ فَرَاغَ |
| نودوئ اوونيل سلام (کوؤ مونږ په تا)، اوونيل ابراهيم سلام دې وی په تاسو، دا قوم نا اشنا دې. پس په پټه راغې دې |
| إِلٰى أَهْلِهِ فَجَآءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ ۝ فَقَرَّبَهُ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ۝ |
| خپل کورته نو رائ وړلو سخې څورب، بيا ورنزدې ئی کړو هغوئ ته، ورته ئی اوونيل ولې نه خورئ تاسو |
| فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ؕ قَالُوا لَا تَخَفْ ؕ وَبَشَّرُوهُ بِغُلٰمٍ |
| نو محسوسه ئی کړه په زړه کښې دَ هغوئ نه يره، هغوئ اوونيل مه يريږه. اوزيرې ئی ورته ورکړو د هلک |

| |
|---|
| عَلِيْمٍ ﴿٢٨﴾ فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ فِيْ صَرَّةٍ فَصَكَّتْ وَجْهَهَا وَقَالَتْ عَجُوْزٌ عَقِيْمٌ ﴿٢٩﴾ |
| پوهه . نومخامخ راغله ښځه دَ ده په چغه پس وئ وهلومخ خپل اووئی وئیل چه ځه بوډئ یم شنډه یم. |
| قَالُوْا كَذٰلِكِ ۙ قَالَ رَبُّكِ ۙ إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ ﴿٣٠﴾ |
| هغوئ فرشتوورته اووئیل هم داسې وئیلی دی رب ستا. بیشکه الله ﷻ هغه حکمت والادېرپوهه دې |

﴿ هَلْ أَتٰىكَ حَدِيْثُ ضَيْفِ إِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴾پدې آیاتونوکښ دَتخویف دنیوی په پنځه نمونوکښ **اوله نمونه** ذکرکیږی. اصل نمونه دَقوم لوط دَهلاکت ده چه دوئ دآخرت نه غافله وۇ او په ګناهونوکښ مشغوله وۇ الله ﷻ وورباندې عذاب نازل کړوتول هلاک شول، نو دَ دینه تاسوهم اې اهل مکه عبرت واخلئ،دَدینه مخکښ دَابراهیم علیه السلام قصه دَهغې تمهید دې، دَ ابراهیم علیه السلام او دَ قوم لوط علیه السلام دَهلاکت کومه واقعه چه په دې آیاتونوکښ ذکرده،په سورة هود او سورة حجرکښ ئی تفصیل تیرشویدې اودغه رنګه دَ آیاتونو مذکورۇ اکثر تفسیر هم کړې شویدې.

﴿ضَيْفِ﴾مصدردې اطلاق ئی په واحداوپه متعددکیږی. اطلاق دَضیف (میلمنو)په دوئ دَ وجه دَخیال دَابراهیم علیه السلام نه شویدې،﴿الْمُكْرَمِيْنَ﴾ یعنی عندالله عزت مندوۇځکه چه دافرشتې وې چه دَهغوئ په شان کښ الله ﷻ فرمائی:بل عبادٌ مکرمون(انبیاء:۲۲)یاداچه ابراهیم علیه السلام دَدوئ اکرام کړې وۇلکه په ورستوآیت کښ ئی ذکردې

﴿ فَقَالُوْا سَلٰمًا ﴾ای نسلّم علیک سلامًا،نوداجمله فعلیه ده چه په تجدّداوحدوث باندې دلالت کوی،ابراهیم علیه السلام جواب دَسلام په احسن طریقه سره ورکړوچه﴿ قَالَ سَلٰمٌ ﴾ای سلام علیکم،نوداجمله اسمیه ده،چه په دوام اواستمرارباندې دلالت کوی،پدې کښ دَمیلمه پوادب طرف ته اشاره شوه چه هغه ته به دَهغه سلام اودَخبروجواب په احسن طریقه سره ورکوې چه هغه محسوسه نه کړی چه دې ځماپه راتلوخفه دې.﴿قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴾دائی یاپخپل زړه کښ اووئیل چه داڅوک نااشناخلق دی یائی هغوئ ته اووئیل چه(انتم قوم منکرون)وجه دَ نا آشنا

ګڼرلو یاد اوه چه دوئ سلام اوکړواوسلام کول پدغه وخت کښ نااشناوو ،یا دا چه دوئ بغیر د اجازت او اطلاع نه داخل شوی وو ،یا دا چه ددوئ وضع قطع دعامو انسانانو نه بدله وه

﴿فَرَاغَ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ﴾ راغ،یروغ پټ والی معنی ورکوی ،اوکله چې صله کښ "الی" راشی نو بیا د "ذهاب" دَ تللو معنی ته متضمن شی ،یعنی پټه تللو معنی ورکوی یعنی فوراً د میلمنو نه په پټه کورته راغې او یو وریت شوې اوسُورب سخې ئی ورته دَخوراک دپاره راوړو ،پدې کښ یوبل ادب دَمیلمه ته اشاره ده چه میلمه ته به داسې نه وائی چه خه ستادپاره دَخوراک انتظام کوم،ځکه کیدیشی چه هغه دَحیاء په وجه انکاراوکړی.

﴿سَمِينٍ﴾ ممتلئ الجسد بالشحم واللحم،یعنی دَغوښې اووازګی نه ډک بدن والا ﴿فَقَرَّبَهُۥٓ إِلَيْهِمْ﴾ یعنی خوراک ئی ورته نزدې کیخودلو ،داهم دَمیلمه ادب دې چه خوراک به ورنه لرې نه کیدې، لیکن هرکله چه ابراهیم علیه السلام اولیدل چه دوئ خوراک نه کوی نوورته ئی اووئیل﴿ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴾ ګرانو میلمنوتاسوولې خوراک نهِ کوئ،داهم دَمیلمه ادب دې،چه په نرمه طریقې سره به ورته ست کوی.

﴿فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً﴾یعنی چه دَسَت باوجودئی خوراک نه کولونو ابراهیم علیه السلام ورنه یره محسوسه کړه ځکه چه ددغه زمانی دستوروؤچه میلمه به دچاطعام نه خوړلونودابه ددې علامه وه چه دَضرر رسولوپه نیت راغلې دې هکذافي سورة هود

﴿وَبَشَّرُوهُ﴾ضمیر منصوب ابراهیم علیه السلام ته راجع دې نوددینه معلومیږی چه فرشتواول ابراهیم علیه السلام ته بشارت دَ ولد ورکړیدې او بیا حضرت سارهؓ من وراء الحجاب واؤریدلو نو خوشحاله شوه اوچه پوهه شوه چه دا فرشتې دی نو﴿ فَأَقْبَلَتِ ٱمْرَأَتُهُۥ ﴾ نو دَ پردې نه مخامخ راغله، او بیا دا احتمال وؤ چه ولد به دَ بلې ښځې نه پیدا کیږی نو دَ دې وجه نه ورته ملائکو بشارت دوباره ذکرکړوچه دَهغې ذکرپه سورة هودکښ دې چه "فبشرنٰهاباسحاق" (هود: ۷۱) لهذا دَ دې آیت اودَسورة هودآیت په مینځ کښ منافات نشته دې،﴿ بِغُلَٰمٍ عَلِيمٍ ﴾یعنی پیغمبر به وی ځکه پیغمبرپه خلقوکښ لوئ عالم وی،اودَجمهورُوپه نزدمبشربه حضرت اسحاق علیه السلام دې،چه دَحضرت سارهؓ دَبطن نه پیدا شوې وؤ .﴿ فِى صَرَّةٍ ﴾ای فی صیحةٍ یعنی دَخوشحالئ نه ئې چغه

اووهله اوه‌تې اوکړو ﴿فَصَكَّتْ وَجْهَهَا﴾ يعنى تعجبًا ئى خپل مخ اووهلو، لکه څرنګه چه دا عادت دي د ښځو، اووئى وئيل چه ﴿عَجُوزٌ عَقِيمٌ﴾ اى اناعجوزعقيمٌ، يعنى بوډۍ هم يمه اوشنډه هم يمه په ځوانۍ کښې مې اولاد نه دې شوې نو اوس به مې څنګه اولاد اوشي.

﴿قَالُوا كَذَٰلِكِ﴾ فرشتو ورته اووئيل چه دکوم زيرى خبرمونږ درکړو دامونږ دَ ځان نه، نه دې درکړې بلکه الله ﷻ هم داسې وئيلې دى.

﴿إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ﴾ تعليل دې دَماقبل، چه الله ﷻ حکيم دې په پخپلو اقوالو، افعالو، عليم دې په هرڅيزنوقول اوفيصله دَالله ﷻ حقه اويقينى ده

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | فَمَا | خَطْبُكُمْ | أَيُّهَا | الْمُرْسَلُونَ ۝ | قَالُوا | إِنَّا | أُرْسِلْنَا |
| اووئيل ابراهيم عليه السلام | نوڅه | دې مقصد ستاسواې | | رااليږلې شوؤ. | اووئيل هغوئ | بيشکه مونږ | رَ ليږلى شوى يو |
| إِلَىٰ | قَوْمٍ | مُجْرِمِينَ ۝ | لِنُرْسِلَ | عَلَيْهِمْ | حِجَارَةً | مِنْ طِينٍ ۝ | مُسَوَّمَةً |
| داسې | قوم ته | چې مجرمان دي، | چه اووره وؤ | په دوئ | کانړى | دَختونه جوړ شوى | نشان دار دى |
| عِندَ رَبِّكَ | لِلْمُسْرِفِينَ ۝ | فَأَخْرَجْنَا | مَن | كَانَ | فِيهَا | مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝ | |
| له طرفه دَ رب ستانه | لپاره دَ اسراف کونکو ، | پس اوباسل مونږ | هغه څوک | چه وؤ | پدې کلى کښې | دَ مؤمنانو نه . | |
| فَمَا وَجَدْنَا | فِيهَا | غَيْرَ | بَيْتٍ | مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ۝ | وَتَرَكْنَا | فِيهَا | آيَةً |
| پس نه وؤ موندلې مونږ | په دې کلى کښې | بې دَ | يو کور، | دَ مسلمانانو نه . | او پريخودله مونږ | په هغې کښې | نشانه |
| لِّلَّذِينَ | يَخَافُونَ | الْعَذَابَ | الْأَلِيمَ ۝ | | | | |
| دَپاره دَ هغه کسانو | چه يريږى | دَ عذاب | درناک نه . | | | | |

﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ﴾ هرکله چه فرشتو ابراهيم عليه السلام ته بشارت ورکړونو ابراهيم عليه السلام ته دامعلومه شوه چه دَفرشتو اصل مقصدهغه څه بل لوئ کاردې نوتپوس ئى ورنه اوکړو چه ستاسوڅه مقصددې فرشتوورته اووې چه ﴿إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ﴾ . چه مراد قوم لوط دَهلاکت

دپاره راغلي يو ﴿قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ﴾نه مرادقوم لوط دي چه دکفرشرک نه علاوه لوئ جرم ئی هم جنس پرستي وه ﴿لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ﴾ يعنی چه دَ کاڼو باران پرې اوکړو.دا باران دَ دوئ کلی پړ مخی کولو عذاب نه ورستي وؤ. (مزيد تفسيرپه سورة هود: ۸۲کښې تيرشويدې).

﴿مُّسَوَّمَةً﴾ای معلمةً عليها اسم من يرمیٰ. يعنی په هر کاڼی به دَ هغه چانوم ليکلې شوې وؤ څوک چه به پرې ويشتلې کيدو.﴿لِلْمُسْرِفِينَ﴾ ای المجاوزين الحدّ في الفجور

﴿فَأَخْرَجْنَا مَن كَانَ فِيهَا﴾يعنی دَ لوط عليه السلام په کلي کښې چه کوموخلقو ايمان راوړې وؤ. لوط عليه السلام ته موحکم اوکړوچه دوئ اوباسه کقوله فاسربِاهلکَ چه هغه لوط عليه السلام اودَهغه دوه لونړه وې،بعضِ وائی چه ايمان راوړونکی ديارلس(۱۳)کسان وؤ،چه دَالله تعالىٰ دعذاب نه محفوظ شول.﴿غَيْرَ بَيْتٍ﴾ يعنی يو کور چه دَ لوط عليه السلام وؤ.﴿مِّنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ آيت کريمه مشهوراستدلال دې دَ هغه علماؤو د پاره چه ايمان اواسلام واحد گنړی،ځکه چه دَ يو قسم خلقو نه تعبير په يوځائ کښې په﴿الْمُؤْمِنِينَ﴾ سره اوشو اوپه بل ځائ کښې په﴿الْمُسْلِمِينَ﴾سره .

﴿وَتَرَكْنَا فِيهَا آيَةً﴾مراددَنشانې نه هغه آثاردَعذاب دی چه تر ډير وخته پورې باقی وؤ،بعض وائی مراد ورنه هغه احجارکشيره دی چه دَيوبل لاندې باندې پراته وؤ،بعضِ وائی هغه تورې،بدبوداري اوبو ورنه مرادذی چه اوس ورته بحرمردارونيلې کيږی ځکه چه په دغه اوبو کښې هيڅ دَ اُوبو ځناور ژوندې نشی پاتې کيدلې.

| |
|---|
| وَفِي مُوسَىٰ إِذْ أَرْسَلْنَاهُ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿٣٨﴾ فَتَوَلَّىٰ |
| اوپه قصه دَموسیٰ کښې هم نشانه ده کله چه اوليږلو مونږ دې فرعون ته په دليل ښکاره سره. پس انکارئ اوکړو |
| بِرُكْنِهِ وَقَالَ سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ﴿٣٩﴾ فَأَخَذْنَاهُ وَجُنُودَهُ فَنَبَذْنَاهُمْ |
| سره دَخپل لښکرنه اووئ وئيل دا ساحر دې يا ليونې دې نو اونيولو مونږ دې او لښکر دَ ده نو اومو غورځول |
| فِي الْيَمِّ وَهُوَ مُلِيمٌ ﴿٤٠﴾ |
| په درياب کښې اودې ملامته وؤ. |

﴿وَفِي مُوسَىٰ إِذْ أَرْسَلْنَاهُ﴾ دا دَ **تخويف دنيوى دويمه نمونه** ده چه هلاکت دَفرعون دې، فرعون پخپل طاقت او لښکر باندې مغرور وؤ، دَحق نه ئې اعراض اوکړو. دَموسى عليه السلام تکذيب ئې اوکړو. نو الله تعالىٰ هغه سره دَخپل لښکرنه په درياب کښې غرق کړو. ﴿وَفِي مُوسَىٰ﴾ عطف دې په ﴿فِيهَا﴾ باندې اى و ترکنا في موسىٰ آيةً ﴿إِذْ أَرْسَلْنَاهُ﴾ بدل دې دَموسىٰ نه ﴿بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ﴾ سلطان مصدر دې اطلاق ئې په واحد او متعدد باندې يوشان کيږي، مراد ورنه هغه معجزات دى چه دَ موسىٰ عليه السلام په لاس ښکاره شوي وې.

﴿فَتَوَلَّىٰ بِرُكْنِهِ﴾ رکن نه مراد قوت اولښکر دې او باء سببيه ده. يعنى په سبب دَخپل قوت اولوئ لښکر ئې اعراض اوکړو، يا رکن پمعنى دَ قوم دې الرکن بمعنى القوم لانه يرکن اليهم او باء دمصاحبت يا ملابست د پاره ده. ﴿وَهُوَ مُلِيمٌ﴾ اللوم نه ماخوذ دې، باب افعال نه داسم فاعل صيغه ده اوخاصيت استحقاق ماخذ پکښې موجود دې يعنى دې دَ خپلو کارونو او دعوو دَ وجهې نه دَ ملامت مستحق وؤ.

| |
|---|
| وَفِي عَادٍ إِذْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ ﴿٤١﴾ مَا تَذَرُ |
| اوپه قصه دَ عاد کښې هم نښانه ده کله چه اوليږلو مونږ په دوئ باد(هوا) شنډ(بې خيره) ، نه به ئې پريخودلو |
| مِن شَيْءٍ أَتَتْ عَلَيْهِ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيمِ ﴿٤٢﴾ |
| هيڅ څيز چه راغې به هغه باد وربانډې مگر او به ئې گرځولو پشان دَ ذرې ذرې شوي څيز، |
| وَفِي ثَمُودَ إِذْ قِيلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوا حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٤٣﴾ |
| اوپه قصه دَثمودکښې هم نښانه ده کله چې اووئيلو شو دوئ ته فائده واخلئ ترڅه وخته پورې، |
| فَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴿٤٤﴾ |
| پس شرکشى ئې اوکړه دَامردَرب خپل نه نو اونيول هغوئ اواز دَ تندر او دوئ ورته کتل |
| فَمَا اسْتَطَاعُوا مِن قِيَامٍ وَمَا كَانُوا مُنتَصِرِينَ ﴿٤٥﴾ |
| پس نه لرلودوئ طاقت دَ پاسيدلو او نه وؤ دوئ بدله اخسنونکى |

**وَ قَوْمَ نُوحٍ مِّنْ قَبْلُ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فٰسِقِينَ ﴿٤٦﴾**

او قوم دَ نوح علیه السلام چه هلاک کړی وو مونږ مخکښ دَ دوئ نه. بیشکه وو هغوئ قوم فاسقان

﴿وَفِي عَادٍ إِذْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ﴾ دا **دریمه نمونه دَ تخویف دنیوی** ده. دقوم عاد دَهلاکت تفصیل په سورة اعراف، هودوغیره کښ تیرشویدې ﴿وَفِي عَادٍ﴾ دا هم عطف دې په ماقبل معطوف علیه ای وترکنافی اهلاک عادٍ آیةً..... ﴿الرِّيحَ الْعَقِيمَ﴾ شنده هوا، یعنی هغه هوا چه خلقوته پکښ هیڅ قسمه خیراوبرکت نه وی. دا داسې ګرمه اوتیزه هوا وه چه په دوئ راغله نوبیخ بنیاد ئی وړله ختم کړواودَدوئ هرڅیز ئي زرې زرې کړو. ﴿كَالرَّمِيمِ﴾ رمیم هغه زوړ څیز لکه هډوکی چه وراسته او زاړه شی، بیاریزه ریزه شی، یاهغه وابنه چه وچ شی. زرې زرې شی بوس ترې جوړشی.

﴿وَفِي ثَمُودَ إِذْ قِيلَ لَهُمْ﴾ دا **څلورمه نمونه دَتخویف دنیوی** ده. قوم ثمود دَهلاکت واقعه هم مخکښ تیره شویده. ﴿حَتَّىٰ حِينٍ﴾ ترڅه وخت پورې فائده واخلئ، مراد ورنه د دنیا زندګي ده. یعني الله ﷻ چې څومره ژوند درکړې دې نو دیکښې دالله ﷻ د نعمتونو نه خوند واخلئ خو ګورئ دا دنیا فاني ده، آخرت مه هیروئ او څما نافرماني مه کوئ ﴿فَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ﴾ خو قوم ئي خبره او نه منله او د الله ﷻ د احکاماتو نه ئي بغاوت اوکړو. نو عذاب پرې راغې ﴿وَهُمْ يَنظُرُونَ﴾ دَ نظر نه مأخوذ دې، یعنی په رڼاورځ ورباندې عذاب راغې اودوئ ورته کتل لیکن دَخان خلاصولو طاقت ئی نه وو،

بعض مفسرینو د «حتی حین» نه مراد هغه درې ورځې اغستې دي چې هغې کښې ورسره صالح علیه السلام د الله ﷻ عذاب د راتلو وعده کړې وه، کما في قوله تعالی: «فقال تمتعوا في دارکم ثلثة ایام» او «ینظرون» د انتظار نه دې، ای وهم ینتظرون الاخذ والعذاب في تلک الایام الثلثة (روح المعاني).

﴿فَمَا اسْتَطَاعُوا مِن قِيَامٍ﴾ یعنی دَ ډیر هیبت دَ وجه نه پرمخې پریوتل اودَپاسیدو طاقت ئی نه وو، او بیاپه دغه حال مړه شول، کقوله تعالی: فاصبحوا في دارهم جثمین (هود: ٦٧) بعض وائی

دا کنایه ده دَ دوئ دَ عجز نه علی سبیل المبالغه،یعنی دوئ زمونږدعذاب نه بالکل نشول خلاصیدلې، ځکه چه څوک دَقیام طاقت نه لری نو دَتختیدلو به څه طاقت اولری! (تفسیر کبیر). ﴿وَمَا كَانُوا مُنتَصِرِينَ﴾یعنی دَعذاب راوړونکوفرشتوسره ئی مقابله نشوه کولې چه بدله ورنه واخلی اودَخپل ځان نه عذاب دفع کړی.

﴿وَقَوْمَ نُوحٍ﴾دا پنځمه نمونه ده دَ تخویف ﴿وَقَوْمَ﴾دَپاره فعل مقدردې ای اهلکنا قوم. ﴿مِّن قَبْلُ﴾ای قبل هؤلآء المذکورین،

| |
|---|
| وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِأَيْىدٍ وَّاِنَّا لَمُوسِعُوْنَ ۝٤٧ وَالْاَرْضَ فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ |
| او اسمان جوړکړیدې مونږ هغه پخپل قوت سره اوبیشکه مونږ قدرت لرونکی یو اوزمکه غوړه ولې ده مونږ هغه نو څه ښه |
| الْمٰهِدُوْنَ ۝٤٨ وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝٤٩ |
| غوړه ونکی یو مونږه . او دَ هر څیز نه مونږ پیدا کړیدی جوړئ دپاره ددې چه نصیحت واخلئ تاسو. |
| فَفِرُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ ۭ اِنِّيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝٥٠ وَلَا تَجْعَلُوْا |
| پس په منډه لاړشئ الله ﷻ طرف ته،بیشکه څه تاسوته دَهغه له طرفه ـ ړونکې ښکاره یمه.اومه گرځوئ |
| مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۭ اِنِّيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝٥١ |
| دَالله ﷻ سره اِله بل.بیشکه څه تاسوته دَهغه له طرفه یرونکې ښکاره یمه |

﴿وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا﴾دَتخویف دنیوی پنځه نمونې ذکرکولونه ورستوپه ثبوت دَقیامت باندې **دلیل عقلی** ذکرکیږی چې الله ﷻ د لویو لویو قدرتونو خاوند دې ، پاسه اوګورئ دومره لوئ آسمان دا صرف الله ﷻ خپل قدرت سره اودرولې دې چې دا ستاسو دپاره پمنزله د یو چهت دې ، لاندې اوګورئ نو زمکه ئې درله الله ﷻ غوړولې ده چې تاسو له پمنزله د فرش ده ، دغه شان د کائنات هر هر څیز باندې غور اوکړئ نو ضرور به الله ﷻ ورله یو جوړه و مقابل پیدا کړې وي ،نو دغه شان د دې دنیا ژوند مقابل کښې یو ژوند شته چې هغه د

آخرت ژوندی ،چې هغه به ضرور راځي ، بيا دې ته خو سوچ اوکړئ آيا دا څيزونه پيدا کول ګران دي او که انسان دوباره پيدا کول ؟!، چې دوئ دې په بنياد د بعث انکار کوي

﴿وَالسَّمَآء﴾ منصوب على شريطة التفسيردې،اى بنينا السماء بنيناها.﴿بِأَيۡيدٖ﴾اى بقوة﴿وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ﴾ (۱)يادَ وسعَ نه مشتق دې پمعنى دَطاقت اوقدرة سره اى لقادرون يعنى آسمان مونږ پخپل قوة سره پيداکړيدې،دَ اسمان نه علاوه زمونږ قدرت هر څيز باندې حاوى دې. (۲)يا : وسعتْ نه ماخوذدې،پمعنى دَفراخئ سره،يعنى مونږفراخه کونکى يو د آسمان چې دې په مقابله کښې زمکه داسې ده لکه وسيع بيابان په مينځ کښې ګوتئ وي.

﴿وَالۡأَرۡضَ﴾اى وفرشناالارض﴿فَرَشۡنَٰهَا﴾اى مهدناها﴿فَنِعۡمَ الۡمَٰهِدُونَ﴾مخصوص بالمدح مقدردې چه نحن دې،﴿وَمِن كُلِّ شَيۡءٍ خَلَقۡنَا زَوۡجَيۡنِ﴾دَ زوجين نه مراد متقابل او متضاد څيزونه دى لکه اسمان،زمکه،نوَر،سپوږمئ،ورځ ،شپه وغيره ﴿لَعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُونَ﴾يعنى چه تاسونصيحت واخلئ اوپوهه شئ چه دَ هر څيز مقابل موجود دې نو دا ضرورى شوه دَ دنيادې هم مقابل موجودوى چه آخرت دې،نو معلومه شوه بعث بعدالموت حق اويقينى دې.

﴿فَفِرُّوٓاْ إِلَى اللَّهِ﴾ دا **ماقبل دلائلو مقتضا** بيان دې چې الله ﷻ د قدرت او خالقيت دا دلائل اوس د ستاسو نه دا تقاضه کوي چې تاسو صرف په هغه ايمان راوړئ او شرکاؤو نه ئې پاک اوګنړئ.فاء د پاره د تفريع ده او دې نه مخکښې قل لهم مقدر دې ﴿إِلَى اللَّهِ﴾ يعنى دَشرک نه توحيد طرف ته،دَمعاصيؤو نه طاعت طرفَ ته او دَ عذاب نه ثواب اونجات طرفَ ته،ديکښې دعوت د توحيد دې ﴿إِنِّي لَكُم مِّنۡهُ﴾ يعنى دَعذاب اوعقاب دَالله ﷻ نه ستاسودَپاره ښکاره يره ونکې يم،﴿وَلَا تَجۡعَلُواْ مَعَ اللَّهِ﴾ پديکښې نهى ده دَشرک نه،ماقبل آيت کښې امروؤدَتوحيد﴿إِنِّي لَكُم مِّنۡهُ نَذِيرٞ مُّبِينٞ﴾ تکراريادَتاکيددَپاره دې،ياپه اول کښې انذاردَعذاب دَ دنيا وؤ او په ديکښې انذاردَعذاب دَآخرت نه دې.

كَذَٰلِكَ مَآ أَتَى الَّذِينَ مِن قَبۡلِهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا قَالُواْ سَاحِرٌ

دغه شان نه وؤ راغلې هغه کسانوته چه مخکښې وؤدوئ نه،هيڅ رسول مګر ووئيل به هغوئ داساحردى

| |
|---|
| اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿٥٢﴾ اَتَوَاصَوْا بِهٖ ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿٥٣﴾ فَتَوَلَّ |
| يا ليوني دي . آيا دوئ يو بل ته د دغې وصيت كړيدي ، بلكه دوئ خلق دي سركشه . پس اعراض اوكړه |
| عَنْهُمْ فَمَآ اَنْتَ بِمَلُوْمٍ ﴿٥٤﴾ وَّذَكِّرْ فَاِنَّ الذِّكْرٰى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٥٥﴾ |
| ددوئ نه پس نه ئي ته ملامته كړې شوې اونصيحت كوه بيشكه نصيحت فائده وركوى مؤمنانوته |

﴿كَذٰلِكَ مَآ اَتَى الَّذِيْنَ ﴾پديكښ **تسلى** ده نبى كريمﷺته چه لكه څرنګه چه ستاقوم ستاتكذيب كوى اوساحر،مجنون درته وائى نوته پدې صبركوه خكه ستانه مخكښ چه څومره رسولان تيرشويدى دهغوئ هم تكذيب شويدې اومجنون،ساحرورته وئيلې شويدى.

**كه څوک اشكال اوكړى** چه نسبت دَ تكذيب كليةً نه دې صحيح، څكه چه بعض انبياء داسې هم تيرشوي دى چه تكذيب ئى نه دې شوې لكه ادم عليه السلام اودغه شان دَ كومو انبياؤچه تكذيب شويدې نوبعضو ئى تصديق هم كړيدي؟**جواب دا دې** چه نسبت باعتباردَ اكثر او اغلب سره شويدې،يعنى اكثرخلقودَاكثروانبياؤو تكذيب كړيدې او دَ ﴿الَّذِيْنَ مِن قَبْلِهِم ﴾ نه مراد كفّار دى،يعنى كفارودَخپلو انبياؤتكذيب كړيدې.

﴿اَتَوَاصَوْا بِهٖ ﴾تواصى وائى يو بل ته وصيت كولوته،«به »كښ ضمير قول مذكور ساحر اومجنون ته راجع دې،استفهام تعجبى دې يعنى دا خبره او دغه اعتراض د وخت هر كافر په خپل پيغمبر كړې دې، عجيبه غوندې خبره ده چې څنګه دوئ ټول دا يوه خبره كوى ، چرته ئي يو بل ته د دې وصيت كړې دې!! ﴿بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴾ بل د اضراب ابطالي د پاره دې ، يعني وصيت نه دې كړې بلكه اصل خبره داده چې دى خبرې كولو علت يو دې،چې هغه په دوئ ټولو كښ موجود دې چې هغه طغيان اوسركشى ده

﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَآ اَنْتَ بِمَلُوْمٍ ﴾يعنى كله چې معلومه شوه چې دا سركشه قوم دې نو ته دوئ سره بحث مباحثه مه كوه څكه چې دوئ مني نه ،او ډير ورته مه پريشانه كيږه څكه چې په تاځه ملامت نشته دې، تاخپله ذمه وارى پوره كړيده،﴿وَذَكِّرْ فَاِنَّ الذِّكْرٰى﴾البته وعظ و

نصیحت کوه .د دې فائده شته دې او کم از کم دا فائده ئي خو یقیني ده چې کوم مؤمنان دي
هغوئ له نفع ورکوي.

د آیت مذکور تفسیر نه معلومه شوه چه﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ﴾نه مراد اعراض کول دی دَجدال نه.
دعوت پریخودل نه دی،یعنی وعظ نصیحت مه پریږده ځکه چه دَچاپه قسمت کښ چه
الله ﷻ ایمان راوړل لیکلی دی ستادعوت،اوبار بارنصیحت به هغوئ ته نفع ورکوی.اوهرچه
مؤمنان دی نوستاپه وعظ نصیحت سره به دَهغوئ ایمانی بصیرت کښ اضافه کیږی اوپه
یقین کښ به ئی قوت راځی(روح المعانی)

| |
|---|
| وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ۝٥٦ مَآ أُرِيدُ مِنْهُم |
| اوندی پیداکړی ماپیریان اوانسانان مگرلپاره دَدې چه ځماعبادت اوکړی.نه لرم اراده دَدوئ نه |
| مِّن رِّزْقٍ وَمَآ أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ ۝٥٧ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ |
| دَهیڅ رزق اونه لرم اراده داچه خوراک راکړی ماته،بیشکه الله ﷻ صرف هغه رزق ورکونکې |
| ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ ۝٥٨ فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِّثْلَ |
| خاونددَقوت محکم دې،پس بیشکه لپاره دَهغه کسانوچه ظلم(شرک)ئی کړیدې حصه دَعذاب ده پشان |
| ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ۝٥٩ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا |
| دَحصې دَملگرودَدوئ پس زردی نه غواړی عذاب ځمانه،پس هلاکت دې دَهغه خلقولپاره چه کفرئی کړیدې |
| مِن يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ۝٦٠ |
| دَهغې ورځې دَدوئ نه چه وعده ئی ورسره کیږی |

﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ﴾داعلت دې دَماقبل،چه دوئ ته وعظ نصیحت کوه ځکه چه
انسان اوجن مادَځپل عبادت دپاره پیدا کړي دي﴿إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾لام په لیعبدون کښ تعلیلیه
دې، علت اوحکمت دَپیداکولو دَ انس و جن ذکرکیږی،یعنی مادوئ دَځپل عبادت دپاره
پیداکړیدی،اودامنافی نه دې دَعبادت نه کولودَ کافرانو،ځکه چه دَغایت وجود لازم نه دې

بلکه کله کله غایت متخلف اوگرځی کقولک،بریتُ هذاالقلم لاکتبَ به یعنی داقلم می دَ دې د پاره جوړ کړوچه لیکل پرې اوکړم،لیکن کله پرې لیکل اونکړیشی (۲) بعض فرمائی چه دا خاص دې په مؤمنانو او نیک بختو پورې،یعنی په جنّاتو اوپه انسانانو کښې می اهل سعادة او مؤمنان دَعبادت دَپاره پیداکړیدی،په دې وجه امام بخاری رحمه الله ددې آیت ذکر کولو نه بعد فرمائي"وماخلقتُ اهل السعادة من اهل الفریقین الّالیوحّدون"

(۳)بعضِ فرمائی چه"لیعبدون"نه مراداستعداد اوصلاحیت دَعبادت دې،یعنې په هر جن انس کښې دَعبادت استعدادقدرتی طورسره موجوددې،البته بعضِ دااستعداد په صحیح مصرف کښې خرچ کړی اوبعضِ ئې ضائع کړی، کمافی الحدیث،کل مولودٍ یّولدعلی الفطرة فابواه یهوّدانه اویمجّسانه،یعنی هرمولودکښې فطرة دَاسلام اوتوحیدوی لیکن مورپلار ئې ورنه یایهودی جوړکړی یامجوسی نودغه شان هرجن انس کښې الله ﷻ استعداددَعبادت پیداکړیدې.

**که څوک اشکال اوکړی** چه دَدې آیت تعارض دې دَسورة اعراف آیت(۱۷۹) "و لقد ذرأنا لجهنّم کثیراً من الجنّ و الانس..." سره؟ چې دینه معلومیږي ډیر انسانان اوجنات داسې هم دي چې الله ﷻ دوئ د جهنم د پاره پیدا کړي دي ،

**جواب:** (۱) په "لیعبدون"کښې لام دَعلت دپاره دې،اوپه"لجهنم"کښې دَعاقبت دپاره دې یعنی جن وانس خودَعبادت دپاره پیدادی لیکن چه عبادت ترک کړی نوانجام ئې جهنم شی

(۲)لام په دواړومواضعوکښې دَعلت دپاره دې لیکن دلته دَغایة تشریعی ذکردې اوپه اعراف کښې دَغایة تکوینی ذکردې،فلا تناقض بینهما.

﴿ مَآ أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ ﴾یعنی رزق اراده ورنه،نه لرم چه ماته رزق راکړی،لکه څرنګه چه دَ دنیا مالکان دَدې دَپاره غلامان او نوکران ساتی چه څوک ورله مال ګټی،څوک ئې خدمت کوی، خوراک وغیره ورته تیاره وی،یامطلب داد چه دَدې دپاره می انسان نه دې پیداکړې چه خپل ځان یا یو بل له رزق ورکړی،بلکه رازق څه یم،رزق ځماپه ذمه دې،اودَانسان په ذمه عبادت دې.خو دَ دې مطلب دا نه دي چه کسب معاش او دَ رزق حلال طلب هم نه دې پکار، بلکه مطلب دادې چه مقصوداصلی دَانسان عبودیت اواطاعت دې دَالله ﷻ نوخپل تول استعداد دَ رزق په پیداکولو کښې ندې خرچ کول پکار،

﴿وَمَآ أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ﴾دلته یا مضاف حذف دې،ای ان یطعموا خلقی یعنی ما انسان د دې د پاره نه دې پیدا کړې چه څما مخلوقاتو ته خوراک ورکړی. اسناد دَ اطعام الله ﷻ خپل ځان ته اوکړو ځکه چه مخلوق ټول دَالله ﷻ عیال دی او دَچاعیال ته طعام ورکول هغه ته طعام ورکول دی،په حدیث کښې دی چه قیامت په ورځ به الله ﷻ انسان ته اوفرمائی چه"یاعبدی مرضتُ فلم تعدني، و جعتُ فلم تطعمني...الخ" نو دَ دې مطلب دا دې چه"مرض عبدی فلم تعده، و جاعَ عبدی فلم تطعمه".او یامضاف حذف نه دې،بلکه حقیقت باندې محمول دې یعنی ما انسان دې دَپاره نه دې پیدا کړې چې ماله خوراک راکړی،الله ﷻ خوراک نه غوختل او اطعام مطالبه نه کول خو یو یقینی امر دې،خو بیا هم دلته دې ذکر کولو کښې نکته دا ده چې څنګه دا خبره یقینی ده چه انسان تخلیق مقصد "اِطعامِ الرب" نه دې او نه کیدیشی نو هم دغه شان دا خبره هم یقینی ده چه انسان تخلیق مقصد دنیا ګټل نه دی.

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلرَّزَّاقُ ﴾تعلیل دې دَماقبل،چه الله ﷻ پخپله رزاق دې،نودَچانه طلب دَرزق نه کوی﴿ذُو ٱلْقُوَّةِ ٱلْمَتِينُ ﴾دې،انتهائي قوت والا دې او مستغني دې نودَچاخدمت اوتعاون ته ئی ضرورت نشته دې،

﴿ فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا۟﴾داتخویف دنیوی دې اهل مکؤو او نورو کفارو ته، متفرع دې په ماقبل «وماخلقت الجن والانس» باندې، چې کچرته دوئ د زندګي مقصد اونه پیژندو او ایمان ئې نه راوړو نودوئ به هم داسې هلاک شی لکه دَدوئ نه مخکښې قومونوهلاک شویدی، ﴿ذَنُوبًا﴾ "ذنوب" په اصل کښې دَ کوهی بوکې ته وائی،عربو به د کوهي اوبو تقسیم او حصې د بوکو اعتبار سره کولو ،نو دې وجهې نه ورو ورو ئې بیا اطلاق په کوهي د اوبو په حصې او بیا ئې په مطلق حصې باندې هم شروع شو، نو دلته ترینه مراد مطلق حصه ده ، مطلب دادې چه دې کافرانو د پاره هم دَ عذاب هغه حصه ده چه دَ دوئ نه مخکښې کفر او شرک ارتکاب کونکو ته ورکړې شوې وه. ﴿مِن يَوْمِهِمُ ٱلَّذِى ﴾ مراد دَ دې ورځې نه یا ورځ دَ بدر ده، یا ورنه مراد ورځ دَ قیامت ده.

| رکوعاتها (۲) | سورة الطور مكية | آياتها (۴۹) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۵۲) وحسب النزول (۷۶)**

داسورة مکی دي، نزلت بعدالسّجدة وقبل الملک.

**ربط**: ربط ئی ماقبل سره دادي چه پدې سورة کښې مسئله دَقيامت على سبيل الترقى ذکرکيږی ماقبل سورة کښې ذکرشوچه﴿ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٌ ۝ وَإِنَّ ٱلدِّينَ لَوَٰقِعٌ ﴾يعنی قيامت حق دي اوحساب هم حق دي هرسړی سره به حساب کيږی، په دې سورة کښې دی چه﴿إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَٰقِعٌ ۝ مَا لَهُۥ مِن دَافِعٍ ﴾يعنی حساب به هم کيږی اوحساب نه ورستوبه عذاب وی چه هغې لره به څوک نشی دفع کولې.

**دسورة دَمضامينواجمالی خلاصه**

په دعوې دَسورة يعنی په اثبات دَقيامت باندې دوه(۲)عقلی اودوه(۲)نقلی دليلونه، انبياؤسابقؤاوکتبِ سابقؤنه،په درميان اواخرکښې حضورﷺته تسلی ده دې نه علاوه تخويفات، بشارات،اوزجرونه هم پکښې مذکوردی.

**تفصيلی خلاصه**:

آيت ۱ نه تر ۶ پورې پنځه شواهد او دلائل دي په دعوې د سورت

آيت۸.۷ کښې دعوه د سورت ذکر ده

آيت ۹ نه تر ۱۲ پورې تخويف اخروي دې ،

آيت ۱۷ نه تر ۲۸ پورې بشارت اخروي دي

آيت ۲۹ نه تر ۳۴ پورې د مشرکينو څلور اعتراضات اودَ هغې جوابات ذکر کيږي

آيت ۳۵ نه تر ۳۸ پورې مشرکينو ته زجرونه ذکر کيږي

آيت ۳۹ نه تر ۴۴ پورې مشرکينو د حماقت بيان دي

آيت ۴۵ .۴۶ کښې تخويف اخروي دي

آيت ۴۷کښې تخويف دنيوي دي

آیت ۴۸، ۴۹ کښې تسلي ده

**تمت خلاصة السورة اجمالاً وتفصيلاً**

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالطُّوْرِ ﴿۱﴾ وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ﴿۲﴾ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ ﴿۳﴾ وَّالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ ﴿۴﴾ | | | | |
| قسم دې په كوه طور ، او په كتاب ليكلې شوى ، په كاغذنو خورو ورو كښې ، او بيتِ معمور باندې | | | | |
| وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ ﴿۵﴾ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ ﴿۶﴾ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ | | | | |
| اوپه چت پورته كړې شوى باندې،اوپه درياب گرم كړى شوى باندې،بيشكه عذاب درب ستا | | | | |
| لَوَاقِعٌ ﴿۷﴾ | مَّا | لَهٗ | مِنْ | دَافِعٍ ﴿۸﴾ |
| خامخا واقع كيدونكې دې | نشته دې | لره | هيڅ | څوك دفع كونكې |

﴿وَالطُّوْرِ﴾ دسورت په ابتداء كښې الله ﷻ د دعوې اثبات د پاره پنځه قسمونه خوري او په جواب كښې ورله دعوىٰ ذكر كوي چې هغه «ان عذاب ربک لواقع ، ماله من دافع» ده ، دا هر يو قَسَم مستقل استشهاد او دليل دې دَ دعوې په اثبات باندې او د هغې سره ئي لطيف مناسبت هم دې ، «والطور» **دا اول قسم دې** ، او په دعوې دَسورة يعنى په ثبوت دَقيامت باندې اول دليل نقلى دې،طور په اصل كښې هغه غرته وائي چه تک شين وى،بوټي ونې پكښې وى،خو عرف كښې ئي اطلاق په هغه معروف غر باندې كيږي چه پكښې الله ﷻ د موسىٰ عليه السلام سره همكلامى كړې وه ، ديته طور سينا هم وائي. او دلته په قسم سره مقصود طور غر نه دې بلكه هغه وحى ده چه په كوهِ طوركښې په موسىٰ عليه السلام نازله شوې وه چه "انّ السّاعةَ آتيةٌ اكادُ اخفيها(طه:۱۵) او **قسم او جواب قسم كښې مناسبت** دا دې چې دغه وحى په دې گواه ده چه قيامت خامخاواقع كيدونكې دې او هريو كس ته به د هغه د عمل بدله ميلاويږي ،څوک ترينه تختيدلې يا ځان بچ كولې نشي . واؤ په والطور كښې قسميه دې اوباقى كښې عاطفه دې.

﴿وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ﴾ دا **دويم قسم او دويم دليل نقلى** دې په ثبوت دَ قيامت، مراد دَ كتاب نه جنس كتاب سماوي دې يا په مناسبت دَطور سره توراة مراددې «مسطور» اي

**مكتوب على وجه الانتظام** ، يعني په ترتيب سره ليکلې شوې. «في رق» "رق" نرمه اوباريکې څرمنې ته وائی،کله چه کاغذ نه وؤ موجود نوپه دې به ليکل کولې شو ، دلته ورنه مطلق اوراق مراد دی ، دَڅرمنې وی اوکه دَ کاغذ. «منشور» خور او کهلاؤ ته وائي، صفت دې دَ "رق" يا د "کتاب" ،يعني خور او کهلاؤ کتاب ، او دا کنايه ده د صفت هدايت . ځکه چې کتاب کهلاؤ وي نو څوک ترينه ځه اخذ کولې شي ، که راټول او بند وي نو څوک به ترينه ځه ازده کړي ، مطلب دا دې چې داسې کتابونه چې هغه سراسر هدايت دی ، د هدايت طلب گار ته په کښې راهنمائي ده . **قسم او جواب قسم کښې مناسبت** دا دې چې دا د هدايت نه ډک کتابونه هم د دې گواهي ورکوي چې قيامت به قائم کيږي، او څوک به ترينه بچ نشي

**﴿وَٱلْبَيْتِ ٱلْمَعْمُورِ﴾دادريم قسم** او دليل وحي دې. "بيت معمور" داپه ووم(۷)اسمان کښ په محاذاة دَ خانه کعبی دَ فرشتوقبله ده،چه روزانه دلته اويا(۷۰)زره فرشتې عبادت،طواف وغيره دپاره راځی،اوکوم فرشتې چه يوځل دلته عبادت اوکړی نوترقيامته پورې بيادَهغوئ نمبرنه راځی،په احاديثودَمعراج کښ ددې بيان دې،په مسلم وغيره کښ دی"ثمّ رُفع اليّ البيت المعمور فقلتُ ياجبرئيل ماهذا؟قال هذاالبيت المعموريدخله كل يومٍ سبعون الف ملكٍ اذا خرجوا لم يُعودوا فيه اخر ما عليهم". او يا ترينه مراد کعبه او بيت الله دې ، تفسير جواهر القرآن کښې دي چې دلته هم ذکر د مکان دې خو مقصود ترينه هغه وحي ده چې دلته شوې ده ، **نو قسم او جواب قسم کښې مناسبت** دا شو چې هغه وحي چې په بيت الله کښې شوې ده **هغه** هم په دې شاهد ده چې قيامت به واقع کيږي.

**بعض مفسرينو ليکلي دي چې «البيت المعمور» نه مراد زمکه ده چې انسان ئې تعمير کړې دې او آباده کړې ئې ده ،او د دې قرينه ورستونې آيت دې چې هغې کښې د آسمان ذکر به طور شاهد شوې دې ،« تدبر قرآن» نو دې تقدير باندې قسم او جواب قسم کښې مناسبت دا دې چې زمکه کښې که څوک څومره خه آبادي اوکړي نو هغې کښ تغيير خامخا واقع کيږي ، او دا څوک نشي منع کولې ، نو دا تغييرات په دې شاهد دي چې قيامت به خامخا واقع کيږي او دا به څوک دفع نه کړي.**

**﴿ وَٱلسَّقْفِ ٱلْمَرْفُوعِ ﴾دا څلورم قسم** دي او اول دليل عقلي دې او «السقف المرفوع » نه مراد آسمان دې ، او **قسم او جواب قسم کښې مناسبت** داسې دې چې دا آسمان هم په دې دلالت

كوي قيامت به واقع كيږي او څوک به ترينه ځان بچ نه كړي ، ځكه چې كوم ذات دومره لوئ آسمان اوچت اودرولو باندې قادر دې هغه په قيامت راوستو باندې هم قادر دې . او انسان چې هغه باندې آسمان احاطه كړې ده، چرته چې هم ځي خو د آسمان نه لاندې به وي كقوله تعالى ﴿ إِنِ ٱسْتَطَعْتُمْ أَن تَنفُذُواْ مِنْ أَقْطَارِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ فَٱنفُذُواْ ۚ لَا تَنفُذُونَ إِلَّا بِسُلْطَٰنٍ ﴾ الرحمن ۳۳. د دې دائرې نه بهر نشي وتلې ، نو آسمان خو د الله ﷻ د قدرت يو مظهر دې چې د دې دائرې نه نشي وتلې نو الله ﷻ د قدرت دائرې نه به څنگه اوزي او قيامت په ورځ به ځان څنگه بچ كړي

﴿وَٱلْبَحْرِ ٱلْمَسْجُورِ﴾ دا **پنځم قسم** دې اودويم دليل عقلي دې په ثبوت دَقيامت، او ((البحر)) نه مراد هغه سمندر دې چې زمكې نه ئې احاطه كړې ده، ((المسجور)) په معني د الممتلئ سره دې، يعني د اوبو ډک سمندر ، او **قسم او جواب قسم كښې مناسبت** دا دې چه لكه څرنگه بحر مسجور په تاسو احاطه كړيده چې زمكې كومې كنارې ته اوځئ، دې سره به مخامخ كيږئ نو دغه شان به قيامت هم په تاسو احاطه اوكړي او هيڅ چرته به ترينه ځان بچ نه كړئ ،(جواهر)

﴿ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَٰقِعٌ ﴾ جواب قسم دې،او دَ **سورة مركزى دعوه** ده، ﴿مَّا لَهُۥ مِن دَافِعٍ﴾ من زائده دې برائى تاكيد يعنى هيڅ څوک به ئې نشي دفع كولې.

| |
|---|
| يَوْمَ تَمُورُ ٱلسَّمَآءُ مَوْرًا ۝٩ وَتَسِيرُ ٱلْجِبَالُ سَيْرًا ۝١٠ فَوَيْلٌ يَوْمَئِذٍ |
| په هغه ورځ چه ا خوځيږي به اسمان په زوره زوره ،اوروان به شي غرونه په عجيبه طريقې سره.پس هلاكت دې په دغه ورځ |
| لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝١١ ٱلَّذِينَ هُمْ فِي خَوْضٍ يَلْعَبُونَ ۝١٢ يَوْمَ يُدَعُّونَ |
| مكذ بينو لپاره،هغه چه هغوئ په باطل كښې پراته دې لوبې كوي، په هغه ورځ چه ورديكه كوليشى به دوئ |
| إِلَىٰ نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ۝١٣ هَٰذِهِ ٱلنَّارُ ٱلَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ۝١٤ |
| اوردَجهنم ته په سختوديكوسره،ورته به اووئيلې شي،دااوردې هغه چه تاسو پدې تكذيب كولو. |

| |
|---|
| أَفَسِحْرٌ هَٰذَآ أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ ﴿١٥﴾ ٱصْلَوْهَا فَٱصْبِرُوٓا۟ أَوْ لَا تَصْبِرُوا۟ |
| آیانوسحردي دااوکه تاسوئی نه وینئ.داخل شئ دي ته پس صبرکوئ تاسواوکه نکوئ، |
| سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ۖ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٦﴾ |
| «دواړه» برابر دی په تاسوبیشکه بدله درکولې کیږی تاسوته دهغه عملونوچه وئ تاسوچه کول به مو. |

﴿يَوْمَ تَمُورُ ٱلسَّمَآءُ مَوْرًا﴾ په دیکښې تخویف اخروی ذکرکیږی مکذبینو اومنکرینو دَ قیامت ته "یوم" یا ظرف دې دَ پاره دَ "لواقع" یعنې دا عذاب به په هغه ورځ واقعه کیږی په کومه ورځ چه اسمان اولړځیږی او دَ ډیرو خوځیدلوپه وجه به اوچوی. یا ظرف دې دپاره دَ ورستو ﴿فَوَيْلٌ﴾ یعنی پدغه ورځ به مکذبینو دپاره هلاکت وی، ﴿تَمُور﴾ای تضطرب "مور" ډیر په تیزئ سره حرکت کولو ته وائي ،او قیامت ته نیزدې به آسمان په خپله هم ډیر تیزئ سره به حرکت او جړقیدل شروع کړې چې هغې د وجهې نه به اوچوي او دغه شان په آسمان کښې موجود نظام د نور، ستوري ، سپوګمئ بلکه ټول نظام شمسي به د معمول حرکت خلاف انتهائي تیز رفتارئ سره حرکت شروع کړي او د عالم نظام به درهم برهم شي او قیامت به واقع شي.

﴿وَتَسِيرُ ٱلْجِبَالُ سَيْرًا﴾یعنی غرونه به یوړلې شی په یوعجیبه وړلوسره،کیفیت دَسیرپه سورةواقعه آیت«۵»وغیره کښ ذکردې"وبسّت الجبال بسًا،فکانت هباءً منبثًا"یعنی غرونه به زرې زرې شی،دَشګوډیرئ به شی،اوبیابه په هواکښ خواره واره کړیشی،﴿ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾دَقیامت تکذیب کونکی،دَرسالت تکذیب کونکی .

﴿هُمْ فِى خَوْضٍ يَلْعَبُونَ﴾"خوض"په اصل کښې اوبو کښې غوطه کیدلو ته وائي ، او یو باطل قول او عمل د خپل زندګئ مشن جوړول او هغې کښې همه تن مشغوله کیدلو د پاره هم استعمالیږي ، نو دلته ئي د دوئ تشبیه غوطه زن سړي سره ورکړې شوې ده چې څنګه هغه د غوطې په حالت کښې نه څهویني او نه آوري دغه شان دوئ هم په باطل امورو کښې داسې ننوتي دي چې نه بل څه ویني او نه آوري

﴿يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَىٰ نَارِ جَهَنَّمَ﴾داد ﴿يَوْمَ تَمُورُ ﴾ نه بدل دي "دَعًّا﴾ وئيلي كيږى ټيل وهلو اوسختي ديكې وركولوته كقوله تعالى:يدعّ اليتيم(ماعون:٢)يعنى دوئ ته به جهنم ته ديكې وركړيشى.اول به ورته لاسونه دَستهنوسره اوتړلې شى اوسرخپې به يئ يوځائ كړيشى بيابئ جهنم ته ټيل وهى(اعاذناالله منها)

﴿هَٰذِهِ ٱلنَّارُ ٱلَّتِى ﴾ دينه مخكښ فيقال هم مقدردي﴿أَفَسِحْرٌ هَٰذَآ ﴾استفهام توبيخى دې،"هذا" اشاره عذاب دَجهنم ته ده،يعنى دنيا كښې چې تاسو باندې قرآن تلاوت كيدو او دې عذاب نه يرولې شوئ نو تاسو به وې چې دا سحر دې كقوله تعالى:(( وقال الذين كفروا للحق لما جاءهم ان هذا الاسحر مبين )) السبا: ۴۳نو اوس اوايئ چې دا عذاب هم سحر دې او كه نه ؟ ﴿أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ﴾ يا كه څنګه تاسو ته په دنيا كښې حق نه ښكاريدو او دا خو وئيلو ((ومن بيننا و بينك حجاب )) دغه شان دا عذاب هم اوس نه وينئ ؟!.

﴿سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ﴾خبردَمبتدامحذوف دې"اى صبرُكم وجزعكم سواءٌعليكم".﴿ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ تعليل دي دَ﴿سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ﴾يعنى كه تاسواوس پدې عذاب دَجهنم صبركوئ اوكه فريادكوئ دواړه په عدم نفع كښ برابردى ځكه چه تاسوته دَخپلوعملونوجزاء ملاويږى چه داحتمى فيصله ده دَالله ﷻ.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَعِيمٍ ﴿١٧﴾ فَاكِهِينَ بِمَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ

بيشكه متقيان به جنتونو او نعمتونوكښ وى. خوشحالى كونكى به وى په هغه څه چه وركړې وى دوئ ته رب دَ دوئ

وَوَقَاهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴿١٨﴾ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا

اوبچ كړى به وى رب دَ دوئ دَعذاب دَجهنم نه اورته به اووئيلې شى خورئ اوڅكئ څه په خوند سره په سبب دَهغه عملونو

كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٩﴾ مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ سُرُرٍ مَّصْفُوفَةٍ وَزَوَّجْنَاهُم

چه تاسو به كول. تكيه لګونكى به وى په تختونوصف كړو شوؤ باندې . يوځائ به كړو مونږ دوئ

| |
|---|
| بِحُورٍ عِينٍ ۝ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيمَانٍ |
| غتو سترگو والا حورو سره، او هغه خلق چه ایمان ئی راوړې دې او اتباع ئی کړی وی د دوئ اولادونو دَ دوئ په ایمان کښ |
| أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ كُلُّ امْرِئٍ |
| یوځائ به کړو مونږ دَوئ سره اولادونه دَدوئ اوکم به نه کړودَوئ نه په عمل د دوئ کښ هیڅ څیز.هر یو سړې به |
| بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ ۝٢١ |
| په هغه عمل کښ چه ئی کړې وی گرفتاره وی. |

﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّتٍ﴾مکذبینو ته دَ تخویف اخروی نه بعد مُتقینوته بشارات اخرویه او دهغوئ اخروي انعامات او حالات ذکر کیږی،او دا ئي **اول حالت او انعام** دې چه دوئ به هلته بالکل مأمون اوبی فکره اوسیږی،دَعیش عشرت ارام راحت هر قسمه اسباب اوسامان به ورته حاضر وی، دَ دوزخ دَ عذاب نه به محفوظ وی.﴿ فَكِهِينَ * "فکه" د زړه خوشحالي او رضاء ته وئیلې کیږي ، یعني دوئ به الله ﷻ په ورکړه باندې رضا او خوشحاله وي اي: راضين مسرورين بما اتاهم ربهم ، یا په معنی دَ متلذذین سره یعنی خوندونه به اخلی دَجنت نعمتونو نه ، او یا فاعل ذی کذادې ای ذوی فاكهةٍ كثيرةٍ (قرطبی) یعنی ډیرو میوؤ والا به وی ﴿وَوَقَىٰهُمْ رَبُّهُمْ﴾یعنی ابتداءً به جنت ته داخلیږی جهنم ته به نه ځی"اللّهم ارزقنا الجنة".

﴿ كُلُوا وَاشْرَبُوا ﴾ دا **د بل انعام** بیان دې ، چې خوراک سکاک فراواني به پرې وي ، چې څه ئي زړه غواړي هغه به خوري او څکي ، دینه مخکښ"یقال لهم"مقدردې، او مفعول ئي د تعمیم د پاره حذف شوې دې، یعني چې څه مو زړه غواړي هغه څکئ او خورئ ﴿ هَنِيٓـًٔا﴾ صفت دې دَ مقدردپاره اي:"اكلاً و شربًا هنيئا"یامنصوب بنابرحالیت دې دَضمیردَ﴿ كُلُوا وَاشْرَبُوا﴾ نه. "هنئ" هغه طعام ته وائی چه خونده وراومزیدار وی یاهغه طعام چه بغیردَمشقت نه حاصل وی.﴿بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾"باء"سببیه ده،نیک عمل سبب ظاهری دې دپاره دَدخول جنّت.

﴿مُتَّكِـِٔينَ﴾ دا ئي د **بل انعام بيان** دې ،چې الله ﷻ به ورله د ملګرو خائسته مجلس هم ورکړي ، قطار در قطار به کټونه او پالنګونه لګيدلي وي او دوئ په هغې ناست او تکيه لګولې خوراک سکاک به کوي، او ګپ شپ به هم لګوي «متکئين» حال دې دَضمير دَجمع نه په ﴿كُلُوا﴾ کښ، ﴿عَلَىٰ سُرُرٍ﴾ جمع دَسريرده،کټ پالنګ وغيره ته وائی، ﴿مَّصْفُوفَةٍ﴾ يعنی په سيدها قطار کښ به پراته وی ، يو بل ته به شاه نه وی دَ جنتيانو ،

﴿وَزَوَّجْنَٰهُم بِحُورٍ عِينٍ﴾ دا ئي د بل **انعام** بيان دې ، چې شهواني قوت تسکين د پاره به ورله الله ﷻ خائسته ، غټو او تورو سترګو والا حورې رفاقت کښ ورکړي ، تزويج معنی يو ځائی کولو او جوړئ ګرځول دی .

﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَٱتَّبَعَتْهُمْ﴾ دا ئي د **بل انعام** بيان دې چې الله ﷻ به ئي اولاد هم دوئ سره يو ځائ کړي دوئ د اکرام او رضاء د پاره ، حالانکه د هغوئ عمل به داسې نه وي چې هغې په وجه دوئ دا مقام او مرتبه موندلې وې.

په آيت کښ لوئ بشارت دې اهل ايمان ته،دَ کومو مؤمنانو والدين چه دَنيک عمل په وجه دَجنت اعلی درجو ته رسيدلی وی،اودوئ په عمل کښ دَ والدينو نه کم وی،نو الله ﷻ به دَ والدينو دَ خوشحالئ دپاره دَ دوئ اولاد دوئ سره يو ځائ کړی.روح المعانی وغيره په حواله دَابن ابی حاتم اوحاکم اوبيهقی رحمهم الله دَابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړيدی چه هغه فرمائی چه"انّ الله تعالی ليرفع ذرية المؤمن معه فی درجته فی الجنّة وان کانوا دونه في العمل لتقرّ بهم عينه" الله ﷻ دَ مؤمن دَ اولاد درجه په جنت کښ اوچته وی او ده سره ئی برابره وی اګرچه دوئ په عمل کښ کم وی دَ هغه نه،د پاره دَ دې چه دَهغه سترګې پرې يخی شی.

ابن کثير د طبرانی په حواله حديث مرفوع نقل کړيدې،چه نبی اکرم ﷺ فرمائی چه کله يو سړې جنت ته داخل شی نو هغه به دَ خپل مور پلار او بی بی او اولاد باره کښ تپوس اوکړی (چه هغوئ چرته دی) نو ده ته به اووئيلې شی چه هغوئ دَعمل په اعتبارسره ستادرجې ته نه دی رارسيدلی،نوهغه به عرض اوکړی چه يارب قدعملتُ لی ولهم،ما دَ ځان د پاره هم او دَ هغوئ د پاره مې هم عمل کړې وۀ،نو الله ﷻ به حکم اوکړی چه هغوئ ورسره هم يو ځائ کړئ.

نو دینه معلومه شوه چې لکه څرنګه چه په برکت دَ عمل دَ والدینو سره اولاد ته نفع رسی نو دغه شان دَ اولاد دَ نیک عمل په برکت سره هم والدینو ته نفع رسی، دَ ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه الله ﷻ دَ یو بنده درجه په جنت کښې اوچته کړی نو هغه به تپوس اوکړی چه داماته څنګه ملاؤ شوه نو الله ﷻ ورته اوفرمائی چه په استغفار دَ بچی ستا، ستا د پاره (ابن کثیر).

﴿ذُرِّيَّتُهُمْ﴾ مراد ورنه صلبي اولاد دي او بعض وائی چې دَ ذریت نه مراد مطلق توابع دی، صلبی اولاد نه علاوه نور خپل خپلوان ورنه هم مراد کیدیشی ((بایمانٍ)) جارمجرور متعلق دی ﴿وَاتَّبَعَتْهُمْ﴾ پورې اوتنوین دپاره ده تقلیل دی، یعنی دوئ هم مؤمنان وی. اګرچه ډیر کمزورې درجی کښې ایمان ولې نه وی. اوداهم کیدیشې چی ((بایمان)) جارمجرورمابعد ((الحقنا)) پوری متعلق وي، اودی صورت کښې تنوین په ((بایمان)) کښې دَپاره دَ تعظیم دې، اوایمان نه مراد آباؤ ایمان دې، مطلب به داسی شی چه دَ دوی دَ آباؤوعظیم اومضبوط ایمان په سبب به مونږ دوئ هم هغوئ سره ملحق کړو. (کشاف)

﴿ وَمَآ أَلَتْنَٰهُم مِّنْ عَمَلِهِم ﴾ یعنی دَیوځائ کولودپاره به داسې نشی کولې چه اعلی نه ادنی جوړشی بلکه بمقتضٰی ئی فضل دَادنیٰ نه به اعلی جوړشی.

﴿ كُلُّ ٱمْرِىٕۭ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ ﴾ رهین بمعنی مرهونٌ دې مخکښې بیان دَفضل وؤچه دَ اباؤو دَ نیک عمل په وجه دَ ذریت درجه هم اوچته کیږی پدیکښې بیان دَعدل دې چه هیڅ څوک به دَ بل په عمل کښې نه نیولې کیږی بلکه هرسړې به په خپل عمل کښې ګانړه وی، ګویاچه عمل بمنزله دَ قرض دې او نفس دَ انسان بمنزله دَرهن دې، رهن ترهغه وخته پورې نه ورکولې کیږی تر څو چه قرض ادانه کړیشی، نوپه قیامت کښې که دَانسان عمل نیک اوصالح وی نودې به خلاص شی، اوکه عمل غیرصالح وی نوخلاصې به نوی کقوله تعالی: کلّ نفس بماکسبت رهینةٌ الاّ اصحاب الیمین(مدثر: ۳۸، ۳۹)یعنی هرانسان پخپل عمل کښې ګانړه اوګرفتاردې عندالله، مګر اصحاب یمین چه دوئ په نیک عمل سره خپل ځانونه ازادکړیدی(روح المعانی)

| |
|---|
| وَاَمْدَدْنٰهُمْ بِفَاكِهَةٍ وَّلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٢٢﴾ يَتَنَازَعُوْنَ فِيْهَا |
| او زياتوؤ به دوئ ته ميوې او غوښې هغه چه دوئ ئې اشتهاکوي.تالانی به کوی به هغې جنتونوکښ |
| كَاْسًا لَّا لَغْوٌ فِيْهَا وَلَا تَاْثِيْمٌ ﴿٢٣﴾ وَيَطُوْفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ |
| په پيالې دَ شرابو.چه نه به وی په هغی کښ لغوې وئيل اونه ګناه اوګرځی به په دوئ باندې غلامان.خادمان دَدوئ |
| كَاَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُوْنٌ ﴿٢٤﴾ وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ﴿٢٥﴾ |
| ګوياکه هغوئ به ملغرې پټې ساتلې شوې وی.اومخ به کړی بعضِ دَدوئ نه بعضِ نوروته،دَيوبل نه به تپوس کوی. |
| قَالُوْٓا اِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِيْٓ اَهْلِنَا مُشْفِقِيْنَ ﴿٢٦﴾ فَمَنَّ اللّٰهُ |
| وائی به بيشکه وؤمونږ مخکښ په دنياکښ پخپل اهل کښ يريدونکی دَالله ﷻ نه.پس احسان اوکړوالله ﷻ |
| عَلَيْنَا وَوَقٰنَا عَذَابَ السَّمُوْمِ ﴿٢٧﴾ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ نَدْعُوْهُ |
| په مونږ.اوويئ ساتلو دَعذاب ګرمې هوانه.بيشکه وؤمونږ مخکښ ددې نه چه عبادت موکولو دَالله ﷻ |
| اِنَّهٗ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيْمُ ﴿٢٨﴾ |
| بيشکه الله صرف هغه احسان کونکې مهربانه دې. |

﴿وَأَمْدَدْنَهُم﴾اى وزدناهم، دا هم **انعام** دې چې کوم کوم نعمتونه ورله الله ﷻ ورکړي وي، نو دا نه ده چې بس په يو ځائ به اولاړ وي او يو متعين مقدار او يو خوند به ئي وي ، بلکه الله ﷻ به ورله وقتا فوقتا کم وکيف کښې اضافه کوي

﴿يَتَنَزَعُونَ فِيهَا﴾دا ئي **بل نعمت** تذکره ده ، چې شرابو دور به پکښې چليږي او دابه بالکل صفا او پاکيزه شراب وي ، "تنازع" دوه معنې مفسرينو ذکر کړې دي: (١) تعاطي ، يعني يو بل ورکول ، (٢) تجاذب ، تالانې يعنی دَخوشحالئ په وجه به دَيوبل نه اخلی اوتالانئ به کوی.﴿لَّا لَغْوٌ فِيهَا﴾اى فى شربها،يعنی دَدې شرابوڅکلوپه دوران کښ به دوئ

لغواوګډي ودې نه وائی لکه دَدنیاپه شرابوکښې دغه تاثیردې ﴿وَلَا تَأْثِيمٌ﴾اونه به ددې په څکلوسره دَګناه ارتکاب کوی، یعنی داسې عمل چه په دنیاکښې ورته نسبت دګناه کیږی.

﴿وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ﴾ یعنی دَجنتیانودَخدمت دپاره به داسې غلامان اوخدمتګاران وی چه په ښائست کښې، نظافت کښې اوپه ښائسته لباس کښې به داسې وی چه لکه ملغلرې، نه به ورته چالاس لګولې وی اونه پرې ګردوغبارلګیدلې وی.

﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾دا د بل نعمت تذكره ده ، چې دوستان به را جمع كيږي او د تير ژوند(يعني د دنيا د ژوند) قصې او تذكرې به يو بل ته كوي.﴿قَالُوا إِنَّا كُنَّا﴾ دا د هغوئ يوه تذكره به طور مثال پيش كيږي ، يعني په خپلو خبرو كښې به دا خبره هم كوي ،﴿قَبْلُ﴾ یعنی مخکښې دَدې حال نه په دنیاکښې،﴿فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ﴾ یعنی په دنیاکښې به دَعذاب اوعقاب دَالله ﷻ نه یریدلو ،﴿عَذَابَ السَّمُومِ﴾ یعنی هغه عذاب چه په مساماتودَبدن کښې ننوځی، چه هغه ګرمه هواده، دَجهنم، بعض وائی سموم دَجهنم دَنومونونه یونوم دې﴿إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلُ نَدْعُوهُ﴾ یعنی مونږبه په دنیاکښې صرف اوصرف دَالله ﷻ عبادت کولو ،یادَ دُعا نه دې، یعنی مونږبه په دنیاکښې هم دَدې عذاب نه دَبچ کیدودعاګانې دَالله ﷻ نه غوختلې،(اللّهم منّ علیناوقناعذاب السّموم انک انت البرّالرّحیم).﴿إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ﴾ای المحسن.

فَذَكِّرْ فَمَا أَنتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَلَا مَجْنُونٍ ﴿٢٩﴾ أَمْ يَقُولُونَ

پس نصيحت كوه ته پس نه ئی ته په سبب دَنعمت دَرب خپل سره كاهن اونه مجنون،خادوئ داوائی

شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴿٣٠﴾ قُلْ تَرَبَّصُوا فَإِنِّي

چه دا پيغمبرشاعردې مونږ انتظار كوؤ په ده دَ حادثې دَ مرګ، ته ورته اووايه انتظاركوئ پس بيشكه څه هم

مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ ﴿٣١﴾ أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا أَمْ هُمْ قَوْمٌ

ستاسوسره دَ انتظار كونكو نه يمه آيا حكم كوی دوئ ته عقلونه دَ دوئ دَ دې خبرو بلكه دوئ قوم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| طَاغُوْنَ ﴿٣٢﴾ | اَمْ | يَقُوْلُوْنَ | تَقَوَّلَهٗ | بَلْ | لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٣٣﴾ | فَلْيَاْتُوْا |
| سرکش دي، | خا، دوئ | داوائي چه دځان ئی جوړکړيدي داقرآن | | بلکه | ايمان نه راوړي دوئ، | پس رادی وړی دوئ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِحَدِيْثٍ | | مِّثْلِهٖٓ | | اِنْ | كَانُوْا | صٰدِقِيْنَ ﴿٣٤﴾ | |
| يوكلام | پشان | ددې | قرآن | کچرته | وی | دوئ | رښتني |

﴿فَذَكِّرْ﴾ په دي آياتونو کښ د کفارو څو اعتراضات او د هغې جوابات نقل کيږي او نبي کريم ﷺ ته تسلي ورکولې کيږي چې خپل وعظ ونصيحت جاري ساته ،ددوئ دبيکاره خبرو او بې بنياد اعتراضاتو په وجه دعوت او تبليغ مبارک کارمه پريږده،

﴿فَمَآ أَنتَ بِنِعْمَتِ﴾ ديکښې د کفارو **دوو اعتراضاتو ذکر او جواب** دې ، چې کفار کله تاته کاهن وائي او کله درته مجنون او ليوني ، خو نه ته کاهن ئي ځکه چې کهانت ځان له علم دې او دهغې خپل مقدمات وي او هغه دلته نشته ، او نه ته مجنون ئي ، ځکه چې هغه خو د عقل نعمت نه محرومه وي ، داسې پرحکمت کلام څنګه پيش کولې شي ، بلکه ته د خپل رب په نعمت سره متلبس ئي او د نبوت نعمت ئي درله درکړې دې او دهغه حقيقي صادق پيغمبر ئي،خو دوئ د ضد او حسد د وجهې نه دا اعتراضات کوي

﴿ أَمْ يَقُولُونَ ﴾دا د مشرکينو **دريم اعتراضات** ذکر دې ، چې کله دوئ په تا د شاعر ګمان کوي او شاعر دې بولي ، او په دې انتظار کښې دي چې څنګه نور شاعران مړه شول او پرستاران ئي ختم شول ، داسې به يو ورځ ته هم مړ شي او پرستاران به دې ختم شي ، نو دوئ به درنه خلاص شي ،"ام" پمعنی د"بل" سره دې ، او دوئ دا اعتراض علي سبيل الترقي ذکر کيږي ،چه خا، دوئ داخبره هم کوي چه داپيغمبر(نعوذبالله) شاعر دې.﴿ رَيْبَ ٱلْمَنُونِ ﴾ "ريب" "راب يريب" نه دې د شک معنی کښ استعماليږی، کمافي الحديث:ودع مايريبک إلى ما لايريبك ليکن دلته پمعنی د حادثې سره دې، ځکه چې د دې هم څه پته نه لګي، څه وخت هم راتلې شي. «المنون»د مَنّ الشئ يمن نه دې، پمعنی دقطع سره،مراد ترينه مرګ دې،ځکه چې داهم انسان دنيا نه کټ کړي.او اضافت بيانيه دې ، يعني هغه حادثه چې مرګ دې ، او يا «ريب» په معني د حادثې سره او «المنون» په معني د دهر سره دې . يعني حوادث د زمانې

انتظار کوي ، چې هغه پرې راشي نو دې به هغې کښې مشغوله شي او دعوت کار به ورځه پاتې شي

﴿قُلْ تَرَبَّصُوا﴾ دا د کفارو د قولِ مذکور رد دې او تسلي ده نبي کريم ﷺ ته ،چې اوسئ په انتظار کښې ، مونږ هم انتظار کوو ، چرته به درله الله ﷻ دا خوب پوره نه کړي کما قال جل في علاه : «هو الذي ارسل رسوله بالهدی و دین الحق لیظهره علی الدین کله ولو کره المشرکون» او ډير زر دوئ خپل انجام په بدر کښې اوليدو .

﴿أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا﴾ ديکښې د دوئ بې وقوفي او د اعتراضاتو کمزوري طرف ته اشاره ده ، چې دا کوم عقل دې چې يو کس دې شاعر او کاهن هم وي چې دا انتهائي عقل مند کيدو باندې دلالت کوي او بل طرف ته ليوني هم وي چې دا ورنه د عقل د سلب تقاضه کوي !! کوم عقل تاسو ته دا خبره خودلې ده ، «هذا» کښې مذکور متضاد اقوالو ته اشاره ده.

﴿أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ﴾ اضراب ابطالي دې ، يعني دا دعقل تعليم نه دې بلکه دا د دوئ سرکشي ده

﴿أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ﴾ دا د مشرکينو څلورم اعتراض نقل کيږي چې دا قرآن د الله ﷻ کلام نه دې بلکه دې پيغمبر دَ خپل ځان جوړکړيدې ﴿بَل لَّا يُؤْمِنُونَ﴾ "بل" د پاره د اضراب ابطالي دې ، يعني پيغمبر د ځان نه ، نه دې جوړ کړې خو دوئ پرې د ضد او عناد د وجهې نه ايمان نه راوړي ﴿فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ﴾ دا دَ دوئ اعتراض جواب دې چې کچرې دا کلام دې پيغمبر د ځان نه جوړکړې دې نو تاسو خو هم عرب يئ، تاسو هم دَخپل ځان نه داسې کلام راوړئ،که تاسو داسې کلام نشئ پيش کولې نو ظاهره ده چه دا کلام دَ الله ﷻ دَ طرفه دې.

| |
|---|
| اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ هُمُ الْخٰلِقُوْنَ ﴿٣٥﴾ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ |
| آيادوئ پيداکړی شويدی بی دَڅه څيزنه اوکه دوئ پخپله پيداکونکی دی آيادوئ پيداکړيدی اسمانونه |
| وَالْاَرْضَ بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ ﴿٣٦﴾ اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ |
| اوزمکه، بلکه دوئ نه کوی يقين آيادوئ سره دی خزانې دَرب ستايادوئ |

| |
|---|
| الْمُصَيْطِرُوْنَ ﴿٣٧﴾ اَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَّسْتَمِعُوْنَ فِيْهِ ۚ فَلْيَاْتِ |
| واكداره دی، آیاشته دي دوئ لره اندرپایه چه آوری (خبرې دملانكو)په هغې باندی.پس را دې وړی |
| مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣٨﴾ |
| آوريدونكې ددوئ يودليل ښكاره. |

﴿أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ﴾ **دا زجر دې** مشركينو ته په ايمان نه راوړلو باندې . چې دا مشركين په الله تعالى باندې ايمان ولې نه راوړی؟ آيادوئ دا وائي چې د دوئ څوک خالق نشته يا دوئ خپله د خپل ځان تخليق كړې دي،لهذا دوئ باندی دَ چا اطاعت او بندگی لازمه نه ده﴿مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ﴾معنى يا "من غير خالق" ده يعنى دوئ خپل پخپله پيداشويدی هيڅ څوک خالق ئې نشته،او يا ئي معنى عبث او بې مقصد ده كقوله تعالى: "افحسبتم انماخلقنكم عبثا" آيت كښ استفهام انكاري دى يعنى نه داسی نشی كيدلې چې دوئ دپاره څوک خالق نه وی،ځكه چی دابالكل بديه البطلان خبره ده چی دومره منظم او متقن وجودبغير دَ خالقه خپل پخپله پيداشي،اونه دوئ خپل تخليق كونكی دی،ځكه چه شې واحد په جهت واحده سره علت اومعلول نشي كيدې.

﴿أَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ﴾دابل **زجر دې** چې آياآسمانونه اوځمكې دوئ پيداكړې دی،چې دوئ ځان د كائنات حكمرانان اومالكان گڼري اوالله تعالى ته سرټيټی نه كوی؟ ﴿بَلْ لَا يُوقِنُونَ﴾ "بل" دلته هم د اضراب ابطالي د پاره دې ، يعني هر گز دوئ نه دي پيدا كړي، دا خو د دوئ خپل اقرار دې چې ځمكو او آسمانونو خالق ومالک الله دې كما في قوله جل في علاه:ولئن سالتهم من خلق السموات و الارض و سخر الشمس والقمر ليقولن الله (العنكبوت:٦١) بلكه اصل مسئله دا ده چې دلائل ټول موجود دي خو دوئ يقين نه كوي.

﴿ أَمْ عِنْدَهُمْ خَزَائِنُ ﴾دابل **زجر دې**،يعنې آيادوئ دَ الله تعالى خزانومالكان دی ،چې چاته ئې خوښه شی نبوت رزق وغيره ورته وركړي او چاته يې چه خوښه شي ترينه يې منع كړې، نو ځكه دوئ ايمان نه رواړې،استفهام دَانكار دَپاره دې ﴿أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُونَ﴾دلته هم

استفهام دَ انکار د پاره دي،یعنی دَ خزانو مالکان خو خود نه دی بلکه دَ خزانو واکداره او چوکیداران هم نه دی.

﴿أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ﴾ پدیکښی هم زجودي مشرکینو دَمګی ته په انکار دَ رسالت باندي چه آیا دوئ، دَ حضورﷺ دَرسالت نه انکارپدي وجه کوی چه دوئ دادعوه کوی چه دوئ په پوړو (اندرپایه)اسمان ته ختلی دی اوکلام دَالله ﷻ اودَفرشتونی اوریدلي دي چه (نعوذ بالله) دا پیغمبر په حقه نه دي،استفهام انکاری دي،یعنی دَدوئ داطاقت نشته دي،﴿يَسْتَمِعُونَ﴾ مفعول محذوف دي چهٔ کلام الله دي،﴿فِيهِ﴾ پمعنی دَ علیه دي،

﴿فَلْيَأْتِ مُسْتَمِعُهُم﴾ کچري دوئ پخپله دعوه کښ رشتنی وی نودعوه کونکي دي واضح دلیل پیش کړی،لکه څرنګه چه حضورﷺ ئی په دلیل سره بیانوی.

أَمْ لَهُ الْبَنَاتُ وَلَكُمُ الْبَنُونَ ﴿٣٩﴾ أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا فَهُم

آیاالله ﷻ لره لونړه دی اوتاسولره ځامن،آیاته غواړې دَدوئ نه څه مزدوری چی دوئ

مِّن مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُونَ ﴿٤٠﴾ أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴿٤١﴾

دَتاوان نه درانه کړی شویدی،آیادوئ سره شته دي علم دَغیب چه دوئ لیکل کوی (دَهغې نه).

أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا ۖ فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ الْمَكِيدُونَ ﴿٤٢﴾

آیااراده لری دوئ دَځه بدتدبیر ، پس هغه کسان چه کافران دی هم دوئ باندي به ئي تدبیرونه الټه کیږي .

أَمْ لَهُمْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٤٣﴾

آیاشته دي دوئ لپاره اِله ماسوی دَالله ﷻ،نه پاک دي االله دَهغه نه چه دوئ ورسره شریکه وی.

وَإِن يَرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَاءِ سَاقِطًا يَقُولُوا سَحَابٌ مَّرْكُومٌ ﴿٤٤﴾

او که اووینی دوئ یو ټوټه دَ عذاب دَ اسمان نه راغورزیدونکی نو او بهوائی داوریځ ده لاندي باندي،

﴿أَمْ لَهُ الْبَنَٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُونَ ﴾پديكښ دَمشركانودَحماقت اوبې عقلئ بيان دې،او دائې **اول حماقت** بيان دې ،چه كوم شې ځان دَپاره نه خوخى الله تعالى دَپاره دَهغى اثبات كوي،نوادكوم منطق اوكوم انصاف دې؟ او مخكښني آيت «ام لهم سلم يستمعون فيه » نه ورستو راوړلو كښې اشاره ده ديته چه دَ كوموخلقودغه خيال اوراۍ وى نو د هغوئ عالم ملكوت ته ختل او كلام دَ الله اوريدل خودركناربلكه داسې خلقوته څوک عقل مندهم نه وائى(ذكره صاحب الروح).

﴿ أَمْ تَسْئَلُهُمْ أَجْرًا ﴾ دا ئې دَ **دويم حماقت** بيان دې،چې دوئ چې ستا د رسالت نه انكار كوى نوآياپه دې وجه چه ته دَ دوئ نه په تبليغ او وعظ باندې څه مزدورى ، معاوضه غواړې چه دوئ نشى دركولې!؟ داسې نه ده بلكه پيغمبر خو اجر دَ اللهﷻ نه غواړى، خلقونه ئى نه غواړى نو بيا دَ دوئ څه نقصان كيږى چه الله باندې ايمان راوړى.

﴿أم عِندَهُمُ الْغَيْبُ ﴾ اى علم الغيب،**دريم حماقت** بيان دې،چى آيادوئ سره دَ غيب علم دې ، چى دوئ ليكي او هغې په بنياد توحيد او نبوت دومره يقين اوكلكه سره رد كوى ظاهره خبره ده چه هيڅ ورسره نشته نوبيادا حماقت نه سوا نورڅه دى!؟ حضرت قتادهؓ وغيره فرمائى چه دا دَ ﴿نَتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴾ جواب دې،چه دوئ چه دغه خبره كوى او دَ حضور ﷺدَمرګ انتظاركوى نوآيادوئ سره دَغيب علم دې،چه نبى كريمﷺ به مخكښ وفات كيږى او مونږ به ورستو،ابن عباسؓ فرمائى چه دَ﴿الْغَيْبُ ﴾نه مرادلوح محفوظ دې او﴿فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴾ يعنى دوئ دَ هغې نه ليكل كوى او خلقو ته ئى خبر وركوى.بعضُ دَ﴿ يَكْتُبُونَ ﴾ معنى "يحكمون" كړي ده.

﴿ أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا﴾دا ئې **څلورم حماقت** بيان دې چې آيا دوئ دا خيال دې چه مونږ به خپلو سازشونو او منصوبو كښ كامياب شو ،اونبى كريم صلى الله عليه وسلم او دَ هغه دين به ختم كړو ، ايں خيال است، جنون است، محال است،بلكه دوئ تدبيرونه به په دوئ التا كيږى،اوهم دوئ به هلاک كيږى. ﴿فَالَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ يعنى دوئ ته به دَ خپلو تدبيرونو بدله ملاويږى.لكه يو څو كاله ورستو په بدر كښ ورنه واخستې شوه.

﴿ أَمْ لَهُمْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ ﴾ دا ئي **پنځم حماقت** بیان دي،چې آیادوئ دپاره الله تعالی نه ماسوا بل څوک اله او کارساز شته،چې دوئ دومره په جرأت سره دخدائ احکاماتو نه بغاوت کوی؟ او بیا ئي دا اله د الله تعالی په مقابله کښ مدد اوکړی اوعذاب نه ئي بچ کړی«سبحان الله عمایصفون » دا هم نشته نو بیا دا څومره لویه بې وقوفی اوحماقت دې.

﴿وَإِن يَرَوْا كِسْفًا ﴾دا يې **شپږم حماقت** بیان دې،کچرته په دوئ باندی دَ اسمان نه عذاب راروان وی نودوئ حماقت او ضد و عناد دې انتهاء ته رسیدلې دې چې دوئ به بیاهم ایمان نه راوړی او هغی ته به وریځ وائې.

دا آیاتونه دَ کافرانو دَ يو سوال په جواب کښ نازل دی . کافرانو به نبی کریمﷺته وئیل چه: او تُسقط السّماء کما زعمتَ علینا کسفًا(اسراء: ۹۲)یعنی که ته پخپله دعوه کښ صادق ئی نو په مونږ باندې دې دَ اسمان نه ټکړه دَعذاب نازله کړیشی، نو دَ دې په جواب کښ الله ﷻ فرمائی چه کچرته دوئ ټکړه دَعذاب اوهم وینی خو بیا به هم دَ ضد او عناد په وجه ایمان رانه وړی بلکه وائی به﴿سَحَابٌ مَّرْكُومٌ ﴾داوریځ ده چه دَ یو بل دَپاسه جمع کړې شوې ده عذاب نه دې، نو دَ داسې متعصبونه دَایمان راوړوتوقع نشته دې

| |
|---|
| فَذَرْهُمْ حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي فِيهِ يُصْعَقُونَ ﴿٤٥﴾ |
| پس پرېږده دوئ تردې چه ملاقات وکړی دَورځې خپلې سره هغه چه په هغې کښ به بې هوشه کړې شی دوئ. |
| يَوْمَ لَا يُغْنِي عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٤٦﴾ وَإِنَّ |
| هغه ورځ چه دفعه به نکړی دَدوئ نه چلونه دَدوئ هیڅ څیزاونه به دوئ سره مدداوکړیشی.اوبیشکه |
| لِلَّذِينَ ظَلَمُوا عَذَابًا دُونَ ذَٰلِكَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٤٧﴾ |
| لپاره دَهغه خلقوچه ظلم‌شرک‌ئی کړیدې عذاب دې مخکښ دَدینه لیکن زیات دَدوئ نه نه پوهیږی. |

﴿فَذَرْهُمْ حَتَّىٰ يُلَاقُوا ﴾دا **تخویف اخروي** دې چې دوئ پریږده چه یوڅوورځې لوبې مشغولتیا ګانې اوکړی .آخر به دَ داسې ورځ سره ملاقات اوکړی چه دَالله ﷻ دَ قهر تندر به

پرې را اوغورځيږي اوهوش اوحواس به ئې ختم شي. دَ يومهم نه مراد دَ مفسرينو په نزد
اولى والا ورځ ده چه دَ اسرافيل عليه السلام په شپيلئ سره به هر څه بې هوشه شي، كقوله تعالى: ون
فى الصّور فصعق من فى السموات والارض... بعض وائى مراد ورنه ورځ دَقيامت ده، ﴿يَوْمَ لَا يُغْنِي
﴾ بدل دې دَ ﴿ يَوْمَهُم ﴾ نه.

﴿وَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾تخويف دنيوى دې﴿عَذَابًا دُونَ ذَٰلِكَ﴾ مشار اليه يوم دې. دون
پمعنى دَ قبلُ سره دې،اومراد ددې عذاب نه ياپه دنياكښې عذاب ملاويدل دى،يعنى
اخروى عذاب نه مخكښې دوئ ته په دنياكښې هم عذاب ملاويدونكې دې،لكه اوه ۷ كا
قحط، جوع، قتل په بدركښې وغيره،بعض وائى مرادورنه دَقبرعذاب دې،اولى داده چه
دې دنياعذاب اودَقبرعذاب دواړه ورنه مرادكيديشى.

﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ يعني دا جاهلان په دې نه پوهيږى چه دا دَ دُنيا عذاب
رجوع الى الله د پاره دې،كقوله تعالى:ولنذيقنّهم من العذاب الادنٰى دون العذاب الاكبرلعلهم
يرجعون(السجده: ۲۱)په حديث كښې دى چه مؤمن بنده چه كله ناجوړه شي بيائى الله تعالى جو
كړى نو دا دَ ده دَ تيرشوى ګناهونو كفاره اوګرځي او دَ ائنده د پاره ورته نصيحت اوعبرت
اوګرځى او منافق چه ناجوړه شى بيا جوړ شى دَ ده مثال دَ اوښ دې چه مالک تړلې وى بيائى
كولاؤ كړى نودې نه پوهيږى چه دَڅه پاره ئې تړلې وم او دَ څه دپاره ئې پرانستلم (روا
ابوداؤد،كتاب الجنائز).

وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ

اوصبركوه ته اې پيغمبره! حكم دَرب خپل ته پس بيشكه ته زمونږ په حفاظت كښې ئې اوپاكي بيانوه سره دَحمد دَرب خپل

حِينَ تَقُومُ ۝٤٨ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ ۝٤٩

په هغه وخت كښې چه پورته كيږې.اوپه څه حصې دَشپې كښې پس پاكي بيانوه دَالله جل جلاله.او په وخت د واپس تللو د ستورو

﴿وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ ﴾دا تسلى ده حضورپاک ﷺ ته،لام په ((لحكم ربک)) كښې يا په معنى د
((الى)) دې ، نو مطلب دا دې چې ته د الله تعالى په دوئ د عذاب راتلو حكم ته انتظار كوه ، كما في قوله

جل في علاه : و اصبر حتى يحكم الله ، او يا په معنى د «على» سره دي . يعني ته د الله جل جلاله په حكم صبر كوه ، چې هغه د عفو او دركذر او انتقام نه اغستو حكم وو . كما في قوله جل في علاه : واصبر على ما يقولون و اهجرهم هجراً جميلاً ، او يا "لام" د پاره د تعليل دي . چې چونكه تا سره د الله ﷻ احكاماتو رسولو ذمه داري ده نو ته صبر كوه او تكليفونه برداشت كوه ، چرته بې صبرئ او دلبرداشته كيدو د وجهې ديكښې خلل رانشي (التحرير والتنوير)

﴿فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا﴾ دَعين نه مراد معنى مجازى ده، يعنى ته زمونږ په حفاظت او نگرانئ كښ ئى، مونږ تا هم وينو او ستا دشمن هم وينو

« وسبح بحمد ربک » او د خپل رب ذكر تسبيح او حمد مستقل كوه ، ځكه چې دا د صبر د پاره ډير مفيد دي ، ﴿حِينَ تَقُومُ﴾ په وخت دَ اودريدلو كښ، وخت دقيام عام دي ،(١) كه مجلس نه پاسيدل وي لكه په حديث كښ دى چه كله به حضورﷺ دَ مجلس نه پاسيدلو نو دا دعا به ئي وئيله،سبحانک اللّهم وبحمدک اشهدان لاّ اله الاّ انتَ استغفرک واتوبُ اليکَ.چا ورنه د دې باره كښ تپوس اوكړو نو اوئى فرمائيل : دا كفاره ده دَ هغه چه په مجلس كښ شوې وى . (٢)او كه مانځه د پاره پاسيدل وي لكه دَ مانځه په ابتداء كښ،سبحانک اللّهم وبحمدک وتبارک اسمکَ...وئيلې كيږى،(٣) او كه خوب نه پاسيدل وي لكه حديث كښې راځي: من تعار من الليل فقال: لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد، وهو على كل شيء قدير. سبحان الله، والحمد لله، ولا إله إلا الله، والله أكبر، ولا حول ولا قوة إلا بالله، ثم قال: رب اغفر لي - أو قال: ثم دعا- استجيب له، فإن عزم فتوضأ، ثم صلى تقبلت صلاته . (مسند احمد)

﴿وَمِنَ ٱلَّيۡلِ فَسَبِّحۡهُ﴾ مراد د دې نه يا تهجد مونځ دې ، يا ورنه مابنام، ماسخوتن مونځونه مراد دى.

﴿وَإِدۡبَٰرَ ٱلنُّجُومِ﴾ مراد د دينه دَ سهار وخت دې چه په دغه وخت كښ ستورى پټيږى، مراد ورنه دوه ركعته سنت دى دَ سهار مونځ نه مخكښ، په سننُ كښ به حضورﷺ دَدې سنتونو ډير اهتمام كولو. په يوحديث كښ دى "ركعتا الفجرِ خيرٌ من الدّنيا و ما فيها" يا ورنه دوه ركعته فرض دَ سهار مراد دى ، والله اعلم.

| ركوعاتها (٣) | سورة النّجم مكية | آياتها (٦٢) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکی دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٥٣) وحسب النزول (٢٣)**

نزلت بعد الاخلاص و قبل العبس

بخاري، مسلم وغيرهما کښې دَابن مسعود ﷺ نه نقل دی چه دَتولونه اول نازل شوې سورة چه پکښې سجده ده، سورة النجم دې، حضور ﷺ دَدې تلاوت دَعاموخلقو په مجمع کښې اوکړو نوټولوخلقو سجده اوکړه مګر يوسړی اونکړه هغه پخپل موټی کښې خاوره راوغسته په هغې ئی سجده اوکړه وئې وئيل داکافی ده، ماهغه سړې دکفرپه حالت کښې قتل کړې شوې اوليدلو او هغه اميه بن خلف وؤ، په بعض رواياتوکښې دَ زيدبن ثابت ﷺ نه نقل دی چه ماداسورة دَ حضور ﷺ په مخکښې تلاوت کړونوحضور ﷺ سجده اونه کړه، پدې وجه امام شافعی رحمه الله او احمد رحمه الله په نزدسجده واجبه نه ده، ليکن دَ اول روايت په لحاظ سره دَاحناف په نزدسجده واجبه ده.

**ربط** : کومه مسئله دَقيامت چه دَسورة قٓ نه شروع شويده نوهغه پکښې دَماقبل نه على سبيل الترقی ذکرکيږی، ماقبل سورة طورکښې ذکروؤچه ﴿إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۝ مَّا لَهُ مِن دَافِعٍ﴾ پدې سورة کښې دادی چې کله دغه عذاب راشی نوتاسو خو به ئې خود نشئ دفع کولې چې ستاسو شفعاء هم بيا ستاسو شفارش نشی کولې، يعنی بنيادی دعوه دَ سورت نفی شفاعت قهری ده ﴿وَكَم مِّن مَّلَكٍ فِي السَّمَاوَاتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا﴾.

**دسورة دَمضامينو اجمالی خلاصه**

په اول کښې دعوې دَسورة ته تمهيد دې، بيا دَسورة دوه (٢) دعوې دی: **اوله دعوه** ﴿أَفَرَأَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزَّىٰ﴾ چه لات اوعزاة وغيره پخپل حاجاتوکښې مه رابلئ، دوئ شفيع قهری مه ګنړئ.

**دويمه دعوه** ﴿أَلَكُمُ ٱلذَّكَرُ وَلَهُ ٱلْأُنثَىٰ﴾ فرشتې شفيع قهرى،شفيع بلااذنه مه ګنړئ، بيا اعاده دَ دواړو دعوؤ،بياپه دواړودليل عقلى،نقلى پيش كيږى،په آخركښ خلاصه دَسورة ده.

**تفصيلى خلاصه**:

آيت نمبر1تا 18 صداقت رسول بيان دي

آيت 20،19 كښ اولى دعوى ذكر دې

آيت نمبر22،21كښ دويمى دعوى ذكر دې

آيت نمبر 23-25 كښ اولى دعوى اعاده ده

آيت 26-28 پورى دويمى دعوى اعاده ده

آيت نمبر 30،29 كښ تسلى ده

آيت 32،31 بنيادى دعوى اثبات،چى اختيار اوتصرف كامل صرف الله ﷻ سره دى،بل څوک بخښنى والانشته.

آيت نمبر32-35، پورى زجر دې يو مشرک ته،

آيت نمبر36-54 پورې دليل نقلي دې چې هغې كښې مختلف مضامين بيان دي .

آيت نمبر 55 تفريع ده ماقبل باندى،

آيت نمبر56 صداقت رسول بيان دي.

آيت نمبر 58،57 تخويف اخروى دي.

آيت 59-61 زجر دي.

آيت نمبر 62 خلاصه دَسورت ده

**تمت خلاصة السورة مختصراًوتفصيلاً.**

| |
|---|
| وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ ﴿١﴾ مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوَىٰ ﴿٢﴾ وَمَا يَنطِقُ |
| قسم دې په ستورى كله چه ډوب شى،چه ندې ګمراه شوې ملګرې ستاسو او نه دې بې لارې،اوخبرې نه كوى دې |
| عَنِ الْهَوَىٰ ﴿٣﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ﴿٤﴾ عَلَّمَهُ شَدِيدُ |
| دَ خواهش خپل نه . نه دې دا قرآن مګر وحى ده چه ده ته وحى كيږې . ښودنه كړيده ده ته سخت |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْقُوٰى ﴿۵﴾ | ذُوْ مِرَّةٍ ؕ | فَاسْتَوٰى ﴿۶﴾ | وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى ﴿۷﴾ | ثُمَّ دَنَا | | | |
| قوة والا ، عقل والا، بيا په اصل صورت كښې ظاهر شو او دې په كنارو اوچتو دَ اسمان وؤ . بيا رانزدې شو | | | | | | | |
| فَتَدَلّٰى ﴿۸﴾ | فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى ﴿۹﴾ | فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ | | | | | |
| پس ښه نزدې شو، پس شولو په اندازې دَ دوؤليندو يا دَ دينه هم نزدې. پس وحى اوكړه الله جل جلاله خپل بنده ته | | | | | | | |
| مَآ اَوْحٰى ﴿۱۰﴾ | مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى ﴿۱۱﴾ | | | | | | |
| هغه چه وحى ئې اوكړه. نه وؤ كړې انكار زړه دَحضور ﷺ دهغې نه چې ئې وليدل | | | | | | | |

﴿وَالنَّجْمِ اِذَا هَوٰى ﴾پدې آياتونوكښې تمهيددې چه پکښې دَنبى كريم ﷺ دَصداقت اثبات دې﴿وَالنَّجْمِ﴾ اسم جمع ده ټول ستورى ورنه مراددى،واؤقسميه دې اودا قسم دې اوقسم براىٔ استشهاد دې،يعنى په كوم څيزچه قسم كړې شويدې هغه شاهداونمونه ګرځولې شويده په جواب قسم﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ﴾داجواب قسم دې، **مناسبت په مينځ دَمقسم به اوجواب قسم** كښې دا دې چې لكه څنګه چه داستورې طلوع كيږي اوسهارته قريب غروب كوى نو يو خودې دا ټول مسافت سيدها قطع كوى، ويخته برابر هم يو خوا بل خوا نه ځى،اوبل داچه كله غروب ته قريب وى نوپه ادنى نظرسره معلوميږى چه داستورې سيدها را روان دې،دغه شان رسالت اوصداقت دَنبى كريم ﷺ هم حق دې اوپه ادنى نظرسره ئې صداقت معلوميږى،اولكه څرنګه چه ستوروسره رهنمائى حاصليږى دَلارې نه ورک شوؤ ته، نو دغه شان حضور ﷺ هم منبع دَ هدايت اورهنمائى دې.

(۲)دَوالدمحترم رحمه الله استاذالاستاذ(يعنى مارتونګ باباجى رحمه الله استاذ)حضرت مولانا عبدالرحمن امروهى رحمه الله په حاشيه دَبيضاوى كښې فرمائى چه دَ﴿وَالنَّجْمِ﴾ نه مراد شُهب دى چه شيطانان پرې ويشتلې كيږى،مطلب دادې چه دا شُهب په دې دليل دې چه ستاسو پيغمبر په حقه دې،څكه دا شُهب دَدې وجه نه دى چه اخرى پيغمبر ﷺ دنياته تشريف راوړې دې،په سورة جن كښې دَدې ذكردې،اوځه لږذكرئې په تفسيردَسورة احقاف كښې هم شويدې.

(۳) بعضِ وائی چه دَ﴿وَٱلنَّجۡمِ﴾نه مرادباقی انبیاء دی، اومثال دَحضورﷺپُرنوﷺپه شان دَ نوَر دي،

فانّه شمسُ فضلٍ هم کواکبُها  یظهرن انوارُهاللنّاس فی الظلم

شاعرسرحد مولاناعبدالله نوښار په یوشعرکښ وائی:

دی واړه خوبان ستوری اشنالکه دَنوَردې  ښکاري کله ستوری دانوَرچه چرته وی

نونبی کریمﷺنوَردې اوباقی انبیاءﷺ ستوری دی، ستوری چه پټ شی نونوَر ښکاره کیږی، نوچه باقی انبیاء وفات شول نواخری پیغمبرﷺدَنورپشان ښکاره شو، دَ﴿إِذَا هَوَىٰ﴾ معنی دَدې قول په بناوفات کیدل اودنیانه تلل دی، یعنی دَانبیاؤراتلل اووفات کیدل په دې دلیل دي چه﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمۡ وَمَا غَوَىٰ﴾

(۴) بعضِ وائی دَ(النجم)نه مرادقرآن دې، ځکه قرآن هم نجمًانجمًانازل شویدې، یعنی دا قرآن پدې ګواه دې چه﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمۡ وَمَا غَوَىٰ﴾اودَ ﴿إِذَا هَوَىٰ﴾ معنی دَدې قول په بناء نازلیدل دی دآسمان نه.

﴿مَا ضَلَّ﴾ضلالت په جهالت اولاعلمئ سره دَحق لارې نه انحراف ته وائی﴿وَمَا غَوَىٰ﴾ غوایت هغه انحراف چه قصداًاختیارکړیشی، بعض وائی دَضلالت تعلق دَقول سره دې، او دَ غوایت تعلق دَفعل سره دې، یعنی حضورﷺپه اقوالوافعالودواړوکښ په حقه دې اود هغه هر حالت فعل اوقول ئې حجت او حق دې ، کما جاء في الروایة : انی انسّی لاسنّ(موطأ امام مالک).

﴿إِنۡ هُوَ﴾"ان"نافیه دې، "هو"نه مراد خبرې اوکلام دَنبیﷺ دې که وحی لفظی وی چه قرآن دې اوکه معنوی وی چه حدیث دې، یعنی داپیغمبرﷺقرآن اوحدیث دَخپل ځان دَطرفه نه بیانه وی بلکه دَاللهﷻطرف نه ورته وحی کیږی، بعضوپدې آیت کریمه سره دلیل نیولې دې په دې چه حضورﷺلره اجتهادکول منع وؤ، ځکه چه اجتهاد وحی نه وی، لیکن حقه داده چه نبی کریمﷺ لره اجتهادکول منع نه وؤ، اجتهاددَهغه هم منسوب کیږی وحی ته، نودَدې آیت سره ئی مخالفت نشته دې.

﴿عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَىٰ﴾ ضمير منصوب په عَلّمه کښې حضور ﷺ ته راجع دې ﴿شَدِيدُ الْقُوَىٰ﴾ نه مراد حضرت جبرئيل علیه السلام دې کماقال تعالیٰ: انّه لقول رسولٍ کریم ذی قوة... (التکویر ۱۹. ۲۰) یعنی حضور ﷺ ته دا قرآن قوة والا فرشتې وربښودلې دې، اوقوة ئې دومره دې چه دَلوط علیه السلام اووه (۷) بستیانې ئې په یو وزر کښې تر اسمانه پورې اوچتې کړې اوبیائې پرمخې رااوغورځولې، قوم ثمودئې په یوې چغې سره تول مړه کړل.

﴿ذُو مِرَّةٍ﴾ دائی بل صفت دې، یعنی دَمستحکم عقل والا فرشته ده، بعضو دَ ﴿مِرَّةٍ﴾ معنی په حسن سره کړیده یعنی حسن والا فرشته ده.

﴿فَاسْتَوَىٰ﴾ فاء د پاره دتفصیل ده، او د «عَلَّمَهُ» تفصیل بیانه وي، (التحریر والتنویر) یعنی تعلیم ئې داسې ورکړو چې جبرئیل علیه السلام په افق باندې پخپل اصلی صورة کښې ښکاره شو او حضور ﷺ اولیدلو، بیا لاندې زمکې ته راکوز شو، نبي کریم ﷺ ته څه نیزدې شو او الله ﷻ د احکاماتو وحي ئې ورته اوکړه.

﴿وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ﴾ یعنی دې په کناروا وچتو دَاسمان باندې وو، دَدې نظارې تفصیلات ځنې مفسرینو داسې ذکر کړې دې چې جبرئیل علیه السلام به انسانی شکل کښې راتللو او وحی به ئی حضور ﷺ ته راوړله، یو ځل ورته حضور ﷺ فرمائش اوکړو چه ماته خپل اصلی شکل اوښایه، جبرئیل علیه السلام ورسره وعده اوکړه، نوحضور ﷺ یوځل دَ حراء غر باندې وو چه جبرئیل علیه السلام مشرقی افق کښې ښکاره شوشپږ سوه وزرې ئی وې، اوکنارې دَاسمان ئی تولې پټې کړې وې، او دا مراددې دَقول دَالله ﷻ چه ﴿فَاسْتَوَىٰ ۞ وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ﴾ حضور ﷺ په دې نظارې سره بې هوشه شولو، نوبیاجبرئیل علیه السلام د انسانانو په شکل کښې راکوز شو او نبي کریم ﷺ ئي ځان ته رانیزدې کړونو نبي ﷺ په هوش کښې راغې... او دا مراد دې الله ﷻ د دې قول نه «ثم دنا فتدلی» (قرطبي، بغوي)

دا روایت اګرچې بعض مفسرینو ذکر کړې دې خو د حدیث او تفسیر معتبر کتابونو کښې په دې الفاظو او دې سیاق سره د دې ذکر نشته دې، البته معتبر روایاتو کښې دومره راغلي دي چې نبي ﷺ جبرئیل علیه السلام د اسمان نه راکوزیدو په حالت کښې خپل اصلي

شکل کښې اوليدلو ، د ده شپږ سوه وزرې وې ، او افق ئې تول په خپل وجود سره پټ کړې وو.

﴿ثُمَّ دَنَا﴾ضمير مرفوع په کښې جبرئيل عليه السلام ته راجع دې، "دنو" نيزديکت ته وائي او "تدلي" آويزان کيدو او بره نه لاندې راکوزيدو ته وائي ، طبعي ترتيب دا دې چې اول آويزان کيدل وي او بياسرې نيزدې کيږې او دلته اول د نيزديکت او بيا د آويزان کيدو ذکر دې نو دې وجهې نه مفسرينو د دې متعدد توجيهات کړي دي:

(۱) بعض مفسرينو د نيزديکت او "دنو" نه مراد اراده د دنو اغستې ده ، يعني نبي کريم ﷺ ته ئې د نيزدې کيدلو اراده اوکړه نو آسمان نه لاندې راکوز شو .(ابو السعود)

(۲) څنې مفسرين فرمائي چې دلته قلب دې ،تقدير د آيت داسې دې : ((ثم تدلى فدنا))

(۳) او څنې مفسرين فرمائي چې "فاء" دلته پمعني د "واؤ" سره ده چې مطلق جمع دپاره راځي او ترتيب باندې دلالت نه کوي ، خو دا تقديم او تاخير صرف په هغه صورت کښې جائز دې چې کله معطوف او معطوف عليه کښې ترادف يا تلازم وي ، لکه دنا فقرب او قرب فدنا دواړه وئيل جائزدي او شتمني فاساء الي وئيل هم جائز دي او أساء الي فشتمني وئيل هم جائز دي،او دلته هم چونکه د نيزديکت نه لاندې راکوزيدل او لاندي راکوزيدو نه نيزديکت لازميږي نو ځکه د دې ترتيب رعايت اونشو ، (معاني القرآن للفراء ،اللباب)

﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ﴾مقصوددلته دَجبرئيل عليه السلام او دَ حضور ﷺ په مينځ کښې دَغايت قرب او اتصال بيان دې،دَ ﴿قَابَ قَوْسَيْنِ﴾په تفسيرکښې مختلف اقوال دي:

(۱) بې تکلفه قول دا دې چې "قاب" مطلق مقدار په معني کښې دې لکه په حديث کښې دي وَلَقَابُ قَوْسِ أَحَدِكُمْ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ أَوْ تَغْرُبُ (بخاري )او قوس کمان ته وئيلې کيږي خو دلته د پاره دَمسافت دې، لکه چې رمح نيزې ته او قدم خپې ته وائي خو کله د مسافت د پاره هم استعماليږي، يعني دوئ مابين کښې فاصله په مقدار د دوه کمانونو وه.

(۲)بعض حضرات وائي چې دلته د "قاب" نه مراد هغه فاصله ده چې د کمان دستې (موټې) او د کمان "سيت" (د کمان بره او کوزه کناره چې راګګه کړې شوې وي ) په مابين کښې وي، نو دې اعتبار سره هر کمان لره دوه "قابه" وي، يو هغه فاصله چې ( بره کنارې د دستې

سره وي او بله هغه فاصله چې د كمان لاندې كنارې دَ دستې سره وي، دې تقدير باندې كلام كښې قلب شوي دې، په اصل كښې «قابي قوسٍ» دې، يعنى په دومره اندازه قريب شو لكه قابين دَ يو قوس.

(۳) قاب: نه مراد مقبض نه تر وتر پورې ځائ او مينځنئ فاصله ده، او دادَعربو دَ يو رواج مطابق وئيلې شوې دى چه كله به دوئ دَ چاسره دوستى كوله اودَ اتفاق معاهده به ئې كوله، نو دَ خپلې ليندې (قوس) لرګې او وتر به ئې د بل ملګري ليندې او وتر سره ميلاؤ كړو چې دا به علامه وه دَ دې چې دې كمانونو مخ به اوس يو طرف ته وي ، ديو بل مخالف به نه وي ، نو دې صورت كښې د دواړو كمانونو د وتر سره فاصله يوه وي ، نو ځكه «قاب قوسين» اوئيلې شو ،دې تقدير باندې دا كنايه ده د انتهائي قربت او نيزديكت نه.

﴿أَوْ أَدْنَىٰ﴾ "او" دَ شک د پاره نه دې بلكه پمعنى دَ "بل" دې، يعنى بلكه دَ دې نه هم كمه فاصله وه ﴿فَأَوْحَىٰٓ إِلَىٰ عَبْدِهِۦ مَآ أَوْحَىٰ﴾ ضمير مرفوع په دواړو ځائيونو په «اوحى» كښې راجع دې جبرئيل عليه السلام ته ، او ضمير مجرور په «عبده» كښې راجع دې الله ﷻ ته ، يعني جبرئيل عليه السلام د الله ﷻ بنده ته عظيم الشان وحي اوكړه ، او تعيين د وحي نه دې شوې د پاره د تفخيم يعني داسې وحي وه چې الفاظ د هغې بيان نه او دماغ دَ هغې پوهيدلو نه قاصر دى . شعر:

به عندليب چه فرمودهٔ كه نالان است بگوش گل چه گفتهٔ كه خندان است
اكنون كين رادماغ كه پرسيد زباغبان بلبل چه گفت وگل چه شنيد وصبا چه كرد

بعض مفسرين وائى چې اول «اوحى» كښې ضمير راجع دې جبرئيل او دويم كښې راجع دې الله ﷻ ،ته ضمير مستتر پكښې راجع دې الله ﷻ ته،مطلب دادې چه جبرئيل وحى اوكړه حضور ﷺ ته دَهغې چه الله تعالى جبرئيل عليه السلام ته كړې وه ،

﴿مَا كَذَبَ﴾ دا جواب د شبهې دې چې نبي كريم ﷺ د جبرئيل عليه السلام د ليدو تذكره كوي، داكيدې شي د زړه وهم او خيال وي چې هغه ورته متمثل شوې وي، لكه ځنې وخت تنهائي كښې خلقو ته وهم متمثل شي حقيقت كښې څه نه وي او يا به دا څه جن او پيرې وو، خو ده به پرې وهم او ګمان د جبرئيل كړې وي «كذب» دلته پمعنى د وهم سره دې ،«لسان

العرب) يعني د جبرئيل عليه السلام ليدل څه خيال او وهم نه وو. بلکه حقيقت وو، او يا پمعنی دَ ما انکر،سره دې ، يعني سترګو چې څه ليدلي وو ، زړه هم هغه پيژندلې وو او يقين او وثوق ئي وو چې دا جبرئيل عليه السلام دي.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰى مَا يَرٰى ⑫ وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى ⑬ | | | | | | | | |
| آياتاسو جګړې کوئ ده سره په هغې کښې چې ده ليدلې دی، او خامخا په تحقيق چه ليدلې ئې وو جبرئيل عليه السلام په را کوزيدلو کښې بل واري . | | | | | | | | |
| عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى ⑭ عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَاْوٰى ⑮ اِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ | | | | | | | | |
| دَسدرة | المنتهیٰ | سره.هغې | سره | دي | جنة | الماوئ کله | چې | پټوله | بېره |
| مَا يَغْشٰى ⑯ مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى ⑰ | | | | | | | | |
| هغه څيزونو چې ئي پټوله . نه وؤ کوږ شوې نظر دَ حضور ﷺ او نه ؤ تير شوې دَ حد نه | | | | | | | | |
| لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى ⑱ | | | | | | | | |
| خامخاپه | تحقيق | اوليدلی | ده | دَنشانودَرب | خپل | نه | لوئ | لوئ |

﴿أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾ خطاب دې مشرکينوته اوهغوئ ته زجردې، چه حضور عليه السلام دَ کوم څيز پخپلو سترګو معاينه کړيده بيا د هغې مشاهدې د صحت ګواهي الله ﷻ ورکوي نو دې باوجود تاسو ورسره پکښې بحث مباحثې او جګړې کوئ؟ دمشاهدې نه بل غټ دليل څه دې چې تاسو ته پيش کړې شي ؟ دَ﴿مَا يَرَىٰ﴾نه مرادليدل دَ صورة دَ جبرئيل عليه السلام دې،

﴿وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ﴾ په ديکښې د **مذکورې شبهې دويم جواب** دې چې خلاصه ئي تکرار د مشاهدې او د توهم احتمال دفعيه ده چې تاسو دې يو ځل ليدو کښې بحث مباحثه کوئ ، چې دا کيدې شي خيال وي جني وغيره وي ،نو نبي کريم ﷺ دې نه علاوه هم د معراج په موقع باندې د سدرة المنتهی په خوا کښې په اصل صورت کښې ليدلې دې،نو د لته په ليدلو کښې خو د وهم يا جني وغيره احتمال هډو سره امکان هم نشته (غرائب القرآن المعروف به تفسير نيشاپوري)

﴿عِندَ سِدْرَةِ ٱلْمُنتَهَىٰ﴾ دې کښې **مکان د رؤیت** ذکر دې ، چې سدرة المنتهى سره ئې لیدلې وو، "سدرة" دَبیرې ونې ته وائی او دَ﴿ ٱلْمُنتَهَىٰ ﴾معنی ده ځائ دَانتهاء،نو دا یو ځائ دې چه دَعالم محسوس او دَ عالم غیب انتهاء ده،دَعالم بالا نه چه څومره احکامات صادرېږی فرشتې ئې دَدغې ځائ نه راوړی،اوپاسه چه څومره احوال څی فرشتې ئې دغه ځائ ته رسوی، د روایاتو دَ مجموعې نه معلومېږی چه داداسې ونه ده چه جرړې ئې په شپږم اسمان کښې دی اوښاخونه ئې په ووم اسمان کښې، دعرش خې طرف ته ده ، پانړې دَ هغې پشان دَ غوګونو د هاتیانو دی،اوبیرې ئې پشان دَمټکو دَ "هجر" دی ، سوار کس دَ هغې په سوری کښې اویا(۷۰) کاله سفراوکړی نوقطع به نشی،په یوروایت کښې(۱۰۰)کاله راغلی دی اودیته سدرة المنتهی پدې وجه وائی لکه چه تیر شو چه دا انتهاء د فرشتوده ، دَ دینه اخوا ماسوىٰ دَ الله ﷻ نه بل چاته علم نشته دې،یاورته په دې وجه وائی چه ارواح الشهداءدی ځائ ته رسی .

**فائده**: دامسئله اختلافیه ده چه حضورﷺ په شبِ معراج کښې دیدار الهي نه مشرف شوې وو او که نه؟ دې کښې حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما او حضرت عائشه رضي الله عنها مشهور اختلاف دې ، حضرت ابن عباس د دې اثبات کوي او حضرت عائشه رضي الله عنها ئې نفي کوي،او دې اختلاف په وجه د دوئ حضراتو د دې آیت په تفسیر کښې هم آراء مختلفې دي، حضرت عائشه رضي الله عنها د «علمه شدید» نه تر « ولقد رآه نزلة اخرى» پورې آیتونه جبرئیل علیه السلام سره متعلق ګرځولي دي او ضمیرونه ئې جبرئیل علیه السلام نه راجع کړي دي او عبد الله بن عباس رضي الله عنهما دا الله ﷻ سره متعلق ګرځولي دي او ضمیرونو رجعه ئې الله ﷻ ته کړې ده . هم دې وجهې نه ورستنو علماؤو هم په دې مسئله کښې اختلاف دې، دواړو طرف ته قوي دلائل او د ترجیح قرائن شته دې ، مسئله هم څه اصولي نه ده ، بلکه فروع نما ده او مزید دا چې د رؤیت په ثبوت او عدم ثبوت باندې څه عمل هم نه دې موقوف ،نو دې وجهې نه احوط قول دا دې چې دیکښې توقف اختیار کړې شي.

﴿عِندَهَا جَنَّةُ ٱلْمَأْوَىٰٓ﴾ دادَ مکان مزید تعارف دې ، چې سدره المنتهي هغه ځائ دې چې دې خواه کښې جنة الماوي(هغه جنت چې د مؤمنانو مستقر او ټهکانه ده) واقع دې .

﴿إِذْ يَغْشَى ٱلسِّدْرَةَ﴾ديکښي د **رؤيت دَ وخت کيفيت** نظاره ذکر کيږي، «اذ» متعلق دې د ﴿رَءَاه﴾ سره، چې دا رؤيت په داسې وخت کښې شوې وو چې په بيرې ونې باندې د الله ﷻ د انوارتو تجلي وه ، ملائک ئي په پانړه پانړه باندې ناست وو او سرو زرو پتنګان ترينه راغونډ وو ، غرض يو داسې کيفيت وو چې الفاظ د هغې بيان نه قاصر او عاجز دي، ﴿مَا يَغْشَىٰ﴾ ابهام په وجه دَتفخيم شوې دې،چې دې کيفيت بيان، د الفاظو دائرې نه بهر دې ، البته رواياتو کښې ځنو څيزونو تعيين راغلې دې ، چې دې ونې باندې د الله ﷻ د انواراتو تجلي وه، دسرو زرو پتنګان پرې راټول شوي وو او د فرشتو اجتماع وه.

﴿مَا زَاغَ ٱلْبَصَرُ﴾ ديکښې د **مشاهدې کيفيت** بيانيږي، "زيغ" مطلب دې مقصود پريخودل او بل څه ته کتل او "طغيان" نه مراد دې مقصود سره سره بل څه کتل ، نو اول صورت کښې بالکل توجه نه وي او دويم صورت کښې کامله توجه نه وي ، نو دلته د دواړو نفي اوشوه ، چې دينه ثابته شوه چې دا مشاهده څه کامله او اعلى مشاهده وه .چې نبي کريم ﷺ د جبرئيل نه سوا بل څه طرف ته نه متوجه شوې دې او نه ئي ورته سترګې غړولي دي . يا د "زيغ" نه مراد مقصود پريخودل او د "طغيان" نه مراد غير مقصود ته متوجه کيدل دي يعني مقصد نه اوړيدلې او غير مقصد کښې متوجه شوې نه وو(روح المعاني).

﴿لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ ءَايَٰتِ رَبِّهِ ٱلْكُبْرَىٰٓ﴾ يعني د جبرئيل عليه السلام د رؤيت نه علاوه ئي هم د الله ﷻ د قدرت لوئي لوئي نشانئ اوليدلې ، «الکبرى» صفت دې د «آيات» او مفعول به محذوف دې د پاره د تفخيم او تعظيم ، يعني د الله ﷻ د لويو قدرتونو هغه نشانې ئي اوليدلې چې هغه دبيان د وس نه بهر دي ، او يا «الکبرى» مفعول به دې د «رأى» ، يعني الله ﷻ لوئ لوئ قدرتونه مشاهده کړو، مراد دَ دينه ټول مغيبات دى جنت،جهنم،اودغه رنګه نور مغيبات چه دَهغې تفصيل په احاديثودَمعراج کښې ذکردي.

| أَفَرَءَيْتُمُ | ٱللَّٰتَ | وَٱلْعُزَّىٰ ﴿١٩﴾ | وَمَنَوٰةَ | ٱلثَّالِثَةَ | ٱلْأُخْرَىٰٓ ﴿٢٠﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| خبرراکړئ تاسوماته | دَلات او دَ | عزّىٰ ، او | دَ مناة | دريم | بل . |

﴿أَفَرَءَيْتُمُ ٱللَّٰتَ وَٱلْعُزَّىٰ﴾ دَتمهيدنه ورستو دَسورة اوله ضمني دعوه ذكركيږی چه لات، مناة، عزیٰ آلهه مه گنړئ، مشركانو دَ كانړونه دادرې بتان جوړ كړی وو. او دَهغوی عبادت به ئي كولو، او خپل حاجات به ئي ورنه طلب كول ﴿أَفَرَءَيْتُمُ﴾ پمعنی دَ اخبرونی دې، مطلب دادې چه ماته خبرراكړئ چه آيا دَدغه بتانو څه قدرت شته په څه څيزباندی چه تاسو ورته آلهه وايئ، بقول والدمحترم نورالله مرقده چه شيخ القرآن شاه منصورباباجیؒ فرمائی دلته نفديردې ومع ذلک لم يحصل له الالوهية افرأيتم... يعنی سره دَدينه چه حضورﷺ ته دغه مذكوره فضيلت حاصل دې چه جبرئيلؑ ئی ليدلې، سدرة المنتهیٰ ته ختلې دې، دَالله ديدارئ كړيدې، ليكن بيا هم اله ندې نوستاسو معبودان دكوم باغ مولئ دی چه تاسوورته آله وايئ

﴿ٱللَّٰتَ﴾ داپه طائف كښ دَبنوثقيف دَتولونه لوئ بُت وو، بعض وائی په كعبه كښ وو

(۱) دَلتّ يلُتّ نه اسم فاعل دې، لتّ گډوډ كول اووړه كولوته وائی، وائی چه دايونيک سړې وو حاجيان چه به حج ته راغلل نوده به هغوئ دپاره سويق (ستو) تياره ولواوپه هغوئ به ئي خوړلو چه كله مړ شو نو دوئ دفن كړو او دَ هغه دَ قبرعبادت ئی شروع كړو، بيادَڅه وخت تيريدلو نه ورستو ئی دَهغه په نوم بُت جوړكړو، په فتح الباری كښ دی چه كله دې مړ شو نو عمرو بن لُحی خلقوته اووئيل چه دې مړنه دې بلكه دَې كانړی كښ داخل شويدې نوخلقودَهغه كانړی عبادت شروع كړو.

(۲) بعض وائی چه لات دَلوی يلوی نه مأخوذدې پمعنی دَ تاويدلو او طواف كولو، نو مشركانو به دَ دې بت نه طوافونه كول نوځكه پدغه نوم سره موسوم شو.

(۳) بعضِ وائی چه مشركانو دَ خپلو بتانو د پاره دَاللهﷻ دَ نومونو نه، نومونه مقرركړی وو نو وئيل به ئي چه لات دَ الله نه دې، او عزیٰ دَ العزيز نه دې (والله اعلم).

﴿وَٱلْعُزَّىٰ﴾ دادَقريشُ اوبنوكنانه وَ دَ ټولونه لوئ بُت وو، دَعزيز نه ماخوذ دې مؤنث دَ اعزّ دې، وائی چه دا يوجنّی شيطانه وه چه مكې ته نزدې په بطن نخله كښ دَ كيكر په درې (۳) ونو كښ اوسيدله، مشركانوبه ئي عبادت كولو، دې به ورسره خبرې كولې، روحُ المعانی په حواله دَ نسائی او ابن مردويه ليكلی دی چه هر كله مكه فتح كړې شوه نو حضورﷺ خالد بن وليدؓ نخله مقام ته اوليږلو، خالدبن وليدؓ راغې هغه درې ونې ئی كټ كړې او يوه كوته

وه چه په هغې کښې به مشرکانوعبادت کولوهغه ئې هم اونړوله.اوبیاراغې حضورﷺته ئې خبرورکړو،حضورﷺورته اوفرمائیل:ارجع فانک لم تصنع شیئا(یعنی عزیٰ دې نه ده مړه کړې واپس لاړشه)خالدبن ولیدؓبیاراغې،منجورانوچه اولیدلونوچغې ئې شروع کړې:یاعزیٰ یاعزیٰ. نوپه دې کښې دَ هغې پرې کړې شوې ونې نه یوه بربنډه ببرسرې ښځه رابښکاره شوه، پخپل سر ئې خاورې دوړه ولې،خالدبن ولیدؓهغه په توره باندې اووهله اوقتل ئې کړه، بیا راغې حضورﷺته ئې خبرورکړو،حضورعلیه السلام اوفرمائیل:تلک العزیٰ"په روایت کښې داهم راغې چه کله ئې قتل کړه نوداشعرئې وئیل:

یاعُزَّ کفرانکِ لاسبحانکِ    انّی رأیت الله قداهانکِ

نیاراغې حضورﷺ ته ئې خبرورکړونونبی علیه السلام اوفرمائیل:تلک العُزیٰ ولن تُعبد.

﴿وَمَنَوٰةَ ﴾ دادَ اوس اوخزرج دَټولونه لوئ بُت وؤ(۱)دایادَ نوءٌنه مشتق دې،نوءٌ مفرد دې انواءٌ ئې جمع ده،او دینه مراد هغه ستوری دی چې دوئ عقیده وه چې دا باران په وررولو کښې مؤثر دی، نو کله به چه باران نه کیدلو نو مشرکانو به دَ دې بُت په تبرک سره دې ستورو نه باران طلب کولو(۲)یامشتق دې دَ منی یمنی نه پمعنی دَ صبٌ او اراقٌ سره،دې بُت ته مناة ځکه وئیلوچه دوئ به دلته ځاروی ذبح کول وینی به ئې بیولې

﴿ٱلثَّالِثَةَ ٱلْأُخْرَىٰٓ ﴾دادواړه صفتین دی دَ﴿وَمَنَوٰةَ﴾اوصفت دَپاره دَتاکید دې،بعضِ وائ چه﴿ٱلثَّالِثَةَ ﴾دپاره دَتاکید دې او﴿ٱلْأُخْرَىٰٓ ﴾پمعنی دَمتاخرةٌ دَذم لپاره دې.

| |
|---|
| أَلَكُمُ ٱلذَّكَرُ وَلَهُ ٱلْأُنثَىٰ ﴿٢١﴾ تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰٓ ﴿٢٢﴾ إِنْ هِىَ إِلَّآ |
| آیاتاسولره نارینه اولاددی اوالله جل جلاله لونړه دی.دا خوبیا تقسیم دې ډیرناکاره.ندی دامگر |
| أَسْمَآءٌ سَمَّيْتُمُوهَآ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُم مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا |
| صرف نومونه دی چه ایخی دی دانومونه تاسواوپلارانوستاسوندې نازل کړې الله جل جلاله په معبودوالی دَدوئ |
| مِن سُلْطَٰنٍ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَمَا تَهْوَى ٱلْأَنفُسُ ۖ وَلَقَدْ |
| هیڅ دلیل اتباع نه کوی دوئ مگر دَگمان او دَهغې چه غواړی ئې نفسونه دَدوئ اوپه تحقیق |

| |
|---|
| جَآءَهُمْ مِّنْ رَّبِّهِمُ الْهُدٰى ﴿٢٣﴾ اَمْ لِلْاِنْسَانِ مَا تَمَنّٰى ﴿٢٤﴾ |
| چه راغلې دي دوئ ته دَطرفه دَرب دَدوئ نه هدايت.آياشته دې انسان لره هغه چه ئې آرزوکوي |
| فَلِلّٰهِ الْاٰخِرَةُ وَالْاُوْلٰى ﴿٢٥﴾ |
| پس خاص الله جل جلاله لره دي آخرة اودنيا. |

﴿ أَلَكُمُ ٱلذَّكَرُ وَلَهُ ٱلْأُنثَىٰ ﴾دادَسورة دويمى ضمني دعوې ذكردې،مشركينو به فرشتوته بنات الله وئيلو چې دا د الله ﷻ لونړى دى او دې وجې نه به د هغوئ عبادت كولو او هغوئ به ئي شفيع قهري كنړلې ، نو الله ﷻ په دې آياتونو كښې د دې باطلې عقيدې ترديد كوي.﴿ قِسْمَةٌ ضِيزَىٰٓ ﴾ضاز،يضيز،پمعنى دَظلم كولوسره،يعنى داظالمانه اوناجائز تقسيم دې چه ښه څيزستاسوپه حصه كښې راشي اوبيكاره څيزدَالله ﷻ په حصه كښې.

﴿إِنْ هِىَ إِلَّآ أَسْمَآءٌ ﴾دا دَ اولې دعوې ذكر دې "ان"نافيه دې،يعنى ستاسو دَ معبودانو، لات، عزىٰ اومناة هيڅ حقيقت نشته دې هسې ورله تاسو نومونه آلهه ايخى دى.﴿مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا ﴾ اى بمعبوديتها﴿ إِلَّا ٱلظَّنَّ ﴾يعنى صرف خيالات او توهمات دي او﴿وَمَا تَهْوَى ٱلْأَنفُسُ﴾ خواهشات دي چې د هغې اتباع كوئ

﴿وَلَقَدْ جَآءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ ٱلْهُدَىٰٓ﴾جمله حاليه تعجبيه ده ، چې د توهماتو او خواهشاتو اتباع كوي خو الله ﷻ طرف نه ورته هدايت راغلې دې دهغې اتباع نه كوي .

﴿أَمْ لِلْإِنسَٰنِ ﴾دا اضراب انتقالي دې دَ «ان يتبعون الا الظن وما تهوى الانفس»نه او استفهام انكاري دې ، يعني دوئ خو توهماتو او خواهشاتو اتباع كوي چې زمونږ بتان آلهه دي نو دوئ به مونږ د عذاب نه بچ كړي خو دا د دوئ تمناګانې دي ، د دوئ په تمناګانو څوک اله نشي جوړې دي ، دَانسان نه مرادانسانِ كافردې،دَ﴿مَا تَمَنَّىٰ ﴾نه مرادشفارش د بتانو دي.

﴿فَلِلَّهِ ٱلْءَاخِرَةُ وَٱلْأُولَىٰ ﴾علت دې دَ ماقبل، يعنى دنيا او آخرت دَالله ﷻ په قبضه اختيار كښې دى،نوپه ديكښې به هغه څه كيږي چه الله ﷻ ئې اوغواړي نه چه كافران.

وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِي السَّمٰوٰتِ لَا تُغْنِيْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا اِلَّا

اوډيرې دفرشتونه په اسمانونوکښې داسې دي چه نفع به ورنکړي سفارش د دوئ د هيڅ څيز مګر

مِنْۢ بَعْدِ اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَرْضٰى ﴿٢٦﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

ورستودَدينه چه اجازت اوکړي الله تعالى هغه چا لپاره چه ئې خوښه شي او راضي وي . بيشکه هغه کسان

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى ﴿٢٧﴾ وَمَا لَهُمْ

چه ايمان نه راوړي په آخرت باندې خامخانوم ايږدي فرشتو له نوم د ښځو حال داچه نشته دې دوئ لره

بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ

په دې هيڅ علم . نه کوي اتباع دوئ مګر د ګمان، او بيشکه ګمان نفع نه ورکوي

مِنَ الْحَقِّ شَيْـًٔا ﴿٢٨﴾

د حقيقت د هيڅ څيز.

﴿ وَكَم مِّن مَّلَكٍ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾دادويمې دعوې(چه فرشتې شفيع قهرى مه ګڼړئ)اعاده ده،چه فرشتې اګرچه مقرب اومکرم دى عندالله،ليکن بياهم داذن الهى نه بغيرشفاعت نشى کولې"کم"خبريه دې براى تکثيراو﴿لَا تُغْنِي﴾ئې خبردې﴿أَن يَأْذَنَ ٱللَّهُ﴾اى لهم بالشفاعة، يعنى فرشتې به هله شفاعت کوى چه الله ﷻ ورته اذن وکړي.

﴿لِمَن يَشَآءُ وَيَرْضَىٰٓ﴾دينه مراد(١)مشفوع له دې يعنى چه الله ﷻ دهغه دپاره شفاعت کول اوغواړي اوراضى وى پرې،چه هغه اهل ايمان اوتوحيددى(٢)ياورنه شفيع مراددې،

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ﴾زجر دې مشرکانوته چه دوئ د کفر او انکار اخرت ارتکاب سره سره ملائک په وصف انوثت سره هم متصف کوي او وائي چې دا د الله ﷻ لونړه دي .

﴿تَسْمِيَةَ﴾دلته پمعني د " توصيف " سره دي،

﴿وَمَا لَهُم بِهِۦ﴾ای بمایقولون،داحال دي دَفاعل دَ﴿لَيُسَمُّونَ﴾ ﴿مِنْ عِلْمٍ﴾علم پمعنی د دلیل سره دي،نکره په سیاق دَنفی کښ واقع ده نوعموم فائده کوی،یعنی دوئ سره په دې خپل قول باندې هیڅ دلیل نشته دې،﴿إِلَّا ٱلظَّنَّ﴾ظن نه دلته مرادوهم دې،یعنی دوئ صرف وهم اوبې بنیادو خیالاتو اتباع کوی حقیقت ورسره هیڅ نشته دې،﴿وَإِنَّ ٱلظَّنَّ لَا يُغْنِى مِنَ ٱلْحَقِّ﴾ دَ حق نه مراد حقیقت اوعلم قطعی دې،یعنی ظن سره هیڅ کله هم علم قطعی او د خه شي اصل حقیقت نه معلومیږي ((من الحق)) بیان مقدم دې د ((شیئا)).

| |
|---|
| فَأَعْرِضْ عَن مَّن تَوَلَّىٰ عَن ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا ٱلْحَيَوٰةَ |
| پس اعراض اوکړه دَهغه چانه چه اعراض ئی کړې وی زمونږ دَ نصیحت نه او اراده نه لری مګردَژوند |
| ٱلدُّنْيَا ﴿٢٩﴾ ذَٰلِكَ مَبْلَغُهُم مِّنَ ٱلْعِلْمِ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ |
| دَ دنیا . دا منتهیٰ دَ دوئ ده دَ علم . بیشکه رب ستا هغه ښه پوهه دې په هغه چاچه ګمراه شوې وی |
| عَن سَبِيلِهِۦ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ ٱهْتَدَىٰ ﴿٣٠﴾ |
| دَ لارې دَ الله جل جلاله، او هغه ښه پوهه دې په هغه چاچه په سمه لار روان وی |

﴿فَأَعْرِضْ عَن مَّن تَوَلَّىٰ﴾داتسلی ده حضورﷺته چه کوم خلق زمونږ د ذکر او دین نه اعراض کوي او په دنیا کښې منهمک دي او د دنیا زندګي ئي مقصود اصلي ګرځولې ده نو ته د هغوئ په ایمان او نجات باندې ډیر حرص مه کوه او هغوئ ته پریشانه کیږه مه خکه چې دوئ کښې خپله طلب نشته ، اعراض نه مقصود دعوت پریخودلو حکم نه دې چې ته دوئ ته دعوت هم مه ورکوه بلکه دعوت نه قبولو باندې پریشانه کیدل دي چې دا پریګده. ﴿عَن ذِكْرِنَا﴾ دَ ذکر نه مراد ،قرآن دې،یا ایمان،یانبی اکرمﷺ. ﴿وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا﴾یعنی په دنیا راضی وی اخرت ئی هیروی،نظرئی صرف په دنیا وی، او ټول کوشش ئی دَدې په اصلاح کښ وی.

﴿ذَٰلِكَ﴾دیکښې د هغوئ کم علمئ طرف ته اشاره ده چې د دوئ علم انتهاء بس په دنیا باندې ده ، د دنیا ترقي ، خوشحالي ، کامیابي او ګټه پیژني خو دنیا نه ورستو لازوالې ، حقیقي او اصلي زندګئ دوئ ته هیڅ خبر او غم نشته دې کما قال تعالی «یعلمون ظاهراً من الحیاة الدّنیا و هم عن الاخرة هم غٰفلون»(الروم:۷)خومره چه انسان سره دنیامحبت وی او دَ دنیا غلبه وی نودومره به دَاخرت نه غافله وی په حدیث کښ دی:من احبّ دنیاه اضرّبآخرته ومن احبّ آخرته،اضرّ بدنیاه فآثروا مایبقیٰ علی مایفنٰی(مشکوة)په مسنونو دعاګانو کښ یوه دادعاهم ده: اللّهم لاتجعل مصیبتنا في دیننا ولاتجعل الدّنیا اکبرهمّنا ولامبلغ علمنا.

دنیاته ترجیح ورکول اوآخرت نه غافله کیدلو ته قرآن دَ کافرانوخصلت وئیلی دی اوکه دنیا کښې ډیره ترقي کړي وي خو چې آخرت علم ورسره نه وي هغه ته ئي بې علمه او جاهل وئیلې دي لیکن په دې آفسوس دې چه نن صبا دَ انګریزانو تعلیم زمونږ دَ مسلمانانو داحالت جوړ کړیدې چه زمونږ ټول علوم،فنون،اوټول کوشش صرف په معاشیاتوپورې منحصردې،او تعلیم یافته هغه چاته وئیلې کیږي چې په دنیوي علومو او فنونو ئي عبور وي اګرچه هغه د خپل دین د ابجد نه هم واقف نه وي (الله ﷻ دې زمونږپه حال رحم اوکړی).

﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ﴾تعلیل دې دَ فاعرض عمن.... یعني ستا رب ته علم دې چې څوک به هدایت قبلوي او څوک نه قبلوي ، نو د چا هدایت په قسمت کښې نشته نو که هر څومره وعظ و نصیحت ورته اوکړې هغه ئي نه قبلوي ، نو دوئ په قسمت کښې هدایت نشته لهذا ته ورته مه پریشانه کیږه.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلِلّٰهِ | مَا | فِي | السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي | الْاَرْضِ | لِيَجْزِيَ |
| اوخاص الله لره دی هغه څه چه په اسمانونوکښ دی اوهغه څه چې په ځمکه کښ دی،لپاره دَدې چه بدله ورکړی الله ﷻ | | | | | | | |
| الَّذِيْنَ | اَسَآءُوْا | بِمَا | عَمِلُوْا | وَيَجْزِيَ | الَّذِيْنَ | اَحْسَنُوْا | |
| هغه خلقوته چه بد ئي کړی وی په هغه عملونوچه دوئ کړیدی اوبدله ورکړی هغوته چه نیکئ ئی کړې وی | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِالْحُسْنَىٰ ﴿٣١﴾ الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ | | | | | | | |
| په جنت حسنىٰ سره. داهغه دی چه ځان ساتی دَ کبیره ګناهونو نه او دَ بې حیائی کارونو نه مګر دَ واړه ګناهونو نه . | | | | | | | |
| إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ۚ هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ إِذْ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ | | | | | | | |
| بیشکه رب ستا فراخ دې مغفرت ( د هغه ) الله جَلَّ جَلَالُہٗ به پوهه دې په تاسو کله چه ئې تاسو پیدا کړئ دَ زمکې نه | | | | | | | |
| وَإِذْ أَنتُمْ أَجِنَّةٌ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ ۖ فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ | | | | | | | |
| اوکله چه تاسوواړه بچی وئ په خیټو دَ میاندو خپلو کښې ، پس پاکي مه بیانه وئ تاسو د خپل ځانونه | | | | | | | |
| هُوَ | | أَعْلَمُ | | بِمَنِ | | اتَّقَىٰ ﴿٣٢﴾ | |
| الله جَلَّ جَلَالُہٗ | زیات | عالم | دي | په | هغه | چاچه | پرهیزګاروی |

﴿وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ﴾ لات وعزی منات د الوهیت او ملائکو د شفیع قهری کیدلو نفی نه بعد مقصودي دعوې اثبات بیان دې، چې کامل تصرف او اختیار صرف اوصرف الله جَلَّ جَلَالُہٗ سره دې، چې هغه دَ آسمانونو او ځمکې او څه په دیکښې دی هغه مالک دې ﴿لِيَجْزِيَ الَّذِينَ﴾ لام دَ عاقبة لپاره دې، اودا (١) یامتعلق دې دَ﴿وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ﴾ سره، اومطلب دادې چه دَاسمان اوزمکې پیداکول څه بې مقصده نه دی بلکه دَدې پاره دی چه الله جَلَّ جَلَالُہٗ شرک او معاصی کونکوته سزا ورکړی او موحدینو او نیکی کونکو ته جزاء ورکړی (٢) یا متعلق دې دَ هواعلم بمن ضلّ... سره یعنی چه الله تعالیٰ په ګمراه اوپه نیک دواړوباندې عالم دې، نو دواړوته به مستحقه بدله ورکوی. ﴿أَسَاءُوا﴾ ای اشرکوا ﴿أَحْسَنُوا﴾ ای وحّدوا ﴿بِالْحُسْنَى﴾ ای بالمثوبة الحسنیٰ، چه هغه جنت دې، نو باء په ﴿بِالْحُسْنَى﴾ کښې دَصله دپاره ده، یا باء سببیه ده اودَ الحسنیٰ نه مرادنیک عملونه دی، یعنی په سبب دَنیکوعملونو.

﴿ٱلَّذِينَ يَجۡتَنِبُونَ ﴾دا د محسنينو صفاتو بيان دي، يعنى محسنين هغه دى چه دكبيره ګناهونو اودَفحش كارونونه اجتناب كوى،البته كله كله ورنه ارتكاب دَصغائرو اوشى ليكن هغه دَدرجې دَمحسنيت سره منافى نه دې.

دَ كبيره ګناهونوتعريف اودې باره كښې يوځوقابل تحقيق خبرې دَسورة نساء آيت(۳۱)كښې تيرې شويدى هلته دې مطالعه شى.

﴿وَٱلۡفَوَٰحِشَ ﴾جمع دَفاحشة ده او دينه مراد هغه كبيره ګناه دې چې قباحت ئې د عام كبيره ګناه نه زيات وي ، لكه شرک ، ناحقه قتل وغيره، (تفسير نيشاپوري) ياهغه كبيره ګناه چې پكښې بې حيائي هم وي لكه زنا،لواطت وغيره، بعضِ وائى فواحش هغه دى چه دنياكښې وربانديې حدجارى كيږى (إِلَّا ٱللَّمَمَ)لمم په لغت كښې"ماقلّ قدره" ته وائى الَمّ بالطّعام يعنى كم خوراک ئى اوكړو،الَمّ بالمكان،لږ پاتې شوپه مكان كښې،او"لَمّه"هغه ويختوته وائى چه مادون الوفرة وى،اومراد دَ لمم نه(۱)بعضِ وائى صغيره ګناهونه دى چه په حسناتوسره معاف كيږى، لكه نامحرم ته نظركول،قُبله،لمس وغيره،ابن عباس﷜فرمائى چه دَ "لمم" تفسير دَ هغې نه زيات خه ځماپه نيز نشى كيدې كوم چه ابوهريره﷜دَ حضور ﷺنقل كړيدې چه"انّ الله كتب على ابن ادم حظّه من الزنّا ادرک ذلک لامحالة، فزناالعين النظر، و زنااللّسان النطق، و النفس تمنى و تشتهى، و الفرج يصدّق ذلک اويكذبه" اوپه بل روايت كښې په اخركښې ئې دا اضافه هم ده :"فان تقدم بفرجه كان زانيًا و الاّفهواللّمم".(ابن كثير)

(۲)بعضِ وائى چه"لمم"هغه ګناه ته وائى چه باربارئى ارتكاب نه كوى،دَ يو ځل صدور نه بعد ورته بيا عود نه كوى،خواه كه ګناه كبيره وى اوكه صغيره،نومطلب دادې چه محسنين هغه دى چه په ګناهونو باندې مداومت او اصرارنه كوى،دَبشريت دَتقاضې مطابق ورنه احيانًا دَ ګناه صدورراوشى ليكن دادَمحسنيت سره منافى ندې.

(۳)چاويلى دى چه"لمم"په لغت كښې بغير دَ ارتكاب نه يو عمل ته نيزدې كيدلو ، ته وائى نو دَ "لمم" نه مراد دَ ګناه اراده كول،په زړه كښې دَ يو ګناه راتلل بغير دَ ارتكاب نه.

بيان القرآن كښې حضرت تهانوي رحمه الله ليكلى دى چه په ايت كښې "الاّاللمم" دَ استثناء مطلب دا نه دې چه دَ صغائرو اجازت شته دې،ګناه اګرچه صغيره وى خو اجازت ئى نشته دې،

او مطلب دَ آیت دادې چه احیاناًورنه گناه صغیره صدور اوشی بغیر دَ عود او اصرار نه.نو هغه به ورته معاف کیږی.

﴿إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ﴾ دیکښې **ترغیب دې گناهگارانو** ته د توبې ، چې دَالله ﷻ رحمت ډیر وسیع دې ، مایوسه کیږئ مه ، که هر څنگه گناه درنه شوې وي ،الله ﷻ به درله معاف کړي ﴿ هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ ﴾دیکښې **تنبیه ده محسنینو** ته ، چې خپل عبادت باندې په عجب کښې مبتلا نشئ ،ځکه چې کله په عباداتو کښې د انسان نه داسې خفیه آمیزش اوشي چې بیا هغه قابل قبول نشي پاتې، تاسو ته به د هغې علم نه وي خو الله ﷻ ته به ئي وي ، لکه څنگه چې الله ﷻ ته د ستاسو د تخلیق ټولو مراحلو علم دې او تاسو ته نشته دې ،﴿إِذْ أَنشَأَكُم ﴾ «اذ»متعلق دې دَ "اعلم" سره او دَ زمکی نه پیدا کول په اعتبار د سبب بعید سره دي ځکه چې انسان د مني پیدا کیږي او مني دخوراک نه جوړیگي او خوراک د زمکې نه راپیدا کیږي ، یا د مبدا او آغاز اعتبار سره وئیلي شوي دي ځکه چې انسانیت آغاز او مبدا د زمکې نه شوې دې چې د دوئ جد امجد آدم علیه السلام د زمکې نه پیدا کړې شوې وو ﴿أَجِنَّةٌ﴾ جمع دَ جنین ده،دَ مور په خیټه کښې ماشوم ته وائی،ده ته جنین ځکه وائی چه دې مستور وی

﴿فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ ﴾تفریع ده په ماقبل چه اللهﷻ ستاسو په احوالو ، اعمالو عالم دې، او ستاسو هیڅ حال اوعمل ورنه خفی نه دې نو تاسو پخپله ځان صفائی اوتزکیه مه بیانوئ.

﴿هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ ﴾یعنی په متقی او غیر متقی باندې اللهﷻ خه عالم دې،حضورﷺ به داسې نوم هم خوښ نه وؤچه په هغې کښې به دَ خپل ځان لوئي یاخوبی طرف ته اشاره وه، حضرت زینب بنت ابی سلمهؓفرمائی چه ځما نوم "برّه" وؤ، نو حضورﷺاوفرمائیل "لاتزکوا انفسکم انّ الله اعلم باهل البرّ منکم" او بیا ئی او فرمائیل چه دې له زینب نوم کیدئ(ابن کثیر) دا هم یاد ساتل پکاردی چه لکه څرنگه داسې نوم محمود نه دې چه پکښې خپله خوبی اوصفت وی نو دغه شان داسې نوم هم نه دې صحیح چه پکښې دَ گناه معنٰی وی،حضورﷺدَیوې زنانه نوم جمیله ایخې وؤچه دَ هغې نوم عاصیه وؤ، انوارالبیان کښې لیکلی دی چه ډیرخلق دَ تواضع په وجه دَ خپل نوم سره (العبد العاصی) لیکی،دا طریقه دَ رسول اللهﷺسره برابرنه ده.

بعضِ علماؤو دَ ﴿فَلَا تُزَكُّوٓا۟ أَنفُسَكُمْ﴾معنی دا کړیده چه "لا یزکی بعضکم بعضاً" یعنی د یو د پاره دَیوبل تزکیه مه بیانوئ، یایقیني توګه باندې د ځا تزکیه مه بیانوئ. په یوروایت کښې دي چه دَنبی کریمﷺ په مخکښې یو سړی دَبل مدحه اوکړه نونبی کریمﷺ ورته بار بار اوفرمائیل "ویلک قطعت عنق صاحبک" او بیائې اوفرمائیل چه کله په تاسو کښې څوک دخپل صاحب مدح کونکې وی نوداسې دې وائی چه څماورباندې داسې ښه ګمان دې اوحساب ئې په الله ﷻ دې، ولا اُزکّي على الله احداً

په یوروایت کښې دی چه یوسړي دَحضرت عثمانؓ خواته راغي اودهغه صفت ئې شروع کړو نومقدادبن اسودؓ خاوري راوغستلې اودَهغه په مخ ئې وشندلې اووئې وئيل چه مونږ ته رسول اللهﷺ امرکړیدې چه:اذا لقینا المداحین ان نحثو في وجوههم التراب.ابن کثیر بحواله مسلم و ابوداؤد).

| |
|---|
| أَفَرَءَيْتَ ٱلَّذِى تَوَلَّىٰ ﴿٣٣﴾ وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰٓ ﴿٣٤﴾ أَعِندَهُۥ عِلْمُ ٱلْغَيْبِ |
| آیا تا لیدلې دې هغه سړې چه اعراض ئې اوکړو،او ورتې کړو لږ مال او کلک شو(په نور باندې) آیا د ده سره علم د غیب دی |
| فَهُوَ يَرَىٰٓ ﴿٣٥﴾ أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِى صُحُفِ مُوسَىٰ ﴿٣٦﴾ |
| چه دې دا عقیده ساتې آیا دې نه دې خبرکړې شوې په هغه څه چه په صحیفودموسیٰ علیہ السلام کښې وو. |
| وَإِبْرَٰهِيمَ ٱلَّذِى وَفَّىٰٓ ﴿٣٧﴾ أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴿٣٨﴾ |
| اوپه صحیفودَابراهیم علیہ السلام کښې،هغه چې پوره کړې ئې دې (کار او عهد خپل) داچه نشي به بارکولې یو بارونکې بوج دَبل څا |

﴿أَفَرَءَيْتَ ٱلَّذِى تَوَلَّىٰ﴾په دیکښې یو کافرته زجرذکرکیږی.مجاهد رحمہ اللہ وغیره مفسرین وائی چه دا آیت دَولیدبن مغیره باره کښې نازل شویدې،چه قرآن ئې واؤریدلو،اثرئې پرې اوکړو اواقرارئې هم اوکړو چه دا قرآن حق کتاب دې، لیکن یو بل کافر ورته پیغور ورکړو چه دَ خپلو مشرانو دین دې پریخودلو،ده ورته اووې چه څه دَاللهﷻ دَعذاب نه یریږم.هغه ورته اوې چه ته یریږې نو ستا ټول عذاب څه پخپله ذمه اخلم خو په دې شرط سره چه لږ مال ماته راکړه،ده دا خبره اومنله او دَ مقرر شوی مقدار نه ئې لږ ورکړو او دَ نور مال ورکولونه ئې انکار اوکړو.

نو دا آيت نازل شو ، ﴿وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا﴾ معنى داده کوم کس سره يې دا معاهده کړې وه ، هغه له يې لږ مال ورکړو ، ((واکدی)) د کدية نه دی ، ګټ اوچتان ته وئيلې کيږي ، عرب وائي "اکدی الحافر" ، چې کله کوهې کنستونکي ته په لار کښې ګټ او کلکه خاوره راشي او دې د نور کنستلو نه ئې عاجز راشي ، او بيا دا استعماليږي هر هغه کار دپاره چې عزم ئې اوکړې شي خو سر ته اونه رسولې شي ، نو دلته مطلب دا دې چې څومره مال ورکولو وعده ئې کړې وه هغې نه لږ شان ورکړو ، او په نور باندې په خپله کلک شو او ور ئې نه کړو . او څنو ئې داسې توجيه بيان کړې ده چې ((اعطی قليلا)) اسلام ته لږ غوندې توجه ورکړه او څه ميلان ئې ښکاره کړو (( واکدی)) خو سر ته ئې اونه رسولو ، او ايمان راوړلو نه منع شو

﴿أَعِندَهُۥ عِلْمُ ٱلْغَيْبِ﴾ يعنى آيا ده سره دَغيب علم دې چه دَ دې په وجه دې په داسې ضمانتونو باور کوي ﴿فَهُوَ يَرَىٰٓ﴾ "فاء" د پاره تفريع ده ، او "رؤيت" نه مراد يا رؤيت قلبي دې ، يعني ده څه سره علم د غيب دې چې دې دا عقيده ساتي ، او يا رؤيت بصري دې ، يعني هغه څه ويني چې نور خلق ئې نه ويني .

﴿أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا﴾ دليل نقلی دې په ثبوت دَقيامت دَ صحف دَ موسى او ابراهيم عليهما السلام نه او تخصيص دَدې دواړه انبياؤ څکه اوشوچه دَنوح عليه السلام دَ زمانى نه تر ابراهيم عليه السلام دَ زمانې پورې به يو سړې دَ بچې په ضمانت کښې بچې به دَ پلار ، خاوند به دَ ښځې په ضمانت کښې نيولې کيدلو ، ابراهيم عليه السلام دَدې مخالفت اوکړو او موسى عليه السلام دَدې نفاذ اوکړو ، او تقديم دَ صحف موسىٰ په صحف ابراهيم باندې دَوجې دَشهرت اواکثريت نه اوشو

﴿ٱلَّذِى وَفَّىٰٓ﴾ "توفيه" ادا کولو او سر ته رسولو ته وائيلې کيږي ، مفعول به دتعميم د پاره حذف شوې دې؛ لهذا د دينه مراد :

(۱) هغه تمامو امتحاناتو او ابتلاګانو کښې کامياب کيدل دی چه په ابراهيم عليه السلام راغلی وو ،

(۲) د الله ﷻ احکاماتو تبليغ کول دي ،

(۳)او د غه شان دَ دینه مراد څلور رکعته اشراق نفل کول دی په اوّل النهار کښې. لکه ابن کثیر رحمه الله په حواله دَابن ابی حاتم دَ ابو امامه رضي الله عنه نه روایت نقل کړیدې چه حضور عليه السلام داآیت تلاوت کړو چه ﴿وَإِبْرَٰهِيمَ ٱلَّذِى وَفَّىٰٓ﴾ او بیائی اوفرمائیل "اتدرون ماوفّی" ما ورته عرض او کړو چه الله ورسوله اعلم، بیائی اوفرمائیل: وفی عمل یومه باربع رکعاتٍ من اول النهار.

(۴)دغه شان دا شامل دې، دې کلماتو دَ قرآن سهر او ماښام لوستلو لره هم "فسبحٰن الله حین تمسون وحین تصبحون وله الحمد في السمٰوات و الارض وعشیًا و حینَ تُظهرون"، معاذ بن انس رضي الله عنه دَ خپل پلار نه نقل کوی چه حضور ﷺ اوفرمائیل: الا أُخبرکم لِمَ سَمّی الله تعالی ابراهیم خلیله الّذی وفّی، انه کان یقول کلما اصبح و امسیٰ، فسبحان الله حین.....الی اخرالآیة. (ابن کثیر)

﴿أَلَّا تَزِرُ﴾ په اصل کښې ان لاَ دې "ان" تفسیریه دې، ﴿لَّا تَزِرُ﴾نه واخله تر ﴿فَغَشَّىٰهَا مَا غَشَّىٰ﴾ پوری داټول تفسیر دې دَ﴿بِمَا فِى صُحُفِ مُوسَىٰ ۝ وَإِبْرَٰهِيمَ﴾

دا **اول مضمون** دې دَصحف موسی او ابرهیم عليهما السلام یعنی په صحف موسیٰ او ابرهیم کښې دادی چه یو مجرم دَبل مجرم پیټی په خپل سرنښی اخستلې، اوځوک دَبل چاپه ګناه کښې نښی نیولې کیدلې، اوهرچه په حدیث کښې دی "انّ المیت لیعذّب ببکاء اهله" نومرادورنه هغه میت دې چه وصیت ئې کړې وی چه څماپه مرګ دی جړاګانې اوکړیشی.

| |
|---|
| وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَٰنِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ۝ وَأَنَّ سَعْيَهُۥ سَوْفَ يُرَىٰ ۝ |
| اوداچه نده انسان لره مګرهغه چه ئې سعی کړې وي . او بیشکه چه سعی دده زرده اوبه خودلې شی ده ته. |
| ثُمَّ يُجْزَىٰهُ ٱلْجَزَآءَ ٱلْأَوْفَىٰ ۝ وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ ٱلْمُنتَهَىٰ ۝ وَأَنَّهُۥ هُوَ |
| بیابه بدله ورکړې شی ده ته بدله پوره.اوبیشکه چه رب ستاطرف ته آخري رسېدل دی،اوبیشکه الله جل جلاله صرف هغه |
| أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ ۝ وَأَنَّهُۥ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا ۝ وَأَنَّهُۥ خَلَقَ |
| خنده وی اوژړه وی.اوبیشکه الله جل جلاله صرف هغه مړه کول اوژوندی کول کوی.اوبیشکه هغه پیداکړې دي |

الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ ﴿٤٥﴾ مِنْ نُطْفَةٍ إِذَا تُمْنَىٰ ﴿٤٦﴾ وَأَنَّ عَلَيْهِ النَّشْأَةَ

جوړې نر او ښځه ـ دَ نطفې نه کله چه واچولې شي په رحم کښ. اوبیشکه دَ هغه په ذمه دی پیداکول

الْأُخْرَىٰ ﴿٤٧﴾ وَأَنَّهُ هُوَ أَغْنَىٰ وَأَقْنَىٰ ﴿٤٨﴾ وَأَنَّهُ هُوَ رَبُّ الشِّعْرَىٰ ﴿٤٩﴾

دوباره. او بیشکه صرف هغه غنی کول کوی او فقیرکول کوی، او بیشکه صرف هغه رب دې دَ شعری ستوری

﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ داعطف دې په﴿أَلَّا تَزِرُ﴾ باندې، **دویم مضمون** بیان دې یعنی په صحف موسیٰ اوابراهیم کښ داهم وُچه انسان ته به دَخپلې سعی جزاورکولې کبری. ان خیراً فخیر و ان شراًفشرٌ، دَبل چاپه ضمانت سره به څوک دَعذاب الهی نه نشی خلاصیدلې

بعضِ اهل بدعت لکه معتزله ؤ په دې آیت سره استدلال کړیدې په عدم ایصال ثواب باندې امواتو ته،یعنی مړوته دَ ژوندوله طرفه دَهیڅ عمل ثواب نه رسی،لیکن اهل سنت والجماعت قائل دی په ایصال ثواب باندې اوپه دې ئي اجماع ده چه دَ ژوندی سړی په دعا، استغفار، صدقې سره مړی ته ثواب او فائده رسی،او دا دَ نصوصِ شرعیه ؤ نه ثابته ده:

(۱)والّذین جآؤامن بعدهم یقولون ربّنا اغفرلنا و لاخواننا الّذین سبقونا بالایمان (حشر: ۱۰) په دیکښ دَ هغه مؤمنانوصفت بیان شویدې چه خپلووفات شده مؤمنانوته دُعادَمغفرت کوی، نو معلومه شوه چه دَ ژوندی دعا مړی ته فائده ورکوی،

(۲)جنازه کول هم دَژوندوعمل دې اوفائده پرې مړی ته رسی که مړی ته فائده نه رسیدلې نه بیابه نوه مشروعه.دَاحادیثوذخیره هم پدې باب کښ کثیره ده.

(۳)اذامات الانسان انقطع عنه عمله الا من ثلاثة (مسلم ۱۶۳۱)پدې حدیث کښ درې څیزونو ذکر دی چی هغه مرګ نه بعد انسان ته نفع رسوی(۱)صدقه جاریه (۲)علم چی هغی سره نفع حاصلیږی (۳)ولد صالح،چه هغه ورله دعا کوی،نوپلار ته هغه دعا نفع ورکوی.

(۴)په یوروایت کښ دی چه:انّ امرءة رفعت صبیًا لها فقالت یارسول الله! ا لهذا حجّ؟فقال نعم و لکِ اجرٌ(مسلم،ابوداؤد،ترمذی)

(۵)یوصحابی ﷺدَحضور ﷺ خدمت کښ حاضرشواوعرض ئی اوکړو، إِنَّ أُمِّي افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا، وَأَظُنُّهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ، فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟ قَالَ: «نَعَمْ» (بخاری)

﴿۲﴾ سعدبن عبادهﷺراغې اونبی کریمﷺته ئې اووئیل"انّ امی.توفیت ءأتصدق عنهاقال نعم،قال ایّ الصدقة افضلّ"کومه صدقه افضله ده،نوحضورﷺورته اووئیل چه کوهې اوکنه اواوبه ئی وقف کړه نوهغه کوهې اوکنستلو او بیا ئی اووئیل هذه لامّ سعد،دغه شان ډیر احادیث په دی دال دی چه ایصال ثواب حق دې اوهرچه دې آیت مذکوره﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ نومفسرین دَدې آیت یوڅوتوجیهات ذکرکوی:

﴿۱﴾ابن عباسﷺفرمائی چه دا حکم دَ مخکنو امتونو په حق کښې وۇ او دَ دې امت په حق کښې منسوخ دې په دی قول دَ اللهﷻسره:والّذین امنوا و اتبعتهم ذریّتهم بایمانٍ الحقنابهم ذریّتهم ﴿الطور: ۲۱﴾ دَدینه معلومیږی چه دَآباؤپه نیک عمل سره مؤمن ذرّیت ته فائده رسی.

﴿۲﴾روح المعانی لیکلی دی چه دَخراسان والی عبدالله ابن طاهردَحُسین ابن الفضل نه تپوس اوکړوچه دَدې آیت دَ:والله یضاعفُ لمن یّشاء﴿بقره: ۲۶۱﴾ سره تناقض دې،نوحسین ابن الفضل ورته اووئیل دلته په دې آیت کښې دَعدل الهی ذکر دې چه هرسړی ته به دَسعی مطابق خامخا جزاء ورکولې کیږی اوپه بقره کښې دَفضل الهی ذکردې،فقبّل عبدالله رأس الحسین

﴿۳﴾دلته مراد د سعي نه سعی ایمانی ده چه داپه آخرت کښې بل چاته فائده نه ورکوی چه ایمان دې دَیوکس وی اونجات دې پرې بل ته ملاؤشی،اوپه حدیث کښې دَسعی عملی ذکر دې، چه عمل دَ یو بل چاته نفع ورکوی، دَدارالعلوم دیوبند مفتی اعظم حضرت مولانا عزیز الرحمن صاحب په حالاتوکښې لیکلی دی چه هغه فرمائی:چه څه یوه شپه دَ اوده کیدلودپاره سملاستم نواچانک می په زړه کښې دا اشکال راغې چه دَ ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ خو مطلب دادې چه په آخرت کښې به دَ چا لپاره دَبل چاسعی پکار نه راځی،اوپه حدیث کښې خو دَ ایصال ثواب ترغیب راغلې دې چه په هغې سره دَمړی نه تخفیف عذاب او رفع عقاب کیږی او رفع درجات ئی کیږی اودغه رنګه دَدې آیت دَ انبیاؤو، صلحاؤو، حفاظو،شهداؤ دَ شفاعت سره هم تناقض دې،نو دې فرمائی چه دَ دې اشکال مې ډیر حل تالاش کړولیکن ذهن کښې می رانغې اوپه زړه مې داخوف طاری شوچه دَ دې تناقض حل ځماپه ذهن کښې نشته دې نوګویاچه دې آیت باره کښې ځماایمان سست او مضمحل دې،خدانخواسته کچرته دې حالت کښې ماته مرګ راشی نوځمابه څه حالت وی، نو فوراً راپاسیدلم اوپیاده ګنګوه ته روان شومه،چه حضرت ګنګوهیﷺنه دااشکال حل کړم، ګنګوه دَ دیوبند نه تقریبًا دیرش﴿۳۰﴾میله لرې

وؤ،صبح صادق نه مخکښ ګنګوه ته اورسیدم، نو حضرت ګنګوهی رحمه الله دتهجد دپاره اودس کولو ماورته سلام اوکړو،جواب نه پس ئی راته اوفرمائیل ته دلته په دې وخت څه کوې؟ عرض مې اوکړوچه یوعلمی اشکال کښ مبتلا یم ، نو بیا مې ورته خپل اشکال بیان کړو، نو حضرت رحمه الله د اودس په دوران کښ او فرمائیل چه په آیت کښ دسعی نه مرادسعی ایمانی ده چه داپه آخرت کښ بل چاته فائده نه ورکوی چه ایمان دې دیوکس وی اونجات دې پرې بل ته ملاؤ شی،اوپه حدیث کښ دسعی عملی ذکردې،چه عمل دیو بل چاته نفع ورکوی.

(۴)بعضِ فرمائی چه دلته دانسان نه مرادکافردې،اوهرچه مؤمن دې نوهغه ته خپل عمل هم فائده ورکوی اودبل عمل هم،خلاصه دکلام داده چه استدلال دمعتزله ؤپدې آیت سره باطل دې،ایصال ثواب حق دې ،البته دامام شافعی رحمه الله ،مالک رحمه الله او د ظواهرو په نزد تلاوة د قرآن ثواب مړی ته نه رسی،دوئ وائی چه په نص صریح کښ ددې ثبوت نشته دې، لیکن احنافو اودجمهوروفقهاؤپه نزدلکه څرنګه چه دنورونیکواعمالوثواب رسی نودغه شان دقرآن دتلاوة ثواب هم رسی،دتلاوت نه بعدبهتره داده چه دااوونیلې شی،اللّٰهم اوصل ثواب ما قرأته الی فلانٍ،که په زړه کښ ئی اووائی نوهم کافی ده،خوداضروری ده چه تلاوة په أُجرت سره نه وی لکه بعضې خلق مړولپاره په ختم کولوپسې حافظانوته پیسې ورکوی،ځکه د داسې تلاوة ثواب نه وی نو ایصال ثواب به ئې څرنګه اوشی،هرچه دې قول دامام شافعی رحمه الله، مالک رحمه الله اودظواهرونو د دې په جواب کښ علماء فرمائی چه:

(۱)په نص کښ ددُعااودصدقې ثبوت راغلې دې،نوتلاوة هم هبه اودعابالقرآن ده

(۲) دویمه دا چه په احادیثو کښ دصوم،صدقې ذکردې نوداتمثیلات دی حصرنه دې او د تمثیلاتو حکم یوشان کیدل په شریعت کښ معروف دی.

(۳)په مشهورحدیث کښ دی"اقرؤاعلی موتاکم یٰسٓ"نوددې په تشریح کښ اصح قول دادې چه داحکم قبل الموت هم دې اوبعدالموت هم،نومعلومیږی چه تلاوت دقرآن مړی ته نفع ورکوی ورنه حکم به ئې نه وؤشوې(والله اعلم).

﴿وَأَنَّ سَعْيَهُۥ سَوْفَ يُرَىٰ﴾يعنی قيامت په ورځ به انسان دخپلې سعی فائده اووينی،

﴿وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ ٱلْمُنتَهَىٰ﴾دريم مضمون بيان دې يعنی انتهاء او رجوع د ټولو خلقو الله تعالیٰ ته ده،بل ذات ته نه ده،بعضِ وائی معنی داده چه الله تعالیٰ منتهی الافکار دې،يعنی د هر

څيز په حقائقو او ماهياتو كښې فكر چليږي ليكن دَالله ﷻ په ذات كښې نه چليږي، په حديث كښې دي "تفكّروا في الخلق و لاتفكّروا في الخالق فانّكم لن تقدروه(ابن ماجه)

﴿وَأَنَّهُۥ هُوَ أَضۡحَكَ وَأَبۡكَىٰ ﴾**څلورم مضمون** بيان دې يعني دَخوشحالئ اودَغم اسباب دَالله ﷻ په قبضه كښې دي، خوشحاله كول خفه كول الله ﷻ كوي. تكراردَ"هو"اوتقديم ئې دَ حصر لپاره دې، يعنې صرف الله ﷻ دا كاركوي نه بل څوك

﴿وَأَنَّهُۥ هُوَ أَمَاتَ وَأَحۡيَا﴾**پنځم مضمون** بيان دې يعنې پيداكول اومړه كول هم صرف دَالله ﷻ په اختياركښې دي

﴿خَلَقَ ٱلزَّوۡجَيۡنِ ﴾ **شپږم مضمون** بيان دې "هو"ضميرئې دلته دَمخكښې طرزموافق ذكرنه كړو څكه دلته وهم دَ شركت دَغيرالله نشته دې.

﴿وَأَنَّ عَلَيۡهِ ٱلنَّشۡأَةَ ٱلۡأُخۡرَىٰ ﴾**اووم مضمون** بيان دې يعنې دوباره پيداكولوباندې هم قادردې لكه اول ځل قادردې، اودوباره پيداكول ئې پخپله ذمه واجب كړيدې.

﴿وَأَنَّهُۥ هُوَ أَغۡنَىٰ وَأَقۡنَىٰ ﴾**اتم مضمون** بيان دې يعنې مالداره كول اومحتاجه كول صرف دَالله ﷻ په قبضه كښې دي، "اقنى" دَ "قنيةً" نه دې او قنيه هغه مال ته وئيلې كيږي چې ذخيره اندوزي ئې كيږي او بل وخت ته هم پاتې كيږي ، لكه بنګلې ، باغونه ،حيوانات وغيره، و هو ما يدوم ويبقىٰ من الاموال ببقاء نفسه واصله (روح المعانى) او دلته بعضو وئيلي دي چې همزه د باب افعال د سلب ماخذ د پاره ده ، نو څكه ئي د دې معنى "افقر" سره كړې ده، امام بخارى رحمه الله په كتابُ التفسيركښې هم دغه معنى كړيده، بعضو وئيلي دي دلته خاصيت د اعطاء ماخذ دې نو دوئ ئي معنى"اعطى القِنيةَ" سره كړې ده، يعنې هغه څيزونه ئې هم انسان ته عطاءكړيدي چه باقي پاتې كيږي او ذخيره كيږي، حضرت ابن عباس ﷺ ددې آيت معنى داكوي چه مالداره كول كوي اوراضى كول كوي په وركړې باندې.

﴿وَأَنَّهُۥ هُوَ رَبُّ ٱلشِّعۡرَىٰ ﴾ **نهم مضمون** دې "شعرى"يوستورې دې چه مشركانوبه ئي عبادت كولواو دَ عالم په احوالوكښې به ئي مؤثر ګڼړلو ،نو الله ﷻ فرمائى چه"شعرى"خالق نه دې چه تاسوئى عبادت كوئ بلكه مخلوق دې،علماء وائى چه دَټولونه اول دَدې ستورې عبادت

دَخزاعه قبیلي يو سردار ابو کبشه شروع کړې وو، مشرکانو به حضورﷺ ته ابن ابی کبشه هم په دې وجه وئیل، چه ده هم نعوذبالله دَابی کبشه په شان نوې کار شروع کړیدې. بعض وائی چې ابی کبشه دَحلیمه سعدیهؓ دَزوج کنیت وو،په دې وجه به حضورﷺ ته مشرکانو ابن ابی کبشه وئیل. بعض وائی چه دا دَوهب عبد مناف کنیه وو،چه دې دَحضور علیه السلام دَمورله طرفه نیکه وو.

| |
|---|
| وَاَنَّهٗٓ اَهْلَكَ عَادَا ١لْاُوْلٰى ۙ﴿۵۰﴾ وَثَمُوْدَا فَمَآ اَبْقٰى ۙ﴿۵۱﴾ |
| او بیشکه الله هلاک کړیدی عاد اولی . او ثمود ئی هم (هلاک کړیدی) نوهیڅ څوک ئی پکښ نه دي پریخي |
| وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ اَظْلَمَ وَاَطْغٰى ؕ﴿۵۲﴾ |
| او قوم دَ نوح ئی هم هلاک کړیدې مخکښ دَ دوئ نه ، بیشکه هم دوئ وو ډیر ظالمان او ډیر سرکشه |
| وَالْمُؤْتَفِكَةَ اَهْوٰى ۙ﴿۵۳﴾ فَغَشّٰىهَا مَا غَشّٰى ۚ﴿۵۴﴾ |
| او الټه کړې شوی کلی را اوئی غورځول . پس پټ کړل دا کلي هغه څیز چه پټ کړې ئی وو، |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارٰى ﴿۵۵﴾ هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰى ﴿۵۶﴾ |
| نو د خپل رب کوم کوم نعمتونو کښ به ته شک کوی ،دا یرونکې دې دَ یرونکو مخکنونه . |

﴿وَأَنَّهُ أَهْلَكَ عَادًا ٱلْأُولَىٰ﴾ **لسم مضمون** بیان دې یعنی الله ﷻ **هغه** زبردست قدرت والا ذات دې چه یو سرکش اومعاند ئې هم نه دې پریخی،قوم عاد،ثمود اونوح نمونی تاسو ته مخکښ دی ،دغه شان روغ روغ کلی الله ﷻ الټه کړیدی «عادا الاولی» مراد ورنه قوم هود علیه السلام دې، او الاولی ورته(۱) دَقوم ثمود په مقابله کښ وئیلې شویدی ځکه چه ثمود یانوته عاد اُخریٰ وئیلې کیږی،قومِ هود په تیزې اوسختی هواسره هلاک شوی وو،اوقوم ثمود په صیحه اورجفه سره هلاک شوی وو(۲) بعضِ وائی په قوم عاد چه کله عذاب راغلې وو،نو دَدوئ یو وفد مکې ته راغلې وو نو هغوئ دَعذاب نه محفوظ وو،نومعذب قوم ته عاد اولی وئیلی کیږی (۳) بعض مفسرینو دَ الاولی ترجمه په "القدماء" سره کړیده دوئ دَقومِ نوح علیه السلام نه ورستو په ټولو سرکشو قومونو کښ اول هلاک شوی وو(والله اعلم).

﴿وَثَمُودَاْ ﴾دا عطف دي په «عادا» باندې ﴿فَمَآ أَبْقَىٰ ﴾دَدواړوقومونوسره متعلق دې،يعنی قوم عاداوقوم ثمودکښې يوکافر هم دَعذاب نه بچ نشو ټول هلاک شول.

﴿وَقَوْمَ نُوحٍ ﴾عطف دې په"عادا"باندې. ﴿مِّن قَبْلُ﴾ای من قبل اهلاک عادٍ و ثمود ﴿إِنَّهُمْ كَانُواْ﴾ ضمير دَ جمع ياراجع دې مخکښ درې واړه قومونه ته،يعنی دغه قومونه دَ قريشو نه زيات ظالمان اوسرکشه وؤ،نوپه دې کښ حضورﷺ ته تسلی ده،کمالایخفی.
ياراجع دې قومِ نوح ته،يعنی قوم نوح دَعاداوثمودنه زيات ظالمان اوسرکشه وؤځکه چه دوئ به نوحؑ وهلو او تکليفونه به ئې ورته رسول. يوسړی به خپل ځوې په لاس اونيولو او دَ نوحؑ خواته به ئې بوتللو، ورته به ئې وئيل چه دا کاذب دې په ده ايمان رانه وړې، او ورته به ئې وئيل چه ماته هم خپل پلار دا وصيت کړيدې نن ځه هم تا ته داوصيت کوم.نودغه رنګه پلار به مړ شو او ځوئ به ئې دَ پلار په وصيت قائم وؤ،دَنوحؑدعوت پرې اثر نه کولو.

﴿وَٱلْمُؤْتَفِكَةَ ﴾الټه کړی شووؤنه مراددَقوم لوط بستيانې دی.﴿أَهْوَىٰ ﴾يعني اوچتې ئې کړې او بيا ئې په زمکه راغوزارې کړې ای اسقطهاالی الارض بعدان رفعهاعلى جناح جبرئيلؑ الى السماء«روح المعانی»

﴿فَغَشَّىٰهَا مَا غَشَّىٰ ﴾ ابهام دَعذاب کښ تفخيم اوتهويل دَعذاب ته اشاره ده.تردی ځائی پوری صحف موسی اوابراهيم مضامينو بيان ختم شو،

﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكَ ﴾ ماقبل باندې تفريع ذکر کيږی خطاب دې هرانسان ته، اومراد"الاء"نه هغه دی چه په مخکنواياتونو کښ ذکرشول چه هلاکت دَظالمانو اودَسرکشودې،اودَدې هلاکت نه تعبيرپه"الاء"سره ځکه اوشوچه دَظالمانواوباغيانو هلاکت دَاللهﷻپه خلقوباندې ډير لوئ انعام دې،اودغه رنګه پديکښ عبرت اونصيحت دې عبرت اخستونکواونصيحت قبولونکوته.

﴿هَٰذَا نَذِيرٌ﴾اشاره ياقرآن ته ده،ياحضورﷺته ده،او ديکښ دَ قرآن او نبی ﷺ صداقت بيان دې،چه دا قرآن او داپيغمبر ظالمانو او سرکشانو لره نذيردې،لکه څرنګه چی مخکښ

کتابونه اورسولان وؤ،اويااشاره ده معذاب امتونو احوالو اواخبارو ته ،په دی صورت کښ بیا تخویف دنیوی دې.

| |
|---|
| اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ ﴿٥٧﴾ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ ﴿٥٨﴾ |
| نزدې راغې نزدې راتلونکې(قیامت)نیشته دې دې ره ماسویٰ دالله ﷻ نه څوک بیانه ونکې |
| اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ ﴿٥٩﴾ وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ﴿٦٠﴾ وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ﴿٦١﴾ |
| آیا پس دَ دې کلام نه تاسو تعجب کوئ، او خاندئ او جاړئ نه ، او تاسو غافل یئ . |
| فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ﴿٦٢﴾ |
| پس سجده اوکړئ خاص الله ﷻ ره اوعبادت کوئ دده. |

﴿أَزِفَتِ الْآزِفَةُ﴾تخویف اخروی دې مشرکانوته چه ورځ دَقیامت چه تاسوورنه انکار کوئ قریبه ده﴿الْآزِفَةُ﴾دَقیامت په نومونوکښ یونوم دې کقوله تعالیٰ"وانذرهم یومَ الازفة اذ القلوب...".

﴿كَاشِفَةٌ﴾دَنفسٌ مقدرصفت دې ای نفسٌ کاشفةٌ،اوکشف یاپمعنی دَبیانولودې،یعنی ماسویٰ دَالله ﷻ نه دَدې بیانونکې نشته دې چه کله به قیامت راځی،کقوله تعالی: لایُجلّیها لوقتها الاّ هو (اعراف:١٨٧)یادَ کشف نه مرادازاله اولرې کول دی،یعنی چه کله قیامت واقع شي نو بیا به ئي څوک د لرې کولو قدرت نه لري سوا د الله ﷻ نه او الله ﷻ به ئي لرې کوي نه ، یا کشف پمعنی دَ تاخیر دې،یعنی چه کله راشی نوڅوک به ئي نشی ورستوکولې.

﴿أَفَمِنْ هَٰذَا الْحَدِيثِ﴾«هذاالحدیث» نه مراد قرآن دې،په دیکښ منکرینو دَ قرآن ته زجر دې، چه تاسو دَ دې قرآن نه انکارکوئ اوپه دې پورې استهزاءکوئ،او دا خوف نه کوئ چه په تاسو به هم داسې عذاب راشی لکه مخکنو باندې چه راغلی وؤ.

﴿وَأَنتُمْ سَٰمِدُونَ﴾ سمود: غفلت اوبې فکرئ ته وائی، ای انتم غافلون، بعضو ئی معنی متکبّرین کړیده، دینه علاوه نورې معنې لکه اعراض، لهولعب، ګانې وئیل ئی هم کړی شویدی.

﴿فَٱسْجُدُوا۟ لِلَّهِ﴾ په آخرکښ دَسورة خلاصه اولب لباب دې چه صرف الله تعالی ته سجده کوئ او دَ هغه نه غواړئ، دا آیت دَاکثروعلماؤ په نیز آیت دَسجدې دې، حضور علیه السلام دَدې آیت دَ تلاوت په وخت کښ سجده کړې وه، دَابن مسعود رضی الله عنه قول په ابتداء دَ دې سورة کښ تیر شویدې چه: اوّل سورة اُنزلت فیها سجدة: النجم، فسجدَ رسولُ الله ﷺ وسَجَدَالنّاسُ کلهم الاّ رجلاً... ،امام شافعی رحمه الله په نزدسجده واجبه نه ده، اواستدلال هغه په قول دَزیدبن ثابت کوی چه قرأتُ النجم عندالنبی ﷺ فلم یسجد فیها. دَدینه جواب دادې چه احتمال دې چه نبی علیه السلام ورستو سجده کړې وی، اودغه شان زید رضی الله عنه هم. تاخیردَسجدې دَ تلاوت اګرچه مکروه تنزیهی دې لیکن کیدیشی چه حضور ﷺ بیاناًللجوازکړې وی اویابل څه عذرپه وجه وی (والله تعالی اعلم).

| آياتها (۵۵) | سورة القمر مكية | ركوعاتها (۳) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۵۴) وحسب النزول (۳۷)**

نَزَلَتْ بَعْدَ سُورَةِ الطَّارِقِ وَ قَبْلَ سُورَةِ ص

**ربط** : ماقبل سورة سره ئې ربط داسې دې چه دعوه دَدې سورة دَماقبل سورة دَدعوې لپاره علت اودليل دې،سورة النجم کښې داوۀچه ستاسوخودساخته معبودان ستاسوشفاعت نشي کولې،دې سورة کښې ئې دليل دې چه﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَٰهُ بِقَدَرٍ﴾ چه دَهرڅيزخالق مالک الله تعالى دې نودَشفاعت اختيارهم هغه سره دې،بل چاته نشته دې.

**دسورة دَمضامينواجمالي خلاصه**

ابتداکښې اوآخرکښې شکوه ده،زجر،تخويف اخروى،بشارت اخروى اوپه درميان کښې دَتخويف دنيوى پنځه نمونې،دغه رنګه احوال قيامت،اواثبات قيامت لپاره يوه نمونه چه انشقاق القمردې.

**تفصيلي خلاصه**:

﴿ ٱقْتَرَبَتِ ٱلسَّاعَةُ ﴾آيت(۱)دَاثبات قيامت لپاره نمونه ده

﴿وَإِن يَرَوْا۟ ءَايَةً ﴾ آيت(۲)نه تر(۵)پورې شکوه ده

﴿يَوْمَ يَدْعُ ٱلدَّاعِ ﴾ آيت(۶)نه تر(۸)پورې،تخويف اخروى دې

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ ﴾آيت(۹)نه تر(۱۷)پورې دَتخويف دنيوى اوله نمونه ده

﴿كَذَّبَتْ عَادٌ﴾آيت(۱۸)نه تر(۲۲)پورې دويمه نمونه ده

﴿كذبت ثمود بالنذر﴾آيت نمبر ۲۳ نه تر آيت ۳۲ پورې تخويف دنيوى،دريمه نمونه ده

﴿كذبت قوم لوط﴾آيت نمبر ۳۳ نه تر آيت ۴۰پورې تخويف دنيوى څلورمه نمونه ده

﴿وَلَقَدْ جَآءَ ءَالَ فِرْعَوْنَ ٱلنُّذُرُ ﴾آيت(۴۱)نه تر(۴۲)پورې پنځمه نمونه ده.

﴿إِنَّ ٱلْمُجْرِمِينَ﴾ آيت«۴۷، ۴۸» تخويفِ اخروى دي

﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ﴾ آيت«۴۹» دَسورة دعوه ده،

﴿إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ وَنَهَرٍ﴾ ترآخره پورې متقينو ته بشارت دي.

**تمت خلاصة السورة اجمالاًوتفصيلاً**

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِقْتَرَبَتِ | السَّاعَةُ | وَانْشَقَّ | الْقَمَرُ ① | وَاِنْ | يَّرَوْا | اٰيَةً | يُّعْرِضُوْا | |
| نزدې شو قيامت او اوچاودله سپوږمۍ. اوکچرې اووينی دا کفار يو معجزه نو اعراض کوی ورنه | | | | | | | | |
| وَيَقُوْلُوْا | سِحْرٌ | مُّسْتَمِرٌّ ② | وَكَذَّبُوْا | وَاتَّبَعُوْٓا | اَهْوَآءَهُمْ | وَكُلُّ | اَمْرٍ | |
| اووائی چه داسحردې پوخ او تکذيب اوکړودوئ اواتباع ئی اوکړه د خپلو خواهشاتو ، او هر امر | | | | | | | | |
| مُّسْتَقِرٌّ ③ | وَلَقَدْ | جَآءَهُمْ | مِّنَ | الْاَنْۢبَآءِ | مَا | فِيْهِ | | |
| قرارنيونکې دې «په خپل وخت کښ» اوپه تحقيق راغلی دی دوئ ته واقعات «د هلاکت» هغه چه په هغی کښ | | | | | | | | |
| مُزْدَجَرٌ ④ | حِكْمَةٌۢ | بَالِغَةٌ | فَمَا | تُغْنِ | النُّذُرُ ⑤ | | | |
| عبرت دې، دا حکمت دې پوره،پس هيڅ فائده نه ورکوی دوئ ته يرول . | | | | | | | | |

﴿اَقْتَرَبَتِ ٱلسَّاعَةُ وَٱنشَقَّ ٱلْقَمَرُ﴾ دا دَاثبات قيامت لپاره نمونه ده، او د دې بيان په دوه طريقو سره کيدې شي:

«۱» چه لکه څرنګه سپوږمۍ دوه ټکرې شوه دغه شان به تاسو هم ټکرې شئ او بيا لکه څرنګه چه ټکرې دَسپوږمۍ يوځائ شوې نو دغه شان به تاسو هم دوباره يو ځائ شئ او ژوندی به شئ

«۲» شق قمرمعجزه ده دَحضورﷺ،په دې سره دَ نبوت تصديق کيږی او دَ نبی هر قول صادق وی نو دا ضروری ده چه دَ قيامت دَ راتلوکوم خبرچه حضور عليه السلام ورکړيدې هغه صادق دې.

شقّ القمريعنی سپوږمۍ دوه ټکرې کيدل دَحضورﷺ په معجزاتوکښ مشهوره معجزه ده، په بخاری او مسلم وغيره کتابونو دَ حديثو کښ دا په صحيح سند سره مروی ده،مفسرينو

لیکلی دی چه دَ هجرت نه تقریبًا پنځه کاله قبل حضور ﷺ نه اهل مکّه اوئیل چه مونږته پخپل نبوت څه دلیل اوښایه. نوحضور ﷺ ورته سپوږمئ ده ټکړی کیدل اوښودل حتی چه حرا غر دَ دوه ټکړو په مابین کښ وؤ. په صحیح بخاری اومسلم کښ دی چه ابن مسعود ؓ فرمائی: انشق القمرعلی عهد رسول اللهﷺفرقتین فرقة علی الجبل وفرقةً دونه فقال رسول اللهﷺاشهدوابه،په یو روایت کښ دی چه سپوږمئ دوه ټکړې شوه نو قریشواووئیل چه داسحر دې، نو یو کس اووئیل چه انتظار وکړئ چه مسافر راشی هغوئ څه وائی،ځکه چه محمّد علیہ السلام دا طاقت نه لری چه په ټولو خلقو سحر وکړی چه مسافر راغلل نو هغوئ ورته هم دغه خبر اوکړو، په درّ منثور وغیره کښ دی چه مشرکان نبیﷺ ته راجمع شول چه په هغې کښ ولیدبن مغیره. ابوجهل، عاص بن وائل وغیره مشران وؤ،حضورﷺته ئی اووئیل که چرته په رشتیا نبی ئی نو دا سپوږمئ دوه ټکړې کړه چه یوه حصه په جبل ابی قیس وی اوبله په قینقاع وی،نونبی کریمﷺ ورته اوفرمائیل کچرته مادا کار اوکړو نوایمان به راوړئ؟ نو هغوئ وئیل،هاؤ. دَڅوارلسمې سپوږمئ وه نبی کریمﷺ دَ الله ﷻ نه دغه سوال اوکړو نو سپوږمئ دَوه ټکړې شوه نصف په ابی قبیس وه اونصف په قینقاع وه،حضورﷺورته اوازونه کول چه اشهدوا۔

بعضِ قدیم فلاسفه اودشمنان اسلام دَانشقاق القمرنه انکارکوی اودابعیده ګڼړی چه داسې کاردی واقع شی،علامه شبیراحمدعثمانی رحمہ اللہ دَدې په جواب کښ لیکلی دی چه، طحاوی اوابن کثیراونوروددې واقعی دَتواتردعوه کړیده،اوپه څه عقلي دلیل سره تراوسه پورې دَداسې واقعاتومحال کیدل نشی ثابت کیدلې،اوصرف دَاستبعادپه بناءباندې داسې قطعی الثبوت څیزونه نشی رد کیدلې، بلکه استبعاد خو دَ اعجاز(معجزې) سره لازم دې، ورځینئ واقعاتو ته څوک معجزه وئیلې شی؟

هرچه دې دااعتراض چه که شق القمرواقع شوې وې نوټولې دنیاولې نه دې لیدلې اوپه تواریخو کښ ئی ولې ذکرنشته دې نو دَ دې په جواب کښ مولانا رحمہ اللہ لیکلی دی چه داواقعه دَ شپې شوي ده، دَ مطالعو دَ اختلاف په سبب په بعضِ ملکونو کښ دغه وخت ورځ وه،اوپه بعض ځایونوکښ نیمه شپه وه اوخلق اوده وؤ.

دَدې حالاتو باوجوددَدې واقعې ذکرپه تاریخ کښ هم ملاویږی،دَهندوستان په تاریخ لیکلی شوې مشهورکتاب تاریخ فرشته کښ دَدې ذکرموجوددې چه دَهندوستان راجه مالیبار دا واقعه په خپلو سترګو لیدلې وه اوپخپل ډائری کښ ئی لیکلې وه،بیا څه وخت ورستو یو

صحابی حبیب بن مالک رضي الله عنه تجارتی سفر باندې هندوستان ته راغې نو دې راجه ورنه دَ دغې واقعی متعلق معلومات اوکړل،نوصحابیﷺورته وضاحت اوکړوچه اللهﷻ خپل آخری پیغمبرمبعوث کړیدې، دَ هغه په معجزې سره سپوږمئ دوه ټکړې شوه او بیا یو ځائ شوه،دې اوریدلو سره راجه مسلمان شو(بحواله معالم العرفان).

﴿وَإِن يَرَوۡاْ ءَايَةٗ﴾دې کښې د کفارو اعتراض ذکر کیږې په معجزې باندې ، چې دا معجزه نه ده بلکه سحر دې ، او د «اية» نه مراد دلته معجزه د انشقاق القمرده﴿مُّسۡتَمِرّٞ﴾یادَ مرةٌ نه دې پمعنی دَ مضبوط اوقوی،یادَ مرور نه دې پمعنی دَ ذاهب یعنی لکه څرنګه چه مخکښ ساحران تلی دی تیرشویدی دغه شان به دې هم تیرشی،یاپمعنی دَ دائمٌ دې،ای مطرد دائمٌ بالی به محمدﷺ علی مرّالزمان.

﴿ وکذبوا و اتبعوا اهواءهم﴾دا دوئ اعتراض منشا بیان دې .چې د دې بنیاد اومنشاعناد او خواهش پرستي ده نور هیڅ نه دی.

﴿وَكُلُّ أَمۡرٖ مُّسۡتَقِرّٞ﴾دا جواب دې دوئ د اعتراض «سحر مستمر» ،«امر» نه مراد دلته هر امر مؤثر دې.یعنی هر امر چی هغی کښ اللهﷻ څه نه څه تاثیر ایخې وی،نو هغه خپل اثر ضرور پریګدی ،اګرچه څنې وخت څه عارضی اسبابو دَ وجهی نه دباؤ شی،لیکن انجام او نتیجه دا وي چی بلآخر هغه خپل اثر ظاهر کړی،نو دغه شان دَ حق او دعوت محمدیه تاثیر غلبه ده، اګرکه څه وخت پوري به دباؤ وی خو بلآخر همدا به غالب کیږی،کافران دې دی غلط فهمی کښ نه اوسی چه دا سحر دې یووقتی شې دې،څه مده پس به ختم شی.

﴿وَلَقَدۡ جَآءَهُم مِّنَ ٱلۡأَنۢبَآءِ﴾دیکښې د کفارو عناد او سرکشئ بیان دې چې دوئ دیر اویرولې هم شو او پرحکمت خبرو سره ورته نصیحت هم اوشو خو په دوئ دې ټولو خبرو هیڅ اثر اونکړو،«من الانباء»بیان مقدم دې،دَ«ما» اودَ انباء نه مراد دَ هلاکت واقعات دی دَ تیرشوی امتونو.﴿مُزۡدَجَرٌ﴾دَزجرنه ماخوذدې،اصل کښ "مزتجر"وؤ، بیا "تاء" په "دال" سره بدل کړیشوه، نو "مزدجر" شو. مصدر میمی دی ای ازدجار،او غیر ثلاثی مجرد نه مصدر میمی

دهغه باب اسم مفعول په وزن رازی،او یا اسم ظرف دې، اي موضع ازدجار، یعنی ځایٔ دَ عبرت او دَ منع کیدلو دَ معاصیوْو نه.

﴿حِكْمَةٌۢ بَٰلِغَةٌ﴾ای تامةٌ بلغت منتهی البیان، یعني د بیان او وضاحت په دې انتها شوې ده، دایابدل دې دَ "ما"نه یادَمبتدامحذوف خبردې چه "هذهٖ" دې، او اشاره یا "الانباء" ته ده ، یا قرآن ته ده،یعنی دا قرآن دَ پوره علم ، حکمت اونصیحت مجموعه ده.

﴿فَمَا تُغْنِ ٱلنُّذُرُ﴾"فاء" تفریعیه ده یعنی باوجود دَدی نه چه سابقوْو امتونو حالات دویٔ ته معلوم شول ،او قرآن چې حکمت نه ډک کلام دې هغه په دویٔ لوستلې کیږی ،خو دی باوجود دویٔ دَ رسولانو دعوت نه منی اودَ هغویٔ خبره پری څه اثر نه کوی(ابو السعود)

((ما)) نافیه ده،ای لم تغن النذر شیئًا(خطیب)او "نذر"یاجمع دَنذیرده،یعنی دویٔ ته پیغمبران هیڅ فائده نه ورکوی،ځکه چه دَ دویٔ په زړونو مهر دَ ضلالت لګیدلې دې، یا "نذر" مصدردې پمعنی دَانذار،یعنی یره ول،یعنی که ته دویٔ دَالله ﷻ دَعذاب اوویره وې خودویٔ ته فائده نه ورکوی. یا ((ما))استفهامیه ده،ای فایّ شیءٍ تُغنی النّذر عنهم وهم معرضون عنها (قرطبی، شربینی وغیره).

| |
|---|
| فَتَوَلَّ عَنْهُمْ يَوْمَ يَدْعُ ٱلدَّاعِ إِلَىٰ شَىْءٍ نُّكُرٍ ۝٦ خُشَّعًا |
| پس اعراض اوکړه ته دَدویٔ نه،هغه ورځ چه راغواړي به راغوختونکې یو څیز نا اشنا (بد) ته .حال دا چه خکته به وی |
| أَبْصَٰرُهُمْ يَخْرُجُونَ مِنَ ٱلْأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ ۝٧ مُّهْطِعِينَ |
| سترګې دَدویٔ را اوځی به دَ قبرونو نه ، لکه چې دویٔ ملخان وی خواره واره تیټ سر منډی وهونکی به وی |
| إِلَى ٱلدَّاعِ ۖ يَقُولُ ٱلْكَٰفِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ۝٨ |
| بلونکی ته، وائی به کافران چه دا ورځ ده سخته. |

﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ﴾ دا تسلی ده حضور ﷺ ته چی نصیحت انتهاء ته رسیدلی دی،واضح واضح دلیلونه مخکښې راغلل ،اوس که دویٔ ایمان نه راوړی نو دیکښې ستا څه قصور نشته.

﴿ يَوْمَ يَدْعُ ٱلدَّاعِ ﴾دا تخويف اخروى دي كافرانوته او جمله مستانفه ده او ظرف متعلق دي «يخرجون» سره. ،يعنى دوئ دي بې غمه كيږي نه ،قيامت ورځ شته.دوئ به الله ﷻ حضور ته پيش كيږي،او هغه به ورسره حساب كتاب كوى،دي تخويف ضمن كښ الله ﷻ دَ قيامت شپږ هولناك مناظر بيان كړل:

(۱)﴿ يَوْمَ يَدْعُ ٱلدَّاعِ ﴾اسرافيل عليه السلام به شپيلئ اووهى.او آواز به اوكړى: هلموا الى عرض الرحمن چې خپل پروردګار دربارته حاضر شئ.

(۲)﴿شَيْءٍ نُّكُرٍ ﴾ډير ناګوار او نااشنا منظر به وى ،چې هغه منظر سره به دوئ مخكښ واسطه نه وى راغلى،«نكر»صيغه صفت ده فُعُل په پمعنى ناګوار او نآآشنا كښ استعماليږى.

(۳)﴿خُشَّعًا أَبْصَٰرُهُمْ يَخْرُجُونَ ﴾يعنى ټيټى سترګى او ذليله به دا كافران دَقبرونو نه را اوځى، چونكه ذلت اثر په سترګو كښ ښكارى نو دى وجهى نه دَخشوع نسبت ابصارو ته اوشو ، «خشعا» حال دى دَ ضمير دَ«يخرجون» نه

(۴)﴿كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ﴾ډير زيات خلق به دى اوده ډيرى بدحواسئ نه به سرګردان اوخواره واره روان وى،لكه خواره واره ملخان وى،يو يو طرف ته ټوپ وهى،بل بل طرف ته.

(۵)﴿مُّهْطِعِينَ﴾ستونو به يى ټيټ وى او زر زر به آواز كونكى طرف ته روان وى، مهطع ويلي كيږى، هغه كس ته چې دَ ډيرې يرى دَوجهى نه يى سرټيټ كړې وى،اخو ديخوا نه ګورى او سيدها خپل منزل طرف ته روان وى.(التحرير والتنوير)

(۶)﴿يَقُولُ ٱلْكَٰفِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ﴾كافران به دا نعرې وهى چې داخو ډيره سخته اوتكليف ده ورځ ده.

مفسرين ليكى چې كفارو طرف دَ فعل اسناد ، دلالت كوى په دې خبرې چه دا ورځ به په مؤمنانو باندې دومره سخته نه وى (ابو السعود)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَذَّبَتْ | قَبْلَهُمْ | قَوْمُ | نُوحٍ | فَكَذَّبُوا | عَبْدَنَا | وَقَالُوا |
| تكذيب كړې | وؤمخكښ دَدوئ نه | قوم | دَنوح عليه السلام، | نودوئ تكذيب كړې | وؤزمونږدبنده، | اووې وئيل |

| |
|---|
| مَجْنُوْنٌ وَّازْدُجِرَ ﴿٩﴾ فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَغْلُوْبٌ فَانْتَصِرْ ﴿١٠﴾ |
| دامجنون دې،اواورټلې شو.پس سوال اوکړوهغه دَرب خپل نه چه بيشکه زه عاجزيم نوتهٔ امداداوکړه |
| فَفَتَحْنَآ اَبْوَابَ السَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنْهَمِرٍ ﴿١١﴾ وَّفَجَّرْنَا الْاَرْضَ عُيُوْنًا فَالْتَقَى |
| نوپرانستې مونږدروازې دَآسمان په اوبو بهيدونكو سره . او را اوسپړدلې مونږ زمكې كښې چينې نويوځاۍ شوې |
| الْمَآءُ عَلٰٓى اَمْرٍ قَدْ قُدِرَ ﴿١٢﴾ وَحَمَلْنٰهُ |
| اوبهٔدَآسمان اوزمكې په ‹ پوره كولو دَ › هغه امر چه فيصله كړې شوې وۀ. اوسوركړې وۀمونږنوح عليه السلام |
| عَلٰى ذَاتِ اَلْوَاحٍ وَّدُسُرٍ ﴿١٣﴾ تَجْرِيْ بِاَعْيُنِنَا جَزَآءً |
| په كشتۍ تختو والا او ميخونو والا باندې ، چليده زمونږ د نظر لاندې ‹غرق شو دغه قوم› دَپاره دَبدله اغستلو |
| لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ ﴿١٤﴾ وَلَقَدْ تَّرَكْنٰهَآ اٰيَةً |
| دَهغه چاچه ناشكرى ئې كړې شوې وه،په تحقيق سره پريښودله مونږدغه ‹كشتۍ› نښه دَعبرت، |
| فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿١٥﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿١٦﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا |
| نوآياشته څوك عبرت اخستونكې،پس څنګه وۀعذاب زما اوويره ول زما اوپه تحقيق اسان كړيدې مونږ |
| الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿١٧﴾ |
| قرآن دپاره دنصيحت،نوآياشته څوك نصيحت اغستونكې |

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ﴾ دَتخويف دنيوى په پنځه نمونوكښې **اوله نمونه** ذكركيږي چه هلاكت دَقوم نوح دې،دَقوم نوح دَهلاكت تفصيلي واقعه په دولسمه‹١٢›اواتلسمه‹١٨›سپاره كښې تيره شويده. ﴿فَكَذَّبُوْا عَبْدَنَا﴾ دوباره د ‹‹كذبوا›› راوړل ‹١›يا دپاره دَتفسير دى چې هغه تكذيب دادې ‹٢›او يا دَپاره دَتكرار دى چې تكذيب يو ځل نه وۀ،بلكه مسلسل اونسل در نسل دَهغوئ دا روش اوعادت وۀ،‹٣› او يا تخصيص بعد التعميم قبيل نه دې،يعنى ‹‹كذبت

قبلهم قوم» كښې تکذيب نه مراد مطلق نبوت اورسالت انکار وؤ. او «فکذبوا عبدنا» کښې خاص دَ نوح عليه السلام دَنبوت نه انکار دې، «عبدنا» نه مرادنوح عليه السلام دې، نوح عليه السلام خپل قوم ته دعوت ورکړو ليکن هغوئ ئې تکذيب اوکړاو وئيل چه ﴿مَجۡنُونٞ﴾ دې ليونې دې.

﴿وَٱزۡدُجِرَ﴾ عطف دې په «قالوا»، او خبر دې دَ الله تعالیٰ د جانبه يعنی تبليغ دين په لار کښې ډير رټلی شوی وؤ، مختلف قسم تکاليف ورته رسولی شوی وؤ. او مختلفو حربو سره هغه لار کښې رکاوټونه جوړ کړيشوی وؤ. نقل دی چه دَنوح عليه السلام دَقوم بعضِ خلقوبه چه چرته نوح عليه السلام اوليدلونومرئ بې ورته خپې کړه حتّیٰ چه هغه به بې هوشه شوچه کله به په هوش شونوونيل بې، اللّهم اهدِقومي فانهم لايعلمون(کشاف، البحرالمحيط).

بعضِ وائی چه﴿وَٱزۡدُجِرَ﴾عطف دې په﴿ مَجۡنُونٞ﴾باندې، او دا هم مقوله دکفارو ده يعنی دوئ اووئيل چه په ده پيريان راغلی دی اوعقل ئی ختم شويدې، اي:ازدجرته الجنّ وذهبت بلبّه و تخبطته (روح، شربيني). ليکن اوله معنیٰ اصحه ده.

نهه نيم سوه کاله تکليفونوبرداشت کولونه ورستوچه کله نوح عليه السلام مايوسه شونودعائی اوکړه چه﴿ أَنِّي مَغۡلُوبٞ فَٱنتَصِرۡ ﴾نو الله تعالیٰ ئې دعاقبوله کړه﴿ فَفَتَحۡنَآ أَبۡوَٰبَ ٱلسَّمَآءِ ﴾حضرت ابن عباس رضي الله عنه دَ«ابواب السماء»نه حقيقي دروازې اخيستی دي، چې په دې ورځې خلاف عادت الله تعالیٰ د وريځو په ځائ د اسمان نه اوبه اورولې، حالانکه هځې د وريځی نه باران وريګی، او عام مفسرينو داآيت په تمثيل محمول کړيدی، چه لکه څرنګه چې اوبو يو تيز طوفان دروازی ماتی کړی اوپه مخ روان شی، دغه شان په دی روځ داسی باران وريدو لکه آسمان دروازی کولاؤ شوی وی، او اوبه ترينه رابهيرې(روح)

﴿بِمَآءٖ مُّنۡهَمِرٖ ﴾يعنی ډيربهيدونکی اوبه وی، ساسکې ساسکې نه وؤ. "باء"دآله دپاره راغلی ده لکه" کتب بالقلم " کښې دَ آلې دَپاره ده، ديکښې دَابو شدت طرف ته اشاره ده چې دومره تيزې وې چې آسمانونو دروازې هم دې کهولاؤ کړې ، مفسرين وائی چه څلويښت ورځې مسلسل دغه اوبه وريدلې.

﴿ وَفَجَّرْنَا ٱلْأَرْضَ ﴾ يعنى تولہ زمکہ مو چینہ چینہ کړه اوهرځائی نہ اوبہ راوتلل شروع شو، دَاسمان نہ هم اوبہ راوریدلې،اوزمکې نہ هم اوبہ رااوتلې ﴿فَٱلْتَقَى ٱلْمَآءُ ﴾ التقاء پہ معنې د اجتماع سره دې ،«الماء» نہ مراد جنس اوبہ دي ، چې هغہ داسمان او زمکي دواړو اوبہ وې «امر» نہ مراد اندازه او مقدار د اوبو دې چې دې طوفان د پاره الله ﷻ پہ تقدير كښې ليكلې وو(تفسير ابن عطيه) يعني آسمان نہ هم اوبہ رااوبهيدلې او زمكې نہ هم ، تردې چې دواړه اوبہ ميلاويدو نہ پس هغہ مقدار تہ اورسيدلې چې كوم ورلہ پہ تقدير كښې ليكلې وو، او يا «امر»نہ هلاكت د قوم نوح دې ، يعني د آسمان او زمكې اوبو پہ هلاكت دقوم نوح اجماع اوكړه،

﴿عَلَىٰ ذَاتِ أَلْوَٰحٍ ﴾اى على سفينة ذاتِ الواحِ،﴿وَدُسُرٍ ﴾جمع دَ دسار ده، غټ مينځ تہ وائى،ياهغہ رسئ اوپړې چه كشتئ پرې تړلې كيږى.﴿تَجْرِى بِأَعْيُنِنَا ﴾يعنى زمونږپہ نګرانئ اوحفاظت كښں چليده،طوفان او نور آفاتو دَ بحر نہ محفوظه وه. ﴿جَزَآءً ﴾مفعول لہ دې اى أغرقوا جزاءً،غرق كړې شول لپاره دَبدلہ اخستلودَهغہ چاچه ناشكرى ئى شوې وه چه نوح عليه السلام وؤ،هرنبى نعمت وى دَالله ﷻ دَطرفه پہ امت باندې، نو دوئ دَ دې نعمت ناشكرى اوكړه نو هلاک شول.

﴿وَلَقَد تَّرَكْنَٰهَآ ﴾ضمير يا سفينهٔ نوح تہ راجع دې،دَقتاده رحمه الله نہ روايت دې چه الله ﷻ سفينه دَ نوح پہ جودى غر باندې باقى پريخودلہ لپاره دَعبرت حتَّى چه اوائلو دَ دې امت اوليده، يا ضمير راجع دې قصّه دَ نوح عليه السلام تہ يعنى دا قصه مو دَ عبرت ذريعه اوګرځوله.﴿فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴾استفهام دَامرپمعنى دې،يعنى نصيحت اوعبرت ورنہ قبول كړئ.

«مدكر»پہ اصل كښں،مذتكردې تاء پہ دال سره بدل كړې شوه او ذال پہ دال بدل شو او بيا ادغام اوشو نو «مدكر» شو

﴿ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا ٱلْقُرْءَانَ لِلذِّكْرِ ﴾جملہ قسميه ده چه دَځلورواړوقصوپہ آخركښں ذكر شويده، لپاره دَتاكيددَمضمون.﴿ لِلذِّكْرِ ﴾لپاره دَوعظ اونصيحت اسان دې يعنى هرسړى پكښں دَخپل

حال مطابق نصيحت اوعبرت موندلی شی،اوبعضو مفسرينو ذکر نه مراد حفظ او يادول دَ قرآن اخيستې دي ،چې دا دَ قرآن يو لويه معجزه ده چې دومره لوئ کتاب په دومره آسانه سره ياد شی چې بل يوکتاب هم داسی نشته ، البته استنباط دَ احکام اومسائل د دې کلام اسان کار نه دې،لکه بعضې احمقان وائی چه په لږ غور وفکر او عربي ګرائمر ونيلو سره پرې هم سرې پوهيدې شي او احکام ترينه اخذ کولې شې ، او په دې آيت په سهارې سره دَ قرآن نه دَ احکامو او دَ مسائلو استخراج کوی،حالانکه دا واضحه ضلالت دې،علماء دَ دې امت اوائمه کرامو دَ احکامودَ استنباط او دَ قرآن په اسرارو او په دقائقو باندې پوهيدلو لپاره خپل عمرونه صرف کريدی.

﴿فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾ دلته هم استفهام پمعنی دَامردې،يعنی دَقرآن نه نصيحت واخلئ اودا ياد کړئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿١٨﴾ إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا | | | | | | |
| تکذيب کړې وؤعادیانوپس څنګه وؤعذاب څمااويره ول څما بيشکه مونږليږلي وؤ په دوئ باندی باد | | | | | | |
| صَرْصَرًا فِي يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿١٩﴾ تَنزِعُ النَّاسَ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ | | | | | | |
| تيز په ورځ د نحوست مسلسل کښی .راويستل به دې باد خلق داسې لکه دوئ تنی | | | | | | |
| نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ﴿٢٠﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٢١﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا | | | | | | |
| دَکجورو دی چه دَ ويخه راويستلی شوې وی. پس څنګه وؤ عذاب څمااويره ول څما .اوپه تحقيق اسان کړيدې مونږ | | | | | | |
| الْقُرْآنَ | لِلذِّكْرِ | فَهَلْ | مِن | مُّدَّكِرٍ | ﴿٢٢﴾ | |
| قرآن | دپاره | دَنصيحت | نوآياشته | څوک | نصيحت | اغستونکې |

﴿كَذَّبَتْ عَادٌ﴾ دادويمه نمونه ده دَتخويف دنيوی چه هلاکت دَقوم عاددې،دَدوئ دَهلاکت تفصيلی واقعه هم په اتمه،دولسمه،سپاروکښ تيره شويده، ﴿رِيحًا صَرْصَرًا﴾ تيزه هوا ياسخته يخه هوا ،تفصيلی بحث په سورة حم سجدة کښ تيرشويدې، ﴿فِي يَوْمِ﴾ دَيوم نه مراد مطلق وقت

دي، ځکه چه دا هوا صرف يوه ورځ نه وه بلکه مسلسل وه(۷)شپې اته(۸)ورځې وه،نو دَ« فِي ايام نحسات» سره ئي تناقض نشته﴿نحس﴾يعنی دَدوئ په حق کښې سپيره وه ﴿مُّسْتَمِرٍّ﴾ دا يا صفت دَ ﴿ نَحْسٍ﴾ دې يعنی دانحوست اوسپيره والې په دی ځائ ختم نشو بلکه هلاکت نه بعد هم د هغی اثرجاری دې ،چی برزخ کښې ورته مسلسل عذاب ورکولی کيږی، يا «مستمر» د «يوم» صفت دې،او استمرار نه مراد يا استمرار بحسب الزمان دې ،يعنی هغه ورځ په دوئ مسلسل وه ،تردې چې ئي هلاک کړل،اويا استمرار بحسب الاشخاص دې،يعنی عذاب دهغې ورځې، دوئ کښې هر يوکس ته شامل وۀ ،وړوکی وواو که لوئ،بهر حال دی دواړو توجيهاتو مطابق مستمر خپل معروفه معنی دوام تسلسل کښې استعمال دې،او بعضو مفسرينو «مستمر» دَ "مر" بمعنی قوت نه ماخوذ ګنړلې دې يعنی دا ډيره قوی او درنه ورځ وه،او بعضو ويلي دی چی دا« مرارة» نه ماخوذ دې، يعنی دا ډير ه ترخه او بې خونده ورځ وه او ځنی مفسرينو دَ مرور معنی کښې اخستی دې ،اي ذاهب يعنی نحوست ورځی وي چی لاړې( تفسيرعثمانی)

﴿تَنزِعُ ٱلنَّاسَ﴾مروی ده چه دوئ پدغه ورځ په کندواوپه سورنګونو کښې پټ شوی وۀ او تيزې هواپه وجه ئی يو بل نيولی وۀ ،نوهوا رااوويستل اوالته ئی اوغورځول اوځتونه به ئی ورته مات کړل،نوسرونه به ئي دَجسمونونه جدا شول،﴿ کانهم اعجاز نخل منقعر﴾چونکه دوئ اوګده اوګده قد و قامت والا وۀ ،نو هواچی اوچت کړل او سر دَ لاندی را اوغورځول نو داسی معلوميدل لکه کهجورې ونه دَ بيخه را اوباسلې شوې او په ځمکه غورځولې شوې وی.

اوځنی مفسرين ليکی چی دا صرف دَدوئ سرونو تشبيه ده دکهجورو بيخونو سره ،يعنی هوا ورله ستونه او سرونه مات کړل او دا داسی ښکاريدل لکه کجهوری ونې بيخونه چی راوباسلی شوی وی(روح)

نخل:اسم جنس دې،صفت ئی مذکرهم راتلې شی دَوجه دَرعايت دَلفظ نه لکه دلته منقعرٍ راغلې دې اومؤنث هم راتلې شی رعايةً للمعنیٰ کمافی قوله تعالیٰ: کانّهم اعجاز نخلٍ خاوية(الحاقة:۷).

كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ ﴿٢٣﴾ فَقَالُوٓا أَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهُۥٓ

تکذیب کړې وو ثمودیانو دَ پیغمبرانو پس اوونیل دوئ آیا د یو بشر چې زمونږ نه دې . یواخې دې، مونږ دَ هغه اتباع نی اوکړو.

إِنَّآ إِذًا لَّفِى ضَلَٰلٍ وَسُعُرٍ ﴿٢٤﴾ أَءُلْقِىَ ٱلذِّكْرُ عَلَيْهِ

بیشکه پدغه وخت کښې به مونږ یوخامخا په ګمراهئ اولیونتوب کښې آیا نازله ولې شی وحی په ده باندې

مِنۢ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ ﴿٢٥﴾ سَيَعْلَمُونَ غَدًا

په مینځ زمونږکښې بلکه دې ډیر دروغژن تکبرکونکې دې زرده چه پوهه به شی دوئ صبا

مَّنِ ٱلْكَذَّابُ ٱلْأَشِرُ ﴿٢٦﴾ إِنَّا مُرْسِلُوا ٱلنَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ

چه څوک دې ډیر دروغژن، تکبرکونکې، بیشکه مونږ لیږونکی دَ اوښې یو د پاره دَامتحان دَ دوئ

فَٱرْتَقِبْهُمْ وَٱصْطَبِرْ ﴿٢٧﴾ وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ ٱلْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْ

پس ته انتظارکوه دَ دوئ او صبرکوه. او خبرکړه دوئ چه بیشکه اوبه ویشلی شویدی په مینځ دَدوئ کښې،

كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ ﴿٢٨﴾ فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ ﴿٢٩﴾

هر نمبر دَ اوبوته به حاضر وی نمبروالا، نودوئ را اوباله ملګرې خپل. نو هغه توره راوغسته اوزخمی ئی کړه(اوښه)

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِى وَنُذُرِ ﴿٣٠﴾ إِنَّآ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَٰحِدَةً فَكَانُوا كَهَشِيمِ

پس څنګه وو عذاب ځما او یره ول ځما بیشکه مونږاولیږله په هغوئ باندې چغه یوه نوشول هغوئ په شان دَمیده ریزو

ٱلْمُحْتَظِرِ ﴿٣١﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا ٱلْقُرْءَانَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٣٢﴾

«دَ شپول» دَ شپول جوړونکی اوپه تحقیق اسان کړیدې مونږقرآن دَپاره دَنصیحت نوآیاشته څوک نصیحت اغستونکې.

﴿كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ﴾ دادریمه نمونه ده دَتخویف اخروی چه هلاکت دَثمودیانو دې، دَدوئ دَهلاکت تفصیل هم په اتمه، دولسمه سپاره کښې تیرشویدې.

﴿فَقَالُوٓاْ أَبَشَرًا﴾ دا د دوئ تکذیب تفصیل بیان دې ،«بشرا»مفعول به دې فعل محذوف دپاره . چې "نتبعه" دې او ورستو «نتبعه» ئی تفسیرکوی ای انتبع بشرا...او استفهام دَ انکار لپاره دې «منا» یعنی زمونږ جنس نه دې ، حالانکه رسول خو فرشته پکار ده.«واحدا» تن تنها دې ، ډله او پارټې ئي نشته ، نو ولې مونږ د داسې کس اتباع اوکړو.﴿إِنَّآ إِذًا﴾یعنی که مونږ دَ داسې کس اتباع اوکړه نو دابه لویه ګمراهی اولیونتوب وی. ﴿وَسُعُرٍ﴾سعر اسم مفرد دی پمعنی دَ جنون ،یعنی ډیر غټ لیونی به یو کچرته مونږ اتباع اوکړه،اویا «سعر» جمع سعیر (پمعنی دَ اور) ده، دې صورت کښ دَ دوئ دا مقوله دَحضرت صالح علیه السلام هغه قول جواب دې چی هغه به ورته وی چی کچرته ځما اتباع نه کوئ نو تاسوبه ګمراه وئ او اور ته به ځان اوغورځوئ،نو ذوئ دَدې الټه جواب ورکړو ، یعنی کچرته مونږ ستا اتباع اوکړه، نو ځان به ګمراه کړو ،او اورونو ته به اوغورځوؤ.

﴿ أَءُلْقِيَ ٱلذِّكْرُ ﴾ «الذکر» نه مراد وحي ده ، یعنی آیاپه ده وحی نازلیږی ، په مونږ کښ چې دومره مالداره اوغټان موجود دی په هغوئ ولې نه نازلیږی،دې نه معلومیږی چه دې ډیر دروغ ژن او کبر جن دې (نعوذبالله)﴿أَشِرٌ ﴾ای شدیدالبطر

﴿سَيَعْلَمُونَ غَدًا ﴾ای قیل له،صالح علیه السلام ته اووئیلې شو دَطرفه دَالله تعالیٰ نه چه عنقریبه ده چه معلومه به شی چه کذاب او اشرخوک دې،مراددَ﴿ غَدًا ﴾نه وخت دَعذاب دنیوی دې یاورنه ورځ دَقیامة مراد ده.

﴿إِنَّا مُرْسِلُواْ ٱلنَّاقَةِ ﴾ارسال دَناقې کنایه ده دَاخراج نه،ثمودیانو دَصالح علیه السلام نه مطالبه اوکړه چه که ته نبی ئی نو دَ دې وچ کلک غر نه حامله اوښه پیدا کړه،نوصالح علیه السلام دعااوکړه نواوښه پیداشوه.﴿فِتْنَةً ﴾یعنی دااوښه دَدوئ لپاره امتحان دې چه اوس هم ایمان راوړی او که نه «فارتقبهم »ته صرف دوئ انتظار او تماشه کوه چې څه کوي «واصطبر» او د دوئ په طغیان او په تکلیفونو باندې صبر کوه

﴿وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ ٱلْمَآءَ قِسْمَةٌۢ﴾ يعنى اوبه به دثمودیانو اودناقي په مابين كښ تقسيم وی په سورة الشعراء (۱۵۵) كښ دامضمون داسې بيان شويدې لها شرابٌ ولكم شربُ يومٍ معلوم يعنى يوه ورځ به دا اوبه څکی یوه ورځ به ستاسوڅناورڅکی ﴿كُلُّ شِرْبٍ﴾ شرب حصه يا نمبر د اوبو ﴿مُّحْتَضَرٌ﴾ اى يحضره صاحبه في نوبته. هريوبه خپلې خپلې حصې اونمبرته حاضريږی دبل نمبر ته به نه حاضريږی . ثموديان ددې ناقې نه تنګ شول ځکه چه دې به ډيرې اوبه څکلې نوددې د قتلولو منصوبه ئی جوړه کړه ، دې لپاره ئی يوسړې تيارکړو چه دهغه نوم قداربن سالف وؤ،هغه توره راوغسته، اول ئی ترې خپې پرې کړې اوبيائی قتل کړه ﴿فَنَادَوْاْ صَاحِبَهُمْ﴾ ملګرې خپل چه هغه قدار بن سالف وؤ﴿فَتَعَاطَىٰ﴾ تعاطي يو کار په خپله کولو ته وئيلې کيږي، د عطا نه ماخوذ دي، مطاوع دې د عاطى ،اي : عاطيته فتعاطى ، يعني ماورله (څه شې) ورکړو نو هغه واغستلو ، د آيت دَ اسلوب نه معلوميږي چې قوم ټول دې اوښې نه تنګ وو ، خو د چا براه راست په خپله قتلولو جرات نه کيدو ، بلکه يو بل ته ئي دا معامله سپارله، نو دې بدبخت سره ئي خبره اوکړه ، نو ده د براه راست قتل ذمه واري واغستله ﴿فَعَقَرَ﴾ زخمی ئی کړه بيائی قتل کړه.

﴿صَيْحَةً وَٰحِدَةً﴾ يعنى جبرئيل عليه السلام ورباندې چغه اوکړه چه دهغې پوجه دټولوزړونه اوچاؤدل اومردارشول،په سورة اعراف كښ د الرجفة (زلزله) ذکردې نوزلزله پرې دلاندې نه راغله اوصيحه پرې دبره نه راغله ﴿فَكَانُواْ كَهَشِيمِ ٱلْمُحْتَظِرِ﴾ «هشيم» د هشم نه دې، هشم ماتيدو ته وئيلې كيږي، او «هشيم» وچې ګيا، غنو او پاڼړو ته وائي ځکه چې دا هم زر ماتيږي، او دلته ترينه مراد به طور خاص وچې غنې دي، «المحتظر» د حظيرة نه دې او حظيرة دګډو بيزو نه چاپيره دَ غنو او سانګو نه جوړشوی شپول (باړ)ته وائی چه په هغې كښ د ننه ګډې بيزې محفوظ وی او «المحتظر» صاحب الحظيرة،شپول جوړه ونکی ته وائی. نو «هشيم المحتظر» نه مراد يا هغه ميده ميده ذرات دي چې شپول د پاره جمع کړې شوي ازغواو سانګو نه په آخركښ پاتې شوې وي چې هغه چور چور او منتشر خواه واره وي ، او يا ترينه مراد هغه اوچ او ميده ميده ذرات دي چه دشپول نه پريوځی اوګډې بيزې ئی په خپوسره چوړه چوره

اومیده میده کړی، نو مطلب دا شو چې الله ﷻ دوئ داسې ذرې ذرې کړو لکه شپول جوړولو دپاره جمع کړې شوو لړګو په ویخ کښې چې کوم د ازغو واړه واړه ذرات پاتې شي

| |
|---|
| كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ ﴿٣٣﴾ إِنَّآ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا |
| تکذیب کړې ووقوم دلوط علیه السلام په پیغمبرانو،بیشکه مونږ لیږلې وه په دوئ باندې هوا د کانړو |
| إِلَّآ آلَ لُوطٍ ۖ نَّجَّيْنَاهُم بِسَحَرٍ ﴿٣٤﴾ نِّعْمَةً مِّنْ عِندِنَا ۚ كَذَٰلِكَ |
| مګر آل دَ لوط ، نجات ورکړو مونږ دوئ ته په وخت دَ سهارکښې. له وکهې دَ انعام د طرفه زمونږ نه ، هم دغه شان |
| نَجْزِي مَن شَكَرَ ﴿٣٥﴾ وَلَقَدْ أَنذَرَهُم بَطْشَتَنَا |
| بدله ورکوؤ مونږ هغه چاته چه شکرکوی.اوپه تحقیق یره ولی وؤ لوط. دوئ دَ نیولو زمونږ نه. |
| فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴿٣٦﴾ وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَن ضَيْفِهِ فَطَمَسْنَآ |
| خو دوئ تکذیب کولو د رسولانو . په تحقیق سره مطالبه کړې وه دوئ دَ لوط نه دَمیلمنودهغه پس خاړه کړې مونږ |
| أَعْيُنَهُمْ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٧﴾ وَلَقَدْ صَبَّحَهُم بُكْرَةً |
| سترګی دَ دوئ (ورته مواووئیل) پس اوڅکئ عذاب څمااویره ول څما،په تحقیق سره راغلې وؤپه دوئ په وخت دَ صبا کښې |
| عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿٣٨﴾ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٩﴾ وَلَقَدْ |
| عذاب قرار نیونکې (ورته اووئیل شول)پس اوڅکئ عذاب څمااویره ول څما.په تحقیق سره |
| يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٤٠﴾ |
| اسان کړیدې مونږ قرآن دَ پاره دَ نصیحت نو آیا شته څوک نصیحت اغستونکې. |

﴿كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ﴾دا څلورمه نمونه ده اوتخویف دنیوی دې چه هلاکت دَقوم لوط دې،دَدوئ دَهلاکت تفصیل هم په مخکنوسپاروکښ تیرشویدې ﴿حَاصِبًا﴾هغه تیزه هواده چی په دوئ ئې کانړی وررولی وؤ، اي ريحا حاصبا، ﴿إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ﴾یعنی پخپله لوط علیه السلام اودَده

دوه لونړې، بنځه ئې پکښې نه ده شامله ځکه هغه مؤمنه نه وه. ﴿نَّجَّيۡنَٰهُم بِسَحَرٖ﴾ دسحرنه مراد
دَ شپې اخرى وخت دې ﴿نِّعۡمَةٗ﴾ مفعول له دې دَ ﴿نَّجَّيۡنَٰهُم﴾ لپاره. ﴿فَتَمَارَوۡاْ﴾ يا دَ مرية نه مشتق
دې، "شک" ته وائي چې حاصل ئې تكذيب دې، يا دَ "مراء" نه مشتق دې يعنى جګړې ئې
اوکړې دَ پيغمبرانو سره ﴿وَلَقَدۡ رَٰوَدُوهُ عَن ضَيۡفِهِۦ﴾ مراودة بدكارئ باندى اماده كول او دَهغى
مطالبه كولوته وائى. يعني قوم د لوط عليه السلام نه دميلمانو حوالګي مطالبه اوكړه، چې
دوئ ورنه خپل خبيث مقصد پوره كړي
﴿فَطَمَسۡنَآ أَعۡيُنَهُمۡ﴾ هركله چه دوئ دَبدفعلئ په نيت فرشتوته رانزدې شول نو جبرئيل عليه السلام دَ
خپل وزر يوه حصه دَدوئ په مخونوراخكله نودَدوئ مخونه خاړه شول نظرونه ئې زائله شول.
او لوط عليه السلام ته حكم اوشوچه: فاسربِاهلک بقطعٍ من الليل (هود: ٨١) بياسحرته قريب په دوئ
عذاب راغې چه بيان ئې په هودوغيره كښې تيرشويدې ﴿عَذَابٞ مُّسۡتَقِرّٞ﴾ عذاب قرار
نيونكې، ترهغې پورې ترينه جدا نه شو تر څو يې چې دوئ هلاک كړي نه وو.

﴿وَلَقَدۡ جَآءَ ءَالَ فِرۡعَوۡنَ ٱلنُّذُرُ ۝٤١ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا كُلِّهَا فَأَخَذۡنَٰهُمۡ

اوپه تحقيق سره راغلى وؤ ال فرعون ته پيغمبران، تكذيب وكړو هغوئ زمونږ په آياتونو ټولو نو ونيول مونږ هغوئ

أَخۡذَ عَزِيزٖ مُّقۡتَدِرٍ ۝٤٢ أَكُفَّارُكُمۡ خَيۡرٞ مِّنۡ أُوْلَٰٓئِكُمۡ

په نيولو دَ غالب قادر ذات. (اې اهل مكې) آيا كفار ستاسو (دَ زمانې) غوره دى دَ هغوئ نه

أَمۡ لَكُم بَرَآءَةٞ فِي ٱلزُّبُرِ ۝٤٣ أَمۡ يَقُولُونَ نَحۡنُ جَمِيعٞ مُّنتَصِرٞ ۝٤٤

يا ستاسو دَ پاره معافى ده په كتابونو كښې . بلكه دوئ دا وائى چه مونږه ډله يو بدله اغستونكى.

سَيُهۡزَمُ ٱلۡجَمۡعُ وَيُوَلُّونَ ٱلدُّبُرَ ۝٤٥ بَلِ ٱلسَّاعَةُ

زرده چه شكست به وركړيشى دې ډلې ته او اوبه ګرځوى دوئ شاګانى بلكه قيامت

| مَوْعِدُهُمْ | وَالسَّاعَةُ | اَدْهٰى | وَاَمَرُّ ﴿۴۶﴾ |
|---|---|---|---|
| ځائ د وعدې (دعذاب) د دوئ دې، | اوقيامت ډيرسخت دې | او ډير | تريخ دې |

﴿وَلَقَدْ جَآءَ اٰلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴾دا پنځمه نمونه ده دتخويف دنيوى، چه فرعون اوقوم دهغه دَ موسى عليه السلام تكذيب اوكړونو تول موپه بحرِقلزم كښ غرق كړل اوهلاک شول. ﴿اٰلَ فِرْعَوْنَ ﴾ يعنى قوم دفرعون ﴿ بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا ﴾ايات تسعه ورنه مراددى ﴿فَاَخَذْنٰهُمْ ﴾يعنى دوئ موپه عذاب سره اونيول په نيولو دهغه ذات چه غالب دې په انتقام چې څوک ئي مغلوب كولې نشي او قادر دې په هلاكوالى او څوک ئي عاجز كولې نشي.

﴿اَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ ﴾داالتفات اوخطاب دې اهل مكۇو ته، اواستفهام انكارى دې يعنى ستاسو دَ زمانى كفار په څه مطمئن دى؟ آيادَدوئ قوت اوعدد زيات دې پاعتبار دَ مخكښنو كفارو سره ، چې هغوئ هلاک شول او دوئ به نه هلاكيږي ؟ يا دَدوئ كفر كمې درجې والا دې،او پيغمبر تكذيب كښ نرمى كوى او هغه ته تكليف او اذيت نه رسوى؟ هرگز هيڅ اعتبار سره ترينه خه نه دى نو بيا دا څنگه كيديشى چې هغوئ هلاک شول او دوئ دَ الله ﷻ دَعذاب نه بچ شى. ﴿اُولٰٓئِكُمْ﴾تيرشوى هلاک شوى قومونه،قوم نوح،قوم عاد ،ثموديان،قوم لوط، قوم فرعون،

﴿اَمْ لَكُمْ بَرَآءَةٌ ﴾ ام اضراب انتقالي د پاره دې او د اطمينان دويم سبب بيانيږى چې آيا دوئ ته سابقۇو كتابونو نه آزادئ پروانه ميلاۋشويده،چې دوئ څه كول غواړي،كوى دى، عذاب به پرې نه راځى،نو ځكه اوس دوئ مطمئن دى ﴿فِى الزُّبُرِ ﴾جمع دَ زبور ده،كتب سابقه ورنه مراد دى.

﴿ اَمْ يَقُوْلُوْنَ نَحْنُ ﴾ دا دريم سبب دَاطمينان بيانيږى چې آيا دوئ دَدې وجهې نه مطمئن دى چه دوئ سره يولوئ قوت دې،هوښيارانو اودجنگ ماهرينو جماعت دې،او خپل مينځ كښ اتفاق واتحاد او همدردى ده ،نودوئ دَ الله ﷻ دَ عذاب ا ولښكر و مقابله كولې شى او

دَ يو بل انتقام اغستې شي؟(ابو السعود) ﴿جَمِيعٌ ﴾پمعنی دَ جمعَ دي هغه منظم جماعت ته ويلی کيږي چه خبره يې يوه وی ﴿مُنتَصِرٌ﴾ای منتقم من الاعداء﴿مُنتَصِرٌ﴾مفرد راوړلې شو (اګرچه مناسب منتصرون وو)دَ وجه دَ لفظ دَ«جميع» نه ځکه هغه لفظاً مفرد دې. او دغه رنګه پدې کښې رعايت دَفو اصلو يعنی آخر دَ اياتونوهم شويدې.

﴿سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ ﴾ دا د دوئ زعم رددې چه دَدوئ داجماعت چه دوئ وربانديې غرورکوی ډير زر به شکست اوخری، او دا پيشن ګوئ الله ﷺ په ميدان بدرکښې ښکاره کړه، په رواياتو کښې دی چه دَبدرپه ورځ حضور عليه السلام پخپله خيمه کښې په دعا کښې مصروفه وو او ډيره زياته زاری اوالحاح ئی کولو، ابوبکر رضي الله عنه ورته عرض اوکړوچه حسبک يارسولَ الله فقدالححتَ علی ربّکَ نوحضور ﷺ دَخيمی نه راووتلواوداآيت ئی لوستلو. ﴿وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴾ "الدّبر"مفرد دې "الادبار" ئې جمع ده، رعايت دَ فواصلو په وجه مفرد راوړلې شويدې، ياورنه جنسِ دُبر مراد دې چه په کثيرينو هم صادق کيږی، ياپه تاويل دکلّ واحدٍ سره دې

﴿بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ ﴾يعنی داشکست ئی ټوله سزانه ده بلکه اصل عذاب به ورته په قيامت کښې ملاويږی، اودَقيامت عذاب ډيرسخت اوتريخ دې دَعذاب دنيانه﴿أَدْهَىٰ ﴾ای اعظم داهيةً (روح) يعنی ډير هيبت ناک دې﴿وَأَمَرُّ ﴾ډير تريخ دې، يعنی په انسان ډير مشکل دې، وهو استعارةٌ لصعوبتهاعلی النفسِ(روح المعانی).

| |
|---|
| إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴿٤٧﴾ يَوْمَ يُسْحَبُونَ |
| بيشکه مجرمان په هلاکت کښې دی په جهنم کښې دی.په هغه ورځ چه راخکلې شی دوئ |
| فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ﴿٤٨﴾ إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ |
| په اورکښې په مخونو دَ دوئ (پرمخې)، (ورته به اوئيلې شی)اوڅکئ مزه دَ رسيدلو دَ عذاب د جهنم، بيشکه هرڅيز |
| خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴿٤٩﴾ وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ ﴿٥٠﴾ |
| پيدا کړيدې مونږ هغه په اندازی سره، او نه دې امرزمونږمګريوخل لکه رپول دَسترګو |

﴿إِنَّ ٱلْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَٰلٍ﴾ داتخويف دې. يعنى مجرمين كه د دې زمانې او مخكښې زمانې دې ټول برابر دې دنياكښې هم په هلاكت كښې دې اوپه آخرت كښې به هم په جهنم كښې وي. پرمخې به اُورته غورځولې كيږي فرشتې به ورته وائي چه اوڅكئ مزه دَعذاب دَ جهنم ﴿فِي ضَلَٰلٍ﴾ اى فى هلاكٍ بالقتلِ فى الدنيا(جلالين)دائى دَدنياسزاده او﴿وَسُعُرٍ﴾دائى دَ آخرت سزاده. ابن عباس رضي الله عنهما دَ ﴿فِي ضَلَٰلٍ وَسُعُرٍ﴾ معنى فى خسرانٍ وجنونٍ كوي نو دا دَ دنيا سزا ده او ﴿يَوْمَ يُسْحَبُونَ﴾ دَ آخرت سزاده، يا دَضلال معنى داده چه دَجنت لاربه ورنه وركه وي. نودواړه دآخرت سزاګانې دي (والله اعلم).

﴿يَوْمَ يُسْحَبُونَ﴾متعلق دې دَ يقال هم سره چه دَ﴿ذُوقُوا۟ مَسَّ سَقَرَ﴾نه مخكښې مقدردې اى يوم يُسحبونَ يُقالُ لهم ذوقوا... ﴿مَسَّ سَقَرَ﴾الم اوتكليف دَجهنم. مس يمس معنى رسيدل او لګيدل ده، چونكه اوررسيدل او لګيدل سبب د الم دې نو دې وجهې نه الم او تكليف باندې اطلاق دَ مس اوشو. ﴿سَقَرَ﴾ عَلَم دَجهنم دې(اعاذناالله منها).

﴿إِنَّا كُلَّ شَىْءٍ خَلَقْنَٰهُ﴾ داپه آخركښې دَسورة نفي د شفيع قهري او اثبات د قيامت كيږي، چه دَ هر څيزخالق صرف الله تعالى دې، دَقيامت دَورځې دَشفاعت اختيارهم صرف هغه سره دې، دَ مشركانوخود ساخته معبودان دَ چا شفاعت نشى كولې. لهذاصرف دَ الله تعالى عبادت كوئ صرف دَ هغه نه غواړئ ﴿بِقَدَرٍ﴾او دغه رنګه الله تعالى هر څيز په يو متعيّنه اندازې سره پيدا كړيدې، من جمله دَ هر څيز نه دنيا هم ده، دَدې لپاره هم يو متعينه مقررَه اندازه ده، آخر به يوه ورځ دافناء شى، اوهم دابه دَقيامت ورځ وي، نوثبوت دَ قيامت اوشو.

﴿كُلَّ شَىْءٍ﴾منصوب دې، په أضمرعامله على شريطة التفسيرسره ورستو﴿خَلَقْنَٰهُ﴾ئى تفسيركوي په اصل كښې دې خلقناكلَّ شئ... ﴿بِقَدَرٍ﴾ معنى تقدير الهى ده يعنى هر څيز الله تعالى دَ تقدير مطابق پيدا كړيدې، كوم چې په لوح محفوظ كښې ليكلې شويدې، يا «قدر» پمعنى دَاندازې سره دې، يعنى هر څيز الله تعالى دَخپل حكمت او مشيئت مطابق په خاص

اندازې سره پيدا کړيدې،لکه بل ځائی کښ راغليدی.«وخلق كل شئ فقدره تقديرا»ليکن اوله معنی مراد اغستل زيات غوره ده ځکه چې متعدد احاديثو کښ ذکر راغلې دې

﴿وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ﴾ديکښې د الله ﷻ قدرت کامله بيان دې .او د آيت څو تفسيره شوي دي:

(۱) امر نه مراد تکوين او خلق دې . او «واحدة» صفت دې د موصوف محذوف د پاره ، اي: كلمة واحدة، نو مطلب دا آيت دا دې چې مونږ څه پيدا کول غواړو نو بس صرف يو کلمه د ˙کن˙ وئيل وي نو سترګو رپ کښې پيدا شي ، كما في قوله جل في علاه: اذا اراد شيئا ان يقول له كن فيكون،

(۲)يا «واحدة» صفت دې د«فعلة» محذوف، اي: ما شاننا الا فعلة واحدة يعنی مونږچه څه کول غواړونو شان زمونږدادې چه هغه کارمونږته محض فعل واحد پشان وی په کولوکښ ئی مونږ ته څه مشقت نه رارسی

(۳) يادَ«امرنا»نه مراد قائمول اوراوستل دَقيامت دی،يعنی قيامت به داسې قائم شی لکه دَ سترګې رپ، نو دا تمثيل دې په قدرت اوسرعت کښ،كقوله تعالی:ومآامر السّاعة الاّكلمح البصر او هو اقرب(النحل:۷۷).

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَهْلَكْنَآ أَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٥١﴾ وَكُلُّ شَيْءٍ |
| اوبېشکه تحقيق سره هلاک کړيدی مونږستاسو په شان کافران نوآياشته څوک نصيحت اغستونکې اوهرڅيز |
| فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ ﴿٥٢﴾ وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ ﴿٥٣﴾ إِنَّ الْمُتَّقِينَ |
| چه کړي ئی دي هغوئ په اعمالناموکښ ليکلې شوی دې اوهرورکې اولوئ عمل ليکلې شويدې بېشکه پرهيزګاران |
| فِي جَنَّٰتٍ وَنَهَرٍ ﴿٥٤﴾ فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿٥٥﴾ |
| به په جنتونو او نهرونو کښ وی . د ناستې په اعلې ځائيونو کښې به وي په خواه کښې د لوئ بادشاه قدرة لرونکی |

﴿وَلَقَدْ أَهْلَكْنَآ﴾تخويف دنيوی دې کفارمکه ته.﴿أَشْيَاعَكُمْ﴾ای اشباهكم فی الكفر من الامم السابقة(روح المعانی)يعنی څرنګه چه تاسو کفراوتکذيب کوئ نودغه شان امم سابقوهم

کړې وؤ نوهغوئ مونږهلاک کړی وؤنوتاسوولې دَهغې نه عبرت نه اخلئ ﴿فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾ استفهام پمعنی دَامردې،يعنی نصيحت واخلئ

﴿وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ﴾دیکښې اخروي عذاب طرف ته اشاره ده ، چې دنيا کښې الله ﷻ د عذاب نه بچ نشو او په آخرت کښې به هم نشي بچ کيدې ، بلکه دوئ چې څه کړي دي ، کراماً کاتبين او حفظه فرشتو هغه ليکلي دي او الله ﷻ به ورله د هغې سزا ورکوي.((فعلوه)) ضمير دَ جمع ياراجع دې "اشياع" (امم مکذبه ؤ) ته يعنی دغه مخکښنو امتونو چه څه هم کول ، کفر او معاصی، نو هغه دَ هغوئ په اعمالنامو کښ ليکلې شوي دې، يا ضمير دَ جمع مطلق عبادو ته راجع دې ﴿فِي الزُّبُرِ﴾ای فی كُتُبِ الحفظة، دَ کراماً کاتبينو په رجسټرو کښ ليکلې شويدی.

﴿وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ﴾ ،((مستطر)) نه مراد يا اعمال نامه کښې ليکل دي نو دا د ما قبل تاکيد دې چې د دوئ وړوکې او لوئ هر يو عمل ليکلې کيږي کقوله تعالی:لايغادرُ صغيرةً ولاكبيرةً الاّ احصاها،حضورﷺحضرت عائشه‌رضی‌الله‌عنهاته يو ځل اوفرمائيل چه: يا عائشة ايّاک ومحقرات الذنوب فانّ لها من الله طالبًا(ابن کثير)يعنی دَحقير(صغيره)ګناهونو نه ځان ساته،بيشکه الله ﷻ دَ دې مطالبه هم کوی،يا((مستطر)) نه مراد په لوحِ محفوظ کښې ليکل دي ، نو دا بيا تاسيس دې، يعني صرف اعمالنامې کښې د دوئ اعمال نه دي ليکلي شوي ، بلکه علم الهي او لوحِ محفوظ کښې هم ليک دي (والله اعلم).

﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ﴾بشارت اخرويه دې چه مُتقيان به په جنتونو اونهرونو کښ وی﴿وَنَهَرٍ﴾جنس نهرونه مراد دی ،رعايت دَ فواصلوپه وجه مفردراوړلې شوي دې. ﴿مَقْعَدِ﴾ناستې او اوسانې ځائ ته وائي،﴿ صِدْقٍ ﴾رښتيا ته وائي،او مجازاً د هر جنس کامل حالت د پاره هم استعماليږي ، لکه عرب وائي : رجل صدق ، اي : كامل في رجولة، يعني واقعي سړې دې ، او د عربو مشهور شاعر تابط شراً وائي:

إِنِّي لَمُهْدٍ مِنْ ثَنَائِي فَقَاصِدٌ بِهِ لِابْنِ عَمِّ الصِّدْقِ شَمْسِ بْنِ مَالِكِ

يعني زه د خپل مدح وثنا هديه خپل تره ځوي شمس بن مالک ته ليږم نو که د تره ځوې ځوک وي نو داسې پکار دې ، نو دلته د((مقعد صدق))نه مراد دناستې اعلى ځائ دې، چې ځائ د

ناستې او اوسانې هم داسې پکار دې ، ځکه چې يو طرف ته پکښې اعلى درجې آرام او راحت ميسر دې او بل طرف ته دا هميشه او لازوال هم دې

﴿عِندَ مَلِيكٍ﴾صيغه دَمبالغې ده اى عظيم الملک﴿مُّقْتَدِرٍ﴾عظيم القدرة.دَ لوئ بادشاه او قادر ذات قربت به ورته نصيب وي.

**فائده**:دې دواړواسماحسنٰى لره په استجابتْ دَدُعاکښې لوئ اثردې،حکايت دې چه سعيدبن مسيب فرمائى چه يو ځل څه جمات ته په دې خيال داخل شوم چه سحردې ليکن د شپې يوه ډير حصه لا تراوسه پاتې وه،په جمات کښې څمانه بغيربل څوک نه وو،نوځه اوده شوم،دَځه ځيز اوازمى واوريدلو،نوځه اُويريدم،نوچاراته اووې چه يريږه مه؛بلکه داوايه چه"اللّهم انّک مليکٌ مقتدرٌ ما تشاء من امرٍ يکون" دينه بعدچه دَالله تعالىٰ نه دَځه سوال کوې نوهغه به قبليږى، سعيد بن مسيب رحمه الله فرمائي چې ما په دې صفاتو په وسيله چې څه دعا مې غوختې ده هغه قبوله شوې ده ،

اللّهم انّک مليکٌ مقتدرٌ ما تشاء من امرٍ يکون نسألك العفو والعافية في الدنيا و الاخرة

| ركوعاتها (۳) | سورة الرحمن مدنية | اٰیاتها (۷۸) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دی شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۵۵) وحسب النزول (۹۷)**

نزلت بعد الرّعد و قبل الدهر

دا مدني سورت دي او زمانه دَنزول ئی بعدالهجرة ده.بعض وائی داسورة مکّی دی قرطبی رحمه الله اوبعض نورو مفسرینوترجیح دیته ورکړیده چه دامکّی دي.په ترمذی کښ د حضرت جابر رضي الله عنه نه نقل دی چه حضور ﷺ سورة رحمن دَاول نه ترآخره پورې دَصحابؤ په مخکښ تلاوت کړو،هغوئ خاموشه وو، نوحضور ﷺ ورته اوفرمائیل چه داسورة ما په لیلة الجن کښ په جناتو تلاوت کړو فکانوا احسنَ مردوداً منکم یعنی هغوئ ستاسو نه ښه جواب راکړو،کله چه به ما فبایِّ الآء ربکماتکذبان آیت تلاوت کولونوهغوئ به په جواب کښ وئیل چه لابشئ من نعمکَ ربّنانکذّب فلک الحمد نو د دې حدیث نه معلومیږی چه دا سورة مکّی دي ځکه چه لیلة الجن مکی دورکښ شوې وه.

**ربط** : پدې سورة کښ مسئله دَتوحیدعلی سبیل الترقی دَماقبل نه بیانیږی،ماقبل سورة قمرکښ فرمائیلی وو﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَٰهُ﴾ دلته سورة رحمن کښ فرمائی﴿تَبَٰرَكَ ٱسْمُ رَبِّكَ ذِى ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ﴾ یعنی لکه څرنګه چه خالق دَهرڅیزصرف الله جل جلاله دي نو دغسې برکات هم خاص دَالله جل جلاله په اسم کښ دی،نوبرکت دهنده هم صرف الله جل جلاله اوګنړئ.

**د سورة دَ مضامینو خلاصه**

سورت الرحمن څلور حصو باندې مشتمل دې.

(۱)اوله حصه آیت(۱)نه تر(۱۳)پورې ده:دیکښ دَالله جل جلاله نعمتونو بیان دې.

(۲)دویمه حصه آیت (۱۴)نه تر(۳۰)پورې ده :دیکښ دَالله جل جلاله ربوبیت اوتوحید دلائلو بیان دي

(۳)دریمه حصه آیت(۳۱)نه تر (۴۵)پورې ده:دیکښ تخویفات ذکر دئ.

(۴)څلورمه حصه آیت ۴۲ نه تر ۷۷پورې ده: دیکښ بشارات دی.

اوبالکل آخري آیت تبٰرک اسم ربک کښې دعوې دَسورت بیان دې

**تمت خلاصة السورة**

| اَلرَّحْمٰنُ ۞ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ۞ خَلَقَ الْاِنْسَانَ ۞ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ۞ |
| --- |
| په هر چا مهربانه الله ﷻ ښودلې ئی دې قرآن. پیداکړې ئی دې انسان.ښودلې دی ئی ورته خبرې |

﴿ اَلرَّحْمٰنُ ﴾دا **دَ سورت اوله حصه** ده چې دیکښې دَالله ﷻ نعمتونو بیان دی.ټول شپږ نعمتونه ذکر کیږی او هر نعمت بیان کښې دوه دوه نعمتونه جوړه جوړه ذکر کیږی،چې هغوئ دواړو یو بل سره ژور تعلق دې. نو دا **اول نعمت** بیان دې،دیکښې دَ الله ﷻ دوه لویو انعاماتو ذکر دې:

(۱)**عمومی رحمت**:چې هغې ذکر په «الرحمن» کښې دی چې هر مخلوق سره هغه رحمت اور رحم والا معامله کوی.

(۲)**خصوصی رحمت**:چې هغه خاص طور باندی په مخلوقاتو کښې په انسان او مسلمان باندی دې.چې هغه «علم القرآن» یعنی تعلیم قرآن دې ،یعنی الله ﷻ په انسان باندې خپل خصوصی فضل او رحم دا اوکړو چې هغهٔ ته ئې دَ قرآن تعلیم ورکړو ،اودَ خپل کتاب حامل یی اوګرځوو ، چې د دې طاقت غرونو هم.نه لرلو. «القرآن» مفعول ثانی«علّم»اورمفعول اول ئې محذوف دې چې هغه "الانسان" دې.

﴿خَلَقَ الْاِنْسَانَ ۞ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ﴾دَ **دویم نعمت بیان** دې،دیکښې هم دَ الله ﷻ دَ دوه لوئی انعاماتو ذکر دې.

(۱)**تخلیق انسان**:چې انسان یی نیست ته نه هست او عدم نه وجود ته راوستو.

(۲)**تعلیم بیان**: چې بیا ئې ورته دَاظهار مافی الضمیر دپاره دګویائی اوبیان سلیقه او ملکه ورکړه،چې په دې باندې تفاهم،تخاطب اور نوردیر مصالح دَ معاد ومعاش دواړو موقوف دی. «البیان» نه مراد قوت ګویائی اونطق دې،چې په دې سره دَ انسان تمیز د نورو حیواناتونه راځی.

**فائده**: تخلیق دَانسان اول شویدې اوتعلیم دَقرآن ورته روستو ورکړې شوې دې،لیکن دې نه باوجود دلته نعمت دَ تعلیم ذکر مقدم اونعمت تخلیق ذکر مؤخر دې، نو دیکښې اشاره ده دې خبرې ته،چې روحانی نعمتونه دَجسمانی نعمتونو نه افضل دی ،اوروحانی نعمتونو کښې تولو نه افضل تعلیم دَ قرآن دې،نو ځکه مقدم کړیشو.

| |
|---|
| اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ﴿٥﴾ وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ﴿٦﴾ وَالسَّمَآءَ |
| نور او سپوږمۍ «روان دي» په حساب سره، واړه بوټي او ونې سجده کوي الله ﷻ ته او اسمان |
| رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ ﴿٧﴾ اَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ ﴿٨﴾ وَاَقِيْمُوا |
| اوچت کړې ئي دې هغه او ايخې ئي ده تله . لپاره ددې چه تجاوز نه کوئ تاسو په تله کښې او قائم ساتئ |
| الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ ﴿٩﴾ وَالْاَرْضَ وَضَعَهَا لِلْاَنَامِ ﴿١٠﴾ |
| وزن په انصاف سره اومه کوئ کمې تاسو په تله کښې. او زمکه الله ﷻ ايښې ده پيدا کړيده لپاره د خلقو |
| فِيْهَا فَاكِهَةٌ ۙ وَّالنَّخْلُ ذَاتُ الْاَكْمَامِ ﴿١١﴾ |
| پدې کښې «قسم قسم» ميوې دي ، او کجورې دي دَ غلافونو والا |
| وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَ الرَّيْحَانُ ﴿١٢﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۗءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿١٣﴾ |
| او دانې دي دَ بوسو والا او خوشبوئ دي. نو په کوم يو نعمت دَ نعمتونو دَ خپل رب، به ستاسو تکذيب کوئ |

﴿اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ﴾ دا دَ دريم نعمت بيان دې، ديکښې الله ﷻ دوه لوئ نعمتونه ذکر کړيدي: (١) نور (٢) سپوګمۍ، يعني نور او سپوګمۍ باندې سوچ اوکه، چې دوئ څنګه خپل مدار کښې په ترتيب سره روان دي، اوحرکت کوي، بيا په دوئ کښې تغير اوتبدل ته اوګوره، سپوګمۍ مياشت اول کښې اوګوره، مينځ کښې يې مشاهده اوکه، اوبيايي آخر کښې اوګوره. دغه شان نور دَورځ په شروع کښې اوګوره ،بيايي غرمه کښې اوګوره ،او بيا ئي ماذيګر او مابنام کښې نظاره اوکه . او دغه شان ئي ګرمۍ او يخنۍ کښې دَ فرق اندازه واخله، دا ټول يو مربوط نظام او متعين حساب ماتحت کيږي او دَ انسان فائدې دَ پاره کيږي، دې سره دَ انسان ډير منافع ومصالح مثلاً موسمونو تبديليدل ، ميوې او فصلونو نشوونما او پخيدل، اوهغې کښې خوند اوذائقه پيدا کيدل وغيره، وابسته دي، «حسبان» مصدر دې لکه غُفران پمعنی دَ حساب سره: اي يجريان بحساب مقدر في بروجهما ومنازلهمايعنی خپل بروجونو او منازلو کښې متعين وخت اوحساب سره څی.يا «حسبان» جمع دَ حساب ده لکه شُهبان جمع دَ شِهاب ده يعنی مختلفو برجونو اعتبار سره مختلف اوقات پکښې تيره وي.

﴿وَٱلنَّجْمُ وَٱلشَّجَرُ يَسْجُدَانِ﴾ دا **خلورم نعمت بيان** دې ديكښې هم ددوه نعمتونو ذكر دې (۱) بوټى (۲) ونې ،يعنى بوټو اوونو ته اوګورئ.څومره فائده ترينه اخلئ.دا ټول دالله ﷻ حكم تابع اور منقاد دى اوتاسو خدمت كښې مامور كړى اوتاسو دپاره يې مسخر كړى دى.

«النجم» **نه مراد هغه بوټى دى چې تنه نه يې نه وى** ،اوپه زمكه خوريګى.لكه كدو ، خربوزه، وغيرو ،او «الشجر» **نه مراد هغه ونى** اوبوټى دى چې تنه يې وى ﴿يسجدان﴾ دسجدى نه مراد دادې چه دالله ﷻ دتكوينى حكم منقاد اوتابعدار دى.

﴿وَٱلسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ ٱلْمِيزَانَ﴾ دا **پنځم نعمت بيان** دې او ديكښې هم د دوو نعمتونو ذكر دې: (۱) رفع سماء (۲) وضع ميزان.يعنى آسمان ئې قائم كړې دې .او بغير د ستون نه ئې دا شين چهت اوچت ادرولې دې،دَ دې نورمصالح او فوائد پريګده داڅومره لوئى فضل واحسان دې چې دا دَ الله ﷻ توحيد يو ښكاره دليل اوننبه ده، او دغه شان دَ دې قائم ساتلو د پاره ئې عدل وانصاف حكم كړي دې،كچرته دا نه وې نو ټول كائنات كښې به فساد خور وې اوتباه وبرباد شوي به وؤ. «السماء»منصوب على شريطة التفسير دې «رفعها» معنى خلقها مرفوعة ده يعنى ابتدا نه يې اوچت پيدا كړي دې،داسى نه ده چې اول يې پيدا كړو .اوبيا يې اوچت كړو. «و وضع الميزان» "ميزان" متعدد تفسيرونه شويدى، **غوره قول** دا دې چې دينه مراد عدل او انصاف دى يعنى الله ﷻ دَ عدل وانصاف حكم وركړيدې، **څنى مفسرين** وائى چې "ميزان" نه مراد **هغه** تكوينى انتظام دې چې دَ هغې په وجه ټول كائنات په عدل او صحيح نهج روان دى، **هغه ګرمى** يخنى، باد و باران،ورځ او شپه ، نور اوسپوګمئ او د غه شان دَ انسانانو اصلاح وهدايت دپاره دَ انبياوؤ بعثت اوكتابونو نازلول دى،خلاصه دا چې دينه مراد **هغه** ټول اسباب دى چې كائنات پرې صحيح اعتدال سره قائم دې، **او څنى مفسرينو** ترينه ظاهرى اوحسى "ميزان" (تله) مراداخيستې ده.

﴿أَلَّا تَطْغَوْا﴾ "الا"په اصل كښې «أن لا» دې، "ان" تفسيريه دې.او "لا"ناهيه ده او دا دَ وضع ميزان تفسير دې ،يعنى وضع د ميزان داده چې تاسو خپل حقوق په اغستو كښې بې انصافي مه كوئ.

يا "ان"مصدريه دې او دينه مخكښې لام اجليه مقدر دې او "لا" نافيه ده اي لئلا تطغوا يعنى "وضع ميزان" مقصد دا دې چې تاسو چرته د خپل حقوق په اغستلو كښې حدودو نه تجاوز

اونه کړئ.اوظلم و زیادتی نه کار وانخلئ "طغیان" وئیلی کیږی حدود نه تجاوز ته.مطلب دادی خپل حقوق اغستو کښ انصاف اوعدل نه کار اخلئ.څومره مو حق جوړیږی هغی نه تجاوز مه کوئ

﴿وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ﴾ یعنی کله چی دبل چا حقوق درسره وابسته وی نوهغه ته هم حقوق بیا پوره پوره انصاف سره ورکوئ ،کمی پکښ مه کوئ.

**فائده**:لفظ د "میزان" اهمیت او د حکم تاکید دپاره الله ﷻ دری(۳) ځله مکرر ذکر کړو په اسم ظاهر سره.

﴿وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا﴾دا **شپږم نعمت** بیان دې،او دا هم په دوه نعمتونو باندی مشتمل دې:

(۱) وضع ارض(۲)پیداوار دَ زمکی،یعنی دَ الله ﷻ څومره فضل واحسان دې په تاسو چی تاسولره زمکه غوړولی ده او بیا ئې د هغې نه تاسو او تاسو د څاروؤ رزق بندوبست هم کړیدې،﴿لِلْأَنَامِ﴾نه مراد صرف انسانان دی یا انسانان او جنات دی او یاټول مخلوقات دی.

﴿فِيهَا فَاكِهَةٌ﴾یعنی مختلف قسم نعمتونه یی زمکی نه پیدا کړیدی:

(۱)بعض هغه چی هغې سره صرف تفکه (خوند اولذت) حاصلیږی.

(۲) بعض هغه دي چی هغی سره صرف غذائیت حاصلیږی.

(۳) ځنی هغه نعمتونه دی چی هغی سره تفکه اوغذائیت دواړه حاصلیږی.

(۴)ځنونه دا دواړه نه حاصلیږی بلکه خوشبووغیره ورکوی.

نو ((فيها فاكهة)) کښ دهغه نعمتونو ذکر دې چی هغی سره صرف تفکه حاصلیږی﴿وَالنَّخْلُ ذَاتُ الْأَكْمَامِ﴾ کښ دهغه نعمت ذکر دې چی هغې سره تفکه اوغذائیت دواړه حاصلیږی،چې هغه کجهوره ده،((الاكمام)) جمع دَ "کُم" ده، "اوعية التمر"یعنی دکجهورو غلاف ته وائی﴿وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ﴾کښ دَهغه نعمتونو ذکر دې چی هغې سره صرف غذائیت حاصلیږی،((الحب)) داني ته وائی، دینه مراد غنم،وربشی،دال،وغیره دی،((العصف)) بوسې ته وائی.یعنی صرف انسان ترینه فائده نه اخلی بلکه دهغی بوټې اوپټ دَ بوسو کار هم ورکوی ، چې هغې سره دوئ

څاروو ته خوراک ميلاويږی،«الريحان»يعنی بعض بوټی داسی دی چی صرف خوشبو
ورکوی،لکه ګلاب ،کشمالو وغيره' الريحان' معنی خوشبودار بوټي ده

﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ماقبل نعمتونو باندی تفريع ده.يعنی کوم ذات چی په تاسو
دومره لوئ لوئ او دومره ډير انعامات واحسانات کړيدی ،آيا ددې باوجود به دهغه ذات
نافرمانی کوئ،او بل چا ته به سر ټيټی کوئ او بل څوک به برکات دهنده بولئ. نو دا خو ډير
بې انصافي ده.

﴿الآء﴾جمع دَ "أَلَيّ" يا "إِلَيّ" ده نعمت اوقدرت دواړو معنو کښ استعماليږی.دلته ترينه
مراد نعمت دې، مخاطبين انسان اوجنات دې،او جناتو ذکر اګرچې مخکښ صراحتاً نه دې
شوې خود "انام" په ضمن کښ شويدی.

**فائده**: داآيت کريمه پدې سورة کښ(۳۱)ځلې مکررراغلې دې. په ظاهر کښ تکراردې
ليکن په حقيقت کښ تکرار نه دې، هر ځائ کښ ئې مقصد جدا دې. اصول دَ نعمت چه ټول
اته (۸) دی: (۱) باطنی (۲) ظاهری (۳) انفسی (۴) آفاقی (۵) بری (۲) بحری (۷) علوی (۸)
سفلی. دا ټول دلته ذکر دې نو دا آيت دَ هر يوسره ذکر دې،او دغه رنګه دا آيت دَ تخويفاتو
سره وه (۷)ځلې ذکردې،دَجهنم دروازې وه(۷)دی دَ ټولونه دَبچ کيدلو سبب دَتکذيب نه بچ
کيدل دی،دغه رنګه اته(۸)ځلې دَ بشاراتوسره اولاًذکر دې.او اته(۸)ځلې ثانيًا ذکر دې،دَ
جنت اته (۸) دروازې دی، هرې يوې ته دَداخليدوسبب دَتکذيب نه بچ کيدل دی. نودامحض
لفظی تشارک دې، البته دَ تکرار ظاهری په وجه پديکښ حسن دَ کلام سره سره افاده دَ تاکيد
هم ده او دا قسم تکرار په کلام دَ عربوکښ په کثرت سره بلا نکير استعماليږی. لکه يو سړې
بل ته وائی چه"الم احسن اليکَ بان خوّلتک فی الاموال،الم احسن اليک بان فعلتُ بک کذا و
کذا" اوپه اشعاردَعربوکښ هم استعمال شويدې.

علماء وائی چه مستحبه ده چه سامع دی پس له دې هرآيت نه داالفاظ اووائی چه"لابشئ
مَن نعمکَ ربّنانکذّب فلک الحمد"دَحضرت جابر رضی الله عنه نه روايت دې حضور ﷺ سورة رحمان دَاول
نه ترآخره پورې زمونږپه مخکښ اولوستلو نوبيائی اوفرمائيل"مالی اراکم سکوتًا، للجنَ کانوا
احسنَ منکم ردًا"،ولې خاموشه يئ،يقيناً چې پيريان ډير غوره وو د ستاسو نه په جواب کښ.

ځکه چه ما به نه لوستلو په هغوئ باندې دا آيت کريمه ﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ مګر هغوئ به وئيل چه لابشئ من نعمک ربنانکذب فلک الحمد (ترمذی).

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَلَقَ | الْإِنْسَانَ | مِنْ | صَلْصَالٍ | كَالْفَخَّارِ ﴿١٤﴾ | وَخَلَقَ الْجَآنَّ |

الله جل جلاله پیدا کړې دې انسان دَ ختی کړنګیدونکی نه په شان دَ کودری، او پیدا کړی ئی دی پیریان

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | مَّارِجٍ | مِّنْ | نَّارٍ ﴿١٥﴾ | فَبِأَيِّ | الَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿١٦﴾ رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ |

دَخالصی شغلی دَ اُور نه ، نو په کوم یو نعمت دَ نعمتونو دَ رب خپل به تاسو تکذیب کوئ. الله جل جلاله رب دَ مشرقینو دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَرَبُّ | الْمَغْرِبَيْنِ ﴿١٧﴾ | فَبِأَيِّ | الَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿١٨﴾ |

او رب دَ مغربینو دې، نو په کوم یو نعمت دَ نعمتونو دَ رب خپل به تاسو تکذیب کوئ

﴿خَلَقَ الْإِنسَانَ مِن صَلْصَالٍ﴾ دا د **سورت دویمه حصه** ده، دیکښې **په دعوی دَتوحید باندې دلائل** ذکر کیږی. دا **اول دلیل عقلی انفسی** دې، چی انسان دې خپل پیدائش آغاز باندې غور اوکړی چې دې الله جل جلاله دَ خاورې نه پیدا کړې دې ،اوجنات دې په خپل تخلیق باندی غور اوکړي چې خالص دَ اور شغلو نه ئي پیدا کړیدی، آیا داسې بل ذات شته چې هغه دَخاورو او دَاور نه داسې ژوندې مخلوق پیدا کړی؟ هرګز نه شته چې په دې قادر شي،نو تاسو به دَالله جل جلاله کوم کوم قدرتونو نه انکار کوئ.

﴿صَلْصَالٍ﴾ هغه وچه او متینه خټه چه کلکه اوکړنګولې شی نو اوګړنګیږی، (جلالین)

**﴿كَالْفَخَّارِ﴾ کودرې، او چټکورې یعني هغه خټه چه په اورکښې پخه شی ﴿الْجَآنَّ﴾ دَ جان نه مراد یا جنس جن دې یا ورنه مراد ابو الجنّ (دَ پیریانو نیکه) دې، ﴿مِن مَّارِجٍ﴾ دَ اورخالصه شغله چه لوګې پکښې نه وی، یا هغه اور چه مختلف رنګونه پکښې وی، تور، سور، شین، او دا قسمه اور ډیر تیز وی. من په ﴿مِن مَّارِجٍ﴾ کښې ابتدائیه دې او په ﴿مِّن نَّارٍ﴾ کښې بیانیه دې، بیان دې دَ ﴿مَّارِجٍ﴾**

﴿رَبُّ ٱلۡمَشۡرِقَيۡنِ﴾ دادويم **دليل عقلی** دې او آفاقي دليل دې، چه الله ﷻ د مشرقينو او مغربينو مالک او رب دې، او داخو صرف يو عنوان دې ، د دې په ضمن کښې د الله ﷻ ځومره انعامات او د قدرت مظاهر دي، چې د دوئ په تغير او تبدل سره موسمونه بدليږي، فصلونه پيدا کيږي، د شپې اوورځې شروع او اختتام پدې سره کيږي،دغه شان خلقوته نورهم په زرهاؤ فوائد ور رسيږي،نو دا د الله ﷻ په تاسو لوئ لوئ نعمتونه دی.

﴿رَبُّ ٱلۡمَشۡرِقَيۡنِ وَرَبُّ ٱلۡمَغۡرِبَيۡنِ﴾مشرق او مغرب تذکره قرآن کښ مختلف صيغو سره شوي ده،ځنې ځائی کښ مفرد صيغه راغليده لکه رب المشرق والمغرب لا اله الا هو(المزمل۹) او ځنی ځائنو کښ صيغه د جمعی راوړلی شويده،لکه فلا اقسم برب المشارق والمغارب (المعارج) او دلته صيغه د تثنيي ده. ديکښ تطبيق داسی کيږی چی جهت او رخ ته اوکتلی شی چی هغه يو دې نو ځکه د هغي اعتبار سره صيغه هم هلته د مفرد ذکر شوي ده،اوکه موسم اعتبار سره اوکتلی شی نو د ګرمئ اويخنئ مشرق او مغرب کښ واضح فرق موجود وی نو ځکه صيغه د تثنيه استعمال شی او چونکه د هر ورځ نورخاتي او ډوبيدو ځائی د بلی ورځی نه بدل وی نو دی اعتبار سره صيغه د جمع هم استعماليږی.

﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ﴾په طلوع اوغروب کښ بی شماره فوائددی.لکه اعتدال د هوا ،اختلاف د موسمونو اوپيدا کول د هرفصل په مناسب وخت کښ،نودکوم يونعمت نه به تاسوانکارکوئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَرَجَ ٱلۡبَحۡرَيۡنِ يَلۡتَقِيَانِ ﴿١٩﴾ بَيۡنَهُمَا بَرۡزَخٌ لَّا يَبۡغِيَانِ ﴿٢٠﴾ | | | |
| روان کړی ئی دی دوه دريابونه يوبل سره لګيدلي ، دواړومينځ کښ يوه پرده ده تجاوزنه کوی د خپل حدود نه. | | | |
| فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٢١﴾ يَخۡرُجُ مِنۡهُمَا ٱللُّؤۡلُؤُ وَٱلۡمَرۡجَانُ ﴿٢٢﴾ | | | |
| نوبه کوم يونعمت د نعمتونو د رب خپل به تاسو تکذيب کوئ . را اوځی د دواړونه غټی ملغری اووړی ملغری، | | | |
| فَبِأَيِّ | ءَالَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ ﴿٢٣﴾ |
| نوبه کوم يو نعمت د | نعمتونو د | رب خپل به | تاسو تکذيب کوئ |

﴿مَرَجَ ٱلْبَحْرَيْنِ﴾ دا **دریم دلیل عقلی دي** په توحید او دَبحری مظاهرِ قدرت او نعمتونو بیان دي، چه الله ﷻ پخپل قدرت سره دوه مختلف الطبع دریابونه یو ځائ روان کړي وی، دَدواړو سطح دَیو بل سره لګیدلی وی، په ظاهرکښ څه فصل او حاجز نه وي لیکن بیا هم دواړه په یو بل کښ نه خلط کیږی ﴿مَرَجَ﴾ ای ارسل واجریٰ ﴿ٱلْبَحْرَيْنِ﴾ دوه دریابونه . بحرمالح (مالګین) بحرشیرین، کقوله تعالی: وهوالّذی مرجَ البحرین هذاعذبٌ فراتٌ وهذاملحٌ اجاجٌ (الفرقان: ۵۳) بحرمالح هم دَالله ﷻ له طرفه یو لوئی انعام دي ځکه کچرې دانه وي نو په هواکښ به فساد او بدبوئي پیداشوې وې، بحرمالح سره بدبوئی اوفساد دَ هواختم شی.

﴿بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ﴾ یعنی دَدواړوپه مینځ کښ محضِ دَالله ﷻ په قدرت کښ پرده اوحاجزدې چه دواړه نه یوځائ کیږی ﴿لَّا يَبْغِيَانِ﴾ په یوبل کښ تجاوزنه کوی یعنی یوبل کښ نه خلط کیږی چه دَیواوبواثرپه بل کښ راشی، قتاده رحمه الله وائی: لایبغیان علی النّاسِ فیغرقانهم یعنی په خلقونه رااوړی چه خلق غرق کړی بناء پدې قول دَ﴿بَرْزَخٌ﴾ نه مرادپرده اورکاوټ دَزمکې دې

﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا ٱللُّؤْلُؤُ﴾ دا د بحری نعمتونه ذکر دي چه الله ﷻ دَدې دریابونونه تاسولپاره ملغری وغیره رااوباسی چه دَدې منافع ظاهردی ﴿ٱللُّؤْلُؤُ﴾ وړې ملغرې ﴿وَٱلْمَرْجَانُ﴾ غټې ملغرې، مشهوره داده چه ملغرې وغیره دَبحرمالح (مالګین) نه رااوځی، بحرشیرین کښ ملغرې نه وی اودلته دَ﴿مِنْهُمَا﴾ نه معلومیږی چه دَدواړونه رااوځی، نوپدې وجه علماؤتاویل کړیدې چه (۱) ﴿مِنْهُمَا﴾ پمعنی دَمن مجموعهما دې، کمافی کقوله تعالی: یٰمعشرالجنّ والانسِ الم یأتکم رسُلٌ منکم ای من مجموعکم ځکه چه په جنّاتوکښ رُسل ندی راغلی (۲) بعضِ وائی دلته مضاف حذف دي، ای من احدهما، کمافی قوله تعالی "علی رجُلٍ من القریتین" ای من احدی القریتین، لیکن محقیقینو ظاهر دَ قرآن ته ترجیح ورکړیده چه ملغرې دَدواړونه رااوځی البته بحرمالح کښ ډیرې دی اوبحرشیرین کښ کمې، دَموجوده دوردَتجرباتونه هم ثابته ده چه بحرشیرین کښ ملغلرې وی، لهذاتاویلات اوتکلفاتوته ضرورت نشته.

په ملغرواومرجان کښ دَظاهری زینت نه علاوه طبّی فوائدهم دی چه داپه امراض قلب،جگر،جنون وغیره کښ استعمالیږی،نودکوم یونعمت نه به تاسوانکارکوئ.

| | |
|---|---|
| وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ ﴿٢٤﴾ فَبِأَيِّ | |
| اوداللهﷻ په قبضه کښ دی بیړئ چلیدونکی دنگی دنگی په دریاب کښ پشان دغرونو نوپه کوم یو | |
| آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٥﴾ | . |
| نعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تکذیب کوئ | |

﴿وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ فِي الْبَحْرِ﴾دا **خلورم دلیل عقلی** دې په توحید،اوپدې کښ هم دبحری نعمتونوبیان دې،چه اللهﷻپخپل امرسره ستاسولپاره په دریاب کښ دغرونوپشان دنگې دنگې بیړئ روانی کړیدی﴿الْجَوَارِ﴾ی ورنه تخفیفاًحذف شویده،اصل کښ جواری دې،جمع دَ جاریةً ده کشتئ ته وائی،کشتئ ته جاریةً په دې وجه وائی چه شان دَدې دادې چه داچلیږی په اوبو کښ اگرچه په بعضِ اوقاتوکښ په ساحل ولاړه وی،دَجوړیدونه مخکښ ورته فلک وائی کقوله تعالی: واصنع الفلک باعیننا(هود:۳۷)پس دَجوړیدونه ورته سفینه وائی،کقوله تعالی:فانجیناه واصحاب السّفینة(عنکبوت:۱۵)اوپس دَچلیدونه ورته جاریةً وائی(کبیر).

﴿الْمُنْشَئٰتُ﴾صیغه داسم مفعول ده دَ« انشأ ینشأ»نه ، دَ دې دوه معنې راځی،(۱)صنع اوجوړول یعنی جوړې کړې شوې،صیغه دمجهول راوړلو کښ اشاره ده دې خبرې ته چې دې صنعت اوجوړول انسان ذاتی کمال نه دې،بلکه دَاللهﷻ احسان دې چې هغه ورته الهام کړیدې،(روح) (۲)انشأ بمعنی رفع کښ هم راځی،اې المرفوعات الشُرُع یعنی اوچتواچتو باد بانونو والا کشتئ ﴿كَالْأَعْلَامِ﴾جمع دَعَلَم ده دنگودنگو غرونو ته وائی،

﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ﴾بیړئ چلیدل دَاللهﷻلوئ نعمت دې چه په دې سره دَخوراک وغیره سامانونه دَیوښارنه بل ښارته منتقل کیږی، خلق پکښ هم تجارتی وغیره سفرکوی نودکوم یونعمت نه به تاسوانکارکوئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كُلُّ | مَنْ | عَلَيْهَا | فَانٍ ﴿٢٦﴾ | وَّيَبْقٰى | وَجْهُ | رَبِّكَ |
| هر هغه څه چه پدې زمکه دی فانی کیدونکی دی،اوباقی به وي شی ذات درب ستاچه | | | | | | |
| ذُو | الْجَلٰلِ | وَالْاِكْرَامِ ﴿٢٧﴾ | فَبِاَيِّ | اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٨﴾ |
| خاوند د لویئ او د عزت دې نو په کوم یونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تکذیب کوئ | | | | | | |

﴿ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴾دا **پنځم دلیل عقلی** دې په توحید .ټول په مخ دزمکې مخلوقات فنا کیدونکی اوختمیدونکی دی،صرف یوذات ذوالجلال سره د خپلو صفاتو باقی پاتې کیدونکې دې،کوم چه فانی دې نوهغه مستحق دربوبیت نه دې،نولهذاصرف یو الله کارساز ، برکات ورکونکې اوګنړئ﴿ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴾ای علی الارض من کښې عموم دې یعنی هرڅه فناء کیدونکی دی.انسان دې که جن،حیوان دې،که اشجار .لقوله تعالی انالجاعلون ما علیها صعیداً جُرزاً(کهف:۲۸)او من اطلاق پرې تغلیبا شویدې

چونکه اصل خطاب دلته انس وجن ته دې، نو دې وجهی نه،، من علیها فان ،،یعنی د زمکې مخلوقاتو د فنا ذکر اوشو کنې زمکی آسمانونو او فضا کښې ټول مخلوقات به فنا کیږی صرف الله ﷻ ذات به باقی پاتی کیږی.

﴿وَيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ﴾ وجه نه مراد متاخرینو ذات باری تعالی اغستې دې ﴿ذوالجلال﴾اي ذوالعظمة یعنی ډیرلوئ ذات دې،چاته یی هیڅ قسم ضرورت نشته،دیکښې صفات دتنزیه ته اشاره ده﴿والاکرام﴾اي ذوالفضل والاحسانیعنی ډیر فضل اواحسان والا دې خپل بندګانو باندې ډیر فضل او احسان کوی،دیکښې صفات کمال طرف ته اشاره ده.

﴿فَبِاَيِّ ءَالآءِ رَبِّكُمَا ﴾ددنیافناءکیدل هم دانسان لپاره لوئ نعمت دې ځکه ددې فناءکیدل سبب دې لپاره دبقاء اوحیات ابدی،اولپاره دلقاء مع الله،صوفیاءوائی الموتُ جسرٌیوصل الحبیبَ الی الحبیبِ .اوبل داچی مخکښې نه دوئ ته دا خبرورکړې شو نو دا هم یو نعمت او احسان نه کم نه دې،نوځکه اوفرمائیلې شول چی دخپل پروردګار کوم کوم نعمتونو به تاسو ناقدری کوئ.

**فائده**:«ذوالجلال والاكرام» دي دواړو اسماؤته په حديث کښې اسم اعظم وئيلې شويدى چه په دې سره کومه دعا اوغوښتلې شى نو هغه قبليږى. انس ﷺ فرمائى چه څه دنبى ﷺ سره ومه يو صحابى مونځ اوکړو بيا ئى داسې دعااوکړه:اللّهم انى اسألک بان لک الحمد،لااله الاّ انت المنان،بديع السموات والارض ذوالجلال والاکرام ياحىّ ياقيوم.نونبى ﷺ صحابؤته اوفرمائيل اتدرُون بما دعا؟ هغوئ عرض اوکړو.الله ورسوله اعلم نبى ﷺ اوفرمائيل:والّذى نفسى بيدهِ لقد دعا الله باسمه الاعظم الذى اذادُعى به اجاب واذاسئل به اعطى(ترمذى.ابوداؤد) دغه شان په دې اسماؤو سره دَ دعا غوښتلو ترغيب هم راغلې دې، نبى ﷺ فرمائى الظّوا بــ:ياذاالجلال والاکرام ،يعنى خپلې دعاګانې په دې الفاظو سره غواړئ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَسْـَٔلُهٗ | مَنْ | فِي | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | كُلَّ | يَوْمٍ | هُوَ |
| سوال کوي دَالله ﷻ | نه | هغه څوک چه | په | اسمانونوکښې | دى اوزمکه کښې | دى هر وخت | الله ﷻ |
| فِيْ | شَاْنٍ ﴿٢٩﴾ | فَبِاَيِّ | اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٠﴾ | | |
| څه نه څه تصرف کښې وي. | نوپه کوم يونعمت | دَ نعمتونو | دَ رب خپل | به تاسو | تکذيب کوئ | | |

﴿ يَسْـَٔلُهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾دا **شپږم دليل عقلى** دې په توحيد ،چه دَزمکې،آسمان ټول مخلوقات الله ﷻ ته په وجوداوبقاء کښې محتاجه دى، اودَهغه نه سوال کوى په لسانِ قال يا حال سره. اوالله ﷻ په ټول کائناتو کښې هروخت پخپلې مرضئ سره تصرف کوى.

﴿ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِى شَأْنٍ ﴾ يوم دلته پمعنى دَوقتٍ سره دې اى کل وقتٍ من الاوقات ولحظةٍ من اللحظات(روح المعانى) شانٍ نه مراد تصرف کول دى يعنى دَالله ﷻ تصرف هر وخت په کائناتو کښې جارى وى، دانه ده ممکنه چه په الله ﷻ باندې ستړې والې ياغفلت دَيوې لحظې لپاره هم طارى شى، عبدالله بن خبيب دَخپل پلارنه روايت کړيدې چه نبى کريم ﷺ داآيت کريمه تلاوت کړو (کلّ يومٍ هُوفى شانٍ) نومونږعرض اوکړويارسول الله ﷺ وماذاک الشان؟ يعنى څه کاردې. نو نبى کريم ﷺ اوفرمائيل:ان يّغفرذنبًا،ويفرج کربًا،ويرفع قومًاويضعُ آخرين.يعنى شان اوکار دَالله ﷻ دادې چه ګناه معاف کوى.تکليفونه لرى کوى،يوقوم اوچتوى يعنى عزت ورکوى، يو ښکته کوى يعنى ذليله کوى ئې(ابن کثير)

مقاتل رحمه الله فرمائی چه داآیت دَیهودیانو دَ قول تردید دې.چه هغوئ وائی چه الله تعالیٰ دَخالی په ورځ هیڅ کارهم نه کوی،ستړې وی ارام سره ناست وی(نعوذبالله)

په روح المعانی کښې دی چه عبدالله بن طاهردَحسین ابن الفضل نه تپوس اوکړوچه څه تطبیق دې دَدې آیت اودَهغه احادیثوپه مینځ کښې چه دَتقدیرباره کښې راغلی دی چه ترقیامته پورې څه کیږی دَقلم سیاهی په هغې وچه شویده،نوهغه ورته اووئیل:شؤونٌ یُبدیها لاشؤونٌ یبتدیها یعنی شؤن(تصرفات)دی چه الله تعالیٰ ئی ښکاره کوی روستو دَتقدیرنه.دانه چه شؤن دی اوس ئی شروع کوی.«فِي شان»جار مجرور "استقر" یا "ثابت" سره متعلق کیږی،او خبر واقع کیږی.دَ"هو" ضمیر دَپاره ،او«کل یوم» مفعول فیه دې دَ استقر یا ثابت.

﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا ﴾وجود اوبقاء ستاسو،حاجتونه اوضروریات پوره کول ستاسو، داداَلله تعالیٰ په تاسولوئ لوئ انعامات دی،نودکوم یونعمت دَرب خپل نه به تاسو انکاراوکړئ

| |
|---|
| سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ الثَّقَلَانِ ۝٣١ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝٣٢ |
| زرده چه شروع به کړومونږتاسوسره حساب اې دوؤفرقو نوپه کوم یونعمت دَنعمتونودَرب خپل به تکذیب کوئ. |

﴿سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ ٱلثَّقَلَانِ ﴾دی ځائی نه **دَسورت دریمه حصه** شروع کیږی او پدیکښې تخویفاتوبیان دې اودا آیت د هغی دپاره تمهید دې.«سنفرغ لکم» فراغت للشئ،سابق او لاحق دواړو تقاضه کوي،یعنی مخکښې یو کار کښې مشغول وی.بیادَهغی کارنه فارغ شی او دې بل کار ته متوجه شی،اودلته محض تمثیل مقصود دې او اشاره ده دیته چې دَدنیا چمک دمک ،شوروغوغا اوتصرفاتو و تغیراتو الله تعالیٰ په علم کښې یومعلومه اومتعینه انتهاء ده ، کله چې هغه پوره شی نو بیا به دا دنیا ورانه شی او تاسو ټول به دَالله تعالیٰ حضور کښې پیش کیږئ،اوهغه به تاسونه حساب کتاب اخلی،لکه چې یوسړې په یوکارکښې مشغول وی خو په ذهن کښې یی بل کار هم وی،نوکله چې هغه کار نه فارغ شی نو بیا دې بل کارته متوجه شی،اویا« سنفرغ لکم» کنایه دَتهدید نه ،لکه مونږ پښتو کښې وایو ته صبراوکه.

﴿ٱلثَّقَلَانِ ﴾انسانان اوجنات ورنه مراددی،دَثقل تثنیه ده،انس جن ته ثقل څکه وائی(۱) چه دوئ مکلف دی دَاحکام شرعیه ؤ،یعنی دَاحکام شرعیه ؤبوج پرې پروت دې(۲)یاداچه دوئ بوج دی په زمکه(۳)یاداچه پدوئ دګناهونوبوج پروت دې(۴)یاداچه ثقل لفظ په عربئ

ژبه کښې هغه څیزته وائی چه دَهغې شان عظیم وی،قیمتی وی.لکه په حدیث کښې دی:انی تارکٌ فیکم الثقلین کتابُ الله وعترتی.نو انس اوجن هم قیمتی اوقدردان دی.په لکم کښې دَجمع صیغه ذکرشوه اوپه﴿ أَيُّهَ ٱلثَّقَلَانِ ﴾کښې تثنیه ذکرشوه،داپدې وجه چه هرفریق جماعت دې،کقوله تعالی:وان طائفتان من المؤمنین اقتتلوا(حجرات:۹).

| |
|---|
| يَٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ إِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَن تَنفُذُوا مِنْ أَقْطَارِ السَّمَاوَاتِ |
| اې ټولیه دَپیریانواوانسانانوکچرته وَس رسیږی ستاسوداچه اووتځئ تاسودغاړودَاسمانونو |
| وَالْأَرْضِ فَانفُذُوا ۚ لَا تَنفُذُونَ إِلَّا بِسُلْطَانٍ ﴿٣٣﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ |
| اودَزمکی نه نواوتځئ کنه،نه شئ تختیدلې تاسومګرپه زورسره نو په کوم یونعمت دَنعمتونو |
| رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٤﴾ يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ وَنُحَاسٌ |
| دَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ.رااوبه لیږلې شی په تاسوباندې لمبې دَاور دَجهنم، اوتورلوږې، |
| فَلَا تَنتَصِرَانِ ﴿٣٥﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٦﴾ فَإِذَا |
| نو تاسو به خان نشئ بچ کولې.نوپه کوم یونعمت دَنعمتونودَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ.پس کله چه |
| انشَقَّتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿٣٧﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا |
| اوچوی اسمان نوشی به سور ګلابي په شانته دَ سرې څرمنې. نوپه کوم یونعمت دَنعمتونودَرب خپل به |
| تُكَذِّبَانِ ﴿٣٨﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْأَلُ عَن ذَنبِهِ إِنسٌ وَلَا جَانٌّ ﴿٣٩﴾ |
| تاسو تکذیب کوئ. پس پدغه ورځ به تپوس نشی کولې دګناه دَ ده په باره کښې ،نه دَ انسان نه اونه دَپیری نه. |
| فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٠﴾ |
| نوپه کوم یو نعمت دَنعمتونو دَرب خپل به تکذیب کوئ. |

﴿يَٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ﴾داتخویف دنیوی دې،چه کچرته په تاسوکښې ،اې انس و جن داطاقت وی چه ځمادَعذاب نه دَبچ کیدلوله پاره دَآسمانونواودَزمکې دَاطرافونه اووځئ اوبل

محفوظ مقام ته تلې شئ نولاړشئ﴿فَٱنفُذُوا﴾امردَتعجيزلپاره دي.يعنى نشئ وتلې اوتختيدلې (روح)

﴿لَا تَنفُذُونَ﴾اى لاتقدرون على النفوذ﴿إِلَّا بِسُلْطَٰنٍ﴾اى بقوة وقهر.يعنى بغير دَقوت اوقدرت نه دا كاركيدنشى چې تاسو ځان نه الله ﷻ عذاب دفع كړئ.اوقوت وقدرت تاسو سره نشته دي.

﴿يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ﴾دا تخويف اخروى دي، يعنى څرنګه دنيا كښې دَالله ﷻ عذاب نه نشئ بچ كيدلې اوهغه ځان نه نشئ لرې كولې نو دغه حالت موبه په آخرت كښې هم وى،د اور لمبى اوګرم كړې شوې تانبا به په تاسو غورزولې كيږى اوتاسو كښې به دومره همت نه وى چې ځان ترينه بچ كړئ يا دَيوبل مدد اوكړئ. ﴿شُوَاظٌ﴾دَاورخالصى شغلې ته وائى چې هغې كښې لوږى بالكل آميزش نه وى،﴿وَنُحَاسٌ﴾د نحاس ذوه معنې دَابن عباس ؓ نه منقول دى يوه معنى خالص لوږى كړي ده،چې اور پكښې بالكل نه وى.اوبله معنى ترينه دَ تانبې منقول ده،﴿فَلَا تَنتَصِرَانِ﴾اي لاتمتنعان يعنى ځان به نشى بچ كولې

﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا﴾مجرمان دَخپلوجرائمودَسزانه قبل ازوقت مطلع كيدل اوخبريدل هم دَالله ﷻ دَطرفه لوئ نعمت دي،ځكه دَتوبى موقع ورته ملاويږى،نوپس كوم يونعمت دَرب خپل نه به تاسوانكاركوئ.

﴿فَإِذَا ٱنشَقَّتِ ٱلسَّمَآءُ﴾دا هم تخويف اخروى دي يعنى كله آسمان اوچوى ،اوسخت حرارت اوګرمئ په وجه تک سور شى،دا به يو ډيره هولناكه ورځ وى،په دغه ورځ به مجرمينوته دَخپلې صفائى موقع به نه وركولى كيږى،بلكه علاماتونه به دوئ څرګند معلوميږى، فرشتى به ئى سر او خپو نه نيسى اوجهنم ته به ئى غورځوئ.((انشقت السماء)) آسمان اوچوى او دروازې دروازې به شى او فرشتى به ترينه راكوزى شى﴿فَكَانَتْ وَرْدَةً﴾جمله عطف ده په((انشقت السماء)) او تشبيه بليغ ده،اي كالوردة، او وردة نه مراد ياګلاب دې او تشبيه په سورالى كښې وركړى شوي ده،يا وردة نه مراد الفرس الورد دي. دا دَ اسونو يو

خاص قسم دې چې رنګونه بدلوی را بدلوی، سپرلی موسم کښې ني رنګ زيړ وی چې يخني راشی نورنګ يې سور شی اوکله چی يخني خه تيزه شی نو بيا رنګ خړ شی. په دی تقدير وجه تشبيه "تلون" ده يعنی ډېر شدت د وجهی نه به آسمان رنګ بدلوی رابدلوی

﴿كَالدِّهَانِ﴾خبرثانی دې دَ"كانت" ياصفت دې دَ﴿وَرْدَةً﴾ دَ«دهان» مختلفې معنی منقولی دی:ابن عباس ﷺ ئی معنی کوی"الاديمُ الاحمر"سره چمړه.بعضِ وائی چه جمع دَ دُهن ده.يعنی اسمانونه به سره شی او دَ تيلوپه شانته به اوبهيږی،په دې قول په بناء به دَدې مطلب دَيوم تكونُ السّماء كالمهل«المعارج.٨»په شانته دې،

جواب دَ"اذا"يا محذوف دې چی "فما اعظم الهول"دې،يعنی خه لوئ هيبت به وی اويا ئی جواب "فيومئذ لايسئل " دې دَقيامت دَاحوالونه قبل ازوقت اخبارهم دَالله ﷻ دَطرفه يولوئ نعمت دې نو څکه اوئيلې شو﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾

﴿فَيَوْمَئِذٍ ﴾تنوين پکښې عوض دې دَمحذوف نه،تقديردارنګه دې.فيوم اذانشقّت السّماء«البحرالمحيط». ﴿لَّا يُسْـَٔلُ عَن ذَنۢبِهِۦٓ ﴾ضمير په "ذنبه" کښې"انسٌ اوجنٌ"ته راجع دې،باعتبار كل واحداو "انسٌ ولاجانٌ" اګرچه مؤخر دې لفظاً ليكن مقدم دې رتبةً . څکه چه نائب فاعل دې، دَ﴿لَّا يُسْـَٔلُ ﴾مطلب دادې چه دګناهونو معلومولو اوتحقيق حال لپاره به دَچانه سوال نه کيږی چه آيادا ګناه دې کړيدې اوکنه؟څکه چه هرڅه الله ﷻ ته معلوم دی دَچانه دَ تپوس کولوحاجت ورته نشته،البته دَالزام حجت لپاره به ورنه سوال کيږی چه په نورو آياتونو کښې ئی«لکه اعراف،حجر وغيره» ذکر دې. «٢»بعضِ وائی چه مواقف دَحشر به مختلف وی، نو په يوموقف کښې به ورنه سوال نه کيږی،لکه په وخت دَخروج کښې دَ قبرونو نه،اوپه بل موقف کښې به ورنه کيږی چه موقف دَحساب به وی«٣»بعضِ وائی چه دَ ګناه دَعذرصفائي بيانولو دپاره تپوس به ورنه نه کيږی كقوله تعالى:ولايؤذن لهم فيعتذرون«المرسلات:36».

| يُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ بِسِيْمٰهُمْ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِيْ وَالْاَقْدَامِ ﴿٤١﴾ |
|---|
| پيژندلې به شی مجرمان په علامو خپلو سره نو او به نيولې شی دَ ويښــو دَ تندی او دَ قدمونو نه . |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَبِأَيِّ | اٰلَاۤءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٢﴾ | هٰذِهٖ | جَهَنَّمُ | الَّتِىْ | يُكَذِّبُ |
| پس په كوم يونعمت دَنعمتونودَرب خپل به تاسو تكذيب كوئ (ورته به اووئيلي شي) دا | | | | هغه جهنم | | دي چه | تكذيب به |
| بِهَا | الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٤٣﴾ | يَطُوْفُوْنَ | بَيْنَهَا | وَبَيْنَ | حَمِيْمٍ | اٰنٍ ﴿٤٤﴾ | |
| كوو دَ دى مجرمانو | | پيرې به وهي دوئ په مينځ دَدى كښې اوپه مينځ دَ | | | اشيدلي انتهائي گرمو | اوبو كښې | |
| فَبِأَيِّ | اٰلَاۤءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٥﴾ | | | | |
| نوپه كوم | يونعمت | دَنعمتونودَرب خپل به تاسو | تكذيب كوئ | | | | |

﴿ يُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴾داپمنزله دَعلت دي لپاره دَماقبل،چه سوال به ځكه نه كيږى چه مجرمان به پخپلوخپلوعلاموسره پيژندلې كيږى نونيولې كيږى به اوجهنم ته به غورځولې كيږى ﴿بِسِيْمٰهُمْ ﴾چه مخونه به ئي تور وى،قال تعالىٰ وتسودُ وجوهٌ بدشكله اوپريشانه به وى،قال تعالىٰ وَوجوهٌ يومئذٍباسرةٌ ووجوهٌ يومئذٍعليهاغبرةٌ ستركې به ئي شنې وى،قال تعالىٰ ونحشر المجرمينَ يومئذٍ زُرقًا

﴿فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِىْ ﴾نواصى دَناصيةٌ جمع ده ، دَتندى ويختوته وائى،كيفيت دَنيولوبه ئي داسې وى چه فرشته به ئى دَتندى ويختِه دَ قدمونوسره اوتړى،دَملاهډوكى به ورته مات كړى،سراوخپې به ئي يوځائ شى اوجهنم ته به ئي اوغورځوى اوورته وائى به چه داهغه جهنم دي چه تاسوئى تكذيب كولو.بعض مفسرين وائى چى دوه فرشتې به يويو مجرم نيسى، يوه به يى تندى نه اونيسى اوبله به يى خپونه نيسى اوجهنم ته به يى غوزارى.

﴿ هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِىْ ﴾دينه مخكښې يُقال لهم مقدردې﴿ يَطُوْفُوْنَ بَيْنَهَا ﴾يعنى دې دوه قسمه عذابونه به پرې پيره او نمبر وى،كله به په اور والا عذاب كښې مبتلا وى اوكله به گرمو اوبو عذاب كښې . دَ دى پيرى اوطواف كيفيت كښې مفسرين داسې ليكى چه مجرمانوته به دَ اور دَ ډيرگرم والى په وجه تنده اولږى نواوبو طرف ته به منډه كړى نو هغه به ډيرې گرمې وى چه اوئى څكى نوكلمې به ئي اوشليږى لكه په سورة محمّد(۱۵)كښې دى فقطّع امعاءهم نوبيابه خپل ځائ ته راشى،بيابه تږى شى،بيابه اوبوته لاړشى نوكله به په گرم اورسره ورته عذاب

ملاويږي اوكله په سختوګرمو اوبوسره «ابن كثير» بعض وائي چه په أوركښ به سوزه ولې كيږي اوپه سرونو به ورته سختې ګرمې اوبه اړه ولې كيږي «اعاذناالله منهابفضله»

«بينها» ضمير نار جهنم ته راجع دې «حميم» ګرمو ايشيدلى اوبو ته وائى. او «ان» هغه اوبه چې هغى ګرمائش اوحرارت انتهاء ته رسيدلې وى

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلِمَنْ | خَافَ | مَقَامَ | رَبِّهٖ | جَنَّتٰنِ ۝٤٦ | فَبِاَيِّ | اٰلَاۤءِ | |
| او دپاره دهغه چاچه يريږي دقيام نه په حضوردخپل رب كښ دوه باغونه دى نوپه كوم يونعمت د نعمتونو | | | | | | | |
| رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۝٤٧ | ذَوَاتَاۤ | اَفْنَانٍ ۝٤٨ | فَبِاَيِّ | اٰلَاۤءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۝٤٩ |
| درب خپل به تاسو تكذيب كوئ «دواړه باغونه به دَ څانګو والا وى نوپه كوم يونعمت دنعمتونو دَ رب خپل به تاسو تكذيب كوئ | | | | | | | |
| فِيْهِمَا | عَيْنٰنِ | تَجْرِيٰنِ ۝٥٠ | فَبِاَيِّ | اٰلَاۤءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۝٥١ | |
| پدى دواړوكښ به دوه چينى وى چه بهيږى به. نوپه كوم يونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تكذيب كوئ | | | | | | | |
| فِيْهِمَا | مِنْ | كُلِّ | فَاكِهَةٍ | زَوْجٰنِ ۝٥٢ | فَبِاَيِّ | اٰلَاۤءِ | رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝٥٣ |
| پدى دواړوكښ به وى دهرې ميوې نه دوه دوه قسمه نوپه كوم يونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تكذيب كوئ | | | | | | | |
| مُتَّكِـِٕيْنَ | عَلٰى | فُرُشٍۭ | بَطَاۤىِٕنُهَا | مِنْ | اِسْتَبْرَقٍ ؕ | وَجَنَا | الْجَنَّتَيْنِ |
| تكيه لګونكى به وى په داسى بستروچه استرونه به ئى دَريښموى اوشوكول دَميوؤدَغى دواړوباغونوبه | | | | | | | |
| دَانٍ ۝٥٤ | فَبِاَيِّ | اٰلَاۤءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۝٥٥ | | | |
| نزدې وى . نوپه كوم يونعمت دنعمتونودَرب خپل به تاسو تكذيب كوئ | | | | | | | |

﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ ﴾ دى ځائ نه دَسورة څلورمه حصه شروع كيږى چه پكښ مُتقيانو ته بشارات ذكركيږي او تولونه اول خواصو ته بشارت ذكر كيږي﴿ وَلِمَنْ ﴾عام دې جنس انس دواړوته شامل دې، نوپه دې سره بعض علماؤو استدلال كړي دې چه جنات مؤمنان به هم جنت ته داخليږى په شان دَ مؤمن انسانانو، «خاف» خوف نه مراد كله مطلقاً يره وي، چې د تعظيم نه خالى وي او دهغي اثر تنفر او تبعد په شكل كښ ظاهريږى اوكله ترينه مراد خشيت او هغه

يره وي چي عظمت ،كبريائى ،او محسن والي دَ وجهي نه وي چي هغې لازمي اثر تقرب او طاعت اختيارول وي.اودلته ترينه د غه دويمه معنى مراد ده.دي وجهې نه ابن عباس ﷺ دلته دَ خائف تفسير داسي كوي من ركب طاعة الله وترک معصيته، "خانف" هغه چاته ويلى كيږي چې الله ﷻ اطاعت اختيار كړي او معصيت او نافرماني پريګدي ليكن دې مطلب دا هرګز نه دې چې هغه به ګناه نه بالكل معصوم وي بلكه ارتكاب دګناه كله كله دَخوف الهي سره جمع كيږي،چه نفس ورباندې غالب شي، دَ ګناه ارتكاب هم اوكړي اودَعقاب دَالله ﷻ نه هم خائف وي. دَ دې تائيد دَهغه حديث نه هم كيږي چه ابودرداءﷺ فرمائي چه نبى كريمﷺ دا آيت ولمن خاف مقام ربه جنتان تلاوت كړو نوماورته عرض اوكړوچه وان زنى وان سرق نو نبى كريمﷺ دويم ځل بيادغه آيت تلاوت كړونومابياعرض اوكړوچه وان زنى وان سرق دريم ځل ئى بيادغه آيت تلاوت كړونوماورته بياعرض اوكړو وان زنى وان سرق نوونى فرمائيل نعم وان رغم انف ابى الدرداء.(ابن كثير)

«مقام»يامصدرميمى دې پمعنى دَقيام سره او مضاف دې فاعل ته،اى ولمن خاف قيامَ ربّه عليه (كشاف،روح)يعنى هغه څوک چه دَ نګرانئ دَالله ﷻ نه اويريږي.چه الله ﷻ ما او ځما احوال وينى،نودَ ګناه جسارت نه كوى،كمافى قوله تعالى:افمن هوقائمٌ على كلِّ نفسٍ بماكسبت.يا«مقام»اسم مكان دې،مراد ورنه مكان دَ وقوف دَخلقودې په ورځ دَقيامت لپاره دَحساب،كماقال تعالى:يومَ يقومُ النّاسُ لرّب العالمين

﴿جَنَّتَانِ﴾دوه باغونه دَجنت،بعضِ وائى تثنيه دَتكراراوكثرت لپاره ده،يعنى دوئ لپاره به قسمه قسمه ډير باغونه وى،ليكن اكثرعلماء وائى تثنيه پخپلې معنى كښې ده، دوه باغونه به وى:(١) يو به دَده وى بل به ئي دَميلمنووى لكه دنياكښ چه دَ كورسره حجره،بيټک وى (٢) يايوبه دَده وى بل به ئي دَ ازواجواو خادمانو وى (٣) يايوبه ئى په محل كښ د ننه وى او بل بهر وى (۴) مقاتل رحمه الله وائى يو به جنتِ عدن وى بل به جنت النعيم وى(۵)بعضِ وائى يو به دَمعصيت دَترک په بدله كښ وى بل به دَطاعت په بدله كښ،يوبه دَعقيده توحيد پوجه بل به دَحسن عمل پوجه،دې نه علاوه نوراقوال هم دى پكښ(روح،قرطبى وغيره). په حديث كښ دَدې دواړوشان داسې راغلې دې چه:انّ عرض كلِّ واحدةٍ منهمامسيرة مائة عامٍ.

﴿ ذَوَاتَآ أَفْنَانٍ ﴾صفت دي د ﴿جَنَّتَانِ ﴾ افنان یا جمع د فنّ ده.هغه شاخونوته وائی چې نری او نرمې وي ،دې کښې اشاره ده کثرت دمیوؤ ته. څکه چه هر ښاخ به د میوؤ نه ډک وی(ابن کثیر) یا﴿ أَفْنَانٍ﴾د فنّ جمع ده.یعنی دادواړه باغونه به مختلف انواعواشجارو اواثمارووالا وی ﴿فِيهِمَا عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ ﴾ددوؤچینونه مرادتسنیم اوسلسبیل دی- تَجْرِيَانِ ﴾مطلب داچه اوبه به ئې نه وچیږی، اودا دوه چینې به دَ هغې انهار اربعهؤنه علاوه وی چه په سورة محمّد (۱۵) کښې ئې ذکر دې

﴿ فِيهِمَا مِن كُلِّ فَـٰكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴾دلته هم تثنیه یادَتکراراودکثرت لپاره ده.چه په دې باغونو کښې به هرقسم بې شماره میوې وی، دَ یوقسم میوې به بې شماره اقسام وی.یاتثنیه پخپلې معنی ده،دوه قسمه میوې به وی،یوقسم به هغه وی چه معروف وی.دنیاکښې به ئې لیدلې وی،بل قسم غیرمعروف.یا یو قسم تازه میوې بل قسم وچې میوې

﴿مُتَّكِـِٔينَ﴾منصوب بناء برحالیت دې ذوالحال ئې یامحذوف دې ای یتنعمون خوندونه او مزې به اخلی په داسې حال کښې چې تکیه به ئې لګولې وي .یا حال دې دَ من نه په ((ولمن خاف)) کښې، جمع راوړلو کښې رعایت دې دَمعنی(روح المعانی)اومراددَاتکاء نه یعنی تکیه لړه ولونه اضطجاع دې ارام کول دی والمراد بالاتکاء ههناالاضطجاع ابن کثیر﴿ عَلَىٰ فُرُشٍۭ بَطَآئِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ ﴾ استبرق غټوریښموته وائی.او بطائن جمع دبطانةٌ ده.دَبسترې د استر یا دَ قالین لاندنی حصې ته وائی کوم چه دزمکې سره لړیدلې وی.مقابل ئې ظهار راخی،چې دا دَ استر یا دَ قالین بالائی طرف ته وائی، نو مطلب دا شوچه دَجنت دَبسترو لاندې طرف به دَ ریښمو وی نو بالائی حصې خو تپوس مه کوه دَسعیدبن جبیرؓنه چاتپوس اوکړوچه بطائن ئې دَ استبرق دی نوظواهربه ئې څنګه وی؟ نو هغه ورته اووې هذا مما قال الله:فلا تعلم نفسٌ ما اخفی لهم من قُرّة اعین(سجده:۱۷).

﴿وَجَنَى ٱلْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴾ جنی مصدر دې، شوکولو ته وائی.اوياصفت مشبه دې به معنی دَمجنيّ سره ،مراد ترینه میوه ده(( دان))د دَنَا ،یدنو نه دې سمعنی قریب.یعنی شوکول د

میوو به بالکل قریب اوآسان وی. دَدي کیفیت روایاتو کښ داسې راځی چې کله جنتی دَ یوې ونې میوې ته اشتهاء اوشی نو الله ﷻ به ورته هغه رانیزدې کړی که جنتی یی په ولاړه شوکول غواړی نو په ولاړه بې هم شوکولې شی. که په ناسته یی شوکول غواړی نو په ناسته یی هم شوکولې شی، اوکه په ملاسته یی شوکول غواړی نو په ملاسته به یی هم شوکولې شی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيهِنَّ | قٰصِرٰتُ | الطَّرْفِ | لَمْ | يَطْمِثْهُنَّ | اِنْسٌ قَبْلَهُمْ |
| پدغه جنتونوکښ به په ناز کتونکې حورې وي ، نه به وی لاس لګولې دوئ ته انسان مخکښ دجنتیانونه | | | | | |
| وَلَا | جَآنٌّ | فَبِاَيِّ | اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۚ كَاَنَّهُنَّ |
| اونه پیری،نوپه کوم یونعمت دنعمتونودَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ،داسې به خکاري ، لکه چې دوئ | | | | | |
| الْيَاقُوتُ | وَالْمَرْجَانُ | فَبِاَيِّ | اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ |
| یاقوت اومرجان وی.نوپه کوم یونعمت دنعمتونودَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ | | | | | |

﴿ فِيهِنَّ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ ﴾ ضمیرپه "فیهن" کښ راجع دې ﴿جَنَّتَان﴾ ته، جمع دَضمیرپه اعتبار دَ وُسعت او کثرت دَاشجارو او مساکنو او نهرونو ده (کبیر) یا ضمیر راجع دې "فرش" ته او "فی" پمعنی دَ "علی" دې کما فی قوله تعالی: فی جذوع النخل" یعنی دی بسترو باندی به دوئ حورو سره ناست وی. او د "علی" په ځائ "فی" راوړلو کښ څو نکاتو طرف ته اشاره ده: (۱) یو نکته دا ده لکه څرنګه مظروف خپل ظرف کښ مستقر او پروت وی نودوئ به هم اکثر په جنت کښ حورو سره په بسترو باندې ناست اوپراته وی.

(۲) بله نکته داده چې لکه څرنګه یو ظرف خپل مظروف باندی احاطه کړی وی، اومظروف پکښ دننه پروت وی ،نو دا بسترې به هم دومره نرمې او پستې وی چې انسان پکښ کینی نو دننه به لاړ شی.

﴿قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ﴾ "قصرات" صفت دې موصوف مقدردې ای ازواجٌ قاصرات الطرف، او دَقصرات الطرف معنی: (۱) یاداده چې قصرن ابصارهنّ علیٰ ازواجهنّ، یعنې بندونکې به وې نظرونه خپل لره په خاوندانوخپلوپورې، بل چاته به نه ګورې، دادَښځې کمال اوعفت دې چې صرف خپل خاوندته ګورې، نو وصف یا مبني دې په ظاهر یا کنایه ده دَ فرطِ محبت نه دَ خپلو

خاوندانو سره.(۲)یامعنی داده چې دکمال حیاء په وجه به سترګې خکته ساتي(۳) یامعنی داده چې دوئ به دخاوندانو نظرونه خکته کونکي وي خپل ځان پورې،دډېرحسن په وجه به خاوندان ئی بل چا ته نه ګوري(۴) او بعض مفسرینو ئی معنی ذابلات الطرف تدللا کړې ده،یعنی ډېر ناز نه سترګې به پټوی را پټوی

﴿لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ﴾یعنی داحورې به باکرې وی-طمث-خروج الدم ته وائی.په دې وجه حیض ته هم طمث وائی اوحائضه ښځې ته طامث وائی،اطلاق ئی په باکرو ښخوسره په جماع باندې کیږی،ځکه چه په دې کښ هم خروج الدّم وی،بعض وائی تعمیم دې پکښ هر قسمه جماع باندې ئی اطلاق کیږی باکرې سره وی اوکه ثیّبه سره.اکثرو اوله معنی مرادکړیده،تعبیرپدې لفظ سره کولوکښ اشاره ده دیته چه دوئ به باکرې وی کله چه هم ورسره خاوندان جماع کوی «روح المعانی»فرّاء وائی چه-طمث-مس ته وائی-ای لم یمسهنّ «قبلهم» کښ ضمیر ازواجو یعني جنتي خاوندانو ته راجع دې.چه﴿ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ﴾ورباندې دلالت کوی.

﴿كَأَنَّهُنَّ ٱلْيَاقُوتُ وَٱلْمَرْجَانُ﴾دې آیت کښ دجنت دحورودحسن صورت بیان دې،چه دحسن سیرت نه ئې ورستوذکرکړو،غالبًااشاره وی دیته چه حسن سیرت اولی اوبهتردې دحُسن صورت نه،په دې آیت کښ تشبیه دحورودجنت دیاقوتُ اومرجانُ سره ورکړې شویده،نوبعض وائی چه دیاقوتوپه شان به صفاوی اودمرجان په شان به سپینی وی،بعض وائی چه مخونه به ئې دیاقوتوپه شان سره وی اوباقی بدن بۀ دمرجانوپه شان صفااوسپین وی،اوچونکه دادوه رنګونه په ښځوکښ داکثروخلقوخوښ وی نوځکه ئی ورسره تشبیه ورکړه،ابن مسعود ﷺ دنبی کریم ﷺ نه نقل کړیدی چه:انّ المرأةَ من نسآء اهلِ الجنّة لَیُریٰ بیاض ساقها من وّرآءسبعین حُلّةً من حریرٍحتّی یُریٰ مخها(ابن کثیر)یعنی دجنّتی حورې دپنډۍ سپین والې به داویاجوړوباوجودښکاری.او مسند احمد په روایت دی چې پردې کښ به هغی مخ دآئینی نه زیات صفا خکاری او دهغی حوري یو ادنی غمی به دومره چمکدار وی چی مشرق اومغرب ټول به روښانه کړی.اوکه په هغې باندې اویا(70)کپړې هم پرتې وی،نو بیا هم هغی پنډۍ به ښکاری.

هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ ﴿۶۰﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۱﴾

نه ده بدله داحسن مګراحسن دي.نوپه کوم يونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تکذيب کوئ

﴿هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ﴾((احسان)) عربي کښې يو کار ښه اومحکمې طريقې سره انجام ته رسولو ته وائي.دلته مراد دَاول ((احسان)) نه "احسان في الطاعة" دې يعنی طاعت بې کمال ته رسولې وي.او دويم ((احسان)) نه مراد "احسان في العطاء" دې يعني کمال طاعت بدله کمال عنايت وعطاء نه سوابل څه کيدې شي،څنې رواياتو نه معلوميږي چې اول احسان نه مرادتوحيددې په دنياکښې اودَدويم احسان نه مرادجنت دې په آخرت اى ماجزآء التوحيد الاَ الجنة.انس رضي الله عنه فرمائي چه قرأرسول الله ﷺ﴿هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ﴾فقال وهل تدرون ما قال ربكم؟ قالوالله ورسوله اعلمُ قال:يقول هل جزاء من انعمتُ عليه بالتوحيد الاَ الجنة (ابن کثير)

وَمِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتٰنِ ﴿۶۲﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۳﴾

او علاوه دَدې دوؤجنتونونه دوه نورجنتونه دی نوپه کوم يونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تکذيب کوئ

مُدْهَآمَّتٰنِ ﴿۶۴﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۵﴾ فِيْهِمَا

تک توربه وي دَډيرشين والي په وجه نوپه کوم يونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تکذيب کوئ په دې دواړو جنتونو کښې به

عَيْنٰنِ نَضَّاخَتٰنِ ﴿۶۶﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۷﴾ فِيْهِمَا

دوه چينې وي جوش وهونکې(فوارې) نوپه کوم يونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تکذيب کوئ په دې دواړوجنتونو کښې به

فَاكِهَةٌ وَّنَخْلٌ وَّرُمَّانٌ ﴿۶۸﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۶۹﴾

ميوې وي اوکجورې به وي اوانار به وي،نوپه کوم يونعمت دنعمتونودرب خپل به تاسو تکذيب کوئ

﴿وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ﴾په دې آياتونو کښې عوامو دپاره بشارت اوهغوئ دپاره دوه جنتونه ذکر کيږي "دون"پمعنی دَادنی او کم سره دې يعنی دادوه (۲)جنتونه به دَاولنی جنتونو

نه په مرتبه کښې کم وی.ای ومن دون تینک الجنتین في المنزلة والقدر جنتان اخریان،روح المعانی،

﴿جَنَّتَانِ ﴾تثنیه دلته هم یا دَ کثرت لپاره ده لکه چه مخکښې تیرشویاپخپله معنٰی ده،

بعض والئی مراد ورنه جنت الفردوس اوجنت الماوی دي.﴿مُدْهَآمَّتَانِ﴾صفت دي د «جَنَّتَان »او د ادهیمام باب نه دَاسم فاعل تثنیه مؤنث ده.دُهمةٌ نه مشتق دي.د ډیرشین والی په وجه رنګ تور والی ته مائل شي هغی ونیلې کیږي.په قرآن مجیدکښې دا یو آیت دي چه کلمه واحده باندې مشتمل دي.

﴿فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ ﴾نضخ اوبوشیندلوته یعنی فوارې ته وائی.ای فوّارتان لاینقطعان ،جلالین،یعنی فوارې په شکل به په جوش اوتیزئ سره را اوزی چی هغې نه به یو حسین منظر جوړ شی

﴿فِيهِمَا فَٰكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ ﴾نخل اورمان عطف دی په «فَٰكِهَةٌ »باندې دمعطوف اومعطوف علیه په مینځ کښې مغایرت وی نومعلومه شوه چه دادواړه په فواکه کښې نه دی داخل. په دې وجه امام ابوحنیفهرحمه الله په دې سره استدلال کوی په عدم حنث دَهغه چاچه هغه قسم اوکړی چه والله لا یاکل فاکهةً او بیا انار یا کجورې أخوری.او دامغایرت دَ دنیاپه میوو کښې دې ځکه چه کجورې کښې غذائیت دې اوانارکښې دواء ده.د آخرت میوې خالص دَ تلذذ لپاره دی.صاحبین په مسئلی مذکورې کښې دَامام صاحبرحمه الله سره مخالف دی.اووائی چه﴿وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ ﴾جدا ذکرکول دَفضیلت اوکثیرالمنافع په وجه دی.اودغه رنګه په عربوکښې به دادواړه په کثرت سره استعمالیدل.

په حدیث کښې دی چه دَیهودیانویوځوکسان نبی کریمﷺ ته راغلل،تپوس ئی ورنه اوکړوچه آیاپه جنت کښې به میوې وی؟نبی کریمﷺاوفرمائیل نعم فاکهةٌ ونخلٌ ورمانٌ.هغوئ اوونیل آیااهل جنت به ئی خوزی لکه په دنیاکښې؟ نبی کریمﷺ اوفرمائیل نعم واضعاف. هغوئ اوونیل نوقضاء حاجت به کوی؟حضورﷺورته اوفرمائیل لاولکنّهم یعرقون ویرشحون

فيذهب الله مافی بطونهم من اذیٰ یعنی خوله به پرې راشی اولګ غوندی به اوبهیګی. اوخیټی نه به ټوله ګندګی ختم شي. (ابن کثیر).

| |
|---|
| فِيْهِنَّ خَيْرٰتٌ حِسَانٌ ﴿٧٠﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧١﴾ حُوْرٌ |
| پدی جنتونو کښې به حوری وی نیکی ښائسته.نوپه کوم یونعمت دَنعمتونو دَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ.حوری به وی |
| مَّقْصُوْرٰتٌ فِي الْخِيَامِ ﴿٧٢﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٣﴾ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ |
| بندې ساتلې شوی په خیمو کښې.نوپه کوم یونعمت دَنعمتونو دَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ.لاس به نه وی لګولې دوئ ته |
| اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴿٧٤﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٥﴾ مُتَّكِـِٕيْنَ |
| انسان مخکښې دَجنتیانو نه اونه پیری.نوپه کوم یونعمت دَنعمتونو دَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ.تکیه لګونکی به وی |
| عَلٰى رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَّعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴿٧٦﴾ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٧﴾ |
| په بالختونو شنوباندې اوپه غالیچو(ګدو)عمدوٰباندی.نوپه کوم یونعمت دَنعمتونو دَرب خپل به تاسو تکذیب کوئ |
| تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴿٧٨﴾ |
| برکت والا دې نوم دَرب دَستاچه خاونددلویئ اودَعزت دې |

﴿ فِيْهِنَّ خَيْرٰتٌ ﴾ ((فیهن)) ضمیر ((جنتان)) ته راجع دې، چونکه هر یو جنت بیا نورو ډیرو جنتونو ته متضمن دې ، نو دې وجهې نه ضمیر دَجمعي ورته راجع کړي شو ، ((خیرات)) جمع دَ "خَیِّرَة" ده. ښه اخلاقو والا حوری ﴿حِسَانٌ﴾ ښکلی صورتونووالا ، ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه ما حضور ﷺ ته عرض اوکړوچه ﴿خَيْرٰتٌ حِسَانٌ﴾ څه معنی ده، اوئي فرمائيل: خيراتُ الاخلاق حسانُ الوجوه ﴿حُوْرٌ﴾ بدل دې دَ ﴿خَيْرٰتٌ حِسَانٌ﴾ نه جمع دَ "حوراءُ" ده، چه سترګو تور ئې ډیر تور وی او سپین ئې ډیرسپین وی سترګی ئې غونډې او نازک نرې بانړه ئې وي

﴿ مَقْصُوْرٰتٌ ﴾ ای مستوراتٌ ﴿فِي الْخِيَامِ﴾ یعنی په خیمو کښې به پټې اومستوری وی، دا دلالت دې دَهغوئ په صیانت باندې، علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه دینه

معلومیږی چه دښځې کمال اووصف،سترپرده ده،دښځواصلی ښائست په کورکښ کیناستل دی، پکارده چه ښځې دملغروپه شان په کورکښ پټې ناستې وی،نه داچه بازارونوکښ لارو کوځو کښ دی گرځی،نن مغربی ممالک دښځودغه قیمتی حقوق ضائع کوی اوبیادعوه هم کوی چه مونږ دَ ښځو حقوق غواړو او د هغې علمبرداران یو.

﴿فِي ٱلۡخِيَامِ﴾مراددَدینه دَهغوئ کورونه اومحلونه دی،په حدیث کښ دَهغې بیان داسې راغلې دې چه ابوموسیٰ اشعری رضي الله عنه فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه:الخیمةُ درةٌ مجوفةٌ طولها فی السّماء ستون میلاً فی کلّ زاویة منهاللمؤمن اهل لایراهم الاخرون یطوف علیهم المؤمن (بخای، مسلم،ترمذی)یعنی داخیمه دَډېږې ملغرې ده،اوږدوالی ئی شپیته(۲۰)میله دې،مؤمن لره به د هغې هر یو طرف ته اهل وی،هغوئ به یوبل نه وینی،دې به په هغوئ چکرلږه وی.اوبل روایت کښ رازی چه دَ دې به دَغمونه جوړی اویا(۷۰) دروازې وی

﴿لَمۡ يَطۡمِثۡهُنَّ إِنسٞ قَبۡلَهُمۡ﴾ای قبل اصحابُ الجنّتین،باقی تفسیرمخکښ تیر شویدې

﴿مُتَّكِـِٔينَ﴾حال دې دَمقدرنه ای یتنعّمون،اوضمیرپکښ اصحاب الجنتین ته راجع دې.﴿عَلَىٰ رَفۡرَفٍ﴾ دَ رَفٌّ نه مشتق دې،بلندئ ته وائی،کومه مرغئ چه په هواکښ اُوچته الوځی هغې ته هم رفرفه وائی،دلته ورنه مراد(۱)بعض وائی چه شنې ریښمی ځادرې دی چه په بسترو یاتکیه گانو باندې اچولې کیږی.(۲)بعضِ وائی بالختونه اوتکیه گانې ورنه مراددی(۳)بعضِ وائی دَ جنّت چمنونه ورنه مراددی.﴿وَعَبۡقَرِيٍّ﴾ابن عباس رضي الله عنه اوقتاده وغیره وائی چې«عبقری» غالیچو ته یعنی گدئ ته وائی،بعضِ وائی چه هرنادراوعمده څیزته وائی،حضور ﷺ دغه لفظ دَحضرت عمر رضي الله عنه باره کښ استعمال کړیدې،فلم اریٰ عبقریًا یفري فَرِیَّه (بخاری،باب فضل عمر) یعنی ماداسې باکمال اوعمده سړې نه دې لیدلې چه دَعمر رضي الله عنه په شان کارکوی، .بعضِ وائی «عبقری» منسوب دې "عبقر" ته،عربو دا گمان وو چه عبقر دَ جناتو ښاردې،نودوئ هر عجیب غریب څیزدیته منسوب کوی،بعض وائی دَ غتو ریښموځادرونوته وائی،وعلی کلّ حال اهل جنت چه کوم ځائ اوسیږی نوهلته به عمده عمده تکیه گانی،بسترې،قالینونه

غوړیدلی وی،نو داد الله ﷻ بی شماره انعامات وی، نو دَ کوم یو نعمت دَرب خپل نه به تاسو انکار کوئ.

دلته پوري دَعوامو جنت بیان پوره شو ،دَخواصو او عوامو په جنت کښ یو څو واضع فرقونه ذکرشو:

(۱)خواصو جنت کښ په ونی او میوی ډیرې وی،څکه چه د هغی صفت ((ذواتا افنان)) راغلې دی.او عوامو جنت کښ به واړه بوټی ډیر وی څکه چی صفت (( مدهٰمتان))راغلې دې.

(۲)دهغې چینو صفت جری راغلیدې چی بهیږی به اودَدي چینو صفت نضخ راغلیدې چې جوش به وهی،اوفوار به پریدی

(۳)د هغې هرې میوې جوړه ذکر دې،((من کل فاکهة زوجان))دیکښ دهغې ذکر نشته.

(۴) هلته چې دَحوروکوم اوصاف بیان شویدی دلته هغه ټول اوصاف نشته.

﴿تَبَٰرَكَ ٱسۡمُ رَبِّكَ ذِي ٱلۡجَلَٰلِ وَٱلۡإِكۡرَامِ﴾داپه آخرکښ دعوه دَسورة ذکرکیږی چه دانعمتونه دَجنت به هغه چاته ملاویږی چه دعوت دَرب ئی اومنلوچه الله ﷻ نه سوی څوک کارساز نشته،برکت هم دَهغه په نوم کښ دې اوهغه خاوند دَفضل تام اواعطاء تام دې،اللّهم ارزقناها بفضلکَ وجودکَ وکرمکَ یاارحم الرّاحمین یاذاالجلال الاکرام،واغفرلنا ولوالدینا واساتذنا وازواجنا وذریّاتناوجمیع امّة محمّدﷺ.آمین.

هرکه خوانَد دُعاطمع دارم زان‌که من گنهگارم
صرفتُ العمرفی لهو ولعب فـآهـاثـمّ آهـاثُـمّ آها

| ركوعاتها (٣) | سورة الواقعة مكية | آياتها (٩٦) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٥٦) وحسب النزول (٤٦)**

نزلت بعدطٰه قبل الشعراء

**ربط** : (١) پدی سورة کښ توحيد دَماقبل سورة نه علی سبيل الترقی بيانيږی، ماقبل سورة رحمٰن. کښ داوؤچه﴿تَبَٰرَكَ ٱسۡمُ رَبِّكَ ذِي ٱلۡجَلَٰلِ وَٱلۡإِكۡرَامِ﴾يعنی برکت والانوم صرف دَالله ﷻ دې او هغه برکات ورکونکې دې، نوهرکله چه برکات خاص دَباری تعالی په اسم کښ دی نو دی سورت کښ دی﴿فَسَبِّحۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلۡعَظِيمِ﴾يعنی الله ﷻ پدغه صفت کښ دَشريکانو نه پاک اوګڼړئ.

(٢)ماقبل سورت کښ دَخواصو مؤمنانو اوعامو مؤمنانو دَ جنت فرق بيان شوې وؤ. دې سورت کښ په تفصيل سره دَمکلفينو اقسام اواحوال بيانيږی.

**فضيلت**:ابن مسعود ﷺ فرمائی چه:سمعتُ رسول الله ﷺ يقول:من قرأسورة الواقعة كلّ ليلةٍ لم تُصبه الفاقةُ ابداً، ابن عساکردَابن عباس ﷺ نه دَدې په مثل مرفوعًاروايت نقل کړيدې، اوابن مردويه دَانس ﷺ نه نقل کړيدی چه حضور ﷺ فرمائی:سورة الواقعةُ سورة الغنٰی فاقرؤها وعلّموها اولادكم، روايت دې چه عثمان ﷺ دَعبدالله بن مسعود ﷺ بيمارپُرسئ ته لاړو، هغه په مرض الوفات کښ وؤ، عثمان ﷺ ورته اووئيل څه تکليف دې تاته، هغه ورته اووئيل دَ خپلو ګناهونو، عثمان ﷺ ورته اووئيل چه خواهش دې څه دې، هغه ورته اووئيل دَالله ﷻ رحم، عثمان ﷺ ورته اووئيل آياطبيب درله رااوغواړم هغه ورته اووئيل طبيب خو څه بيمار کړې يمه، عثمان ﷺ ورته اووئيل آيادَبيت المال نه درته څه عطيّه راوليږم، هغه ورته اووئيل ماته ضرورت نشته، عثمان ﷺ ورته اووئيل چه ستانه ورستوبه ستابچوله به پکارراشی هغه ورته اووئيل آياته څماپه بچوباندې دَفقرخطره کوې، ماهغوئ ته امرکړيدې چه هرشپه سورة الواقعه لولئ، مادَحضور ﷺ نه اوريدلی دی:من قرأسورة الواقعة لم تصبه الفاقة ابدا(ابن کثير).

## دسورة دَمضامينو اجمالي خلاصه

ابتداء کښې تمهيد دي چه پکښې احوال دَقيامت دي.بيادَدريوُجماعتونو ذکردي، دَهغوئ احوال اونتيجه بطورِ لف نشرغيرمرتب،درميان کښې په توحيد څلوردلائل، بياعظمت دَقرآن،په آخرکښې دَسورة دعوه.

## تفصيلي خلاصه

﴿ إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴾آيت(١)نه ترآيت(٢)پورې تمهيد دي احوال دَقيامت پکښې ذکرکيږي

﴿ وَكُنتُمْ أَزْوَاجًا ثَلَاثَةً ﴾آيت(٧)نه ترآيت (١٠) پورې دَدرې جماعتونويعنی اصحاب الميمنه،اصحاب المشئمه،السابقون اجمالي ذکردي.

﴿أُولَٰئِكَ الْمُقَرَّبُونَ﴾ آيت(١١)نه ترآيت(٢٢)پورې دَ"السابقون"دَاحوالوبيان دي،بطريق لف نشرغيرمرتب.

﴿ وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ ﴾آيت(٢٧)نه ترآيت(٤٠)پورې،دَاول جماعت يعنی اصحاب الميمنه دَاحوالُ بيان دي

﴿وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ﴾آيت(٤١)نه ترآيت(٥٢)پورې دَدويم فريق يعنی اصحاب المشئمه دَاحوالوبيان دي.

﴿نَحْنُ خَلَقْنَاكُمْ ﴾آيت(٥٧)نه ترآيت(٢٢)پورې اول دليل عقلي دي په توحيد او په بعث

﴿أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ﴾آيت(٢٣)نه ترآيت(٢٧)پورې دويم دليل دي.

﴿أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ﴾آيت(٢٨)نه ترآيت(٧٠)پورې دريم دليل عقلي دي په توحيد

﴿أَفَرَأَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ﴾آيت(٧١)نه ترآيت(٧٣)پورې څلور دليل عقلي دي.

﴿ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴾آيت(٧٤)دلائلُ نه بعددعویٰ دَسورة ذکرده.

﴿ فَلَآ أُقۡسِمُ بِمَوَٰقِعِ ٱلنُّجُومِ ﴾آيت«۷۵»نه آيت«۸۲»پورې دقرآن دعظمت بيان دې

﴿ فَلَوۡلَآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلۡحُلۡقُومَ ﴾نه ترآيت«۸۷» پورې زجردې منكرينودقيامت ته. بياترآيت«۹۵»پورې ددرې واړوجماعتونو داحوالواعاده ده

﴿فَسَبِّحۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلۡعَظِيمِ﴾آيت«۹۶»په آخركښې دسورة ددعوې اعاده ده

**تمت خلاصة السورة اجمالأوتفصيلاً**

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | وَقَعَتِ | الْوَاقِعَةُ | ① | لَيْسَ | لِوَقْعَتِهَا | كَاذِبَةٌ | ② | خَافِضَةٌ |
| كله چه واقع شى واقع كيدونكې«قيامت»نشته په واقع كيدو د هغى كښې دروغ. ښكته«ذليله»كونكې دې. | | | | | | | | |
| رَّافِعَةٌ | ③ | إِذَا | رُجَّتِ | الْأَرْضُ | رَجًّا | ④ | وَبُسَّتِ | |
| پورته كونكې دې. كله چه اوخوځولې شى زمكه په سختوخوځولوسره.اوريزه ريزه كړې شى | | | | | | | | |
| الْجِبَالُ | بَسًّا | ⑤ | فَكَانَتْ | هَبَاءً | مُّنۢبَثًّا | ⑥ | | |
| غرونه | په ريزه | ريزه | كولوسره،نوشى | به | داغرونه | دوړه | خوره | |

﴿إِذَا وَقَعَتِ ٱلۡوَاقِعَةُ ﴾دې آياتونوكښې د"ازواجًاثلثة" داحوالودبيان دپاره تمهيددې،چه كله قيامت قائم شى نوپه دغه وخت به ټول خلق به په درې جماعتونوكښې تقسيم شى،اصحابُ الميمنه،اصحابُ المشئمه،مقرّبين،ورستوآياتونوكښې بيادَدې درې واړوجماعتونوتفصيلى احوال ذكركيږى.«اذا»په باره كښې راجح قول دا دې دا دلته تهويل دپاره راغليدې،په دې سره دلته دقيامت حادثې هولناكۍ اوخوفناكۍ طرف ته اشاره ده،او ظرف «يعنى اذا اواذ» چې كله تهويل دپاره راشې نواصح او بې تكلفه قول دادې چې بيا دې دپاره نه دعامل تلاش كولوضرورت شته او نه ورله دجواب لټولو ضرورت شته ﴿ٱلۡوَاقِعَةُ ﴾ واقعه معنى ده واقع كيدونكې دا دقيامت په نومونوكښې يونوم دې،قيامت په دې نوم سره ځكه مسمّى شوچه هغه به لامحاله واقع كيږى«ابن كثير».

﴿لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ﴾وقعة يوغتٍ امر واقع كيدلوته وائی «كاذبة» مصدر دي په وزن داسم فاعل ،يعنی دي واقع كيدوكښې هيڅ دروغ نشه ، دابه په رښتيا واقع كيږی.يا« كاذبة» صيغه داسم فاعل ده اوصفت دي دپاره دموصوف محذوف . اي نفس كاذبة. دې صورت كښې لام په «لوقعتها» كښې دتوقيت دپاره دي يعنی اوس خو لګيايئ اودروغ وايئ چې قيامت نشته اودوباره ژوندي كيدل نشته،خوچي واقع شي نو بيابه څوک هم داخبري نشی كولي

﴿خَافِضَةٌ ﴾خبردي دمبتدا محذوف ای هی خافضةٌ للكافرين،يعنی كافرانولره ذليله كونكی ورځ ده چه جهنم ته به غورځيږی.﴿رَّافِعَةٌ ﴾خبربعدخبردي.ای رافعةٌ للمؤمنين، مؤمنانو لره عزت وركونكی ده چه جنت ته به داخليږی.

﴿ إِذَا رُجَّتِ ٱلْأَرْضُ ﴾بدل دي د﴿إِذَا وَقَعَتِ ٱلْوَاقِعَةُ ﴾نه،"رج"خوځولو ته وائي يعنی ځمكه به دومره سخته اوخوځولي شی چی څه هم په مخ دځمكي وی هغه به ټول راغوزار شی

﴿وَبُسَّتِ ٱلْجِبَالُ بَسًّا ﴾يعنی غرونه ريزه ريزه شی،ای فتتتْ فتًّا،بعض وایئ معنی داده چه يوړلي به شی دځپلوځايونونه،كقوله تعالی:وسُيِّرتِ الجبالُ فكانت سرابًا.﴿فَكَانَتْ هَبَآءً ﴾ ای غباراً﴿مُّنۢبَثًّا ﴾ای منتشراً.

| |
|---|
| وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ۞ فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۞ |
| اوشئ به تاسو ډلي دری، پس ښی طرف والا، څومره خه حال به وی دښي طرف والؤ، |
| وَاَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ۞ وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ۞ |
| اوګس طرف والا،څومره بد حال به وی د ګس طرف والؤ. او ړومبی كيدونكی خو ړومبی كيدونكی دی |

﴿ وَكُنتُمْ أَزْوَٰجًا ثَلَٰثَةً ﴾تمهيدنه بعددذدري(۳)جماعتونو اجمالی ذكردي چه كله قيامت قائم شی نوخلق به دري قسمه شی(۱)اصحاب الميمنه(۲)اصحابُ المشئمه(۳)السابقون.

﴿فَأَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ﴾" الميمنة"معنى ښي طرف او " المشئمة"معنى ګس طرف ده ښي طرف والا نه مراد جنتيان اوګس طرف والا نه مراد جهنميان دی چونکه اهل عرب دښي طرف نه نيک فالی اوګس طرف نه بدشګونی اخلی نوځکه ورته «اصحب الميمنة» او «اصحب المشئمة» اويلې شو،يا چونکه جنتيانو ته به اعمال نامې په ښی لاس کښی او جهنميانو ته به ګس لاس کښی ميلاويږی نو دې وجهې نه جنتيانو ته «اصحٰب الميمنة» اوجهنميانو ته «اصحٰب المشئمة» اويلې شوَياچونکه جنتيان به جنت او عرش الهی ښې طرف ته اوجهنميان په ګس طرف اولاړ وی نوځکه ورته «اصحٰب الميمنة» او «اصحٰب المشئمة» اوويلی شو.

يا«الميمنة» نه دَ "يُمن"بمعنی خوش بختی او برکت‌او «المشئمة» دَ"شؤم" «بمعنی بدبختی » نه ماخوذ دې، نو«اصحٰب الميمنة» نه مراد خوش بخت خلق «جنتيان» دي او «اصحٰب المشئمة» نه مراد بدبخته اوسپيره دی.

«اصحٰب الميمنة» مبتدا دې «مااصحٰب الميمنة»مبتدا سره دَ خبر نه پوره جمله خبر واقع کيږی د اول مبتدا دَپاره،يا «اصحٰب الميمنة» خبر دې مبتدا محذوف احدها دَ پاره.يعنی هغه دری ډلو کښی اوله ډله اصحب الميمنة ده او ما اصحٰب الميمنه پوره جمله انشائيه مقول في حقهم‌په تاويل ورله صفت واقع شوي ده ،هم دهغه دوه صورتونه په «واصحب المشئمة»کښی جاري کيږی،خودلته به دويم‌صورت کښی مبتدا ثانيها وی.

﴿وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلسَّٰبِقُونَ﴾داددريم جماعت بيان دې،يعنی ړومبي کيدنکي خو ړومبي کيدونکي دی، دا تعبير دَهغوئ عظمت شان اوفضل باندی دلالت کوی،لکه پښتو کښی وائی:څه خوځه يم ، يا ته خو ته يې،مطلب دا چې دَسابقينو اوخيرکارونو کښی ړومبی کيدونکی څه تپوس کوئ،هغوئ خو بس هغوئ دی،دَهغوئ درجی الله ﷻ ته معلومې دی.او « السابقون» نه نيکئ کارونوکښی سبقت کونکی مراد دی خواه که هغه ايمان دې يا اعمال صالحه دی يا توبه ده،خلاصه دا چی دَشريعت هرحکم ته غاړه ايښودنکی وی اوپه اول وهله کښی بغير چوچرا نه ، تسليم کيږي.

دَدی جملې ترکيب کښی هم دوه احتماله دی،يو دا چې اول «السابقون» مبتدا او دويم «السابقون» ورله خبر،يااول «السابقون» خبردې،دَ ثالثها مبتدا محذوف دپارهَ،اودويم ورله صفت دې.

أُولَٰٓئِكَ الْمُقَرَّبُونَ ﴿١١﴾ فِي جَنَّٰتِ النَّعِيمِ ﴿١٢﴾

هم دوئ نژدې کړې شویدی الله جل جلاله ته. دوئ به په جنتونو د نعمتونو کښې وي

ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٣﴾ وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ﴿١٤﴾ عَلَىٰ سُرُرٍ

لویه ډله به وی د ړومبو خلقونه، او لږ خلق به وی د ورستنو نه (ناست به وی دوئ) په تختونو

مَّوْضُونَةٍ ﴿١٥﴾ مُّتَّكِـِٔينَ عَلَيْهَا مُتَقَٰبِلِينَ ﴿١٦﴾ يَطُوفُ

په سرو زرو اودلو شوو باندی، تکیه لګوونکی به وی په هغو تختونو باندی، یو بل نه مخامخ به وی. ګرځی راګرځي به

عَلَيْهِمْ وِلْدَٰنٌ مُّخَلَّدُونَ ﴿١٧﴾ بِأَكْوَابٍ وَأَبَارِيقَ وَكَأْسٍ

په دوئ لپاره د خدمت هلکان همیشه به هلکان وی، په ګلاسونو سره او په کوزو سره، او په کاسو د کوسر

مِّن مَّعِينٍ ﴿١٨﴾ لَّا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا وَلَا يُنزِفُونَ ﴿١٩﴾ وَفَٰكِهَةٍ

د بهیدونکو شرابونه نه به سر خوږیږي شی د دوئ د هغی شرابونه او نه به بیخوده (بیهوشه) کیږی. او په میوو سره

مِّمَّا يَتَخَيَّرُونَ ﴿٢٠﴾ وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ ﴿٢١﴾

د هغی قسمونو نه چه دوئ ئې خوښه وی. او په غوښو د مرغانو سره د هغی قسمونو نه چه د دوئ ورته زړه کیږی.

وَحُورٌ عِينٌ ﴿٢٢﴾ كَأَمْثَٰلِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ ﴿٢٣﴾ جَزَآءً

او دوئ لپاره به حورې وی غټو سترګو والا، پشان د ملغرو پټو ساتلو شوو په غلافونو کښې. بدله ورکیدیشی دوئ ته

بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٢٤﴾ لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا ﴿٢٥﴾ إِلَّا

په مطابق د هغه عملونو چه دوئ به کول. نه به آوری دوئ په جنت کښې عبث خبرې او نه د ګناه خبرې، مګر

قِيلًا سَلَٰمًا سَلَٰمًا ﴿٢٦﴾

داخبره چه سلام دې سلام دې.

﴿أُولَٰٓئِكَ ٱلْمُقَرَّبُونَ﴾دی ځائی نه دَدری واړو جماعتونو احوال بیانیږی بطور لف نشر غیر مرتب،داد **سابقینو حالت بیان دي**،«اولئک» کښ اشاره "السابقون" ته ده.«المقربون» دا ئي **اول حالت** بیان دي یعنی دوئ ته به جنت کښ دَعام جنتیانو په نسبت زیات قرب الهی نصیب وی.﴿فِي جَنَّٰتِ﴾جار مجرور «المقربون» سره متعلق دي

﴿ ثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾خبر دَ مبتدامقدردي،ای هم ثلةٌ. ثُلة په ضمي سره دَانسانانوجماعت ته وائی اوپه فتحې سره دَ ګډو بیزو رمې ته وائی،مطلب دادې چه سابقینو کښ به کثیر تعداد دَ "اولینو"وی اولګ غونډې تعداد به د آخرینو وی«الاولین» او «الآخرین» نه څوک مراد دي؟ دې باره کښ متعدد اقوال راغلی دی:

(۱)دَ "الاوّلین" نه مراددآدم عليه السلام نه ترنبی کریم ﷺ پورې چه څومره امتونه تیرشویدی **هغه** مراد دی."الاخرین" نه دَنبی کریم ﷺ نه ترقیامت پورې خلق مراددی

لیکن په **دې توجیه باندې اشکال** دې چه داخو دَ امم سابقۀوفضیلت راغې په دې اُمت باندې،ځکه چه دینه معلومیږی چه دې امت کښ به دَسابقینومقربینوتعداد کم وی مخکنی امتونو کښ به ډیروی،حالانکه دا دَ قرآن دَ نصوصولکه"کنتم خیرامّةٍ اخرجت... ولتکونوا شهداءعلی الناس...نه خلاف ده اودغه شان په ډیرواحادیثوکښ هم دَدې امت فضیلت په مخکښنو امتونوباندې راغلې دې.

**جواب دا دې** چه دَ اُمم سابقۀو فضیلت نه دې راغلې ځکه چه: (۱)مخکښ امتونو کښ دَ سابقینو کثرت اودَدې امت سابقینو قلت صرف تعداد سره دې.چونکه هغوئ ته زمانه زیاته میلاؤ ده نو ځکه دَهغوئ سابقینو تعداد به هم زیادت وي او دې امت ته زمانه کم میلاؤ ده نو دې وجهې نه یی دَسابقینو تعداد هم کمٔ دي،لیکن تعداد نه قطع نظر زماني اعتبار اوشی او دَ زماني نسبت سره شمار اوشی نو بیا به دَدې امت سابقین زیات وی.دې مثال داسی واخلئ لکه یو مصنف پنځه کاله کښ پنځه کتابونه اولیکې،اوبل مصنف په دری کاله کښ څلور کتابونه اولیکې،نو که نفس تعداد ته اوګورو نو دَ اول مصنف کتابونه زیات دی لیکن که زماني تناسب سره حساب اولګوو نودویم تعداد زیات دې.(۲)بل داچي دَسابقینو تعداد زیاتوالی دَوجهی نه نفس فضیلت کښ کمي نه راځې ،ځکه چې دَدې امت فضیلت کثرت

متبعینو په اعتبار سره دي(۳) بل داچي په هغوئ کښ انبیاء دهغوئ هم داخل دی.نوکثرت دهغوئ دوجه دانبیاؤنه دي.

(۲) دویم قول دادي چه «الاولین» او «الآخرین» دواړه ددې اُمت دی. اولین نه مراد ددې امت قرون اولی یعنی صحابه رضی الله عنهم تابعین وغیره دی ، په حدیث کښ ورته هم خیرالقرون وئیلي شوي دی، اود آخرین نه قرون اولی نه ورستو خلق مراد دي.نو مطلب دا شو چه امت محمدیه علی صاحبها الف الف سلام وتحیة کښ چه کومو خلقو ته دسابقینو مقربینو مرتبه حاصله وی نو اکثر به پکښ دقرونِ اولی خلق وی،اوقرونِ اولی نه ورستوبه ډیرکم خوش قسمته داسې وی چه دامرتبه به ورته حاصله وی .اکثرومفسرینولکه ابو حیان ، ابن کثیر،قرطبی،آلوسي وغیره دې قول ته ترجیح ورکړیده،صاحب دروح المعانی ددې قول په تائیدکښ یوحدیث مرفوع هم ذکرکړیدي چه حضور ﷺ فرمائی چه هما جمیعًامن هٰذہِ الامة یعنی دادواړه جماعتونه ددې امت نه دی،ددې قول په بناء﴿ وَكُنتُمْ أَزْوَاجًا ثَلَاثَةً ﴾کښ خطاب فقط دې امت ته دي.

(۳) دریم قول دادي چه اولین او آخرین دهرامت مراد دی،شک نشته پدې کښ چه اول دهر امت غوره وی داخردهغې نه(والله اعلم).

﴿عَلَىٰ سُرُرٍ﴾ دویم حالت بیان دې،یعنی خپلو دوستانو سره به گپ شپ موقع میلاویږی، او د هغی انتظام به داسی شوې وی،چی دوئ به د سرو زور پرونه جوړ کټونو باندې تکیه وهلي یو بل به ته مخامخ ناست وی،دجنت خائسته اوسدابهار هلکان به یی په خدمت باندې مامور وی، پاکیزه شرابو دور به چلیږی،عمده او لذیذ میوې به ورته پیش کیږی ،اوخوراک کښي به ورته مرغیو غوښه وی.

«سرر» جمع دسریرده، مراد ورنه تختونه،پالنگونه دي ، او جار او مجرور متعلق دی کائنون پوري ﴿مَّوْضُونَةٍ﴾ای منسوجة بالذهب،د وضن نه مأخوذ دي، اودلو ته وائی،یعنی جنتیان به په داسې تختونوناست وی چه پرې به ئی د سرو زرو وی،یا﴿مَّوْضُونَةٍ﴾ پمعنی د مصفوفة دي،عکرمه رحمه الله وائی مشبکة بالدرر و الیاقوت یعنی یاقوت او ملغلرې به په کښې لگولې شوې وي. ﴿مُّتَّكِئِينَ﴾او﴿مُتَقَابِلِينَ﴾دواړه حال واقع کیږی د «علی سرر» متعلق ضمیر نه ،یعنی جنتیان په کټونو ناست وی،تکیه به یی وهلی وی ،او یوبل ته به مخامخ وی

چا به چا ته شا او سټ نه وی ﴿وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ﴾ مخلدون دَ خلود نه دي يعنى هلک والی صفت به يې هميشه وی يا خلدة نه دي، خلده دَ غوږونو واليو يو خاص قسم دې، يعنى غوږونو کښې به ئې والۍ وي.

﴿بِأَكْوَابٍ﴾ متعلق دي دَ ﴿يَطُوفُ عَلَيْهِمْ﴾ سره، اکواب جمع دَ کوب ده آنيةٌ لاعرا لها و لا خراطيم (روح المعانی) يعنى دَشرابو څکلو هغه لوخي چه نه ئې مخوکې وی او نه ئې کنډې وی، ترجمه ئې په ګلاس سره مناسبه ده ﴿وَأَبَارِيقَ﴾ جمع دَ ابريق ده، هغه لوخي دَ شرابو چه مخوکه ئې هم وی کنډه ئې هم وی، لکه کوزه، ﴿وَكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ﴾ يعنى ډکې کاسى دَ جاری شرابو ﴿ لَّا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا ﴾ عن سببيه دي ای عن سببها، دَصداع نه مأخوذ دي ، سر دردته وائی چه دَ شرابو دَ نشې په وجه وی ، يعنى دَجنت په شرابو کښې به سردردی نه وی په خلاف دَ شرابو دَ دنيا نه يا دَ صدع نه ماخوذ دي، صدع جدا ولې او ټکړې کولوته وائی، يعنى هغه به داسى شراب وی چې هغى لذت به په هيڅ څه سره هم جنتيانو دَخلې نه ، نه ختميږی ﴿وَلَا يُنزِفُونَ ﴾ دَ نزف نه مأخوذ دي ، خاصه لزوم پکښې ده، دَعقل هغه فتورته وائی چه دَشرابو دَنشې په وجه وی.

﴿وَفَاكِهَةٍ ﴾ او ورستو ﴿وَلَحْمِ﴾ دواړه عطف دی په ﴿ بِأَكْوَابٍ ﴾ يعنى داهلکان به په جنتيانو ميوې او غوښې دَ مرغو ګرځوی، جنتيان اګرچه دَدوئ دَدې خدمت نه به مستغنى وی، ليکن دا به دَدوئ اکرام، تعظيم وی او دَدوئ سره دَمحبت اظهاربه وی.

﴿ وَلَحْمِ طَيْرٍ﴾ دَ مرغو دَ غوښو ذکر ئې څکه اوکړو چه داپه ټولو غوښوکښې زياته لذيذه وی، او په تقديم دَ ﴿وَفَاكِهَةٍ﴾ په ﴿وَلَحْمِ﴾ کښې اشاره ده ديته چه خوراک دَاهلِ جنت به دَلوږې دَوجې نه، نه وی، څکه چې وږې انسان دَميوې په ځائ لحم ته زياته ترجيح ورکوی، او احتياج ئې ورته زيات وی، او موړسړې فاکهى ته زياته ترجيح ورکوی.

﴿وَحُورٌ عِينٌ﴾ ای لهم حور، دَ سابقينو دريم حالت بيان دې، يعنى جنسى تسکين دَپاره به ورله الله ﷻ حورې مهيا کړې وی، غټوغټو سترګو والا به وی، دَ خيرې او آلودګۍ نه محفوظ، پر قيدونکى غمى په شان به باعفته او حسن دارې وي، دَخائست حالت به ئې دا وی چه انسان عقل به ورته حيران شی حُورٌ جمع دَحوراء ده، لانه يُحارُفيه العيون ﴿ عِينٌ ﴾ جمع دَ

"عيناً" ده، غټو سترګو والا، ﴿ كَأَمْثَلِ ٱللُّؤْلُؤِ ٱلْمَكْنُونِ ﴾ يعنى په حفاظت او په صفائى كښې داسې دى لكه محفوظه ملغلره چه په سيپئ كښې پرته وى ، دَ چا لاسونه ورته نه وى لږيدلى ﴿ جَزَآءٌۢ ﴾ يا مفعول له دې، اى يُفعل بهم ذالكَ كله جزآءً . يامفعول مطلق دې اى يُجزون جزاءً (روح المعانى، جلالين).

﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا ﴾ دا يى بل حالت بيان دې، يعنى تكميل راحت او تسكين دَپاره به ورته الله ﷻ كير چاپيره ماحول هم خه وركړې وي ،چې نه به فضول بكواس وي او نه د ګناه خبرې ، بلكه هر طرف نه به سلام سلام آوازونه وي ،چې سلامتي ده ،هيڅ پريشاني نشته ، دا هم يو لوئ نعمت دې چه انسان په غوږونو باندې دَ خپل مزاج مطابق خبرې آورى ، كني عمده عمده خوراكونه بياهيڅ فائده نه وركوى، پښتو كښې متل دې چه "انسان دَ غوږونو دَ طرفه ځورب كيږى ځاروي دَخولې دَطرفه" ﴿وَلَا تَأْثِيمًا ﴾نه دګناه خبرې: غيبت ، دروغو ، كنځلو ټولو د ګناه خبرو ته شامل دي . ﴿ إِلَّا قِيلًا ﴾اى قولاًمستثني منقطع ده "﴿سَلَٰمًا سَلَٰمًا ﴾دي كښې درې معروف احتماله دى:

(١)دابدل دې "قيلا" نه دَدى تائيد دى آيت نه هم كيږى: لا يسمعون فيها لغواً الا سلاما (مريم٦٢)

(٢)سلاما دَ سالماً په تاويل كښې صفت دې دَ"قيلا" اي قولا سالما من هذه العيوب

(٣)سلماً مفعول به دې دَقيلا دَپاره ،يعنى صرف داوينا به وى چې سلاما سلاما .

| |
|---|
| وَأَصْحَٰبُ ٱلْيَمِينِ ۚ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْيَمِينِ ﴿٢٧﴾ فِى سِدْرٍ مَّخْضُودٍ ﴿٢٨﴾ وَطَلْحٍ |
| او ښي طرف والا،څه ښه حال به وى دَ ښي طرف والؤ. (وي به دوئ ) بې د ازغو بيرو كښې .او كيلو |
| مَّنضُودٍ ﴿٢٩﴾ وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ ﴿٣٠﴾ وَمَآءٍ مَّسْكُوبٍ ﴿٣١﴾ وَفَٰكِهَةٍ |
| لاندې باندې كښې .اوپه اوږد سورى كښې، او په اوبو بهيدونكو كښې او په ميوو |
| كَثِيرَةٍ ﴿٣٢﴾ لَّا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ ﴿٣٣﴾ وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ ﴿٣٤﴾ |
| ډيرو كښې .چه نه به ختميږى (هروخت به وى)اونه به ترينه منع كولې شى او په اوچتو بسترو كښې |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ | إِنشَآءً ۝ | فَجَعَلْنَٰهُنَّ | أَبْكَارًا ۝ | عُرُبًا | | |
| بیشکه مونږپیداکړیدی حورې په جداقسم پیداکولوسره.پس ګرځولي دي مونږدوئ باکرې. عاشقانې په جنیانو | | | | | | |
| أَتْرَابًا ۝ | لِّأَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ ۝ | ثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ ۝ | وَثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْءَاخِرِينَ ۝ | | | |
| همزولې لپاره دَ ښي طرف والؤو ډله به وی دَ ړومبو خلقو نه . او ډله به وی دَ ورستنو خلقو نه . | | | | | | |

﴿ وَأَصْحَٰبُ ٱلْيَمِينِ ﴾پدیکښ **دَدویم جماعت دَاحوالو** اوانعاماتوبیان دې،اصحاب الیمین وجه تسمیه په تفسیردَ﴿ فَأَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ ﴾کښ تیره شویده،صرف دَتفنّن په وجه ورنه هلته تعبیرپه اصحابُ المیمنة سره اوشواودلته ورنه په اصحاب الیمین سره،

﴿ فِى سِدْرٍ مَّخْضُودٍ ﴾ دا دَ **اصحٰب الیمن اول حالت** بیان دې یعنی جنت کښ به کثیر تعداد سره ګنړې اوغټې غټې ونې وی ،سورې به یې لرې لرې پورې خور وی.اوبه، به پکښ مینځ کښ روانې بهیږی،چې دا به حسین منظر پیش کوي. ﴿مَّخْضُودٍ﴾الخضدُ نه مأخوذدې،ازغی قطع کول ﴿مَّخْضُودٍ﴾ ای قُطع شوکه،روح المعانی په حواله دَحاکم اوبیهقی دَابو اُمامه﷛نقل کړي ذی چه هغه فرمائی چه صحابه﷡ فرمائی چه بیشکه الله﷯مونږته دَاعرابو(باندچیانو) دَ سوالونو په وجه ډیرنفع راکړي ده. یواعرابی یوځل راغې عرض ئی اوکړویارسولَ الله! په قرآن مجید کښ الله﷯ دَ یوې داسې ونې ذکرکړیدې چه هغه ایذاء رسونکی ده،حالانکه څه دا ګمان نه کوم چه په جنّت کښ دې داسې ونه وی چه چاته تکلیف اُورسوی،نبی کریمﷺورنه تپوس اوکړوچه هغه کومه اونه ده،عرض ئی اوکړو دَ بیرې اونه ده،نوحضورﷺورته او فرمائیل : "الیسَ اللّٰهُ یقولُ فی سدرٍ مخضودٍ"الله﷯دَ هغې ازغی قطع کړیدی او دَ هرازغی په ځائ ئی دَ بیرې دانې پیداکړیدی اوپه هرې دانې کښ به دوه اویا(۷۲)خوندونه وی، هر یو خوند به دَ بل نه جدا وی.

بعضودَ﴿مَّخْضُودٍ﴾معنٰی داکړیده چه شاخونه به ئی دکثرت دَدانوپه وجه خکته شوی وی،

﴿ وَطَلْحٍ ﴾ دَ كيلې اونې ته وائی﴿ مَّنضُودٍ ﴾ نضدنه دی،نضد لاندې باندې په ترتيب سره يوشی لګولو ته وائی مطلب دا چې ويخ نه ترسره پورې به دکيلونه ډکې وی تنه به ئې نه ښکاری،په خلاف دَدنيانه چه کيلې دَاونی په سرکښې وی فقط

﴿ وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ ﴾ امتداديامکانی دې،يعنی ډير لرې پورې به يې سورې خوروی لکه په حديث کښې دی،دَابی هريرهؓنه روايت دې چه حضورﷺفرمائی:انّ فی الجنۃ شجرۃً يسيرالراکبُ فی ظلّهامائة عامٍ لايقطعهااقرؤا ان شئتم وظلّ ممدود.يعنی په جنت کښې داسې اونه ده چه سوار سړې دَهغې په سوری کښې سل(۱۰۰)کاله مزل اوکړی بيابه هم آخرته ئې اونه رسيږی(بخاری،مسلم وغيرهما) ياامتداد زمانی دې يعنی هميشه به وی دغه سوری،په نمر سره به نه ختميږی.

﴿ وَمَآءٍ مَّسْكُوبٍ ﴾ سبک:بهيدلوته وائی،ای جارٍ من غير اخاديد،يعنی روانی اوبه به وی، په کندو يا کوهيانوکښې به نه وی،رسئ اوبوقوته به محتاج نه وی.

﴿ وَفَٰكِهَةٍ كَثِيرَةٍ ﴾چې الله ﷻ به ورته ډيرې ميوې عطاءکړی،اوداسی باغات به ورله ورکړی چې هغی ميوۀ باندې به نه زوال راځی لکه دنيا باغونه .چې موسم تير شی بيا پکښې ميوه نه وی او نه به يې شوکولو کښې څه تکليف اوممانعت وی."کثرت" بحسب الانواع والاجناس دې،يعنی مختلف قسمه ډيری ميوې به وی.﴿ لَّا مَقْطُوعَةٍ ﴾ يعنی دَموسم په ختميدلوسره به نه ختميږی په شان دَميوودَدنياچه موسم ختم شی نوميوه هم ختم شی.﴿وَلَا مَمْنُوعَةٍ﴾ يعنی دَجنتيانونه به منع نه وی چارديواری او ګيرچاپيره به ورنه کيږ نه وی شوې لکه دَدنيادَباغونوپه شان،اونه به قيمتاًخرڅيږی

﴿ وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ ﴾دويم حالت بيان دې يعنی جنسی تسکين دپاره به ورله الله ﷻ داسی بيبيانی پيدا کړی چې هميشه به ځوانی وی دَدوئ عاشقانې اوهمزولې به وی،په اوچتو پالنګونو باندی ورسره ناستې وی،"فرش"نه مراد يا ظاهری معنی ده يعنی بسترې اوياترينه مراد بيبيانې دی،ځکه چې بې بې باندې هم اطلاق دَ فِراش کيږی،لکه څرنګه چې پرې اطلاق

دَ لباس کیږی، «مرفوعة»، مرادترینه یا حسی رفعت دې، یعنی اوچت ځائی کښې به وی، یا معنوی رفعت دې، چې قدر ومنزلت والا به وی.

﴿إِنَّآ أَنشَأۡنَٰهُنَّ إِنشَآءً﴾ «هن» ضمیر مصداق ازواج او بیبیانې دی، اومرجع یې "فرش" دې کچرته مراد ترینه غیر معروفه معنی شی، اوکه مراد ترینه معروفه معنی شی نوبیا دَدې مرجع حکما مذکور ده، ځکه چې فرش سره ازواج لازمی دی، معنی داچې الله ﷻ به دوئ له عجیبه زندګې ورکړې وي،

﴿فَجَعَلۡنَٰهُنَّ أَبۡكَارًا﴾ دا تفسیر دې د ماقبل، چې دا عجیب تخلیق به داسې وي چې همیشه به باکرې وی لکه حدیث کښې راځی چې کله خاوندان ورسره جماع اوکړی نو دوئ به بیا باکره شی، «عربا» جمع دَ "عروب" ده مینه ناکې، نازونو او اداګانو والا، خوش اخلاقې اوخاوندانو باندې به عاشقانې وی، «اترابا» هم عمر به وې دَ خاوندانو، خلاصه داچې که دوئ دنیا کښې ثیبه وی نو جنت کښې به باکره وی، که دوئ بد رنګې دی الله ﷻ به ورله حسن ورکړی، دوئ عمر زیات وی، بداوالي کښې وفات شوی وی الله ﷻ به ورله بیا ځوانی ورکړی.

په شمائل ترمذی کښې دی چه یوه بوډئ راغله عرض ئی اوکړویارسولَ الله! ماته دعااوکړه چه الله ﷻ ماجنت ته داخله کړی، حضور ﷺ ورته (بطورِمزاح) اوفرمائیل: یاامّ فلان انّ الجنّة لا تدخلها عجوزٌ (او کماقال) اې دَفلانئ مورې بوډئ به جنت ته نه داخلیږی، نوهغه واپس شوه اوجړل ئی نبی کریم ﷺ صحابه ؤته اوفرمائیل چه دیته اووائی چه جنت به چه کله داخلیږی نوبوډئ به نه وی ځکه الله ﷻ فرمائی: انّاانشأناهنّ انشاءً...

﴿لِّأَصۡحَٰبِ ٱلۡيَمِينِ﴾ متعلق دې یادَ ﴿أَنشَأۡنَٰهُنَّ﴾ سره، یادَ ﴿أَتۡرَابًا﴾ سره ای جعلناهنّ اترابًا لاصحاب الیمین ای مساویاتٍ فی الطول والعرض والجمال. ﴿ثُلَّةٞ مِّنَ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ خبردې دَ مبتدا محذوف ای هم ثلثةٌ، دَاولینُ اودآخرینو مصداق مخکښې تیرشویدې.

| |
|---|
| وَأَصۡحَٰبُ ٱلشِّمَالِ مَآ أَصۡحَٰبُ ٱلشِّمَالِ ﴿٤١﴾ فِي سَمُومٖ وَحَمِيمٖ ﴿٤٢﴾ |
| اوخاوندان دګس لاس، څه بدحال به وی دَخاوندانودګس لاس، په ګرموهواګانوکښې اوپه ګرمواوبوکښې به وی |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَظِلٍّ | مِّنْ | يَحْمُومٍ ﴿٤٣﴾ | لَّا | بَارِدٍ | وَّلَا | كَرِيمٍ ﴿٤٤﴾ | إِنَّهُمْ | كَانُوا | |

اوپه سوری کښې به وي دتورلوگي چه نه به يخ وي اونه به نفع ورکونکې وي.بیشکه دوئ وؤ په دنیاکښې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَبْلَ | ذَٰلِكَ | مُتْرَفِينَ ﴿٤٥﴾ | وَكَانُوا | يُصِرُّونَ | عَلَى | الْحِنثِ | الْعَظِيمِ ﴿٤٦﴾ | |

مخکښې ددینه.آزادپریخودلی شوی.اووؤدوئ چه همیشه والې به ئې کولوپه گنا لوئ.شرک باندې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكَانُوا | يَقُولُونَ | أَئِذَا | مِتْنَا | وَكُنَّا | تُرَابًا | وَعِظَامًا |

اووؤ دوئ چه وئیل به ئې.آیاچه کله مړه شومونږه اوشومونږه خاوری اوهډوکی وراسته.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَإِنَّا | لَمَبْعُوثُونَ ﴿٤٧﴾ | أَوَآبَاؤُنَا | الْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾ | |

آیامونږه به بیاراپورته کړې شو.آیااوپلاران زمونږمخکنی به هم راپورته کولیشی

﴿وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ﴾ دا دریم جماعت دَ احوالو بیان دې، یعنی هغه خلق چه هغوئ ته عمل نامې په گس لاس کښې دَقیامت په ورځ ملاؤشي، دوئ به په سختوعذابونوتکلیفونوکښې وی ﴿فِي سَمُومٍ﴾ ای هم فی سموم. سموم: هغه گرمه هوا چه په مساماتودَانسان کښې ننوځی زهروته هم سم وائی ځکه چه داهم په مساماتودَانسان کښې داخل شی، انسان هلاک کړی ﴿وَحَمِيمٍ﴾ ډیری گرمی اوبه، یا دَ جهنم په نومونوکښې یونوم دې ﴿وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ﴾ دَ تور لوگی په سوری کښې به وی ﴿يَحْمُومٍ﴾ بروزن يَفْعُول تور لوگی معنی کښې استعمالیږی، حُمَمَة نه ماخوذ دې، حُمَمَة سکارو ته وائی ﴿لابارد﴾ سوری نه دوه فائدې حاصلیږي اول جسمانی فائده، چې هغه یخوالې دې، دیکښې دهغې نفي اوشوه اودویم: روحانی فائده، چې هغه اندرونی مسرت اوسکون دې او په ﴿لاکریم﴾ کښې د هغې نفی اوشوه، عرب هر قابل قدر شې اوقابل مدح صفت دپاره د کرم لفظ استعمالوی، اوکله چې دَ قابل مدح صفت نفی کوی نو بیا هم ترینه دَ کرم نفی کوی، چونکه دلته دَسوری نه دَ نفع رسانی صفت نفی مقصود ده نوځکه لاکریم ذکر کړې شو.

﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ﴾ای فی الدنیا، په دې کښې سبب دعذاب ذکرکیږی﴿مُتْرَفِينَ﴾ دا **اول سبب** بیان دې چې مادی زندګۍ کښې ډوب وو او د هر قسم پابندۍ نه ځان ماوراء او آزاد ګڼړلو، چې څه یې زړه غوختله بس هغه ئې کولو، ﴿وَكَانُوا يُصِرُّونَ﴾ دا **دویم سبب** دې چې په لویو لویو ګناهونو باندې اصرار دې، «الحنث» په اصل کښې جرم او ګناه ته وائي، او قسم ماتولو ته هم حنث وائي ځکه چې دا هم یو جرم دې، او دلته «الحنث» نه مراد (۱)یا حقیقي معنې ده مراد ترینه مطلقا ګناه کبیره دې چې هغې کښې شرک او بعث نه انکار وغیره داخل دي (۲)او یا د «الحنث» نه مراد معروفه معنی یعني قسم ماتول ده، ځکه چې دوئ به دا قسم خوړلو چې: «واقسموا بالله جهد ایمانهم لئن جآءهم نذیر لیکونن اهدی من احدی الامم» خو کله چې نبي کریم ﷺ مبعوث شو نو بیا ئې ایمان نه راوړلو، (۳)او بعضو ترینه د دروغو قسم مراد اغستي دې، او چونکه بعث بعد الموت نه انکار ټولو نه غټ دروغ دی نو لهذا په دې قسم خوړل د ټولو نه غټ دروغو قسم دې نو ځکه ورله «العظیم» صفت راوړلې شو، د دوئ دا قسم په قرآن بل آیت کښې وضاحت سره ذکر دې: واقسموابالله جهدا ایمانهم لایبعث الله من یموت(النحل ۳۸)

﴿وَكَانُوا يَقُولُونَ﴾د «الحنث» اول دوؤ توجیهاتو مطابق دا **دریم سبب بیان** دې او آخری توجیه مطابق بیا دا د حنث تفسیر دې، ﴿أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ﴾داعطف دې په محل د اسم د «انّ» باندې، تقدیر دا رنګه دې «أ إنّا و اٰبآؤنا الاوّلون لمبعوثون» اسلوب د کلام په مزید استبعاد باندې دلالت کوي، چې مونږ خو پریږده زمونږ پلار نیکان به څنګه دوباره ژوندي کیږي

| |
|---|
| قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ﴿٤٩﴾ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ |
| ته ورته اووایه چه بیشکه اولنی اوورستنی ټول خامخاجمع کولې به شي، وخت دورځې |
| مَعْلُومٍ ﴿٥٠﴾ ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ ﴿٥١﴾ لَآكِلُونَ مِنْ شَجَرٍ |
| معلومې ته، بیابه بیشکه تاسواې ګمراهانو انکار کونکو خامخا خورونکی به یئ د اونې |

| | |
|---|---|
| مِّنْ زَقُّوْمٍ ﴿٥٢﴾ فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ ﴿٥٣﴾ فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ ﴿٥٤﴾ | |
| دَ زقوم نه ، پس ډکه ونکی به يئ دَهغی نه خيټي، بيا څکونکی به يئ په هغی باندی دَ ابو گرمو نه | |
| فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ ﴿٥٥﴾ هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّيْنِ ﴿٥٦﴾ | |
| نو څکونکی به يئ په شان دَ څکلو دَ جل وهونکو اوښانو دا ميلمسيا دَ دوئ ده په ورځی دَجزاء | |

﴿قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِيْنَ ﴾جواب دي دَدوئ دَاستبعاداوانکار،اودوئ چونکه دَاوّل اومخکښ وفات شوی خلقوبعثت ئی زيات ناممکن گڼړلونو په دې وجه په جواب کښ﴿ الْأَوَّلِيْنَ﴾مقدم ذکرشول،يعنی دابعيده مه گڼړئ بلکه اولين اوآخرين به ټول قيامت په ورځ دَالله ﷻ مخې ته جمع کيږی﴿ إِلٰى مِيْقٰتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ ﴾دَقيامت ورځ ورنه مراده ده،اومعنی دَ معلوم داده چه معينه اومعلومه عندالله ده،يا داچه په علاماتوسره معلومه ده، ﴿ ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا ﴾ اهل جهنم طرف ته التفات دي﴿الْمُكَذِّبُوْنَ ﴾تکذيب کونکی دَبعث﴿ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّوْمٍ ﴾اول من ابتدائيه دي اودويم من بيانيه دي دَ شجر بيان کوی،يعنی خوراک ابتدا به دَزقوم ونې نه کوئ (روح)

﴿ فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا ﴾دډيري لوږي دَ وجهی نه به ترينه خيټی ډکې کړئ، ((منها)) ضميرراجع دي شجر ته په اعتباردَمعنی،ځکه چه شجر په معنی دَشجَرَةُ دي

﴿فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ ﴾دَډير خوراک دَوجهی نه به سخته تنده اولگی نو فوراً به گرمی اوبه اوڅکې، ((عليه)) ضمير زقوم ته راجع دي ، يا شجر ته راجع ته په تاويل دَ ماکول ،او يا دلته لفظ دَشجررعايت شويدي او ماقبل کښ يې معني رعايت شوي وو. ﴿فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ﴾ ای کشرب الهيم هيم جمع دَ اهيم ده هغه تگی اوښ ته وائی چه دَ تنده نه ختميدو مرض ورته لېدلې وی او په أوبو نه مړيږی،يعني جل وهلې وي ، بعض وائی جمع دَهيام ده، دَ شگو هغه ميدان چه په اوبوسره نه سيرابه کيږی(کشاف وغيره)مطلب دادې چه جهنميان به دَډيری تندی په وجه دَجهنم ايشيدلی اوبه هم داسې څکی لکه تگې أوښ چه په اوبوورپريخودلې شی،

﴿هَٰذَا﴾ يعنى داقسم قسم عذابونه چه كوم ذكرشول دابه ئى صرف ميلمستيا وى، نو د ميلمستيا نه پس عذابونه به څومره لوئ وي "اللّهمّ اجرنامن النّار" دې عذابونو ته ميلمستيا وئيل تهكمًا دى.

| |
|---|
| نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ﴿٥٧﴾ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا |
| مونږ پيداكړى يئ تاسو نو ولې تصديق نه كوئ تاسو(ايمان ولې نه راوړئ) خبرراكړئ ماته هغه نطفه چه |
| تُمْنُوْنَ ﴿٥٨﴾ ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗٓ اَمْ نَحْنُ الْخٰلِقُوْنَ ﴿٥٩﴾ نَحْنُ |
| تاسوئى (په رحم كښ) غورځوئ . آيا تاسو پيدا كوئ (دَ هغى نه ) بشر او كه مونږ پيدا كونكى يو مونږه |
| قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوْقِيْنَ ﴿٦٠﴾ عَلٰٓى اَنْ |
| مقرر كړيدې په مينځ ستاسوكښ مرګ اونه . شي مونږ څوك عاجزه كولې. دَ دينه چه |
| نُّبَدِّلَ اَمْثَالَكُمْ وَنُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٦١﴾ |
| په بدل كښ پيدا كړونورخلق پشان ستاسو. اوپيدا كړومونږ تاسوپه هغه ځائ كښ چه تاسوته نه دي معلوم(يعنى قيامت) |
| وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ الْاُوْلٰى فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٦٢﴾ |
| په تحقيق سره معلوم شويدې تاسوته پيداكول اول ځل نوولې نه قبلوئ نصيحت تاسو. |

﴿نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ﴾ دا دليل اجمالى دې په معاد او بعث بعدالموت باندى، او دغه شان ضمنا توحيد دليل هم دې، يعنى تاسو پخپله دَدى اقرار كوئ چى مونږ تاسو پيدا كړې يئ، نو كه اوس مړه اوفنا شولئ نو بيا پيدا كول دَستاسو په څه ګرانه ده چې تاسو ترينه انكاركوئ؟ ﴿فلولا تصدقون﴾اي البعث

﴿اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تُمْنُوْنَ﴾ تفصيل دَ اجمال دې يعنى تاسو خپل تخليق اطوارو او مراحلو باندې غور اوكړئ، نو دا واضح دليل دې په بعث بعد الموت باندې. ﴿ماتمنون﴾دزندګى اوله مرحله ده چى بې جانه نطفه وى، الله ﷻ ترينه خائسته شكل وصورت والا انسان پيدا

کړی.نودغه شان هغه په دې هم قادر دې چې چور چور او وراستو هډوکو ته بیا حیات ورکړی.او راژوندي کړی.

**فائده**:منی ذکر کولو سره استدلال ذکرکولو کښې ډیر لطافت دې،ځکه چې منی نچوړ دې دَ مختلف غذاګانو چې انسان یې خوري،دامختلفې غذاګاني دعالم مختلف اطرافوکښې وی هغه ځائ نه انسان ته رارسی اودې یې خوري،اونچوړ په صورت کښې ترینه منی جوړه شی،اوټول جسم کښې خوره شی،بیا شهوت په وخت کښې الله ﷻ په حکم سره ده جسم مختلف حصو نه راجمع شی (علی قول الاطباء المتقدمین)او ښځې رحم کښې قرار اونیسی .او الله ﷻ ترینه انسان جورکړی.نوکله چه دامتفرق اجزاؤ راجمع کولو اوبیا ترینه انسان جوړولو باندی الله ﷻ قادردې،نو که انسان مړ شی اوده اعضا ټکړې ټکړې او چور چور شی،نو دهغې جمع کول الله ﷻ څه مشکل دی (طیبي)

﴿تَخْلُقُونَهُ﴾دلته د خلق معنی مکمل صورت ورکول اور روغ انسان ترینه جوړه ول دی، "ها" ضمیر "ما" ته راجع دی په "ما تمنون" کښې

**تنبیه**:بعضِ روایاتوپه بناعلماءوائی چه مستحبه ده چه دَدې آیاتونواودغه رنګه بعدکښې راتلونکی آیاتونوکښې هری جمله استفهامیه تلاوت کولونه ورستوداالفاظ اوویلې شی"بل انتَ یاربّ"روح المعانی وغیره،دَوالدمحترم شیخ القرآن والحدیث حضرت مولاناأسیدالله صاحب نوّرالله مرقده هم دامعمول وؤچه دَترجمې درس په دوران کښې به ئي دغه الفاظ وئیل.

﴿نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ﴾داد زندګی بلې مرحلې بیان دې چې انسان دَپاره الله ﷻ په دنیا کښې یو وخت مقرر کړې دې،چې هغه وخت انسان پوره کړی نو مړ شي او ژوندې وجود ئي بي جانه ډهانچې سره بدل شی،که انسان ډیر هم نه غواړی خومرګ ورباندی خامخارازی،نو کله چه الله ﷻ احیاء اواماتت دواړو باندې قادر دې، دواړه دهغه په اختیار کښې دی نو بعث الموت باندې هم قادر شو ځکه چې بعث بعدالموت عبارت دې اماتت او احیاء نه. ﴿بینکم﴾ ذکر کولو کښې دیته اشاره ده چې دَمرګ حیثیت دَ دائری مرکز دې،دَدې نسبت ټولو ته برابر دې هیڅ ترتیب اوترجیح پکښې نشته اودغه شان دیته اشاره ده چې ګویامرګ تاسو مابین کښې موجود دې، نو هر وخت ورته تیار اوسئ

﴿وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴾تفريع ده په «نحن قدرنا...» باندی په واسطې د دَ "واؤ" حرف عطف سره ، تفريع دَ پاره اګر چه اصل دا دې چې" فاء" حرف عطف سره وی.خو چونکه دا صرف ماقبل باندې مرتب نه دې بلکه وعيد ته هم متضمن دې نوځکه "واؤ" حرف عطف سره ذکر کړې شو «التحرير والتنوير» مطلب دَ آيت دا دې چه چونکه مونږ د هر چاد پاره مرګ مقرر کړې دې نو لهذا تاسو کښې هم هيڅ څوک زمونږ نه نشی بچ کيدلي.ضروربه مرګ راځی، او ستاسو ځائ به تاسو نائبان او وارثان واخلی،﴿مسبوقين﴾ بمعنی دَ" مغلوبين" سره دې.﴿ عَلَىٰٓ أَن نُّبَدِّلَ﴾ جارمجرور متعلق کيږی «مسبوقين» پورې،﴿أَمْثَٰلَكُمْ ﴾جمع دَ "مِثل" ده، بمعنی نظير،يعنی الله ﷻ به ستاسو مړه کړی او ستاسو په ځائ به تاسو په شان نورانسانان يعنی وارثان اونائبان راولی، ﴿وَنُنشِئَكُمْ﴾عطف دې په ﴿نبدل﴾، يعنی يو وخت پوری به قبر کښې پراته وئ اوبيا خو به د قيامت په ورځ ژوندی کوو، او الله ﷻ ته به حساب ورکوئ﴿فِى مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ "ما" نه مراد کيفيت اوهيئيت دې.يعنی کوم حالت اوکيفيت باندی به ستاسو بعث کيږی هغی نه تاسو ناخبرې ئ،يا"ما" نه مراد"وخت" دې يعنی کومه ورځ به چی تاسو دوباره راپورته کوې چه هغه قيامت ورځ ده ،هغې علم تاسو ته نشته

اکثر مفسرينو "ومانحن بمسبوقين"جمله حال ګرځولې ده دَقدرنا ضمير مرفوع نه،يعنی مونږ پدې هم قادر يو چی تاسو لرې کړو اوتاسو په ځائی نورخلق راولو ،اوستاسو صورتونه بدل کړو ،اوبيزوګانی ،خنزيران، درنه جوړ کړو ،دی صورت کښې بيادا صرف وعيد دې.

﴿وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ ٱلنَّشْأَةَ﴾ دا دَ استدلال تتمه ده يعنی تاسو زندګی باندی نظر واچولو ،اودَهغی مختلفو مراحلو کښې مودَالله ﷻ قدرت مظاهرومشاهده اوکړه نو دوباره پيداکول خودَهغی نه آسان دی،ځکه چې اول پيدائش کښې ماده نه وه،دويم کښې ماده شته،اول پيدائش کښې نقشه نه وه ،دويم کښې نقشه شته وغيره،کله چی الله ﷻ په اول پيدائش باندې قادر دې چی هغه په نسبت دَدويم نه ګران دې نو دويم پيدائش باندې خوبه بطريق اولی قادر دې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ﴿٦٣﴾ ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ ﴿٦٤﴾ | | | | | | | |
| خبر راکړئ ما ته ، هغه تخم چه کرئ ئې تاسو ، آیا تاسو زرغونه وئ هغه او که مونږه زرغونه ونکی یو . | | | | | | | |
| لَوْ | نَشَآءُ | لَجَعَلْنَٰهُ | حُطَٰمًا | فَظَلْتُمْ | تَفَكَّهُونَ ﴿٦٥﴾ | | |
| که مونږ غوختلې نو دا فصل به مو درله ګرځولې وې ذرې ذرې، نو بیا به تاسو تعجب کولې | | | | | | | |
| إِنَّا | لَمُغْرَمُونَ ﴿٦٦﴾ | بَلْ | نَحْنُ | مَحْرُومُونَ ﴿٦٧﴾ | | | |
| بیشکه | چه | مونږه | تاوانیان | شو | بلکه | مونږه | محرومه شو. |

﴿أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ﴾ دادویم دلیل عقلی دې په توحیداوپه ثبوت دَقیامت چه تاسو چه کومه کرونده کوئ اوپه زمکه کښې اوچ تخم واچوئ نوبیاهغه څوک رازغونه وی،هغه فصل جوړول او بیا ئې فائده مند ګرځول دَ چا کار دې، زمونږ او که تاسو؟ بل انتَ یاربَّ.په حدیث کښې دی"لایقولنّ احدُکم زرعتُ ولکن لیقل حرثتُ"یعنی"زرعتُ"مه وایئ بلکه"حرثتُ"وایئ ځکه چه زرع دَالله ﷻ کاردې.قرطبی رحمه الله وائي چه څوک زمکه کری یعنی په زمکه کښې څه تخم اچوی نواعوذبالله نه پسې دی دغه آیات تلاوت کړی یعنی﴿أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ﴿٦٣﴾ ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ﴾ او بیا دې دا اوائي"بل الله الزّارع والمنبت والمبلغ،اللّهمّ صلّ علی محمّدٍ، و ارزقنا ثمرهٗ،وجنّبناضرره،واجعلنا لانعمک من الشّاکرین،ولآلائک من الذاکرین، وبارک لنا فیه یا ربّ العالمین" نوپه دې سره به هغه فصل دَ ټولو آفاتونه، دَچنجو او دَ ملخانو ، میګو وغیره نه محفوظ وی،قرطبی وائی چه مونږ دَدې تجربه اوکړه نوهم دغه شان وه.

﴿لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَٰهُ حُطَٰمًا﴾یعنی دَفصل زرغونه کیدلونه بعدهغه محفوظه ساتل هم زمونږکاردې ورنه که مونږاوغواړونوپه څه آفت سره به هغه ټول فصل وچ ذری ذری کړو.
﴿فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ﴾په اصل کښې"تتفکّهون"دې یوه " تاء" تخفیفًا حذف شوې ده، پمعنی دَ "تتعجبون" یعنی دَهغې فصل په بدحال به تعجب کوئ،یا پمعنی دَ" تندمون " دې یعنی ندامت به کوئ پخپل کوشش اوخرچې باندې، چه مونږپدې دومره خرچه اوکړه بیاهم څه نفع په لاس

رانه غله، کسائی رحمه الله وائی تفکهه دَاضدادو نه دي پمعنی دَنعمت اوخوشحالئ هم رازی اوپمعنی دَ غم هم رازی، بعض وائی ﴿ تَفَكَّهُونَ﴾ پمعنی دَ تنوع عون کلامکم دي، یعنی بیابه قسم قسم خبری کوئ، کله به وایئ چه ﴿إِنَّا لَمُغْرَمُونَ ﴾ تاوان راته اورسیدلو په فصل کښ او کله به وایئ ﴿بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴾ دَرزق نه محرومه شو، تش لاس پاتی شو (ابن کثیر، روح المعانی وغیره).

| |
|---|
| أَفَرَءَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ﴿٦٨﴾ ءَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ |
| خبر را کړئ ماته، هغه اوبه چه تاسوئی څکئ آیاتاسوورولئ هغه دَوریځی نه اوکه |
| نَحْنُ الْمُنزِلُونَ ﴿٦٩﴾ لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ ﴿٧٠﴾ |
| مونږ ئی وره وؤ، کچرته خوښه وي زمونږنوګرځولې به مو وې اوبه تروی ترخې نو ولې شکرنه اوباسئ تاسو |

﴿أَفَرَءَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ﴾ دادریم دلیل عقلی دي په توحید چه هغه خوړې اوبه چه تاسوئی څکئ اوستاسوژوندورسره ترلې دي هغه زمونږپه حکم سره دَوریځونه نازلیږی که مونږاوغواړونودااوبه به تروی ترخی کړو.

﴿ءَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ ﴾ جمع دَمزنة ده وریځی ته وائی، بعض وائی سپینی وریځی ته وائی چه اوبه دَهغی خوږې وی ﴿ لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا ﴾ یعنی مالګینی چه په مرئ کښ انخلی، څکل ئی ممکن نه وی.

که څوک اشکال اوکړی چه په ﴿ لَوْ نَشَاءُ لَجَعَلْنَاهُ حُطَامًا ﴾ کښ په جواب دَ لو باندې لام داخل کړې شو، نودلته ولې داخل نه کړې شو؟

جواب (۱): دَ قرینی حالیه په وجه دلته حذف شوي دي چونکه دا خبره عامه او معروفه ده چې لو په جواب باندې لام داخلیږی، نودی وجهې نه ترینه لام حذف شو، بله داچی «لجعلنه حطاما» کښ بالکل نیزدې ذکر هم اوشو، نودې وجهې نه یې هم دوباره راوړلو حاجت نه وؤ

(۲)دویم جواب دادې چه لام دلته د تاکید د پاره دې، چونکه خوګی اوبه مالګینی ګرځول په عرف عادت کښې زیات اسان دی او دغه رنګه وجود د مالګینو اوبو ډیر دې د خوږو أوبو نه نو دلته"لام" تاکیدیه راوړلو ته حاجت نه وؤچه هغه مفید دې د زیادة تحقیق. په خلاف د فصل نه، ځکه چه هغه حطام ګرځول دَعادت اوعرف نه عام طور باندې خارج دې نوهلته لام تاکید ذکر شو(روح المعانی،کشاف).

﴿فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ﴾ دَ شکر تپولو نه اعلی فرد توحید دې، نقل دی چه حضور ﷺ به چه کله اوبه اوڅکلی نودابه ئی وئیل:الحمدلله الذی سقاناعذبًافراتًابرحمته ولم یجعله ملحًااُجاجًابذنوبنا(ابن کثیر).

| |
|---|
| أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ۝ ءَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ |
| خبر راکړئ ماته،هغه اوورچه تاسوئی بلوئ،آیاتاسوپیداکړیده اونه دَهغه اور،اوکه مونږ |
| الْمُنشِئُونَ ۝ نَحْنُ جَعَلْنَاهَا تَذْكِرَةً وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ ۝ فَسَبِّحْ |
| پیداکونکی یو. مونږګرځولې دې دا اور یاد ګیرنه (دَ اور د جهنم) اونفع دَپاره دَمسافرو.پس پاکئ سره ذکرکوه |
| بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ۝ |
| نوم دَرب خپل چه لوئ دې. |

﴿أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ﴾داخلورم دلیلِ عقلی دې په توحید ،چه هغه اور چه تاسوئی بله وئ،نوآیا دَ هغی أونی تاسوپیداکړیدی که مونږه؟"بل انتَ یاربَ"

﴿ءَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا﴾په عربوکښې دوه اونی وی،مرخ،عفارچه دَهغی څانګی یوبل سره مخلوپوچه اورپیدا اکیږی هغه ورنه مراددی،نن صباچه کوم ګیس پیدا اکیږی اودَزمکی نه رااوځی،خلق پرې اوربلوی آیت دیته هم شامل دې.

﴿نَحْنُ جَعَلْنَاهَا﴾ضمیراورته راجع دې.﴿تَذْكِرَةً﴾معنی یادګیرنه ده ،یعنی دنیا اور مو دَ جهنم اور یاد ګیرنه ګرځولې دې،ځکه چی انسان ډیر اسباب معاش دې سره وابسته دی،نوچې کله

هم د کوزې نو دجهنم اوربه ورته مخکښې مخکښې کیږي،یا ﴿تذکرة﴾معنی نمونه ده یعنی دنیا اور مو د جهنم اور یوه نمونه گرځولی ده لکه حدیث کښې رازي چې دنیا اور د جهنم اور اویامه ۷۰)حصه ده.

﴿وَمَتَٰعًا لِّلۡمُقۡوِينَ﴾ای المسافرین، د قُوَاء نه مشتق دي ، قواء صحراء ته وائی ((مقوین)) هغه مسافرچې صحراء کښې یې پړاؤ اچولي وی ،اومراد ترینه مطلقا مسافر دی چونکه صحراکښې پړاؤ اچونکې ورته زیات حاجت مندوی نوځکه دهغوئ تخصیص بالذکر اوشو،ځنی مفسرینو مقوین معنی مستمتعین نفع اخیستونکې کړیده برابره خبره ده که هغه مقیمین دی یا مسافر ،مالداره وی که غریب.

﴿فَسَبِّحۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلۡعَظِيمِ﴾ دلائل اربعؤنه بعددعوه دسورة اول ځل ذکرکیږي.خطاب هرمخاطب ته دې چه خپل عظیم رب اودأعلی صفاتوپروردگاردهرشریک نه پاک اوگڼړه، باء په باسم کښې یادملابست لپاره ده یا د استعانت لپاره.﴿ٱلۡعَظِيمِ﴾صفت دې لپاره د اسم یاد رب.

| |
|---|
| فَلَآ أُقۡسِمُ بِمَوَٰقِعِ ٱلنُّجُومِ ۝ وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ لَّوۡ تَعۡلَمُونَ عَظِيمٌ ۝ |
| پس قسم کوم څه په ځایونو د ډوبیدو د ستورو . او بیشکه دا یقینا قسم -که تاسوپوهیږئ- لوئ دې |
| إِنَّهُۥ لَقُرۡءَانٌ كَرِيمٌ ۝ فِي كِتَٰبٍ مَّكۡنُونٍ ۝ لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلۡمُطَهَّرُونَ ۝ |
| بیشکه دا خامخا قرآن عزت مند دې . ساتلې شوې په کتاب پټ کښې دې.نه لږه وی دیته لاس مګرپاک خلق. |
| تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝ أَفَبِهَٰذَا ٱلۡحَدِيثِ أَنتُم مُّدۡهِنُونَ ۝ |
| نازل شویدې دطرفه درب العالمین.آیا نو داسې کلام تاسو معمولي کنړئ |
| وَتَجۡعَلُونَ رِزۡقَكُمۡ أَنَّكُمۡ تُكَذِّبُونَ ۝ |
| او گرځوئ تاسو حصه خپله دا چه تاسو ئې تکذیب کوئ |

﴿ فَلَآ أُقۡسِمُ بِمَوَٰقِعِ ٱلنُّجُومِ ﴾ په دې آياتونو كښې دَقرآن كريم دَعظمت بيان دې اوترغيب دې تصديق بالقرآن ته. "لا" په باره كښې متعدد اقوال دي:

(۱) "لا" برائې نفي ده اومنفي كلام محذوف دې چې هغه قول دَ كفارو دې چې كله به ني قرآن ته سحر ،كله شعر، او كله به ئي ورته د كان كلام وې، ،نو دې سره د دې قول رد اوشو يعنې دا كفار چې څه وائي ديكښې هيڅ حقيقت نشته، بلكه څه قسم خورم چې دا قرآن د الله ﷻ كلام دې .

(۲) "لا" زائده ده، "اقسم" معنى كښې تاكيد پيدا كولو دَپاره ، چې قسم خوړلو ته ضرورت نشته خو بيا هم قسم خورم ، لكه "لئلا يعلم اهل الكتاب" كښې لا برائې تاكيد زائد دې.

(۳) دا اصل كښې لام ابتدائيه دې خوفتحې دَاشباع دَوجهې نه ترينه لا جوړشو.

(۴) بعض وائي لا دَ"الا" حرف تنبيه په معنى كښې ده.

﴿ بِمَوَٰقِعِ ٱلنُّجُومِ ﴾ مقسم بِهِ دې، (۱) مشهور قول دا دې چې مراد دَ مواقع النجوم نه دَ ستورو دَ غروب كيدلو مواقع دي.چونكه داوخت دَتهجد او آخر الليل وي الله ﷻ آسمان دنيا ته نزول كوي او دَ مغفرت اورحمت پرواني جارى كوي، تهجد كونكي تهجد دَپاره پاسي دغه شان نور عظيم امور، پكښې كيږي،نودې وجهې نه دينه باندې قسم اوخوړلي شو(۲) يااورنه مراد دَ قيامت په ورځ دَ دوئ راغورځيدل اوبې نوره كيدل دي(۳) حضرت ابن عباس رضي الله عنه وغيره وائي چه دَ"نجوم" نه مراد دَ قرآن آياتونه دي ځكه چه نجم حصې ته وائي اوقرآن هم نجمًا نجمًا نازل شويدې، كمامرّفي سورة النجم،اودَمواقع نه مراددَقرآن دَنزول مواقع دي،يعنې دا استعاره ده دَ نزول دَ قرآن" نه، الله ﷻ په نزول دَقرآن باندې قسم كوي اوكلام مؤكد كوي.

﴿ وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ لَّوۡ تَعۡلَمُونَ ﴾ جمله معترضه ده په مابين دَقسم اوجواب قسم كښې لپاره دَبيان دَعظمت دَقسم. «قسم» موصوف دې او «عظيم» ئي صفت دې او «لو تعلمون» جمله معترضه ده په مابين موصوف اوصفت كښې لوتعلمون شرط دې اوجزاء يې يا محذوفه ده اي لعظمتموه او يابالكل متروكه ده ، او مقصود ترينه په دې تنبيه ده چې دَهغه عظمت شان اندازه تاسو نشئ لګولي.

﴿إِنَّهُۥ لَقُرۡءَانٞ كَرِيمٞ﴾ داجواب قسم دي، **مناسبة دَ قسم او جواب قسم** په مينځ کښ دادې چه لکه څرنګه په ستورو سره لاره موندلې کيږي كقوله تعالى: وبالنجم هم يهتدون (نحل: ١٦) و كقوله تعالى: وهوالّذى جعل لكم النجوم لتهدوا بها (انعام: ٩٧) دارنګه قرآن هم سبب دَهدايت دې (مظهرى وغيره)

﴿ كَرِيمٞ ﴾ صفت اول دې دَ ﴿ لَقُرۡءَانٞ ﴾ اى كريمٌ على الله يادا چه كرامت اوعزت ورته الله ﷻ وركړيدې اودَه مرتبه ئى په نوروكتابونواوچته كړيده. ياكريم نه مراد ظاهرى معنى بذل واحسان ده. چونكه قرآن نه هم انسان ته ډير زيات فوائد حاصليږى، نوځكه ورته كريم اويلې شو. ﴿ فِي كِتَٰبٖ ﴾ ثى بل صفت دې، مراددَ ﴿كِتَٰبٖ ﴾ نه لوح محفوظ دې ﴿ مَّكۡنُونٖ ﴾ صفت دې دَ «كِتَٰبٖ» "مكنون" ياخپل لغوى معنى کښ دې، يعنى پټ ساتلې شوې، چې مقرر شوې فرشتو نه علاوه چا ته دَ دې خبر نه وو او ياد "مصون" پمعنى کښ دې يعنى محفوظ ساتلې شوې، دَ تغير او تبدل نه.

﴿ لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلۡمُطَهَّرُونَ ﴾ دا يا صفت دې دَ ﴿كِتَٰبٖ ﴾، نو بيا د ﴿المطهرون﴾ نه مراد فرشتې دى يعنى دې لوح محفوظ ته رسائى نشته سوا دَ فرشتو نه چې هر قسم ګناهونو او ګندګيانو نه پاكې دى، او ياصفت دې د ﴿ لَقُرۡءَانٞ ﴾، نودې صورت کښ «المطهرون» نه مراد حدث اصغر اوحدث اكبر نه پاک خلق دې، يعنى دومره معزز اومقدس كتاب دې چې بې اودسه اوناپاک خلق خو دې ته لاس هم نه لګوې، دې صورت کښ «لايمسه» پمعنى دَ "لا ينبغي ان يمسه" کښ دې، ددې آيت سره بې اودسه قرآن ته لاس وړلو ممانعت باندې استدلال متعدد رواياتو کښ راغليدې:

(١) حضرت عمر ؓ اسلام راوړلو واقعې کښ دې چې كله ده دَ خور نه قرآن پاڼړو مطالبه اوكړه نو هغې وركولو نه انكار اوكړو، او دا آيت ئې ورته اولوستلو. لايمسه الا المطهرون.

(٢) مصنف ابن ابى شيبه کښ دَحضرت سلمان ؓ نه هم دې آيات سره استشهاد واستدلال ذكر دې،

دینه علاوه متعدد روایاتو کښې هم نبی کریم ﷺ دَدې حرمت ذکر راغلیدې عمرو بن حزام ﷺ ته مشهور خط کښې نبی ﷺ یو هدایت دا لیکلې وو. لا یمس القرآن الا علی الطهور حضرت ابن عمر ﷺ نه هم یو روایت داسې مروی دې لا یمس القرآن الا طاهر (المعجم الکبیر للطبرانی)

﴿تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ بل صفت دې دَقرآن، مصدر مبنی للمفعول دې ای منزل

﴿أَفَبِهَٰذَا ٱلْحَدِيثِ أَنتُم مُّدْهِنُونَ﴾ توبیخ دې یعنی قرآن په شان عظیم الشان کتاب تاسو معمولې گنړئ اودې کښې خبرې ترې کوئ. ﴿مدهنون﴾ "دهن" نه ماخوذ دې، "تیلو" ته ویلې کیږی، "ادهان" تیل لگولوسره څه شې نرمولو ته ویلې کیږی، چونکه ادهان مستلزم دې "نرمولو" لره. او قرآن کښې نرمی خودل مترادف دې دَ قرآن معمولی گنړلو اوتوهین اوتکذیب لره، ځکه پرې مجازا اواستعارتاً اطلاق دَ "ادهان" اوشو، هم دې وجهې نه بعض مفسرین دې ترجمه "تهاون" (سپک گنړل) اوبعض تکذیب سره کوی.

﴿وَتَجْعَلُونَ رِزْقَكُمْ﴾ رزق یاپخپله معنی دې اومطلب دادې چه تاسوتکذیب خپل رزق اوخوراک گرځولې دې، دَتکذیب نه بغیرستاسوگزاره نه کیږی (۲) یارزق پمعنی دَحصّی سره دې ای حظکم یعنی تاسوخپله حصه (برخه) په قرآن کښې تکذیب گرځولې ده یعنی خلقوته ترینه هدایت ملاویږی اوتاسوئی تکذیب کوئ (۳) یارزق پمعنی دَشکرسره دې ای شکرکم، یعنی تاسوچه کوم شکراداکوئ نوهغه تکذیب دې دَالله ﷻ لکه چه کله به باران اوشو نو مشرکانو به وئیل مُطرنابنوء کذا فلانکی ستوری پوجه په مونږباران اوشو، په اکثرو روایاتوکښې دی چه داآیات دَدوئ دَمذکوره قول په ردکښې نازل شویدې، ابن عباس ﷺ فرمائی: مطر النّاسُ علی عهدرسول الله ﷺ فقال النبی ﷺ: اصبح من الناس شاکر و منهم کافرٌ، قالوا هذهِ رحمةٌ وضعها الله، وقال بعضهم لقدصدق نوء کذا فنزلت هذه الآیة (مسلم ج ۱).

| |
|---|
| فَلَوْلَآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلْحُلْقُومَ ۝ وَأَنتُمْ حِينَئِذٍ تَنظُرُونَ ۝ |
| پس ولې نه، په هغه وخت کښې چه ورسیږی روح مرئ ته، اوحال داچه تاسوپدغه وخت کښې گورئ مرکیدونکی نه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُبْصِرُونَ ﴿٨٥﴾ فَلَوْلَا إِن كُنتُمْ غَيْرَ | | | | | |
| اومونږ ياتنږدې يو هغه مړي ته ستاسو نه ليکن تاسو نه وينئ ، نو ولې نه کچرته تاسو د حکم الهي ماتحته | | | | | |
| مَدِينِينَ | ﴿٨٦﴾ | تَرْجِعُونَهَا | إِن | كُنتُمْ | صَادِقِينَ ﴿٨٧﴾ |
| نه يئ | - | واپس کوئ دغه روح | کچرته | يئ | تاسو ريشتني |

﴿فَلَوْلَا إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ﴾ دازجر او توبيخ دې منکرينو دَقيامت ته چه کچرته ستاسو داګمان صحيح وی چه جزاء سزا او بعث بعد الموت نشته او ستاسو څوک خالق مالک نشته چه دَهغه دَ حکم لاندې تاسو محکوم يئ،نوچه په کوم وخت کښې ستاسو دَيو قريبي عزيز روح قبض کيږي، او تاسو ورته دَحسرت په نظرسره ګورئ،تمناموهم وی چه دې مړنه شي،نودده روح را واپس کړئ کنه په څه قوت اوتدبيرسره،چه داسې نه شئ کولې نو ستا ګمان باطل دې، سزاء جزاء ورځ هم شته او ستاسو خالق مالک هم شته چه تاسو دَهغه دَحکم لاندې محکوم يئ.

﴿فَلَوْلَا﴾ تحضيضيه دې ، فعل باندې داخليږي، نو دې نه بعد« ترجعونها» فعل مقدر دې، چې هغې تفسير ورستو«ترجعونها»کوي، ﴿إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ﴾ظرف متعلق کيږي ترجعون پورې، او ضمير مؤنث په «بلغت» او «ترجعونها» کښې راجع دې روح ته،ذکرئي اګرچه ماقبل کښې صراحتًا نشته ليکن سياق دکلام نه فهم کيږي ﴿وَأَنتُمْ حِينَئِذٍ﴾او﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ﴾ دواړه جملې حاليه دی،دويم « لولا» تاکيد دې دَاول دَپاره،﴿إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ﴾شرط دی،جزاء ورله محذفه ده،چې هغې باندې« ترجعونها»دلالت کوی﴿إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾شرط تاکيد دې دَشرط اول.

﴿الْحُلْقُومَ﴾دَ خوراک سکاک مرئ ته وائی ﴿ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ ﴾ مراد دَ قُرب نه قُرب دې په اعتباردَعلم اوقدرة،يعنی دَهغه مړکيدونکی په حالاتومونږستاسونه زيات واقف يو،څکه تاسوصرف دَظاهری اثارومشاهده کوئ مونږئی دکنهه نه اوباطن نه واقف يو،بعض وائی مراددَقرب نه قرب دَملائکودې چه کوم روح قبض کوی.

﴿وَلٰكِن لَّا تُبْصِرُونَ﴾ كنايه ده دَعدم ادراک نه ﴿غَيْرَ مَدِينِينَ﴾ معنى يا غير مجزيين دى يعنى كچرى تاسونه حساب كتاب نه اغستلې كيدلې ياپمعنى دَ غير محكومين دي.يعنى كچرى تاسو دَالله ﷻ ماتحت نه يئ.

| |
|---|
| فَأَمَّا إِن كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿٨٨﴾ فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ وَجَنَّتُ نَعِيمٍ ﴿٨٩﴾ |
| پس كچرته وى دغه مړې دَمقربينونه نو بياده لره آرام دي او روزى ده او جنت د نعمتونو دي |
| وَأَمَّا إِن كَانَ مِنْ أَصْحٰبِ الْيَمِينِ ﴿٩٠﴾ فَسَلٰمٌ لَّكَ مِنْ أَصْحٰبِ |
| او كچرته وى دا مړې دَ ښى لاس والؤو نه،نوورته به اوئيلې شى سلام دي ستادپاره،ته دَخاوندانو |
| الْيَمِينِ ﴿٩١﴾ وَأَمَّا إِن كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِينَ الضَّآلِّينَ ﴿٩٢﴾ فَنُزُلٌ |
| دَښى لاس نه يې.اوكچرته وى دامړې دَتكذيب كونكو دَ گمراهانو نه نودَده دپاره ميلمستياده |
| مِّنْ حَمِيمٍ ﴿٩٣﴾ وَتَصْلِيَةُ جَحِيمٍ ﴿٩٤﴾ إِنَّ هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِينِ ﴿٩٥﴾ |
| دَ گرمو اوبو نه . او داخليدل دى جهنم ته ، بيشكه دا(احوال تول) بالكل هم دا حق يقينى دى. |
| فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿٩٦﴾ |
| پس پاكى سره ياده وه نوم دَرب خپل چه لوئ دې |

﴿فَأَمَّا إِن كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِينَ﴾ ضميرپه كان كښې متوفى ته راجع دې،پدى آياتوكښې دَجماعت ثلثه ؤ(سابقين،اصحاب الميمنه،اصحابُ المشئمه)دَاحوال واعاده ده،چه كچرته دادُنيانه رخصتيدونكې انسان دَمقربينُ نه وى نودَمرگ نه ورستوبه په قسم قسم خوشحالو او راحتونو كښې وى.﴿فَرَوْحٌ﴾ مبتدادې خبرئى محذوف دې چه هغه ورباندې مقدم دې اى فله روحٌ،ياخبردَمبتدامحذوف دې اى فجزاءه روحٌ"روح"پمعنى دَاستراحت سره دې،يعنى دَ دنيادَمشقتونونه به ورته راحت ملاؤشى،په حديث كښې دى چه فرشتى دَرحمت به ورته وائى، ايتهاالرّوح الطيبة،فى الجسدالطّيّب كنتِ تعمرينه اخرجى الى روحٍ وريحانٍ وربٌ غير غضبان(ابن كثير).

بعضِ وائی روح معنی مغفرت دې، ابن کثیر رحمه الله وائی: و کلّ هذه الاقوال متقاربةٌ صحیحةٌ فانّ من ماتَ مقربًا حصل له جمیع ذلک من الرحمة والراحة والاستراحة والفرح.... الخ.

﴿وَرَيْحَانٌ﴾ یا پمعنی دَرزق دې کماروی عن ابن عباس رضی الله عنه یا پمعنی دَخوشبوئ دَ کشمالو دَ گل. روح المعانی دَابن جریروغیره نه نقل کړیدی چه په مقربینو کښ هیڅ څوک ترهغه وخته پوری نه مرکیږی حتی چه هغه ته دَجنت دَریحان نه دوه څانگی راوړې شی، دې هغه بوئ کوی اوروح ئی قبض شی. ﴿وَجَنَّتُ نَعِيمٍ﴾ یعنی دَنعمتونو والا جنتونه. اضافت لامیه دې.

﴿وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ أَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ﴾ دَدویم جماعت بیان دې ﴿فَسَلَٰمٌ لَّكَ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ﴾ دینه مخکښ یقال مقدر دې، معنی یاداده چې تاته سلامتی اوامن وامان حاصل دې ځکه چې ته اصحٰب الیمین نه یې، اویایی معنی داده چې اصحٰب الیمین له طرفه په تا سلام دې.

﴿وَأَمَّآ إِن كَانَ﴾ دادریم جماعت یعنی اصحاب المشئمه بیان دې ﴿فَنُزُلٌ﴾ ای فله نزلٌ بالجزائه نزلٌ ﴿مِّنْ حَمِيمٍ﴾ گرم ایشیدلی اوبه چه دَزقوم خوړلونه بعد به ئې څکی.

﴿إِنَّ هَٰذَا﴾ اشاره احوالو دَجماعات ثلثه ؤته ده، ﴿لَهُوَ حَقُّ ٱلْيَقِينِ﴾ داکوم احوال چې تاسو ته بیان شو دابالکل حق اوحقیقت اویقینی امور دی

﴿فَسَبِّحْ بِٱسْمِ رَبِّكَ ٱلْعَظِيمِ﴾ داپه آخرِدَسورة کښ دعوه دَ سورة بیان شوه چه دَلویوصفاتو والاذات پاکی بیان کړه،

باقی تفصیل ئی لږمخکښ شویدې، په حدیث کښ دی چه کله داآیت نازل شونوحضور ﷺ اوفرمائیل: اجعلوهافی رکوعکم اوچه کله داآیت نازل شوچه سبح اسم ربک الاعلیٰ نوونئی فرمائیل: اجعلوهافی سجودکم (ابوداؤد، ابن ماجه).

صاحب دَمدارک وائی: لطیفةٌ عجیبةٌ لیسَ فی هذه السورالثلث لفظ الله: اقتربت، الرحمٰن، الواقعه والله اعلم باسراره، یعنی داعجیبه خبره ده چه په دې درې سورتونو کښ (باوجود د دینه چې اوگده سورتونه دي) اسم جلاله (الله) نه دې ذکرشوې الله تعالیٰ پخپل اسرارو ښه پوهیږی،

مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائي: القول ومن اللّطائف، ان سورة المجادلة لاتخلو آيةٌ من آياتها عن لفظ الله، والله اعلم باسراره، يعني داهم عجيبه خبره ده چه په سورة المجادله كښې يو آيت هم د لفظ د الله تعالیٰ نه خالی نه دې الله تعالیٰ پخپل رازونو ښه پوهيږي.

| ركوعاتها (۴) | سورة الحديد مدنية | آياتها (۲۹) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۵۷) وحسب النزول (۹۴)**

نزلت بعد الزلزال قبل محمّد

**ربط**: ماقبل سره ئې ربط: (۱) دادې چه ماقبل كښې دَتوحيدبيان اوشودې سورة كښې مسئله دَانفاق اوجهاد بيانيږي چه توحيدلپاره دَالله ﷻ په لاره كښې مال خرچ كړئ اوجهاد اوكړئ، په دې دواړومسئلوباندې اتنده نهه (۹) سورتونه، مجادله، حشر، ممتحنه، صف، جمعه، منافقون، تغابن، طلاق، تحريم، متفرع دي، څلورپه مضمون دَجهاد، څلورپه مضمون دَانفاق اويوسورة كښې دواړه مضمونونه جمع دي. دجهادمضمون والاسورة ابتداء په سَبّح لله سره شويده، اودَانفاق، مضمون والاسورة په يسبح لِلهِ سره.

(۲) دَماقبل سورة په آخركښې امردَتسبيح وؤ، په دې سورة په ابتداءكښې دَتسبيح ذكردې.

**دسورة دَمضامينواجمالي خلاصه**

دَ دې سورة درې حصّې دي:

اوله حصّه كښې دَتوحيد ذكر دې چې هغه مقصود دَپاره تمهيد دې،

په دويمه حصه كښې دَانفاق پنځه وجوه ذكر دي

په دريمه حصه كښې ترغيب دې جهادته.

**تفصيلي خلاصه**

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ﴾ آيت اول نه ترآيت (۲) پورې تمهيددې اودَسورت اوله حصه ده چه پكښې دَمسئلې دَتوحيد ذكردې، چه دَدې دَخاطره انفاق اوجهاداوكړئ.

﴿ءَامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ﴾ آيت (۷) نه دَاول مضمون ابتداء ده. اودَسورت دويمه حصه ده

﴿وَأَنفِقُوا۟ مِمَّا﴾ دَانفاق اوله وجه ده

﴿وَمَا لَكُمۡ أَلَّا تُنفِقُوا۟﴾ آيت (۱۰) دويمه وجه ده بطورترقى

﴿مَن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ﴾ آيت (۱۱) دريمه وجه ده
﴿ٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا﴾ آيت (۲۰) څلورمه وجه ده.
﴿مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ﴾ (۲۱) پنځمه وجه ده.
﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِٱلْبَيِّنَٰتِ﴾ آيت (۲۵) نه دويم مضمون يعنى دجهادبيان ذكر كيږي.

| |
|---|
| سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ① |
| پاكي وائى الله جل جلاله ته هغه څيزونه چه په اسمانونوكښ دى اوپه زمكه كښ دى.اوالله تعالى غالب دې،حكيم دې. |
| لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ② |
| هغه لره ده بادشاهي داسمانونو اوزمكى.ژوندى كول كوى اومړه كول كوى.اوهغه په هرڅيزباندى قادردې. |
| هُوَ ٱلْأَوَّلُ وَٱلْءَاخِرُ وَٱلظَّٰهِرُ وَٱلْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ③ |
| هغه اول هم دې اوآخرهم دې،ظاهرهم دې اوباطن هم دې،اوهغه په هرڅيزباندى ښه پوهه دې |

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ﴾ دا د **سورت اوله حصه ده** چې ديكښې د مسئله توحيد ذكر دې او داتمهيداو ترغيب دې د جهاد او انفاق حكم دپاره ،چه ددى دخاطره دمال خرچ كولو اوجهادكولوحكم دې.لام: په لله: كښ زائد دې لپاره دتاكيد،كمافى نصحتُ له، دمسبّحاتو ابتداء په بعضِ ځايونوكښ په ماضى سره شويده لكه دلته اوپه حشر،اوصف كښ،اوپه بعضِ ځايونوكښ په يسبّح مضارع سره شويده،لكه په جمعه اوتغابن كښ،پدى كښ اشاره ده چه تسبيح دالله تعالى په جميعُ اوقاتوكښ جارى ده(روح المعانى وغيره)

﴿مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ "ما" ذكر شو د "من"ذكرنه شودپاره دتغليب داكثرو، تسبيح دذوى العقولوبالاتفاق قولى ده،البته غيرذوى العقولوپه تسبيح كښ اختلاف دې،بعضِ وائى داهم قولى ده،بعضِ وائى صرف تسبيح حالى ده،ددى تفصيل دسورة بنى اسرائيل آيت(۴۴)وان من شيئ الايسبّح بحمده.....الخ كښ تيرشويدې،هلته ئې وګورئ.

﴿وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴾«العزيز» معنی قادر اوغالب،«الحکیم» معنی حکمت نه ډک محکم احکامات صادرکونکې ،داجمله بطور علت راغلیده ،ماقبل حکم دپاره، چونکه بادشاه دپاره دوه اموره ضروری وی: (۱) یو استیلاء، نوالله ﷻ «العزیز» دې، هغه هر چا باندې غالب دې، (۲) دویم تدبیر وتدبر: نوالله ﷻ «الحکیم» دې،دهغه هرحکم محکم اوحکمت نه ډک دې، خلاصه داچې ټول کائنات دَالله ﷻ تسبیح څکه بیانوی چې هغه تن تنها بادشاه دې،مخکښې آیتونو کښې ددې دوه صفاتو «العزیز» او «الحکیم» تفصیل اومظاهر بیانیږی.

﴿ لَهُۥ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾دیکښې دَ «العزیز» صفت یو مظهر او نمونه ذکر کیږی، چې الله ﷻ ته دکائنات آسمانونو او زمکې زرې زرې کښې تصرف کلی اختیار حاصل دې، ژوند هم هغه ورکوی،مرګ هم هغه ورکوی اوهر څه باندې قادردې.﴿يُحۡيِۦ وَيُمِيتُ﴾ خبر دَ مبتدا محذوف دې ای :هو یحي ویمیتُ«یحی»معنی داده چه انشاء دَحیات کوی یعنی اول ځل پیدا کول هم هغه کوی،اومرګ هم هغه راولی.

﴿ هُوَ ٱلۡأَوَّلُ ﴾ دیکښې دَ «العزیز» صفت دویمه نمونه بیانیږی چې هیڅ هم نه وو ،الله ﷻ وؤ ، یو وخت به داسې راشی چې ټول به فناشی خو الله ﷻ ذات به باقی وی،هر چاباندې غالب دې،هیڅ څوک ترینه هم هیڅ چرته نشی پټیدلې،هغه ته د هر څه پته لګی.«الاول» ای السابق علی جمیع الموجودات،یعنی اللهﷻ دَهرڅیزنه قبل موجودوؤ ،قبل دَده نه هیڅ هم نه وؤ. «والاخر» ای الباقی.بعدفنائها(روح)یعنی دَهرڅیزفناکیدلونه بعدبه هم موجودوی،اللهﷻ باندې نه عدم سابق طاری شویدې اونه به پری عدم لاحق طاری کیږی.﴿وَٱلظَّٰهِرُ وَٱلۡبَاطِنُ ﴾د دې په تفسیر کښې متعدد اقوال منقول دې:

(۱) «الظاهر»معنی غالب، چې هغه نه برتر څوک نشته،«الباطن»معنی هغه ذات چې هغه نه ماسوا بل داسې پټ ځائ نشته چی سرې پکښې د الله ﷻ نه پټ شی،حدیث کښې دَ"الظاهر"او"الباطن"دغه معنی راغلیده: انت الظاهر فلیس فوقک شیئ،وانت الباطن فلیس دونک شیئ

(۲): الظاهر معنی آثار واعتبار سره بالکل ظاهر دې ځکه چې الله ﷻ دکائنات ذرې ذرې نه عیان دې،خوځوک یې کنه اوحقیقت معلومه وی ،نوبیا الباطن دې څوک یې حقیقت ته نشی رسیدلې،

(۳): الظاهر معنی امور ظاهریوو باندې عالم،او الباطن معنی امور باطنیوو باندې عالم.

(۴) بعضِ وائی چه﴿ وَالظَّاهِرُ﴾معنی داچه دظاهری نعمتونو مالک دې او﴿وَالْبَاطِنُ﴾معنی داچه باطنی نعمتونو مالک دې،کقوله تعالی:واسبغ علیکم نعمه ظاهرةً وباطنةً

**فائده**: چونکه دا اسماء حسنٰی صفات متضاده دی نوپدی وجه ددی په مینځ کښې واؤذکرشو

﴿وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾یعنی الله ﷻ نه ماورا بل څه پناه ګاه نشته چې سړی پکښې پناه واخلي اوبچ شی،ځکه چې الله ﷻ هر څه باندې باخبر ذات دې.

| |
|---|
| هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى |
| الله ﷻ هغه ذات دې چه پیداکړی نی دې اسمانونه اوزمکه په اندازې دشپږو ورځوکښې.بیائی استواء کړیده |
| عَلَى الْعَرْشِ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا |
| په عرش باندې،عالم دې په هغه څه چه ننوځی په زمکه کښې اوپه هغه څه چه راوځی ددی زمکی نه |
| وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ط وَهُوَ مَعَكُمْ |
| اوپه هغه څه چه راکوزیږی داسمان نه اوپه هغه څه چه خیژی اسمان ته،اوالله ﷻ تاسوسره دې |
| أَيْنَ مَا كُنْتُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ④ لَهُ مُلْكُ |
| هرچرته چه یئ تاسو،اوالله ﷻ په هغه عملونوچه تاسوئی کوئ لیدونکې دې الله ﷻ ره ده بادشاهی |
| السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَإِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ⑤ يُولِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ |
| داسمانونواودزمکی اوخاص الله ﷻ ته ګرځولې شی تول کارونه.داخلوی شپه په ورځی کښې |
| وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ⑥ |
| اوداخلوی ورځ په شپه کښې اوهغه ښه عالم دې په خبرودسینوباندې |

﴿هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ﴾ په دې کښې دَالحکيم صفت نمونه بيانيږي، چې اوخوګورئ دَالله ﷻ څنګه محکمه بادشاهي ده اوڅنګه حکمت باندې مبني نظام دې. آسمانونه اوزمکې يې شپږ ورځو کښې پيدا کړې، حالانکه محض ارادې سره هم پيدا کولې شول. اودکائنات ذرې ذرې باندې هغه نګراني ده، زمکه کښې کومه قطره کوم تخم ننوځي، اوڅه چې ترېنه راوځي، آسمان نه څه نازليږي، اوڅه ورته خيژي، تاسو کوم ځائې وئ، او څه عمل کوئ تولو باندې الله ﷻ عالم دې، اوهغه ورته ګوري ﴿فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾ مراد دَشپږوورځومقداردې، لکه په اعراف وغيره کښې بارباړتيرديي.

﴿ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ﴾ استواء على العرش دَمتشابهاتونه دې، متشابهاتوتفصيلي تفسير په سورة ال عمران کښې تيرشويدې، چه سلف دَدې معنی نه کوي بلکه تفسيرئې په لفظ منصوصي سره کوي اوداسې وائي چه استواء يليق بشانه، اومتاخرين اهل سنت دَدې داسې تفسيراو تاويل کوي چه دَنورونصوصوسره موافق وي، نودلته دَاستواء على العرش معنی او تفسير په تصرف سره کوي اومطلب دادې چه دکائناتوخالق صرف الله ﷻ دې، دَدې نه پيداکولونه بعدئې استواء على العرش کړيده يعنې دکائناتونظم نسق ئې پخپله اغستې دې، بل چاته ئې دا اختيارنه دې ورکړې.

﴿مَا يَلِجُ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ نه مراد دَباران قطرې، تخم، مړي وغيره مراد دي، يعنې ګوياچه الله ﷻ ته دَزمکې دَ اندروني حصّې علم هم دې او﴿وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا﴾ دَبيروني حصّې علم دې ورته، دې نه مراد، نباتات، معدنيات وغيره دي﴿وَمَا يَنزِلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ مرادورنه عذاب، رحمة، احکامات او باران قطرې وغيره دي، ﴿وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا﴾ مراددَدينه فرشتې او نيک اعمال وغيره دي، حاصل داچه دَالله ﷻ علم دکائناتوپه ذرې ذرې محيط دې﴿وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ﴾ تمثيل دې دَاحاطي علمې دَالله ﷻ، معيت کنايه ده دَعلم نه،

﴿ لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾دیکښ دَ الله ﷻ ملک او بادشاهئ استحکام بیان دي چې تعلق صرف دي کائنات سره نه دی بلکه آخرت کښ به هم دَ الله ﷻ بادشاهی وی ،ستاسو ټول او ستاسو اعمال به هغه باندی پیش کیږی، او هغې مطابق به جزا در کوی

﴿ يُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ ﴾دا دَحکمت او احکام بله نمونه ده، چې شپې ورځې تللو راتللو او د وړیکي کیدلو او غټیدلو الله ﷻ یو محکم نظام پیدا کړیدي چې هغې کښ ډیر حکمتونه او مصلحتونه پټ دی. ﴿ وَهُوَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾دا هم بیان دي دا احاطی علمی دَ الله ﷻ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ءَامِنُوا۟ | بِٱللَّهِ | وَرَسُولِهِۦ | وَأَنفِقُوا۟ | مِمَّا | جَعَلَكُم | مُّسْتَخْلَفِينَ |

ایمان راوړئ په الله ﷻ او په رسول دَهغه،اوخرچ کړئ دَهغې مال نه چه ګرځولی یئ تاسو الله ﷻ خلیفه ګان

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيهِ ۖ | فَٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا۟ | مِنكُمْ | وَأَنفَقُوا۟ | لَهُمْ | أَجْرٌ | كَبِيرٌ ۞ |

په هغې کښ،پس هغه کسان چه ایمان ئې راوړي دي دَتاسونه اوخرچ کړي ئې دي ‹مال›دوئ دپاره اجرلوئ دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | لَكُمْ | لَا | تُؤْمِنُونَ | بِٱللَّهِ ۙ | وَٱلرَّسُولُ | يَدْعُوكُمْ | لِتُؤْمِنُوا۟ | بِرَبِّكُمْ |

اوڅه عذردې تاسولره چه ایمان نه راوړئ په الله ﷻ اورسول ﷺ راغواړی تاسوچه ایمان راوړئ په رب خپل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَدْ | أَخَذَ | مِيثَٰقَكُمْ | إِن | كُنتُم | مُّؤْمِنِينَ ۞ | هُوَ ٱلَّذِى |

اوپه تحقیق سره اغستی ئې وه وعده ستاسونه،کچرته یئ تاسوایمان راوړونکی.الله ﷻ هغه ذات دې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُنَزِّلُ | عَلَىٰ | عَبْدِهِۦٓ | ءَايَٰتٍۭ | بَيِّنَٰتٍ | لِّيُخْرِجَكُم | مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ | إِلَى ٱلنُّورِ ۚ |

چه نازلوی په بنده خپل‹حضور ﷺ›باندی آیاتونه واضح‌چه راوباسی تاسودَتیاروډکفرنه رڼاډ‹ایمان ته›

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنَّ | ٱللَّهَ | بِكُمْ | لَرَءُوفٌ | رَّحِيمٌ | ۞ |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او | بیشکه | الله ﷻ | په | تاسو | خامخا | مهربانه | دې | رحم | کونکې | دې |

﴿ءَامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَأَنفِقُوا۟ ﴾ دې ځائ نه د سورت دویمه حصه شروع کیږي ، دتمهید نه بعد دَسورت اول مضمون انفاق فی سبیل الله بیان دي،چه کوم مال درته الله ﷻ بطورنیابت

درکړیدې دهغی نه داللهﷻپه لاره کښ خرچ کړئ،اللهﷻبه درته لوئ اجردرکړی.‹‹امنوا بالله و رسوله ›› داتمهید دې دانفاق دحکم دپاره او خطاب پکښې مؤمنانو ته دې،مقصود ترینه ایمان مقتضی باندې عمل دې،یعنی اللهﷻ او دهغه رسول چی کوم حکم درکوی هغه منئ ، ‹‹ انفقوا ›› یعنی هغی حکمونو نه یوحکم انفاق هم دې لهذا اللهﷻ په لار کښ خپل مال خرچ کوئ

﴿ جَعَلَكُم مُّسْتَخْلَفِينَ فِيهِ ﴾دا اوله وجه د انفاق ده،چه دامال داللهﷻپه لاره کښ څکه خرچ کړئ چه داپه حقیقت کښ ستاسونه دې،تاسوئی دیوڅوورځودپاره نائبان او چوکیدار یئ، حقیقی مالک ددې صرف اللهﷻ دې،هغه به ئي درنه یوه ورځ واپس اخلی کقول القائل:شعر:

وما المالُ والاهلون الاّ ودائع و لابدَّ يومًا ان تردَّ الودائع

دې تفسیر مطابق ‹‹مُسْتَخْلَفِينَ›› معنی نائب في التصرف ده یعنی صرف تصرف اختیار درکړیدې،حقیقتاً یی مالکان نه یئ ګرځولی.

بعضِ وائی چه د﴿ مُّسْتَخْلَفِينَ ﴾مطلب دادې چه اللهﷻتاسوددی مال خلیفه ګان ګرځولی یئ په وراثت سره دمخکښنونه،نولکه څرنګه چه دادمخکښنوسره نه دې پاتی شوې نوتاسوسره به هم نه پاتی کیږی،نوغیرته منتقل کیدلونه مخکښ مخکښ په دې کښ انفاق اوکړئ.

﴿فَالَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ ﴾بشارت دې چی څوک ایمان تقاضو باندی عمل کوی،اوالله ﷻ په لارکښ مال خرچه کوی،هغوئ دپاره لوئ لوئ اجرونه دي.

﴿ وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُونَ ﴾دیکښ دایمان دواعی بیان دي،اومراد دلته هم دایمان نه مقتضی دایمان ده،یعنی دایمان په مقتضی باندې دعمل ټول دواعی اواسباب موجود دی،نوبیاتاسو ولی عمل نه کوئ،‹‹ما›› مبتدا ده ‹‹لكم››ورله خبر دې،‹‹لا تؤمنون›› جمله حال واقع کیږی، د ‹‹کم ›› ضمیر نه .﴿وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ ﴾اول داعی بیان دې،یعنی رسول ﷺ تاسوته ایمان دعوت درکوي،اودایمان په مقتضی اوالله ﷻ په لار کښ خرچ کولو مطالبه درنه کوی،جمله

اسمیه حال واقع کیږی تؤمنون ضمیر نه.﴿وَقَدْ أَخَذَ مِيثَاقَكُمْ﴾دویم داعی بیان دې،یعنی تاسو هغه سره دَ دې عهد هم کړیدې چی مونږ به ایمان تقاضو باندې عمل کوؤ،او الله ﷻ لاره کښې به مال خرچه کوؤ،دینه هغه عهدمراد دې چی نبی کریم ﷺ دصحابوؤ نه اغستې وؤمسند احمد(رقم الحدیث ۲۳۲۷۹) کښې دَحضرت عباده بن صامت ﷺ نه روایت دې:بایعنا رسول الله ﷺ على السمع والطاعة في النشاط والكسل،وعلى النفقة في العسر واليسر،وعلى الامر بالمعروف والنهي عن المنكر ،وعلى ان نقول في الله تعالى ولانخاف لومة لائم یعنی مونږ نبی ﷺ په لاس دَدې خبر دَبیعت کړیدی:

۱)،چی هر قسم حالاتو کښی به یې اطاعت کوؤ،نشاط وی او که سستی وی.

۲)هر قسم حالاتو کښی به الله ﷻ په لارکښی خرچ کوؤ فراخی وی او که تنگدستی.

۳)حق وینا به کوؤ،دَچاملامت پرواه به نه کوؤ.

﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾یعنی کچرته واقعتاً مؤمنان یئ نو ایمان مقتضی باندی عمل کولو دَپاره دَغه دواعی کافی دی.

﴿هُوَ ٱلَّذِى يُنَزِّلُ﴾دا بل داعي ذکر کیږي دَایمان په تقاضو باندی عمل کولو دَپاره،یعنی الله ﷻ څومره لویه مهربانی اورحم وکرم دې په تاسو ،چی څپل واضح او ځائسته احکامات تاسو ته درلیږی اودَجهالت تیارونه مو دَایمان نور اوږنړا ته رااوباسی،لهذا دیکښی چون چرا مه کوئ،بلکه په خوشالئ سره ورباندئ عمل کوئ.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | لَكُمْ | أَلَّا | تُنفِقُوا | فِي | سَبِيلِ | اللَّهِ | وَلِلَّهِ |
| اوڅه عذردې تاسولره چه نه خرچ کوئ مال په لاره دَالله ﷻ کښی اوحال داچه خاص الله ﷻ لره دې | | | | | | | |
| مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ | | | | | | | |
| میراث پاتی کیدل دَاسمانونو اودَزمکی،نه دی برابر دَتاسونه هغه څوک چه خرچ کړې ئې دې مال مخکښی | | | | | | | |
| الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا | | | | | | | |
| دَفتح مکی نه اوقتال ئی کړیدې،دغه کسان لوئ/اوچت دی په درجه کښی دَهغه کسانونه چه خرچ کړی ئې دې مال | | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنۢ | بَعۡدُ | وَقَٰتَلُوا | ۚ | وَكُلًّا | وَعَدَ | اللَّهُ | الۡحُسۡنَىٰ | وَاللَّهُ | |
| ورستودفتح | مکی | نه،اوقتال | ئی | کړیدي،اودټولوسره | وعده | کړیده | اللهﷻ | دثواب.اوالله ﷻ | |
| بِمَا تَعۡمَلُونَ خَبِيرٌ ⑩ | | | | | | | | | |
| په هغه عملونوچه تاسوئی کوئ ښه خبرداردي | | | | | | | | | |

﴿ وَمَا لَكُمۡ أَلَّا تُنفِقُوا۟ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾دادویمه وجه دانفاق ده.چه داmال دالله ﷻ په لاره کښې خرج کړئ،تاسوبه هسې هم مړه کیږئ دابه درنه پاتې کیږي،ددې مال وارث الله ﷻ دي، نو چه بلااجره درنه پاتې کیږي نو اجر پرې حاصل کړئ. ﴿وَلِلَّهِ مِيرَٰثُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾داسمان ذکرکول،باوجود ددې چه هیڅ مخلوق ددې مالک - نه مجازاً او نه حقیقتاً-کیدیشې په دې کښې نکته داوي چه لکه څرنګه آسمان خالص دالله ﷻ ملک دي(چه تاسوئی هم منئ)نودغه رنګه زمکه هم دالله ﷻ ملک دي(بیان القرآن بتغیر).

﴿ لَا يَسۡتَوِي مِنكُم مَّنۡ أَنفَقَ ﴾پدې کښې بیان دي دتفاوت ددرجاتودانفاق کونکواوقتال کونکو،چه بعضِ صحابه ﷺ داسې دي چه دفتح مکې نه قبل ئې انفاق کړیدي اوقتال ئې کړیدي نودوئ په درجه اومرتبه کښې زیات دي دهغونه چه ورستودفتح نه ئې کړیدي،وجه داده چه فتحې مکې نه قبل وخت دابتلااوتکلیفونووخت وؤ،ابتلااوتکلیف په وخت کښې نیک عمل زیات بهتروي دراحت دوخت نه،﴿ مَّنۡ أَنفَقَ﴾فاعل دي د﴿لَا يَسۡتَوِي ﴾،اوقسیم اومقابل د﴿مَّنۡ أَنفَقَ ﴾حذف دي دوجهې دظهورنه،چه هغه'ومن انفق من بعدالفتح'دي(کبیروغیره)﴿مِن قَبۡلِ ٱلۡفَتۡحِ ﴾فتح نه مراددبعضوپه نیزصلح حدیبیه ده،لیکن دجمهورومفسرینوپه نیزورنه فتح مکه مراده ده.

﴿أُوْلَٰٓئِكَ أَعۡظَمُ دَرَجَةً ﴾اسم اشارې دپاره مشارالیه هغه مهاجرین اوانصار صحابه دي چې فتح مکه نه مخکښې انفاق اوقتال فریضه ادا کړیده ، دوئ باره کښې حضورﷺ فرمائیلي دي چې:لوانفق احدکم مثل اُحُدٍ ذهبًا مابلغ مدّ احدهم و لا نصیفه(بخاري وغیره)یعنې که په

تاسوکښې څوک د احد غر برابر مقدار سره زر نفقه کړي ليکن د دوئ ديو موټې نفقې ته نه رسي. په يو روايت کښې داسې دي: دَعُوا لي اصحابي فوالذي نفسي بيده لو انفقتم مثل احدٍ، اومثل الجبال ذهبًا مابلغتم اعمالهم، مفسرين وائي چه پدې آيت کښې واضح دليل دې په دې چه حضرت ابوبکر صديق ﷺ په ټولو صحابه ؤکښې افضل وو ځکه دې اول اسلام راوړونکې وو او اول خرچ کونکې وو مال خپل لره په اسلام او په حضور ﷺ.

دابن عمر ﷺ نه روايت دې چه دې وائي چه يو ځل دحضور ﷺ سره ناست وم. ابوبکر ﷺ هم ناست وو چه چوغه ئې اچولې وه او هغه ئې دکيکرو په ازغو ګنډلې وه، جبرئيل ﷺ راغې او وئيل چه: ابوبکر ﷺ ولې داسې چوغه اچولې ده چه دکيکرو په ازغوئې ګنډلې ده، نو حضور ﷺ ورته اوفرمائيل: انفقَ مالَه عليَّ قبل الفتح، يعنې ده خپل ټول مال په ما باندې خرچ کړيدې قبل دفتحې نه. جبرئيل ﷺ او وئيل چه الله ﷻ په ده باندې سلام وائي او ورته اووايه چه ته ځانه په دې خپل فقر باندې راضي ئې او که ناراضه؟ حضور ﷺ ورته اووئيل نو ابوبکر ﷺ اووئيل چه آيا څه به دخپل رب نه ناراضه کيږمه؟ څه د خپل رب نه راضي يمه (ابن کثير) قرطبي په دې روايت کښې دا اضافه هم کړيده چه جبرئيل ﷺ اووئيل: فانّ الله يقولُ لکَ قد رضيتُ عنکَ کماانتَ عنّي راضٍ، ابوبکر ﷺ په ژړا شو، بيا جبرئيل ﷺ حضور ﷺ ته اووئيل چه کله نه ستادې ملګرې دا چوغه اچولې ده نو دعرش اوچته ونکو فرشتو هم داسې چوغې اچولې دي.

﴿مِنْۢ بَعْدُ﴾ اى من بعدالفتح ﴿وَكُلًّا﴾ منصوب دې مفعول به مقدم دې د ﴿وَعَدَ اللّٰهُ﴾. ﴿الْحُسْنٰى﴾ نه مراد ثواب حسنٰى دې چه جنت دې او مطلب دا دې چه دواړه فريقينو ته په نفقې او قتال باندې ثواب ملاويږي، صرف يو فريق ته نه.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | ذَا | الَّذِيْ | يُقْرِضُ | اللّٰهَ | قَرْضًا | حَسَنًا | فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ |

څوک دې هغه چه قرض ورکړي الله ﷻ ته قرض ښائسته، پس دوه چنده به کړي الله ﷻ دغه قرض هغه لره.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَهٗۤ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ⑪ | يَوْمَ | تَرَى | الْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ | يَسْعٰى | نُوْرُهُمْ | |

اوهغه لره به وي اجر ښه . په هغه ورځ چه وينې به ته مؤمنان سړي اومؤمنانې ښځې چه منډه به وهي نوردَدوئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَيْنَ | أَيْدِيهِمْ | وَبِأَيْمَانِهِمْ | بُشْرٰىكُمُ | الْيَوْمَ | جَنّٰتٌ |

مخکښې د دوئ نه او د ښې طرفونودوئ ورته به اوویلې شي زيرې دې تاسولره نن ورځ دجنتونو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَجْرِي | مِنْ | تَحْتِهَا | الْأَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | ذٰلِكَ | هُوَ | الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ⑫ |

چه بهيږي به لاندې دهغې نه نهرونه هميشه به وي په هغې کښې داهم داکاميابي ده لويه

﴿مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللّٰهَ﴾ دا دريمه وجه دانفاق ده،ماقبل نه على سبيل الترقي،چه دا مال خرچ کړئ د الله ﷻ په لاره کښې په طور دقرض سره،دفقراوکمي نه مه ويريږئ،الله ﷻ به ئې درته واپس درکړي،د کميت اوکيفيت دواړو اضافې سره. دلته دانفاق نه تعبيرپه قرض سره شوې دې،اشاره ده ديته چه دانفاق اجرداسې قطعي اويقيني دې چه ګوياپه الله ﷻ باندې قرض دې،(مدارک) من مبتدا مرفوع محلاً دې ذا ورله خبردې الذي موصول صفت دې د ذا يا ترينه بدل دې،يعنې څوک به وي داسې سړې چه قرض ورکړي الله ﷻ ته.

«قرضاً حسناً» قرض حسن بعض وائي هغه صدقه چه په اخلاص اوپه طريقه دسنت سره خرچ کړې شي،د ريااوبدعت شائبه پکښې نه وي،بعضوئيلي دي چه داهغه صدقه ده چه لس (۱۰) صفات وي په کښې:

(۱) حلال مال نه وي ځکه چه حرام مال الله ﷻ نه قبلوي
(۲) بهتراو افضل څيزوي
(۳) په داسې حال کښې اوشي چه صدقه کونکې صحيح وي يعنې بيمارنه وي، دژوند اميدئې وي،اودفقريره ورسره وي
(۴) زيات حاجت مندته ئې ورکړي
(۵) په پټه ئې ورکړي،
(۶) من يعنې احسان اوتکليف نه ورکول،
(۷) خالص د الله ﷻ درضاد پاره ورکول
(۸) ورکړې شوې صدقه لګه ګڼړل اګرچه ډيره وي
(۹) محبوب اوخوښ مال ورکول
(۱۰) دفقيرکورته رسول(روح المعاني).

﴿ فَيُضَٰعِفَهُۥ ﴾دا جواب استفهام دې د"ان" مقدره دوجهې نه منصوب دې، اوضمير مستترپکښې چه فاعل دې راجع دې الله ﷻ ته، او "ه" ضمير راجع دې قرض ته، مرادترينه اجراوثواب دَ قرض «صدقی»دې، په ديکښې دکميت او مقدار اضافې بيان دې، اوپه﴿ وَلَهُۥٓ أَجْرٞ كَرِيمٞ ﴾کښې دَ کيف اعتبار سره زياتوالی ذکر دې«كريم»معنی مَرضِیٌ سره شويده يعني عظيم الشان اجر به ورته ميلاويږي ، چې هغه الله ﷻ ته معلوم دې ، مخلوق د هغې تصور نشي کولې

﴿يَوْمَ تَرَى ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾دا بشارت أُخرويه دې مؤمنانوته اوانفاق کونکوته، چه دَقيامت په ورځ چه کله دوئ په پل صراط باندې تيريږي نويونوراورنړابه ورسره وی فرشتې به ورته دَ جنت زيری ورکوی، دَابن مسعود ؓ نقل دی چه دې وائی چه:مؤمنانوته به په قدر دَ عملونو دَ دوئ دانُور ورکولې کيږی اوپل صراط باندې به تيريږی، دَبعضوسره به دَغرپه مقدار نور وی، دَ ټولو نوادنۍ نوربه دَوړې گوتی په مقداروی کله به مړکيږی اوکله به بليږی﴿يَوْمَ ﴾ يادأُذكرمحذوف دپاره مفعول دې، يا﴿ أَجْرٞ كَرِيمٞ ﴾اويادَ﴿فَيُضَٰعِفَهُۥ﴾دپاره ظرف دې.

﴿ يَسْعَىٰ نُورُهُم ﴾حال دې دَ مفعول دَ "ترىٰ" نه او مراد دَ نور نه په نيز دَ جمهورو حقيقتًا نُور دې،او دا نور به ورته په پل صراط باندې تيريدلو وخت کښې ورکولې کيږی،بعضِ وائی مخکښې دَدی نه به وی اوورسره به وی چه کله دوئ په پل صراط تيريږی.

﴿بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَٰنِهِم ﴾يعنی مخکښې او ښی طرف ته به يی نور وی، ددې دواړو جهتونو تخصيص:«١»يا دَ دې وجهی نه اوشو چی اعمال نامې په دوئ ته هم دې جهتونو نه ميلاويږی، «٢» او يا مخکښې طرف ته به دَايمان نوروي، ځکه چې ايمان محل زړه دې اوزړه مخکښې طرف ته دې، او ښی طرف ته به دَنيک اعمالو نور وي،ځکه چې نيک اعمالو ښی طرف سره ډير مناسبت دې. نيک اعمال ليکونکی فرشتې هم دې طرف ته ناستی وي،اونيک اعمالو اعمالنامه هم په ښی لاس ميلاويږی،اوکومو رواياتو کښې چی د گس طرفونو ذکر راغلې دې نو هغه دَ دې دواړو نور اثر دې،«٣» او يا دلته "أيمانهم"نه مراد ټول اطراف دې خودَيمين تخصيص صرف شرافت په وجه شويدې.

﴿بُشۡرَىٰكُمُ ٱلۡيَوۡمَ﴾دینه مخکښې یُقال لهم مقدردي،یعنی فرښتي به ورته وائی چه زیرې ستاسو نن ورځ داخلیدل دی جنتونو ته. ﴿ذَٰلِكَ﴾اشاره یانورته ده یا﴿ جَنَّٰتٞ﴾ ته ده په تاویل دَ ماذکر .

يَوۡمَ يَقُولُ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتُ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱنظُرُونَا نَقۡتَبِسۡ

په هغه ورځ چه وائی به منافقان سړی اومنافقانی ښځی مؤمنانوته چه انتظاروکړئ مونږته چه رڼااخلوستاسو

مِن نُّورِكُمۡ قِيلَ ٱرۡجِعُواْ وَرَآءَكُمۡ فَٱلۡتَمِسُواْ نُورٗاۖ فَضُرِبَ

درڼا نه. وورته به اووئیلې شی واپس شئ خپل ورستو پس طلب کړئ هلته رڼا.نو او به وهلې شي

بَيۡنَهُم بِسُورٖ لَّهُۥ بَابُۢ بَاطِنُهُۥ فِيهِ ٱلرَّحۡمَةُ

به مینځ دَدوئ کښې یو دیوال چه هغی لره به دروازه وی. ننه طرف دَهغی . وی به په هغی کښې رحمت(جنت)

وَظَٰهِرُهُۥ مِن قِبَلِهِ ٱلۡعَذَابُ ۝١٣ يُنَادُونَهُمۡ أَلَمۡ نَكُن

اوظاهر دَ هغی، وی به دَ دې طرفه عذاب(دَجهنم) آوازبه اوکړی منافقان مؤمنانوته چه آیانه وؤمونږ

مَّعَكُمۡۖ قَالُواْ بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمۡ فَتَنتُمۡ أَنفُسَكُمۡ

تاسوسره په دنیاکښې،مؤمنان به اووائی هاؤ،خولیکن تاسوپه فتنه کښې اچولی وؤخانونه خپل

وَتَرَبَّصۡتُمۡ وَٱرۡتَبۡتُمۡ وَغَرَّتۡكُمُ ٱلۡأَمَانِيُّ حَتَّىٰ جَآءَ

اوانتظار کولو تاسو(زمونږ دَهلاکت) اوشک خو کولو او دهوکه کښې اچولې وئ تاسو امیدونو،تردی چه راغې

أَمۡرُ ٱللَّهِ وَغَرَّكُم بِٱللَّهِ ٱلۡغَرُورُ ۝١٤ فَٱلۡيَوۡمَ لَا يُؤۡخَذُ

امرداللہ(مرګ) او دهوکه کړې وئ تاسو په باره دَ اللهﷻ کښې دهوکه باز(شیطان)،پس نن ورځ به نشی اغستلې

مِنكُمۡ فِدۡيَةٞ وَلَا مِنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْۚ مَأۡوَىٰكُمُ ٱلنَّارُۖ هِيَ مَوۡلَىٰكُمۡۖ

ستاسو نه فدیه او نه دَ کافرانو نه، ځائ دَ اوسیدلو ستاسو اور دې،هغه ستاسو متولي دې

وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿۱۵﴾

او ډیر بد ځای د او سیدلو دی (دا جهنم).

﴿يَوْمَ يَقُولُ ٱلْمُنَـٰفِقُونَ﴾ دا زجردی منافقانو ته چی هسی خو دوئ دایمان دعوی کوی، خو کله چی ایمان مقتضی باندی عمل کولو وخت راشی، نو بیا شاته کیږی، او عمل پری نه کوی، نو دی بدله به ورله الله ﷻ قیامت کښ داسی ورکړی چی لګ ساعت له به ورله نور ورکړی، چی کوم مؤمنانو سره دی، خو بیا به یی ترینه مړکړی، او جهنم ته به یی اوغور ځوی ﴿يَوْمَ﴾ بدل دی د ﴿يَوْمَ تَرَى﴾ نه .

﴿ ٱنظُرُونَا ﴾ یا پمعنی د "انتظرونا" دی یعنی مونږ ته انتظار اوکړئ، په حدیث کښ دی چه پل صراط سره به الله ﷻ هر مؤمن ته هم نور ورکړی او هر منافق ته هم، چه کله دوئ روان شی په پل صراط باندی نو الله ﷻ به د منافقانو، نور مړ کړی (مؤمنان به ورنه مخکښ لاړشی) نو منافقان به مؤمنانو ته اواز اوکړی چه "انظرونا نقتبس من نورکم" اودریږئ چه مونږ ستاسو د نور نه نور واخلو . یا ﴿ ٱنظُرُونَا ﴾ پخپله معنیٰ کښې دی یعنی مونږ ته نظر شفقت اوکړئ، ﴿نَقْتَبِسْ﴾ جواب امر په وجه مجزوم دی، اقتباس په اصل کښ وئیلې کیږی د اور نه لیت بلول، تکړه د اور اخستل.

﴿قِيلَ ٱرْجِعُوا۟﴾ قائلین به یا مؤمنان وی یا ملائکه، یعنی منافقانو ته به اووئیلې شی چه واپس لاړشئ هلته نه رڼا راوړئ، دوئ چه واپس شی نو ﴿فَضُرِبَ بَيْنَهُم﴾ د دوئ او د مؤمنانو په مینځ کښ به دیوال جوړ شی.﴿ وَرَآءَكُمْ ﴾ نه مراد (۱) یا دنیا ده، یعنی دنیا ته لاړشئ هلته نه د ایمان او عمل صالح نور او رڼا راوړئ، یا (۲) ورنه مراد هغه موقف او مکان دی چه په هغی کښ نور تقسیمدلو دا به ورته استهزاءً اووئیلې شی، لکه څرنګه چه دوئ په دنیا کښ مؤمنانو پوری استهزاء کوله او وئیل به ئی: انما نحن مستهزؤن،

﴿فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ﴾ یعنی کله چی دوئ ته اوئیلی شی چی تاسو روستو لاړشئ، هلته رڼا تلاش کړئ، نو چی دوئ مخ واړوی او واپس شی نو الله ﷻ به د دوئ او مؤمنانو په مابین

کښې به يو حاجز او ديوال جوړ کړی، ﴿لَّهُۥ بَابٌۢ﴾يعنی دې ديوال کښې به يو دروازه وی. ﴿ بَاطِنُهُۥ فِيهِ ٱلرَّحۡمَةُ ﴾ ضمير مجرور مرجع "سور"يا "باب"ده باطن يعنی مؤمنانو والاطرف ته به جنت وی ﴿وَظَٰهِرُهُۥ ﴾ يعنی منافقانو والاطرف ته به عذاب دَجهنم وی

﴿ يُنَادُونَهُمۡ ﴾يعنی منافقان به مؤمنانوته اوازونه کوی او ورته وائی به چه مونږدنياکښې تاسوسره يوځائ نه وؤ ،تاسوسره مومونځونه کول،جهادونه کول نو اوس موولې پريخولو ؟

﴿وَلَٰكِنَّكُمۡ فَتَنتُمۡ ﴾دادَمؤمنانوجواب دې چې اګرچې ظاهری طور باندې په دنيا کښې تاسو مونږ سره پدې اعمالوکښې شريک وئ،خو څو وجوهاتو دَوجهې نه نن تاسوزمونږ سره نشئ يوځائ کيدلې،«فتنتم انفسكم» دا **اوله وجه** ده چې خواهشاتو اتباع خو کړې وه او نفاق خواختيار کړې وؤ ،اوظاهری نفع ته مو کتل،حالانکه دا په حقيقت کښې ځان په هلاکت کښې اچول وو. ﴿وَتَرَبَّصۡتُمۡ ﴾دا **دويمه وجه** ده چې نن تاسو مونږسره ځکه نشئ يو ځائ کيدې چې تاسو مونږ سره په دنيا کښې مخلص نه وئ،بلکه هميشه دَدې په انتظار کښې وئ چې څه بلا اومصيبت به په مسلمانانو نازليږی.﴿وَٱرۡتَبۡتُمۡ ﴾دا **دريمه وجه** ده . چې تاسو يقين نه وو بلکه اسلام اوداسلام تعليماتو په باره کښې تاسوتذبذب شکار وئ،اوشکوکو کښې مبتلا وئ، ﴿وَغَرَّتۡكُمُ ٱلۡأَمَانِيُّ ﴾دا **خلورمه وجه** ده ،چې لوئ لوئ اميدونه خوتړلي وؤ،چه عمر دارز به راته ميلاويږی، نن وی که صَباوی دامسلمانان به ختميږی،زمونږ هم دغه رويه او دوه رخي به مونږ له دنيا کښې فائده راکوی،دی سره سره شيطان هم درته داخبره زړه کښې اچولی ده چې الله ﷻ غفوررحيم دې،آخرت پرواه مه کوئ،هغه به مو اوبښی﴿حَتَّىٰ جَآءَ أَمۡرُ ٱللَّهِ﴾مراد دَ "امرالله" نه مرګ دې،﴿وَغَرَّكُم بِٱللَّهِ ٱلۡغَرُورُ ﴾جمله عطف ده په «غرتكم الامانی»باندې او «الغرور» نه مراد شيطان دې.

﴿فَٱلۡيَوۡمَ لَا يُؤۡخَذُ ﴾داتفريع ده په ماقبل چه نن ورځ هيڅ فديه نه قبولې کيږی چه دوئ ته به پرې دَجهنم نه نجات ملاؤشی،په يو روايت کښې دی چه الله ﷻ به کافرته اووائی چه کچرته نن ورځ تاسره دوچنده دنياوی نوآيادابه تولـه ته په فديه کښې ورکړې چه جهنم نه

ازادشی،نوهغه به اووائی نعم یاربّ.الله ﷻ به ورته اوفرمائی ماستانه دَدی نه اسان ځیزغوختی وؤچه ماسره شرک مه کوه لیکن تاورنه انکارکړې وؤ«روح»

﴿هِيَ مَوْلَىٰكُمْ﴾مولی یاپمعنی دَاولی دې ای هی اولی بکم.یعنی دا اُور دَ جهنم ستاسو دَ پاره غوره دې، یاپمعنی دَ متولی اوذمه دارسره دې،یعنی اوس جهنم دَسخت عذاب درکولو متولی اوذمه داردې، ﴿وَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾مخصوص بالذم محذوف دې چه هی دې

| |
|---|
| أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ |
| آیاوخت نه دې راغلې مؤمنانوته داچه اویریږی زړونه دَدوئ دَوجی دَذکردَالله ﷻ نه،اودَهغی نه چه نازل شویدې |
| مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلُ |
| دَحق نهیعنی قرآن،اوچه نه شی دوئ په شان دَهغه کسانوچه ورکړې شوې وؤهغوئ ته کتاب مخکښ دَدینه، |
| فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ ⑯ |
| پس اوږده شول په هغوئ عمرونه،پس سخت شول زړونه دَهغوئ.او ډیر دَ هغوئ نه فاسقان وؤ |

﴿ أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا ﴾زجر دې بعض مسلمانوته،چې هغوئ نه اعمالو اوانفاق کښ سُستی راغلې وه. یعنی آیاپه مؤمنانوداوخت نه دې راغلې چه دَدوئ زړونه دَقرآن او دَ الله ﷻ دَ ذکر به وجه نرم شی،وعظ نصیحت قبول کړی اومکمل اطاعت پکښ راشی.

صاحب د روح المعانی په حواله دَابن المبارک او ابن المنذردَاعمش رحمه الله نه نقل کړیدی چه هغه فرمائي چه کله صحابه کرام رضی الله عنهم مدینی ته راغلل نوپه معاش کښ ورته څه فراخی اوسهولت ملاؤشونوبعضوحضراتونه په خپل عمل کښ څه فتوراوکمې راغې،نو په دی باندی دا آیت نازل شو

«یان»مضارع ده اَنی یانی: اذا جاء اناه ،ای: وقته،﴿أَنْ تَخْشَعَ﴾جمله په تاویل دَمفردسره فاعل دې دَ﴿ أَلَمْ يَأْنِ ﴾، خشوع نه مراد دَزړه نرمی او خوف الهی دې، چی گناه پریگدی اوالله ﷻ احکاماتو باندې عمل شروع کړی.﴿وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ﴾عطف تفسیر دې ذکر الله او مانزل

دوارو نه مراد قرآن دي ځکه چې قرآن ذکر او نصیحت هم دي او آسمان نه نازل شوي حق هم دي ، یا "ذکر" نه مراد مطلقاً ذکر دي،او "ما نزل" نه مراد قرآن دي.

﴿وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ دینه مراد یهود او نصاریٰ دی یعنی اهل کتابو طرز عمل دې نه اختیاروئ،چې ابتدا کښې ورته کله تورات او انجیل احکامات بیان شو نو دوئ زړونه به نرم شو او ګناه به یې پریخو دو ،خودَوخت تیریدو سره سره دوئ زړونه سخت شو ،بیا به یې پرواه نه وه ،او د غه شان اکثریت پکښې رو رو خپل دین پریخودو. دا جمله عطف ده په ﴿تَخْشَعَ﴾او "لا" نافیه یا ناهیه ده

﴿فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ﴾په دې کښې دَ مفسرینو یو څو اقوال دی:

(۱)چه دَهغوئ اودَ هغوئ انبیاؤو په مینځ کښې مدت تیرشو ،دَانبیاؤو نه لرې شول نو زړونه ئې سخت شول او ډیرپکښې فاسقان شول.

(۲)بعض وائی مطلب دادې چه په دوئ باندی په غفلت کښې ډیروخت تیرشوحتیٰ چه دغه غفلت، حبّ دنیا او دین نه بې خبرئ په وجه دَدوئ زړونه سخت شول

(۳)بعض وائی انتظار دَ قیامت او دَ جزا وربانډی اوږد شو نو دَ خپل کتاب دَ احکاماتو خلاف ئې ژوند شروع کړو ، نو زړونه ئې سخت شول.

حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه دی آیت نه دری(۳)خبری معلومی شوې: یو دَ خشوع لزوم او دوام،دویم داچه په طولِ غفلت سره دَزړه قساوت پیداکیږی، دریم داچه دَقساوت قلبی علاج دَ الله تعالیٰ ذکر دې.

قرطبی رحمه الله لیکلی دی چه داآیت دَفضیل بن عیاض رحمه الله مشهوربزرګ دَهدایت سبب ګرځیدلې دې،ده به اول ډاکی اوزناګانی کولې،په یوې جینئ عاشق شوې وؤ ،نوهغی ورسره دَشپی دَملاقات وعده اوکړه،دې چه دَهغی خواته تلوپه دیوال ختلونوا چانک ئې واؤریدل چه یو قاری داآیت تلاوت کولو ﴿أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ﴾ نودې راواپس شو اووئیل ئې:بلی والله قدآن،بیایووران کورته دَشپی لاړوچه په هغی کښې دَ مسافرو قافله وه، بعضوپکښې بعضوته وئیل چه فضیل ډاکوقافلی لوټ کوی هسی نه چه مونږهم لوټ کړی، فضیل په دی ډیرافسوس اوکړواووئیل چه افسوس څه تولَه شپه په ګناه کښې لګیایم او دَ مسلمانانو قوم ځمانه یرېږی،بیائی توبه اوباسله او الله تعالیٰ ته ئې عرض اوکړو:اللّهم انی قدتبتُ

اليکَ،وجعلتُ توبتي اليکَ جواربيتک الحرام،يعنی څه توبه اوباسم اوخپله باقي ژوندګی دَحرم شريف په جوارکښ تيروم،بيامکی ته لاړواوهلته ئی پوره ژوندداللهﷻپه عبادت کښ تيرکړو.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِعْلَمُوْٓا | اَنَّ | اللّٰهَ | يُحْيِ | الْاَرْضَ | بَعْدَ | مَوْتِهَا | ؕ | قَدْ بَيَّنَّا |

پوهه شئ چه بيشکه اللهﷻ ژوندئ کوی زمکه ورستودمرګ راوچوالی دهغی نه،بيشکه بيان کړيدی مونږ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَكُمُ | الْاٰيٰتِ | لَعَلَّكُمْ | تَعْقِلُوْنَ ⑰ | اِنَّ | الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ |

تاسوته دلائل (دَبعث بعدالموت) دپاره دَدی چه تاسو پوهه شئ بيشکه صدقه کونکی سړی اوصدقه کونکی ښځی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاَقْرَضُوا | اللّٰهَ | قَرْضًا | حَسَنًا | يُّضٰعَفُ | لَهُمْ | وَلَهُمْ | اَجْرٌ كَرِيْمٌ ⑱ |

اوهغه کسان چه قرض ني ورکړي دي اللهﷻته قرض ښائسته،دوه چنده به کړي شي دوئ ته،اووی به دوئ لره اجر د عزت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | بِاللّٰهِ | وَرُسُلِهٖٓ | اُولٰٓئِكَ | هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ ۖ |

اوهغه کسان چه ايمان ئی راوړي دي به اللهﷻاوپه رسولانودهغه،دغه خلق هم دوئ رښتنی دی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالشُّهَدَآءُ | عِنْدَ | رَبِّهِمْ ؕ | لَهُمْ | اَجْرُهُمْ | وَنُوْرُهُمْ ؕ | وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا |

اوشُهداءدی په نيزدرب خپل،وی به دوئ لره اجردَدوئ اونوردَدوئ،اوهغه کسان چه کفرئی کړيدي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِنَآ | اُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ | الْجَحِيْمِ ⑲ |
| اوتکذيب ئی کړيدي | زمونږدآياتونو،دغه | خلق | خاوندان | دَجهنم دی |

﴿ اَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يُحْيِ الْاَرْضَ ﴾ترغيب دي دَاللهﷻذکراوقرآن ته په بيان دَمثال سره چه لکه څرنګه اللهﷻپه باران سره اوچه زمکه ژوندئ کوي نودغه شان دَقرآن تلاوت او دَاللهﷻذکر سره دَ زړه قساوت ختميږی،مړزړه ورسره ژوندي کيږی﴿لَكُمُ الْاٰيٰتِ ﴾دآياتونه مراددليلونه دَبعث بعدالموت دی.

﴿إِنَّ ٱلْمُصَّدِّقِينَ وَٱلْمُصَّدِّقَٰتِ ﴾داهم ترغيب دي انفاق ته چه کوم خلق دَالله ﷻ په لاره کښې انفاق کوی، الله ﷻ به دوئ ته دَدی بدله خوخوچنده ورکوی ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦٓ ﴾ ترغيب دي ايمان اوايمان مقتضياتو باندي عمل کولوته.دَصديقنو شهداء پوره تفصيل دَسورت النساآيت ۶۹کښې تير دي.

| |
|---|
| اِعْلَمُوٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌۢ بَيْنَكُمْ |
| پوهه شئ چه بيشکه دَژونددنيا لوبی دی اومشغولتياده اوښائست دي اوفخرکول دی په مينځ ستاسوکښې |
| وَتَكَاثُرٌ فِى الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ ؕ كَمَثَلِ غَيْثٍ اَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهٗ |
| اوډيرول دی په مالونواواولادونوکښې،مثال دَدنياپه شان دَباران دي چه ښه ښکاره شي زميندارته فصل دَباران. |
| ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُوْنُ حُطَامًا ؕ وَفِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ |
| بيااوچ شی پس وينی ته هغه زير،بياشی هغه فصل ذری ذری.اوپه آخرة کښې عذاب دي |
| شَدِيْدٌ ۙ وَّمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانٌ ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ |
| سخت،دانهماک کونکوته په دنياکښې،اوبخنه ده دَطرفه دَالله ﷻ نه اورضامندی ده،اوندي ژونددَدنيا |
| اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ۞ |
| مگر سامان دَدهوکی دي. |

﴿ ٱعْلَمُوٓاْ أَنَّمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا ﴾داخلورمه وجه دَ انفاق ده په بيان دَحقارت اوبی ثبوتئ دَدنيا ،چه دادنياډيره حقيره اوبی ثبوته ځيزدي، ځي راځي نودَالله ﷻ په لاره کښې ئې خرچ کړئ چه په آخرت کښې درته مغفرت اودَالله ﷻ رضا ميلاؤ شی چې دائمي نعمت دي او که الله لاره کښې نه خرچ کوئ نو بيا به درته عذاب شديد ملاويږی.

دي آيت کښې دَ زندگئ دري قسم احوال بيانيږی: (۱)ماشوم توب احوال (۲)ځوانئ احوال(۳)بوډاوالی احوال﴿لَعِبٌ وَلَهْوٌ ﴾دادَماشوم توب احوال دي،ماشوم توب کښې انسان

محبوب ترین مشغله لوبی اوتماشه دی﴿وَزِينَةٌ وَتَفَاخُرٌ ﴾دځوانی احوالو بیان دې چې ځوانئ کښې یو طرف ته انسان ظاهری زیب وزینت طرف ته توجه وي بل طرف ته هغه داسی کارکولو کوشش کښې وی چې هغې سره ،دده نوم اوشي اودې فکرکښې وی چې څرنګه دې خپلو همزولو کښې بر شي، ﴿وَتَكَاثُرٌ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ ﴾دادبوډاوالی حالت بیان دې،تکاثر کښې خاصه مبالغه ده یعنی دکثرت حرص ئې زیات شی،خوبهر حال دغه ټول فاني دی لوبه وی او که تماشه وي، آخر تیره شی،تزین وی اوکه فخر وی آخر ختم شی، حرص وی دمال اوکه داولاد آخرترینه انسان لاړشی،بس دغه دنیا زندګئ حاصل دې

بعض مفسرین فرمائی چې دلته دی امورو سره دنیا زندګئ تشبیه مقصود ده، «لعب» یعنی لکه څنګه چې یو انسان لوبه کښې مشغول وی نوهغې دوران ده ته خپله ټوله کامیابی او ناکامی دې لوبه کښې ښکاری،خو چې کله بس کړی نو سوا د ستړتیا نه ورته بل څه نشی حاصل نو دغه شان دنیا ده،چې دې کښې څوک منهمک وی هغه ته هر څه بس دابښکاری،خو چې ترینه لاړ شی نو بیاورته پته اولګی.«لهو»یعنی مثال ئې دتماشی دې چې فضول وخت پکښې ضائع شی او ورته هیڅ حاصل نشی. «وزینة وتفاخر»لکه څنګه حسن فانی دې، عهده عارضی ده،نن شتې ،صبا نشته،دغه شان دنیا زندګی فانی اوعارضی ده. «وتکاثر في الاموال والاولاد» لکه څرنګه مال اولاد نه پاتې کیدونکی دی لګ،کله ډیر، اوکله بالکل نه، نو زندګی دغه شان مثال دې چې داآخر ختمیدونکې ده،اګر چه عمر نوح ولې میلاؤ نشی،اګر چه انسان په بقاء باندی حریص ولی نه وی(والله اعلم)

﴿ كَمَثَلِ غَيْثٍ﴾ددنیادسرعت زوال مثال دې چه لکه څرنګه په زمکه باران اوشی،تکه شنه شی،بیاڅه وخت بعددغه واخه زیړشی،ذری ذری شی،دارنګه انسان اودهغه زندګي ده چه د یو څو ورځوصحت اوخوشحالئ نه بعدورباندی مرضونه .غمونه بوډاوالې راشی، آخر مړ شی نو په داسی بی ثباته څیز باندی اطمینان نه دې پکار،اونه ورته میلان پکاردې.

﴿أَعْجَبَ الْكُفَّارَ﴾ابن مسعودﷺنه مروی ده چه مراد د"کفار"نه زمیند اران دی ځکه چه کفر "ستر"(پټولو) ته وائی اودوئ هم تخم په زمکه کښې پټه وی،بعضِ وائی مرادورنه کافران

دی خکه چه دوئ دَدنیاپه ژوندباندی تکبراوتعجب کوی،په خلاف دَمؤمن نه﴿ ثُمَّ يَهِيجُ ﴾ای يتحرک الی اقصٰی مایتأتی له(روح)يعنی ښه زورکښ شی اوقوت ته اورسی،یاپمعنی دَیجف اویيبسُ سره دې يعنی اوچ شی.

﴿وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ﴾دَدنیاپه مقابله کښ دآخرت شان بیانیږی یعنی څوک چه په دنیاکښ منهمک شی نوپه آخرة کښ به ورته سخت عذاب ورکولې کیږی.﴿ وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ ﴾ يعنی چاچه په دنیاکښ غفلت اونکړو،انفاق فی سبیل الله ئی اوکړونوهغه ته به مغفرت اودَالله رضاملاویږی ﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ﴾مرادورنه اطمینان اوهغه اعمال دی چه مختص دی په حیاة دنیوي پورې،اوهرچه دی اعمالِ صالحه اوپه قدردَضرورت کسب دَمعاش.نودا پکښ نه دی داخل.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَابِقُوا | إِلَىٰ | مَغْفِرَةٍ | مِّن | رَّبِّكُمْ | وَجَنَّةٍ | عَرْضُهَا | كَعَرْضِ |
| وړاندوالي اوکړئ مغفرت ته دَ طرفه دَرب خپل نه او جنت ته چه فراخی پلنوالي دَهغی په شان دَ فراخي | | | | | | | |
| السَّمَاءِ | وَالْأَرْضِ أُعِدَّتْ | لِلَّذِينَ | آمَنُوا | بِاللَّهِ | وَرُسُلِهِ ۚ | | |
| دَاسمان اودَزمکی ده . تیار کړې شویدې دپاره دَهغه خلقوچه ایمان ئی راوړې دې په الله جَلَّ جَلَالُهُ اوپه رسولانودَهغه، | | | | | | | |
| ذَٰلِكَ | فَضْلُ | اللَّهِ | يُؤْتِيهِ | مَن | يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ | ذُو | الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٢١﴾ |
| دغه فضل دَالله جَلَّ جَلَالُهُ دې چه ورکوی ئې هغه چاته چه ئی خوښه شی اوالله جَلَّ جَلَالُهُ خاونددَفضل لوئ دې | | | | | | | |

﴿سَابِقُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ﴾بشارة دې اوترغیب دې ایمان،انفاق.جهادفی سبیل الله ته،دلته مضاف مقدردې،ای الی اسباب مغفرةٍ وجنةٍ(روح)اواسباب دَمغفرت ایمان،انفاق اوجهاددې په لاره دَالله جَلَّ جَلَالُهُ کښ،حضرت علی رضی الله عنه نه دَدی آیت په تفسیرکښ منقول دی چه:دَټولونه اول مسجدته داخلیږه اوآخرکښ خارجیږه،انس رضی الله عنه وائی:تکبیرتحریمه ته دَامام سره شریک کیږه،بعضِ وائی دَقتال په صف اول کښ شه(روح).

﴿كَعَرْضِ ٱلسَّمَآءِ﴾ عرض كله په معنى دَپلن والى سره راځي او كله په معنى دَنفس وسعت سره، او دايا په ظاهرباندى محمول دي يعنى دَجنت پلن والي دومره دي لكه اوه (۷) واړه اسمانونه او زمكى چه دَيوبل سره متصل كړې شي. نو چه دَجنت پلن والي دومره دي نو طول ني الله ﷻ ته معلوم دي دَمخلوق دَعلم نه خارج دي، ځكه طول زيات وى دعرض نه، وهذا قول الجمهور (قرطبى) بعضِ مفسرين وائى چه تمثيل دي دَوسعت دَجنت دپاره، ځكه چه دَانسانانو په نظر كښ دَاسمانا و زمكى نه زيات وسعت نشته دي. ﴿ذَٰلِكَ﴾ يعنى دا وعده دَمغفرت او جنت

مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِيٓ أَنفُسِكُمْ إِلَّا فِي كِتَٰبٍ
نه رسيږى هيڅ تكليف په زمكه كښ او نه په ځانونو ستاسو كښ مگر هغه ليكلي شويدي په كتاب (لوح محفوظ) كښ،
مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَآ ۚ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ۲۲
مخكښ دَدينه چه پيداكړې وى مونږ هغه، بيشكه دا كار (لوح محفوظ كښ ليكل) په الله ﷻ باندى اسان دي
لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوا بِمَآ
(دا خبرمى دركړو) دَپاره دَدى چه تاسو خفه نه شئ په هغه څه چې فوت شى ستاسو نه او مستې اونه كړئ تاسو په هغې
ءَاتَىٰكُمْ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ۲۳ الَّذِينَ
چه دركړې دي تاسوته الله ﷻ، او الله ﷻ ته خوښه وى هر تكبر كونكې فخر كونكې. دا هغه دى
يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ۗ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللَّهَ
چه بخل كوى (پخپله هم) او حكم كوى نورو خلقو ته هم دَبخل، او هغه څوك چې اعراض اوكړى نو بيشكه الله ﷻ
هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ۲۴
هم هغه بې پرواه دې ستايلې شويدي

﴿مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ﴾ دا پنځمه وجه دَانفاق ده. يعنى كچرته تاسو ځكه نه خرچ كوئ دَ الله ﷻ په لاره كښ چه دا به تاسوته دَتكليف او دَمصيبت به وخت كښ پكارراشى نو دا خيال

غلط دي ځکه چه کوم مصيبتونه په انسان راځي هغه دَمخکښ نه په تقديرالهي کښ مقرر دي، په مال سره هغه نه دفعه کيږي﴿مِن مُّصِيبَةٍ﴾کښ من زائده دي لپاره دَتاکيد او عموم، يعني هرقسمه مصيبت«فِي ٱلْأَرْضِ»لکه قحط،فسادپه فصلونو اوباغونو کښ، زلزله، سيلابونه ، دهماکي کيدل وغيره.

﴿وَلَا فِيٓ أَنفُسِكُمْ﴾لکه مرضونه،اولادمرکيدل فقر،وغيره﴿إِلَّا فِي كِتَٰبٍ﴾اى الامكتوبة مثبتة في كتاب«روح»کتاب نه لوح محفوظ ياعلم الهي مراددي.﴿مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَآ﴾اى نخلقها، ضمير يا مصيبت ته راجع دي،يا نفسونو ته يا ﴿ٱلْأَرْض﴾ته، ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ﴾يعني دااثبات اومحفوظ کول په لوح محفوظ کښ

﴿لِّكَيْلَا﴾دا تقدير حکمت بيانيږي ، جارمجرورمتعلق دي به محذوف پورى:اى اخبرکم بذلک... يعني دَدغه خبرئ اطلاع موتاسوته ځکه درکړه چه تاسوته څه تکليف در ورسيږي،څه نعمت درنه فوت شي په هغي غمژن نه شئ اوچه څه نعمت درته ملاو شي نو په هغي تکبراونه کړئ،ځکه چه مصيبت اونعمت مخکښ نه مقررشويدي.

﴿ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ﴾اشاره ده دى خبرئ ته چه خوشحاليدل هغه مذموم دى چه موجب دکبراوفخر وى،مطلق فرح مذموم نه ده﴿ مُخْتَالٍ﴾هغه چاته وائي چه خپل ځان ورته ښه ښکاري،دَبل چاحقوق په خپل ځان نه مني،اودَلويئ په وجه دَخپلوانو ،ګاونډيانو نه نفرت کوي.﴿فَخُورٍ﴾هغه څوک چه پخپله خپل صفتونه خلقوته کوي.

﴿ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ﴾خبردي دَمبتدامحذوف اى هم الذين...يابدل دي﴿ كُلَّ مُخْتَالٍ﴾نه ﴿ وَيَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ﴾پخپله هم ګمراه دى نورخلق هم ګمراه کوي،ماقبل کښ دَضلال درجه وه دا دَ اضلال درجه ده،پخپله هم بخيل وى خلقوته هم دَ بخل امرکوي. ﴿وَمَن يَتَوَلَّ﴾زجردي بخل

کونکوته چه څوک دَالله ﷻ په لاره کښې دَانفاق نه اعراض اوکړي نو الله ﷻ دده اودَده دَانفاق نه مستغني دې، محمود دې في ذاته، دَهغه دَشکر نه اعراض کول هغه ته ضرر نه رسوی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَقَدْ | أَرْسَلْنَا | رُسُلَنَا | بِالْبَيِّنٰتِ | وَأَنْزَلْنَا | مَعَهُمُ | الْكِتٰبَ | وَالْمِيْزَانَ |
| خامخا په تحقيق سره ليږلي وُو مونږ رسولان خپل ښکاره دليلونو سره او نازل کړي مو وُو دَ هغوئ سره کتاب اوتله | | | | | | | |
| لِيَقُوْمَ | النَّاسُ | بِالْقِسْطِ ۚ | وَأَنْزَلْنَا | الْحَدِيْدَ | فِيْهِ | بَأْسٌ | شَدِيْدٌ |
| لپاره دَدې چه قائم شي خلق په عدل او پيدا کړيده مونږه اوسپنه چه په دې کښې جنګ دې سخت. | | | | | | | |
| وَّمَنَافِعُ | لِلنَّاسِ | وَلِيَعْلَمَ | اللّٰهُ | مَنْ | يَّنْصُرُهٗ | وَرُسُلَهٗ | |
| اوفائدې دی نورې دَ خلقو د پاره، او چه ښکاره کړي الله ﷻ هغه څوک چې امداد کوی دَالله ﷻ او دَرسولانو دهغه | | | | | | | |
| بِالْغَيْبِ ۭ | إِنَّ | اللّٰهَ | قَوِيٌّ | عَزِيْزٌ ﴿٢٥﴾ | | | |
| په غيبه سره | بيشکه | چه | الله ﷻ طاقت والا دې، | غالب دې | | | |

﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ﴾ دادسورت دريمه حصه ده اودیکښې دَسورة دويم مضمون يعنی جهادفی سبيل الله بيانيږی چه مونږ ارسال دَرسولانو او انزال دکتابونو کړيدې دَپاره دَدې چه خلق په انصاف قائم شی يعنی هدايت قبول کړی،ليکن چه بياهم هدايت نه قبلوی نو اوسپنه مو پيدا کړيده چه آلات دَحرب ورنه جوړشی او دَ منکرينو سره جهاد اوکړيشی،په اوسپنه کښې ډيری فائدې دی خواولاًو بالذات فائده ئې داده چه دَدينه دَجنګ اسلحه جوړشی او دَ اسلام او دَالله ﷻ دشمنانو سره پرې جهاد اوکړيشی.

﴿بِالْبَيِّنٰتِ﴾ نه مراد دلائل اومعجزات دی ياورنه مراداحکامات اوهدايات دی ﴿مَعَهُمُ الْكِتٰبَ﴾ جنس کتاب، نو دَهررسول کتاب ته شامل دې، ﴿وَالْمِيْزَانَ﴾ دا (۱) ياعطف تفسيری دې دَ ﴿الْكِتٰبَ﴾، يعنی هغه کتاب چه هغه وزن کونکې وُو دَخلقو عقائدو دَپاره، (۲) ياورنه مراد حکم دې دَعدل او انصاف، (۳) يا ورنه مراد معروفه تله ده، دې صورت کښې مراد دَ انزال نه

انزال دَهغه احکامو او اسبابو دي چه دَتلی سره متعلق دی(روح)او یا دَ قبیلی دَعلفتها تبنًا و ماءً باردًا نه دي ای انزلناالکتاب ووضعناالمیزان .

﴿لِيَقُومَ ٱلنَّاسُ بِٱلْقِسْطِ ﴾علت دي دَانزال دکتاب اومیزان.قیام بالقسط نه مراداتباع دَشریعت ده،﴿وَأَنزَلْنَا ٱلْحَدِيدَ﴾یعنی که څوک د دومره واضحه دلائلو او انصاف باندی مبني نظام اتباع نه کوي نو بیا مونږ اوسپنه هم پیدا کړیده «انزلنا»دلته پمعنی دَخلقنا دي،کقوله تعالی:وانزل لکم من الانعام:﴿فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ ﴾ د اوسپنې تخلیق مقاصد او فوائد بیانیږي ، ، دا اوله فائده ده چې هغې سره اوزار اوآلات دَجنګ جوړیږی اوکفر وفساد خلاف جهاد پرې کیږی چی هغې سره قیام بالقسط مقصد حاصلیږی ﴿وَمَنَٰفِعُ لِلنَّاسِ﴾ دا دویمه فائده ده چې دَخلقو معاش ضرورت ورسره هم پوره کیږی، ځکه چې یو ګنړ شمیر اشیاء داسې دی چې هغې کښې داوسپنې استعمال څه نه څه درجه کښې ضرورت راپیښیږي ، او انسان هغی سره خپل معاش اونور ضرورتونه پوره کوی.﴿وَلِيَعْلَمَ ٱللَّهُ ﴾دا ئي بله فائده او مقصود بیانیږي ، چې اولنو دوو فائدو باندې مرتب کیږي ،یعنی مقصودترینه امتحان دې چی یوطرف ته دَانسان ذاتي مفادات اوضروریات دی اوبل طرف ته دَالله ﷻ لار کښې جهاددې، نو الله ﷻ معلومول غواړی چی څوک پری خپله دنیا آبادول غواړی،اوڅوک پرې دَاسلام مدد اوحفاظت کول غواړی.«لیعلم الله »عطف دي په محذوف باندی ای لینفعهم ولیعلم الله.....الخ(روح)اوپه دی محذوف باندی سیاق دلالت کوی.﴿بِٱلْغَيْبِ ﴾حال دي دَفاعل دَینصر نه یادَمفعول نه ای غائبًامنهم،باغائبین منه(روح)﴿إِنَّ ٱللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾تنبیه ده چه دَجهادحکم کول داپدی وجه نه دي چه الله ﷻ دَاعلاء کلمة الله د پاره بل چاته محتاج دي،الله ﷻ خو پخپله قوت والا او غالب ذات دي دَچامددته ئی حاجت نشته،صرف ستاسو امتحان مقصود دي

| وَلَقَدْ | أَرْسَلْنَا | نُوحًا | وَإِبْرَٰهِيمَ | وَجَعَلْنَا | فِي | ذُرِّيَّتِهِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|

اوخامخاپه تحقیق سره لیږلي وو مونږه نوح علیه السلام او ابراهیم علیه السلام اوګرځولي وو مونږه په اولاد دَ هغو دواړوکښې

النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ فَمِنْهُمْ مُّهْتَدٍ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ۞ ثُمَّ قَفَّيْنَا

نبوت او کتاب پس بعض د هغوئ نه هدایت موندونکی وو. او ډیر د هغوئ نه فاسقان وو بیا پرله پسی اولیږل مو.

عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا وَقَفَّيْنَا بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ ۙ

په نقش قدم د دوئ رسولان خپل او پدوئ پسی اولیږلو مونږ عیسی ابن مریم. او ورکړو مونږ هغه ته انجیل.

وَجَعَلْنَا فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّرَحْمَةً ۭ وَرَهْبَانِيَّةَ

او ګرځولې وه مونږه په زړونو د هغه خلکو چه اتباع ئی کړې وه د عیسی علیه السلام نرمی او رحمت او رهبانیت

ابْتَدَعُوْهَا مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ اِلَّا ابْتِغَاۗءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ

چه دخان نه ئی جوړ کړې وه .نه وو فرض کړې مونږ رهبانیت په دوئ مګر لپاره د طلب د رضا مندئ د الله ﷻ.

فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۚ فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ

نو دوئ رعایت اونه ساتلو د هغې ځنګه چې حق وو د رعایت ساتلو د هغې پس ورکړو مونږ هغه کسانو ته چه

اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ۞

ایمان ئی راوړې وو د دوئ نه اجر د هغوئ ، او ډیر د دوئ نه فاسقان وو

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا﴾ د تیرشوی آیت تفصیل دې چه مونږه د خلقو د اصلاح دپاره حضرت نوح علیه السلام او حضرت ابراهیم علیه السلام رااولیږل، او د دوئ په اولاد کښې موهم د نبوت سلسله جاری اوساتله لیکن بیاهم اکثر خلق نافرمانه وو. ﴿فَمِنْهُمْ﴾ ضمیر «ذریة» ته راجع دې.

﴿ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ﴾ یعنی دوئ نه بعد مو د رسولانو سلسله منقطع نه کړه بلکه پرله پسې مو پیغمبران رالیږلی دی ﴿ عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ﴾ «هم» ضمیر مرجع نوح او ابراهیم علیهما السلام دي چونکه دوئ سره نور رسولان هم شته، لکه ابراهیم علیه السلام په زمانه کښې لوط علیه السلام لیږلې

شوي وۀ نوځکه ورته ضمير دَجمع راجع کړيشو.﴿وَ قَفَّيْنَا بِعِيْسَى بْنِ مَرْيَمَ﴾تر دې چې دا سلسله عيسى عليه السلام ته رااورسيده.

﴿وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ﴾ضميرراجع دې عيسى عليه السلام ته.يعنی کوموخلقوچه دَعيسى عليه السلام اتباع کړې وه يعنی حوارين،نوالله تعالى دَهغوئ په زړونوکښ دَيوبل سره مينه اومحبت جوړکړې وۀ،لکه دَصحابوؓ په شان کښ الله تعالى فرمائی رحمآء بينهم ﴿رَأْفَةً وَرَحْمَةً﴾ مشهوره داده چه دادواړه مترادف الفاظ دی،ليکن بعضِ وائی چه﴿رَأْفَةً﴾دفع الشرته وائی او﴿وَرَحْمَةً﴾جلبُ الخيرته وائی(روح).

﴿وَرَهْبَانِيَّةً﴾دَدې په وجه دَنصب کښ دوه قوله دی(١)داپه﴿رَأْفَةً﴾باندی عطف دې اوجعلنا بمعنی دَخلقنا يا "صيرنا" دې،او﴿ابْتَدَعُوهَا﴾دَ﴿ وَرَهْبَانِيَّةً﴾صفت دې.(٢)بعضِ وائی چه دادَمَااضمِرعامله علی شريطة التفسير دَقبيلی نه دې،معمول دې دَفعل محذوف چه تفسيرئی ورستو﴿ابْتَدَعُوهَا﴾کوی،ای ابتدعوارهبانيةً،اکثرمفسرينوداترکيب نه دې خوښ کړې ځکه چه پدی سره معتزله دَخپل مذهب اثبات کوی چه بنده دَخپل افعالوخالق دې،ځکه چه رأفة اورحمة دَالله تعالى افعال دی نونسبت ئی الله تعالى ته شويدې،اودَرهبانية نسبت بندګانوته شويدې ځکه چه دَدې خالق بندګان دی،ليکن دَدوئ دااستدلال کمزورې اوباطِل دې،ځکه چه دلته بندګانوته نسبت په دی اعتبارسره نه دې شوې چه دوئ ئی خالق دی بلکه په دی اعتبار سره شويدې چه دوئ دَدې تشريع کړيده،الله تعالى نه ده کړې او﴿مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ﴾ پدی واضح دليل دې ای ماشرعناهاوانماهم التزموهامن تلقاء انفسهم(ابن کثير).

رهبانيت ونيلې کيږی:الفعلةُ المنسوبةُ الی الرّهبان،يعنی راهبانوته منسوب طرز عمل، نسبت دې دَ رهبان بروزنِ فعلان،دَرهب يرهبُ نه مأخوذدې،ويره کولوته وائی کقوله تعالی:واضمم اليکَ جناحکَ من الرّهب. "راهب" هغه چاته وائی چه دَالله تعالى نه يرې اوخوف په وجه دَمخلوق نه تعلق قطع کړی،کناره کش شی په تنهايئ کښ. عبادات اومجاهدات اختيار

کړی، دَ رهبانیت ابتداء داسی اوشوه چه دَعیسیٰ علیہ السلام دَرفع الی السَماء نه ورستو عیسایانو ډیر محکومانه ژوندتیره ولو ،دَ بُت پرستوغلامان وؤ او دَ یهودو دَ لاسه به ورته ډیر تکلیف ور رسیدلو،دینِ عیسوی علیہ السلام باندی ورته عمل کول ډیرمشکل وؤ،په دوئ کښ دوه اویا (۷۲) فرقی جوړې شوې،دَهغوئ نه صرف دری فرقونجات اومندلو.یوی فرقی قتال شروع کړو لیکن ډیر زر هغوئ شهیدان شول،بلی فرقی دعوت وتبلیغ شروع کړولیکن هغوئ هم په اروباندی شهیدان کړې شول اوپه اُورکښ اوسیزول شول.دریمی فرقی چه کله داحالات اولیدل نودَښارونونه بهراووتل غرونواوغارونوته لاړل هلته ئی دالله ﷻ عبادت شروع کړو.
لکه ابن ابی حاتم رحمۃ اللہ علیہ پخپل تفسیرکښ دَعبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ طویل روایت نقل کړیدې چه هغه وائی:قال لِی رسولُ اللهِ ﷺ:یاابن مسعود:قلتُ لبیکَ یارسولَ الله!قال:هل علمتَ انّ بنی اسرائیلَ افترقواعلی ثنتین وسبعین فرقةً لم ینج منها الاّثلاث فرقٍ قامت بین الملوکِ والجبابرة بعد عیسیٰ بن مریم علیہ السلام فدعتْ الی دین الله ودین عیسیٰ بن مریم،فقاتلتِ الجبابرة فقُتلت فصبرتْ و نجتْ،ثم قامت طائفةٌ اخریٰ لم تکن لهاقوة بالقتال فقامت بین الملوک والجبابرة فدعوا الی دین الله و دین عیسیٰ بن مریم،فقتلت وقُطعت بالمناشیروحرقت بالنیران فصبرت ونجتْ،ثم قامت طائفة اخریٰ لم یکن لهاقوة بالقتال ولم تطق القیام بالقسط فلحقت بالجبال فتعبدت وترهبت،وهم الذین ذکر الله، و رهبانیّة ابتدعوها ما کتبناعلیهم.
دا د رهبانیت ابتداء وه خو ورو ورو دا رهبانیة دَدوئ یو رواج جوړشو ،څکه چی په سنه (۳۰۵) کښ دَرومابادشاه قسطنطین چه عیسائی مذهب قبول کړونوعیسایانوته اقتدار میلاؤ شو، هره قسمه ازادی ورته ملاوه شوه اوډیرې ګرجی هم جوړې شوې،لیکن دَدی باوجود هم دوئ رهبانیت پری نه ښودلو،بلکه نوره غلو ئی هم پکښ اوکړه،دَعیسایانو پادریانو به دَ کورونونه ماشومان تختته ول اودَرهبانیت تربیت به ئی ورله ورکولو،نکاح کول ئی په ځان حرام کړل،حلال خوراکونه ئی حرام کړل،غسل کول صفائی کول ئی حرام ګنړل ، دَ خپلو میاندو خویندو سره خبری کول ئی هم معصیت ګنړلو، چونکه دَ رهبانیة دا طرزعمل دَ فطرت خلاف وؤ نوپه دی وجه پکښ ډیرې خامئ پیدا شوې، دَ دوئ عبادت خانی او دَ خلوت ځایونه دَ زناکارئ،بدکارئ مرکزونه جوړشول،حلال او حرام تمیزکولونه بغیرهرقسمه مال به

نی خوړلو .وغیره وغیره.لکه په سورة التوبه کښ ددوئ حالت ذکردې انّ كثيراً مّن الاحبار والرّهبان ليأكلونَ اموال النّاس بالباطل ويصدّون عن سبيل الله.توبه ۳۴)

﴿إِلَّا ٱبْتِغَآءَ رِضْوَٰنِ ٱللَّهِ﴾ صحيح داده چه دااستثنا منقطع ده.ای ماشرعناهاعليهم لكنّهم ابتدعوها ابتغاءرضوان الله.یعنی مونږ په دوئ رهبانیت نه وؤفرض کړې لیکن دوئ پخپله د الله ﷻ درضامندئ دپاره دااختیارکړې وؤ.

﴿فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا﴾ابن کثیروائی چه په دی کښ د دوئ ذم ذکر شویدې په دوؤ وجهوسره:(۱) یو داچه دوئ په دین د الله ﷻ کښې دهغه څیز ایجاد اوکړوچه الله ﷻ ورته امرنه وؤکړې.(۲)دویم داچه کوم څیزدوئ په ځان لازم کړې وؤپه هغی قائم پاتی نه شول.اوهغه خامئ اوبد اخلاقئ پکښ پیدا شوې چه تفصیل مخکښ تیرشو.

بعض مفسرین وائی چه په دی کښ "ذم" په یوې وجهی سره دې چه درهبانیت اصل مقصد د الله ﷻ عبادت وؤلیکن دوئ دخپل مقصدنه لری شول،درهبانیت حق ئی ادا نه کړو.

﴿فَـَٔاتَيْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنْهُمْ أَجْرَهُمْ﴾ددینه مراد هغه حوارین او نصاری دی چې ظالم بادشاهونو ظلم وستم باوجود حق باندې مستقیم ولاړوؤ،اوحق طرف ته یی دعوت ورکولو اودین حق په لار کښ جهاد کولو یا مراد د دینه راهبان دی چه زمانه دحضور ﷺ ئی اوموندله اوایمان ئی راوړلوپه یوحدیث کښ هم ددی تفسیرپه"الذین امنوابی وصدقونی"سره راغلې دې ﴿وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَـٰسِقُونَ﴾مرادورنه هغه دی چه ایمان ئی په نبی علیه السلام باندې نه وؤ راوړلې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا | ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا۟ | ٱتَّقُوا۟ | ٱللَّهَ | وَءَامِنُوا۟ |
| اې هغه کسانوچه | ایمان مو راوړې دې | | اوویریږئ د الله ﷻ نه | | ایمان راوړئ |
| بِرَسُولِهِۦ | يُؤْتِكُمْ | كِفْلَيْنِ | مِن رَّحْمَتِهِۦ | وَيَجْعَل | لَّكُمْ نُورًا |
| په رسول حضور ﷺ د الله ﷻ باندی.دربه کړی تاسوته دوه حصې درحمت خپل نه اوابه کړخوی تاسولره رانړا | | | | | |
| تَمْشُونَ بِهِۦ | وَيَغْفِرْ لَكُمْ | وَٱللَّهُ | غَفُورٌ رَّحِيمٌ | لِّئَلَّا | يَعْلَمَ |
| چه ځئ به تاسوپه هغی سره اوبخنه به اوکړی تاسوته،اوالله ﷻ بخونکی مهربانه دې.چه پوهه شی | | | | | |

| |
|---|
| اَهْلُ الْكِتٰبِ اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاَنَّ الْفَضْلَ |
| اهل كتاب يهود،نصارى چه دوئ قادرنه دي په هيڅ څيزدفضل نبوت دالله ﷻ نه.اوبيشكه فضل نبوت |
| بِيَدِ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۲۹﴾ |
| په اختيارد الله ﷻ كښ دي،وركوي ني هغه چاته چه ئې خوښه شي.اوالله ﷻ خاونددفضل لوئ دي |

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ﴾دې دوه آيتونو كښ اهل كتابو ته ايمان دعوت ،ايمان تولو مقتضياتو باندې على العموم عمل او جهاد باندې على الخصوص عمل ترغيب دې، او بشارت اعلان دې،چې اى اهل كتابو !الله ﷻ درته خپل رسول راليږى دې هغه باندى ايمان راوړئ اوهغه په اتباع كښ الله ﷻ په لار كښ جهاد اوكړئ،اوعذرونه بهانې پريگدئ، الله ﷻ به درله دَ ايمان اوجهاد ډير اجرونه در كړى.

﴿يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ﴾يعنى دوه چنده اجر به دركړى،يو اجر خپل نبى باندى ايمان راوړلو په سبب او بل نبى كريم ﷺ باندې ايمان راوړلو په سبب،لكه حديث كښ راغليدى، ثلاثة يؤتون اجرهم مرتين،رجل من اهل الكتاب امن بنبيه وأمن بي فله اجران﴿وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا﴾نور نه مراد هغه نور دې چې مخكښ آياتونو كښ تير شويدې نورهم يسعى بين ايديهم

﴿اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ﴾فضل الله نه مراد قتال دې يعنى چې اهل كتاب دابهانى اونه كړې چې دَ الله رسول نشته نو مونږ څنگه جهاد اوكړو،دَچاپه نگرانئ كښ اوكړو، دې تفسير مطابق"لا"په لئلا كښ زائد نه دې،داد حضرت حسين على ﷫ رائى ده، جمهور مفسرينو مطابق﴿فَضْلِ اللّٰهِ﴾نه مراد تير شوى آيت كښ مذكور اجر دې،او"لا"په ﴿لِّئَلَّا﴾كښ زائددې.يعنى قيامت په ورځ غير مؤمن اهل كتابوته پته اولگې چې صرف سابقه انبياوؤ باندى ايمان رواړل نجات دَپاره كافى نه دې بلكه نبى كريم ﷺ باندې ايمان راوړل هم ضرورى دى،

دَدى آيتونو يو بل تفسير هم منقول دې چې يا ايها الذين أمنوكښ خطاب غير اهل كتاب مؤمنانو ته دې ،دې تفسير اعتبار سره داپه آخر كښ بيا دَايمان اودَايمان مقتضياتو باندې عمل كولو طرف ته ترغيب ذكر كيږى،اوبشارت دې

يؤتكم كفلين» رواياتو کښې راغې چې کله دا آیاتونه الذین اتیناهم الکتب من قبله هم به يؤمنون .اولئک يؤتون اجرهم مرتين(القصص ،۵۴.۵۳)نازل شو نو اهل کتاب مسلمانانو به په دې فخر كولو اوخپل فضیلت به يې ثابتولو ، نو الله ﷻ غير اهل كتاب مؤمنانوپه حق کښې دا آیت نازل کړو ،چې دوئ ته هم دوچنده اجر ميلاويږي،«کفلین»معنی یا نصیبین ده يعني دوه چند اجربه ورته ميلاويږي.يو اجرنبي ﷺ باندې ایمان راوړلو په سبب.اوبل سابقه تولو نبيانو باندې ایمان په سبب كقوله تعالى:لا نفرق بين احد من رسله یا"کفلین" معنی ضعفین ده يعني کیفیت اعتبار سره به ورله الله ﷻ اجر زيات کړي.

﴿وَأَنَّ ٱلۡفَضۡلَ بِيَدِ ٱللَّهِ﴾ کچرته "لا" په «لئلا يعلم» کښې زائد وي نوبيا عطف دي به په "الا يقدرون" باندې.يعنی چې پدې خبرې باندې پوهه شي چې فضل او احسان صرف الله ﷻ په لاس کښې دي،اوکچرته "لا" په «لئلا» کښې زائد نه وي ،نوبيا عطف دي په "الا يعلم اهل کتاب" باندې.

| ركوعاتها (٢) | سورة المجادلة مدنية | اياتها (٢٢) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | په نوم دَ الله ﷻ چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دي (شروع کوم) | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٥٨) وحسب النزول (١٠٥)**

سورة المنافقون نه بعد او سورة الحجرات نه قبل نازل شويده.

**ربط:** (١) څلور سورتونه، سورة مجادله، حشر، ممتحنه، اوسورة الصّف دَسورة حديد په مضمون ثاني يعنى په جهاد فى سبيل الله باندى متفرع دى، نومخکښ سورة کښ ترغيب وؤ قتال اوجهاد فى سبيل الله ته، نوپه دې سورة کښ زجردې هغه منافقانوته چه جهادئى نه کولو، اودَجهاد خلاف ئى مشورې کولې. دغه شان سورة الحديد کښې په جهاد مضمون کښ ليعلم الله من ينصره ورسله ذکر وؤ دلته کښ دَ "كتب الله لاغلبن انا ورسلى ذکر دې.

(٢) مخکښ سورت کښ "الباطن" صفت ذکر شوې وؤ، ديکښ دَهغى نمونى بيانيږى.

(٣) مخکښ سورت آخر کښ دَ "فضل" ذکر وؤ، ديکښ مسئله ظهار بيانيږى چې هغه دَالله ﷻ فضل يو مظهر دې.

**دسورة دَمضامينو اجمالى خلاصه**

ابتداء کښ تمهيد دې حکم دَظهارته، بيامسئله اوحکم دَظهار ذکر کيږى، دَمنافقانو دَاصلاح دپاره هغوئ ته زجرونه اودرى (٣) قوانين ذکر کيږى.

**تفصيلى خلاصه**

﴿قَدۡ سَمِعَ اللّٰهُ﴾ آيت اول (١) تمهيد دې حکم دَظهارته.

﴿الَّذِيۡنَ يُظٰهِرُوۡنَ﴾ آيت (٢) تر آيت (۴) پورې دَظهار دَمسئلى بيان او حکم دې،

﴿اِنَّ الَّذِيۡنَ يُحَآدُّوۡنَ اللّٰهَ﴾ آيت (٥) او (٦) کښې زجراو تخويفات دى منافقانو ته.

**دَ منافقانو پنځه شرارتونه او خباثتونه بيانيږې:**

آيت (٧) کښې اول خباثت بيان دې

آيت (٨) کښې دويم او دريم خباثت بيان دې

آیت (۱۴ . ۱۵) کښې څلورم خباثت بیان دې او تخویف دې

آیت ۱۲ . ۱۹) کښې پنځم خباثت ذکر دې او په هغې زجر او تخویف دې

**درې قوانین ذکر کیږي د پاره د اصلاح د منافقینو:**

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا تَنَـٰجَيۡتُمۡ﴾ آیت (۹) او (۱۰) اول قانون دې

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَكُمۡ﴾ آیت (۱۱) دویم قانون دې

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَـٰجَيۡتُمُ ٱلرَّسُولَ﴾ آیت (۱۲) دریم قانون دې

دی ﴿لَّا تَجِدُ قَوۡمٗا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ﴾ دَمخلصانو مؤمنانو مدحه او هغوئ ته بشارة دې

**تمت خلاصة السورة اجمالاً وتفصيلاً**

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَدۡ | سَمِعَ | ٱللَّهُ | قَوۡلَ | ٱلَّتِي | تُجَٰدِلُكَ | فِي | زَوۡجِهَا |
| په تحقیق سره واوریدله قبوله کړه الله جل جلاله خبره دَهغه ښځې چه جګړه ئې کوله تاسره په باره دَخاوندخپل کښې | | | | | | | |
| وَتَشۡتَكِيٓ | إِلَى | ٱللَّهِ | وَٱللَّهُ | يَسۡمَعُ | تَحَاوُرَكُمَآ | إِنَّ | ٱللَّهَ |
| اوفریادئې | کولو | الله جل جلاله ته، | اوالله جل جلاله آوریدلې | خبرې ترې دَ | ستاسو دواړو. | بیشکه | الله جل جلاله |
| سَمِيعُۢ بَصِيرٌ ① | | | | | | | |
| ښه آوریدونکې دې ښه کتونکې دې | | | | | | | |

﴿قَدۡ سَمِعَ ٱللَّهُ قَوۡلَ ٱلَّتِي﴾ دی آیت کښې **تمهید دې حکم دَ ظهار** ته، دَآیت شانِ نزول باره کښې مفسرینو لیکلی دی چه داآیت دَخوله بنت ثعلبه رضي الله عنها باره کښې نازل شویدې، چه داداَوس ابن صامت رضي الله عنه بی بی وه، دَاوس بن صامت رضي الله عنه په طبیعت کښې غصّه وه، یوه ورځ کورته راغې، کور والا سره یې خبرې ترې کولې، پدیکښې حضرت خوله رضي الله عنها څه داسې خبره اوکړه چې ده له پرې غصه ورغله او ظهارئې ورسره اوکړو یعنی "انتِ علیّ کظهرامیّ" ئې ورته اووئیل، اوظهارکول په جاهلیت کښې یعنی قبل دَ اسلام نه طلاق ګنړلې کیدلو او حرمتِ ابدی به ورسره راتلو . نو دا دَ حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضره شوه اواوئې وئیل: ای ده الله رسوله، چې کله څه ځوانه وم خلقو ماته رغبت کیدو، نو "اوس" ماسره نکاح اوکړو، اوس چې غاخونه مې اوغورځیدو، خیټه

مې دَ بچو نه خالي شوه،نوماسره يې ظهار اوکړو،اوبالکل يو اخې ئي پريخودلم،نوآيازمونږه يو ځائ اوسيدلو څه ګنجائش شتې اوکنه؟.نوحضورﷺورته اوفرمائيل:والله ماامرتُ في شانکِ بشئٍ حتّى الآن،يعنې تراوسه پورې ماته ستاپه شان کښې څه امر نه دې شوې،په يو روايت کښې دي چه حضورﷺورته اوفرمائيل:مااراکِ الاّقدحرمتِ عليه،يعنې څه خيال کوم چه ته په هغه باندې حرامه شوې ئي. دې ورته اووئيل:ماذکرطلاقاًيعنې طلاق ئې نه دې راکړې . او دَ حضورﷺسره ئې باربارمجادله کوله ، بيائې اووئيل:چه ياالله!څه تا ته شکايت کومه دَ خپل يو اخې والي او دَ دې مصيبت،په يوروايت کښې دي چه دې اووئيل،څه الله تعالىٰ ته دَخپلې فاقې اوبدحالئ شکايت کومه، څماواړه ماشومان دي که داهغه ته ورکوم نوضايع کيږي اوکه دَ ځان سره ئې ساتمه نو دَ لوږې نه مري،سرئې خپل اسمان طرف ته اوچت کړې وؤاو دعاء ئې اوغوختله چه ياالله!څماباره کښې دَخپل نبي عليه السلام په ژبه باندې څه حکم نازل کړه،دا دعا ئې کوله تردې چه الله تعالىٰ دا آياتونه نازل کړل او حکم دَظهارنازل شو چه ورستوآيت کښې ذکر کيږي،حضورﷺدې ته اوفرمائيل ورشه خپل خاوندراوله، خاوند ئې راغې حضورﷺورته دا آياتونه اولوستل اوبيائې ورته اوفرمائيل: اتجدُرقبةً تعتقهامن قبلِ ان تمسها،نو هغه ورته اووئيل : نه، حضورﷺورته اوفرمائيل: افلاتستطيع ان تصوم شهرين، نوده ورته اونيل په هغه ذات مې دې قسم وي چه ته ئې په حقه مبعوث کړې ئې،کچرته څه په ورځ کښې دوه درې خله خوراک اونه کړم نو نظر مې زائله کيږي،حضورﷺورته اوفرمائيل:افتسطيع ان تطعم ستين مسکينًا، نو ده ورته اونيل:څه قدرت نه لرم مګرداچه ته راسره تعاون اوکړې،نوحضورﷺورته څه ورکړل اوورته ئې اوفرمائيل داشپيته مسکينانوته ورکړه(ابن کثير)

﴿ قدسمِعَ اللهُ﴾سماع کنايه ده اجابت او قبول نه يعنې الله تعالىٰ د هغې فرياد قبول کړو ،لکه (سمع الله لمن حمده) کښې.﴿تُجَٰدِلُكَ﴾ مراد دَجګړې نه بحث مباحثه کول دي يعنې باربارئې دا وئيل چه:ماذکرطلاقاً. يعنې څماخاوند دَطلاق الفاظ نه دي وئيلي اومقصدئې طلاق نه وؤ،﴿ وَتَشْتَكِيٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾يعنې دابه ئې وئيل:اللّهم انی اشکواليک﴿ تحاوركما﴾خبرې ترې ستاسو، تحاور: جانبينو نه خبرې ترې کيدو ته ويلې کيږي ﴿إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعُۢ بَصِيرٌ﴾ماقبل دپاره علت دې

| |
|---|
| اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآىِٕهِمْ مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ |
| هغه کسان چه ظهارکوی ستاسو نه ، دَ ښځو خپلو نه، نه دی هغوئ میاندې دَ دوئ، نه دی میاندی ددوئ |
| اِلَّا الّٰٓـِٔيْ وَلَدْنَهُمْ وَاِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ |
| مگر هغه چه زیږولی ئی دی دوئ،اوبیشکه دوئ یقیناً چې وائی یوه بې کاره خبره |
| وَزُوْرًا ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ② |
| اووائی دروغ،اوبیشکه الله ﷻ خامخامعافی کونکې. بخښونکې دې |

﴿ اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ ﴾دې آیاتونوکښ **حکم دَ ظهار** ذکرکیږی،چه په ظهارسره خپله ښځه مورنه گرځی،دائمی حرمت ورسره نه راځی،لیکن داسې قول کول عقلاً اوشرعًادواړه منکراوبددی،اوصفادروغ اودَحق نه انحراف دې.

**ظهار** مصدردې دَ ظَاهَرَيظاهِرُ ،په لغت کښ مقابلةُ الظَهرِبالظهرته وائی،کله چه دَدوؤکسانو په مینځ کښ عداوة شی نو هر یو خپل شا دَ بل شا ته اوگرځوی،او په ظهارکښ هم مظاهر دَ مظاهرمنها سره عداوة راشی نو ظهار ورسره اوکړی، بعضِ وائی چې ظَهر دلته پمعنی دَ عُلو سره دې،مرادورنه ختل دی کقوله تعالی: فمااستطاعوه ان يَظهروه(کهف:۹۷).نو دَ انتِ علیّ کظهر امّی،معنٰی داده چه:انّه لایعلوهاکمالایعلوامّه(بحر،کبیر)

په اصطلاح دَاحنافوکښ ظهار وائی:هوتشبیه المنکوحة بمحرمةٍ علیه علی التابید،یعنی دَ خپلې ښځې تشبیه دَهغه ښځې سره ورکول چه هغه په ده باندې همیشه دپاره حرامه وی،لکه مور، خور، لور،

(۱)احنافو په نیز ظهار صرف مورسره تشبیه ورکولو سره خاص نه دې،بلکه ټولو محرماتو ابدیؤو سره تشبیه ورکولو داحکم دې.

(۲) ظهار څنگه دَښځی کل له تشبیه ورکولو سره ثابتیږی،دغه شان هغه جزء چې ترینه تعبیر دَ کل کیږی لکه سر،سټ وغیره او جزشائع (لکه نصف،ثلث وغیره) له تشبیه ورکولو سره هم ثابتیږی،

(۳)ظهار ځنګه "ظهر" سره تشبه ورکولو سره ثابتیږی،دغه شان دمحرماتو ابدیوؤ په هغه عضوسره تشبیه ورکولو سره ثابتږی چې هغې ته کتل حرام دی

په﴿ مِنكُم ﴾کښ اشاره ده چه ظهارصرف دسړی حق دې په شان دطلاق،دښځی په ظهارسره ظهار نه واقع کیږی.

﴿وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ ﴾ضمیرظهارکونکوته راجع دې﴿مُنكَرًا ﴾یعنی عقل ونقل دواړو اعتبار سره بې کاره خبره ده چې یو سړې خپلې ښځې له مور سره تشبیه ورکړی. ای ینکره الشرع والعقل والطبع (روح المعانی)﴿ وَزُورًا ﴾ "زور"دروغوته ویلی کیږی،اودا دروغ ځکه دی چې ګویا دې خبرورکوی چې ځنګه مور په ما حرامه ده دغه شان ښځه هم راباندی حرامه ده . یا دَ دې وجهې نه چې ګویا دَ ده دا اعتقاد دې چې دې الفاظوپه وجه ښځه داسې حرامیږی لکه مور، او دا بالکل دروغ دې ځکه چې شریعت دا الفاظ دَ حرمت مؤقت سبب ګرځولی دی، دَ حرمت مؤبد نه.﴿ وَإِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ﴾الله ﷻ معاف کونکې اوبخونکې دې نوپه ارتکاب دَظهارسره هم معاف کول وی په توبې سره،صاحب دَروح المعانی وائی چه دآیت نه معلومه شوه چې ظهارکول حرام دی بلکه ګناه کبیره ده ځکه چه پدی کښ دَالله ﷻ دَحکم بدلولو باندی اقدام دې،اودا دَډیروکبائرونه زیاته خطرناکه ده.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِينَ | يُظٰهِرُونَ | مِن | نِّسَآئِهِمْ | ثُمَّ | يَعُودُونَ | لِمَا | قَالُوا |
| اوهغه کسان چه ظهاراوکړی دښځوخپلونه بیاواپس کیږی دوئ دهغی خبرې نه چه دوئ کړې وه، | | | | | | | |
| فَتَحْرِيرُ | رَقَبَةٍ | مِّن | قَبْلِ | أَن | يَتَمَآسَّا | ط | ذٰلِكُمْ |
| نو (په دوئ لازم دی) ازادول دَمرئ(غلام)مخکښ دَدی نه چه ښځه خاوندیوبل ته نیزدې شی،دا(حکم دکفاری) | | | | | | | |
| تُوعَظُونَ | بِهِ | ط | وَاللَّهُ | بِمَا | تَعْمَلُونَ | خَبِيرٌ ۝٣ | فَمَن |
| نصیحت کولیشی تاسوته په دې سره ، او الله ﷻ په هغه عملونوچه تاسوئی کوئ خبرداردې،پس هغه څوک | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَمْ | يَجِدْ | فَصِيَامُ | شَهْرَيْنِ | مُتَتَابِعَيْنِ | مِنْ | قَبْلِ |
| چه اونه موندی(رقبه) | | نو په هغه باندې روژې نيول دي دوه مياشتې پرله پسې | | | | مخکښې ددينه |
| أَنْ يَتَمَاسَّا | فَمَنْ | لَمْ | يَسْتَطِعْ | فَإِطْعَامُ | سِتِّينَ | |
| چه ښځه خاوندیوبل ته نیږدی شی،پس هغه څوک چه نه لری طاقت دروژو نوپه هغه طعام ورکول دی شپیتو | | | | | | |
| مِسْكِينًا ۚ | ذَٰلِكَ | لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ | وَتِلْكَ | حُدُودُ اللَّهِ ۗ | | |
| مسکینانوته.دادی لپاره چه ایمان راوړئ تاسوپه الله ﷻاوپه رسول دهغه.اودااحکام پولی دالله ﷻدی | | | | | | |
| وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ | | | | | | |
| اولپاره دکافرانوعذاب دردناک دي | | | | | | |

﴿ وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَائِهِمْ ﴾په دې آياتونوکښې **کفارې د ظهار** بيان دې.چه کوم خلق ظهاراوکړی اوبیادخپل قول نه رجوع کول غواړی نوپه هغه باندی په دی دری کفاروکښې بالترتیب یوه کفاره لازمه ده(۱)تحریردرقبې، اوکه استطاعت ئې نه وی(۲)نودوه میاشتی پرله پسې روژې نیول، اوکه دادی استطاعت ئې نه وی(۳)نوشپیته مسکینانوته طعام ورکول.

﴿ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا﴾جمهور فقهاءفرمائی چې نفس ظهار سره کفاره نه ثابتیږی.بلکه "عود" سره ثابتیږی،خو د "عود" تعریف کښې ددوئ مابین کښې اختلاف دې.

(۱)احنافو په نیز"عود" نه مراد اباحت دتمتع دي،یعنی چې دا اوغواړی چې ښځګه ورله مخکښې دښځې نه فائده اغستل حلاله وه اوس هم حلاله شی،دې تقدیر باندې د"عود"معنی تدارک اوتلافی د مافات ده،او"عود"دې معنی کښې کلام عرب کښې استعمال شوې دې لکه وائی عادَ غيثٌ على ما افسد.اي تداركه بالاصلاح،(احكام القرآن)

(۲)امام مالک رحمه الله په نیز د"عود"نه مراد عزم علی الوطی دې،امام مالک اواحنافو قول کښې خاص فرق نشته.

(۳) امام شافعی رحمه الله په نیز "عود" مطلب دا دې چې ظهار کولو نه بعد دومره زمانې پورې طلاق نه ورکول چې هغې کښې ښځې ته طلاق ورکول ممکن وی لهذا که دومره زمانې پورې یې طلاق ورنه کړو نوخپله پخپله به پرې کفاره لازمه شی.
(۴) اهل ظواهرو "عود" ظاهری معنی باندې محمول کړیدې. یعنی که دوباره داقول اوکړی نو کفاره پرې شته گنې نشته.

﴿ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ ﴾ اي : فعليهم تحرير رقبة جمله خبرواقع کیږی دَ "الذین" اسم موصول نه چونکه مبتدا اسم موصول متضمن معنی شرط دې، نو ځکه ئې خبر باندې "فاء" داخله شوه، احنافو په نیز «رقبة» نه مراد مطلق غلام دې، مؤمن وی که کافر، مذکر وی که مؤنث او وړوکې یالوئ. « من قبل ان يتماسا» یعنی جماع اودواعی دَجماع دواړه، دَ کفارې ادا کولو نه قبل منع دی، امام شافعی رحمه الله په نیزصرف جماع کول حرام دی

﴿ ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ ﴾ای تُزجرون به عن ارتکاب المنکر (روح) اشاره حکم دکفاری ته ده، یعنی دَدی کفاری په ذریعه تاسو دَارتکاب دَمنکرنه منع کولیشئ، تهانوی رحمه الله فرمائی چه دینه معلومه شوه چه په مالی جرمانی سره هم اصلاح دَنفس کیږی (ازماجدی).

﴿ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ ﴾ دَ "لم يجد" دپاره مفعول مقدردې، ای فمن لم يجدرقبةً، یعنی چاته چه رقبه دَآزاده ولودَپاره ملاؤنشی برابره خبره ده چه ورته ملاؤنشی یاورته ملاویږی خوقیمت ئې ورسره نه وی، نوپِدِه باندی پرله پسی دوه میاشتی روژی نیول لازم دی، تتابع په روژه کښی دَاحنافوپه نیزشرط دې، دغه رنگه دوه میاشتی پوره کیدلونه قبل وړباندی تماس منع دې هم دَورځې هم دَشپې، که په مینځ دکفاری کښی ئې تماس اوکړونوبیابه دَسرنه روژې نیسی.

﴿فَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ ﴾یعنی که دَدوؤمیاشتوروژو نیولوطاقت ئې نه وی، برابره خبره ده که استطاعت ئې دَنفس روژی نیولونه وی یادَتتابع استطاعت ئې نه وی، نوبیابه شپیته مسکینانو ته طعام ورکوی سهاراومابنام په مقدارد "من اوسَطِ ماتُطعمونَ اهليكم" اوداهم کولیشی چه هرمسکین ته په مقداردَفطرانی طعام ورکړی تمليكًا. دی دریم صورة سره چونکه

﴿مِن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا﴾ قيدنه دي لګيدلې، نودی وجه نه احناف وائی چه دَاطعام په خلال کښې هم جماع وغيره کوليشي.

﴿ذَٰلِكَ﴾ اشاره ده تيرشوی بيان اوتعليم ته او دَ﴿لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ﴾ نه مراد عمل کول دی په احکامو او شرائعو باندې ﴿وَتِلْكَ﴾ يعنی دااحکام مذکوره دَالله ﷻ پولې او حدود دی نو دَ دینه تجاوزمه کوئ کافران چه ورنه تجاوزکوی نوهغوئ دَپاره دردناک عذاب دې.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ كُبِتُوا كَمَا كُبِتَ |
| بيشکه هغه کسان چه مخالفت کوی دَالله ﷻ اودَرسول دَهغه ذليله به کړې شی لکه چه ذليله کړې شويدی |
| الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَقَدْ أَنزَلْنَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ |
| هغه خلق چه مخکښې وؤدَدوئ نه اوحال داچه نازل کړی وؤمونږدلائل واضحه.اولپاره دکافرانوعذاب |
| مُّهِينٌ ﴿٥﴾ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُهُم بِمَا |
| رسواکونکې دې په کومه ورځ چه راپورته به کړی دوئ الله ﷻ ټول پس خبربه کړی دوئ په هغه عملونو |
| عَمِلُوا أَحْصَاهُ اللَّهُ وَنَسُوهُ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿٦﴾ |
| چه کړی وؤ،يادد ی هغه عملونه الله ﷻ ته اودوئ هيرکړيدی،اوالله ﷻ په هرڅيزباندې ګواه دې |

﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ﴾ دی آياتونو کښې زجراوتخويف دې هغه کفارواومنافقانوته چه دَالله ﷻ اودَ رسول ﷺ مخالفت کوی، او احکامو دَ شريعت باندې طعن کوی، چه دوئ به دَ تيرشوی کافرانو په شان دنيااواخرت کښې ذليله وی.

«يُحَادُّونَ اللَّهَ» دشمني او اختلاف کولو ته وائي ، د حد نه مشتق دې ، نو د شمني او اختلاف کونکي هم د يو بل مخالف حد آخر کښې وي نو ځکه ورته محاده وئيلې کيږي

﴿كُبِتُوا﴾ کبت ذليله او رسوا کولو ته وائي ، د ماضی مجهول صيغه ده، مضارع نه تعبير په ماضی سره اوشو دَ وجهی د تيقن فی الوقوع نه،چنانچه دا وعده په خندق او په بدرکښې

پوره شوه، چه مشرکین مکه پکښې ذلیله شول،علماءوائی چه آیت اګرچه دَ منافقانو او یهودیانو باره کښې نازل دي،لیکن مصداق کښې ئې عموم دې.چه کوم مسلمانان بادشاه او اُمراءِ سوء دَشریعت اسلامی نه جدا قانون جوړه وی اونافذه وی هغه هم په دې وعید کښې داخل دی.

﴿ وَقَدْ أَنزَلْنَآ ءَايَٰتٍۭ بَيِّنَٰتٍ ﴾یعنی باوجود دَدینه چې زمونږ لیږل احکامات بالکل واضعه وؤ، عدل وانصاف اودَعقل تقاضې عین موافق وؤ ،لیکن دوئ هغه پریخودل،جمله معترضه ده یاحال واقع ده دَ کبتوا ضمیر مرفوع نه.

﴿ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ ٱللَّهُ ﴾متعلق دې یادَ﴿مُّهِينٌ ﴾سره،یاپکښې اذکر مقدردې.﴿جَمِيعًا﴾حال مؤکده دې یعنی قیامت په روځ به الله ﷻ دوئ ټول راپورته کوی دَقبرونونه ،یوبه پکښې هم غیر مبعوث نه وی نو کوم کارونه ئې کړیدی نودَټولوخلقومخکښې به ورته ئې ښکاره کړی. دپاره دَتخجیل اودَخزي دَدوئ.

﴿ أَحْصَىٰهُ ٱللَّهُ وَنَسُوهُ ﴾ یعنی اللهﷻدَدوئ عملونه محفوظ کړیدی،اګرکه دوئ هیر کړیدی یا ئی ورته التفات نه دې کړې﴿وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴾تاکید دې دَماقبل.

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ |
| آیاته نه وینې نه ئی خبرچه بیشکه اللهﷻعالم دې په هغه څه چې په اسمانونوکښې دی اوپه هغه څه چې په زمکه کښې دی، |
| مَا يَكُونُ مِن نَّجْوَىٰ ثَلَٰثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ |
| نه وی هیڅ پټه جرګه دَدری کسانو مګراللهﷻتی څلورم وی اونه دَپنځه کسانوجرګه مګراللهﷻتی شپږم وی |
| وَلَآ أَدْنَىٰ مِن ذَٰلِكَ وَلَآ أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا۟ ۖ ثُمَّ |
| اونه کم کسان دَدینه اونه زیات کسان مګراللهﷻدَدوئ سره وی کوم ځائ کښې چه.هم وی دوئ،بیابه |
| يُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا۟ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ۞ |
| خبرورکړی دوئ ته دَهغه عملونوچه کړی ئی وو،په ورځ دَقیامت،بیشکه اللهﷻپه هرخیزباندی ښه عالم دې |

﴿ أَلَمۡ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ ﴾ دی آیاتونو کښې **زجر دي منافقانو ته د هغوئ په خباثت.** او خباثت ئي دا وو چه دَ جهاد خلاف به ئی پټی مشوری کولې او دا به ئی ګنړله چه زمونږ دَ پټو مشورو چا ته علم نشته، حالانکه الله ﷻ په هرڅه عالم دي دَهغه نه هيڅ خبره نه شی پټی دلې

﴿ مَا يَكُونُ مِن نَّجۡوَىٰ ثَلَٰثَةٍ ﴾ دَالله ﷻ دَوُسعت علمی تاکید دې ما نافیه ده او ﴿يَكُونُ﴾ کښې کان تامه ده من زائد دې لپاره دَتاکید، دَدری(۳) اودَپنځه(۵) دَعدد تخصیص دَدوه وجهونه شوي دي:

(۱) یو دَ دې وجهې نه چې دَمنافقانو یوجماعت وؤچه هغی کښې به درې، کله پنځه کسان وؤ، هغوئ به دَمسلمانانونه جداکیدل اوپه پټه سرګوشیانی به ئی کولې. مقصد ئی دَ مسلمانانو غصه کول وؤ، نودی آیت کښې دوئ ته اووئیلې شول چه که دری کسان وی او که پنځه کسان وی ستاسو په شان اوکه دَدینه کم وی اوکه زیات وی، الله ﷻ ورسره وی، چه څه وائی الله ﷻ پرې عالم وی

(۲) بله دا چې دَ "نجوی" دپاره کم از کم دوه کسان پکار وي دینه بعد چی څومره زیاتیږی تول نجوی کښې راځی لیکن الله ﷻ ابتداءً درې اوبیا پنځه ذکر کړو دیکښې اشاره ده دیته چه اولی داده چه تعداد دَاهل شوری دې طاق عددوی، لکه دری، پنځه.. وه(۷)، ځکه چه په وخت دَ اختلاف کښې به طرف راجح متحقق شی(روح المعانی وغیره)

﴿ إِلَّا هُوَ مَعَهُمۡ ﴾ یعنی دَالله ﷻ ورباندی علم وی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمۡ | تَرَ | إِلَى | ٱلَّذِينَ | نُهُواْ | عَنِ | ٱلنَّجۡوَىٰ | ثُمَّ | يَعُودُونَ لِمَا |
| آیاته نه ګورې هغه کسانو(منافقانو، یهودیانو)ته چه منع کړې شوی دي دَپټوجرګونه بیا کوي هغه عمل | | | | | | | | |
| نُهُواْ عَنۡهُ | وَيَتَنَٰجَوۡنَ | بِٱلۡإِثۡمِ | وَٱلۡعُدۡوَٰنِ | وَمَعۡصِيَتِ | ٱلرَّسُولِۖ | وَإِذَا | | |
| چه منع کړې شوی وؤدَهغی نه اوجرګی کوی دګناه اودَظلم اودَنافرمانئ دَرسول اوکله چه | | | | | | | | |
| جَآءُوكَ | حَيَّوۡكَ | بِمَا | لَمۡ | يُحَيِّكَ | بِهِ | ٱللَّهُ | وَيَقُولُونَ | |
| راشی تاته(اې پیغمبره!) سلام کوی تاته په هغی الفاظوچه ندې کړې سلام تانه په هغی سره الله ﷻ. اووائی | | | | | | | | |

فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوْلُ ؕ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ ۚ

په زړونو خپلو کښې چه ولې عذاب نه راکوي مونږ ته الله ﷻ په هغه الفاظو چه مونږ ئې وايو. کافي دې دوئ لره جهنم،

يَصْلَوْنَهَا ۚ فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ⑧

ورننوځي به هغې ته، پس ډېر بد ځائ د ورتلو دې دا جهنم.

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نُهُوا عَنِ النَّجْوَىٰ﴾ ديکښې د **منافقينو دويم خباثت** اوهغې باندې ورته زجر ذکر کېږي. خباثت ئې دا وو چه دوئ به په لاروکښې به ناست وو،مؤمنان چه به تيريدل نودوئ به يوبل سره په غوږونوکښې پُس پسې کولو،مؤمنانوته به ئې کتل،په سترګوبه ئې ورته اشارې کولې،نومسلمانان به پريشانه کيدل چه لګه زمونږ اقاربو ته څه نقصان رسيدلې دې ياڅه بل څه مسئله ده، مؤمنانو حضور ﷺ ته ددې شکايت اوکړو،نوحضور ﷺ دوئ ددې عمل نه منع کړل،ليکن څه وخت پس بيا دوئ دا عمل شروع کړو.﴿النَّجْوَىٰ﴾کښې لام دعهد دې معهود په دې سره هغه مشورې دی چه مسلمانانو ته ئې ورسره تکليف رسولو.

﴿ وَإِذَا جَاءُوكَ حَيَّوْكَ﴾دې کښې د منافقينو يو **بل خباثت اوشرارت** ذکردې،دوئ به د حضور ﷺ مجلس ته راتلل نودَالسّلام عليکم په ځائ به ئې انعم صباحاً وئيلو ، د اسلام شعائر به ئې پريښودلو او جاهليت طرز به ئې اختيارولو (تفسير ابن عطيه)

منافقينو په شان د يهودو هم دا طرز عمل وو چې هغوئ به نبي ﷺ ته السلام عليکم په ځائ السّام عليکَ وئيل(يعنی ته مرشې،نعوذبالله)په جواب کښ به ورته حضور ﷺ صرف وعليکم وئيل،په روايت دبخاری وغيره کښ دی چه څه کسان د يهوديانو حضور ﷺ مجلس ته راغلل اواوئې اووئيل:السّام عليکَ ياابالقاسم،حضور ﷺ ورته په جواب کښ:وعليکم اووئيل، حضرت عائشه ﷺ ورته اووئيل:عليکم السّام ولعنکم الله وغضب عليکم، حضور ﷺ عائشه ﷺ ته اوفرمائيل پريده:انّ الله لايُحبُّ الفاحشَ ولاالمتفحش.دې ورته اووئيل:آياتادوئ قول وانه وريدلو چه دوئ اووئيل:السّام عليک،حضور ﷺ ورته او فرمائيل: آيا تا وا نه اوريدل ماورته هم صرف:وعليکم: اووئيل اوپه يوروايت کښ دا هم دی چه زمونږ خيرې دهغوئ په حق کښ قبليږی اودهغوئ خيرې زمونږپه حق کښ نه قبليږی.

﴿ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللَّهُ ﴾ يعنى الله ﷻ دربالدى لفظ دَسلام وائى كمافى قوله تعالى: وسلام على المرسلين، وسلامٌ على عباده الذين اصطفىٰ، اوپه تشهد كښ دى السّلام عليكَ ايُّهاالنبىّ ورحمة الله وبركاته. ﴿وَيَقُولُونَ فِيٓ أَنفُسِهِمْ ﴾ يعنى چه كله بياد حضور ﷺ دمجلس نه راووځى، نوبيايوبل ته وائى چه كچرته دانبى ﷺ په حقه وي نو الله ﷻ مونږته پدى خپلې خبرى او گستاخي باندى عذاب ولې نه راكوى ﴿حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ ﴾ دادَدوئ دَمذكورى خبرى جواب دې، چه كچرته په دنياكښ دوئ ته دَخپلوشرارتونوسزاملاؤنشى، خوپه آخرت كښ دَدوئ سزاجهنم دې چه دوئ به ورته داخليږى اوداډيره بده ټهكانه ده.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِذَا | تَنَاجَيْتُمْ | فَلَا تَتَنَاجَوْا | بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ |
| اې | ايمان والو! | كله | چه | جرگى كوئ | تاسونومكوئ جرگى | دگناه اودظلم زياتى |
| وَمَعْصِيَتِ | الرَّسُوْلِ | وَتَنَاجَوْا | بِالْبِرِّ | وَالتَّقْوٰى | وَاتَّقُوا اللّٰهَ | الَّذِيْٓ |
| اودنافرمانئ | درسول | ،اوجرگى كوئ | دَنيكئ | او دَ پرهيزگارئ | ، او اوېريږئ دَ الله ﷻ نه. | هغه ذات |
| اِلَيْهِ | تُحْشَرُوْنَ ۝ | اِنَّمَا | النَّجْوٰى | مِنَ | الشَّيْطٰنِ | لِيَحْزُنَ |
| چه خاص هغه ته | به تاسوجمع كړې شئ | ،بيشكه | دَمسلمانانوخلاف پټى جرگى | | دَشيطان دَطرفه دى | چه غمژن كړى |
| الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَلَيْسَ | بِضَآرِّهِمْ | شَيْـًٔا | اِلَّا | |
| هغه كسان چه | ايمان ئى راوړيدې، | اونه دې | شيطان ضرر رسونكې مسلمانانوته | هيڅ ضرر. | مگر | |
| بِاِذْنِ | اللّٰهِ | وَعَلَى | اللّٰهِ | فَلْيَتَوَكَّلِ | الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ | |
| په اجازت | دالله ﷻ سره، | اوخاص په | الله ﷻ باندى | پس توكل دى | اوكړى مؤمنان | |

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا تَنَٰجَيْتُمْ ﴾ **دا اول قانون دې براى اصلاح** ،خطاب منافقانوته دې اود ﴿ءَامَنُوٓاْ﴾ نه مراد ايمان باللّسان دې، بعض وائى خطاب مؤمنانوته دې، چه كله تاسو مشورى كوئ نو دَ منافقانو په شان دَشرارت او دَگناه مشورى مه كوئ، بلكه دَنيكئ اودَتقوى

مشورې کوي﴿إِنَّمَا ٱلنَّجْوَىٰ ﴾ لام العهد دي،هغه مشورې چه : مسلمانانو ضرردپاره وي. نو دا دَ شيطان دَطرفه دي،يعنی شيطان دوئ ته داعمل مزين کړيدې.چه پدې سره مؤمنان پريشان شي.لکه مخکښ چه تيرشو.

﴿ وَلَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا ﴾تسلی ده مؤمنانو ته چه شيطان چاته هيڅ ضرر نه شی رسولې. مگر هغه چه الله ﷻ مقدرکړې وی هغه به رسيږی،صرف په الله ﷻ باندی اعتماد کوئ. او توکل کوئ،هم داتوکل به موانشاءالله دَمخلوق دَهرقسمه ضررنه محفوظه ساتی،په حديث کښ دی چه کله تاسو دری(۳)کسان يئ،نودوه کسان دی يواځی څه پټی خبرې اومشوری نه کوی،ځکه دريم کس به پدی سره پريشانه کيږی(بخاری،مسلم وغيره)دغه شان پداسی ژبې کښ خبری کول چه دريم کس پری نه پوهيږی داهم منهی عنهادې

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُواْ فِي ٱلْمَجَٰلِسِ فَٱفْسَحُواْ |
| اې ايمان والو! کله چه اووئيلی شی تاسوته چه ځائ فراخه کړئ په مجلسونوکښ نوځائ فراخه کړئ |
| يَفْسَحِ ٱللَّهُ لَكُمْ ۖ وَإِذَا قِيلَ ٱنشُزُواْ فَٱنشُزُواْ يَرْفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ |
| فراخی به راولي الله ﷻ تاسوته،اوکله چه اووئيلی شی څئ پاسئ نوبياځئ پاسئ اوچتوی الله ﷻ هغه کسان |
| ءَامَنُواْ مِنكُمْ وَٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ ۚ |
| چه ايمان ئې راوړې دې دَتاسونه،او هغه کسان چه ورکړې شويدې هغوئ ته علم،په ډيرو درجوسره |
| وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ⑪ |
| اوالله ﷻ په هغه عملونوچه تاسوئی کوئ ښه خبردار دې |

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَكُمْ ﴾دا دويم قانون دې براې اصلاح ،منافقان به دَحضور ﷺ مجلس ته راغلل،مخکښ به کيناستل چه ځائ تنگ کړی اونورمخلص صحابه کرام دَ خبرو اوريدلونه محرومه شي نو الله ﷻ داآيت نازل کړو،اکثرمفسرين داوائی چه داآيت دَصحابه کرامو ؓ دَتنافس پوجه نازل شويدې،هرصحابی ؓ به داخواهش وو چه حضور ﷺ ته قريب کيني،نودَدی پوجه به ورستوراتلونکی ته ځائ تنگ شوځکه چه دائره به ورکی وه، نو

دا آیت نازل شوچه په مجلس کښې فراخي کوئ، لرې کينئ چه ځائ کهلاؤشي. الله تعالىٰ به ستاسو د پاره خپل رحمت فراخه کړي او دنيا آخرت کښې به درته فراخي درکړي

﴿ فِي ٱلْمَجَٰلِسِ ﴾ عام دي، هرنيک مجلس ورنه مراد دې، که د جمعه وي يا د بل څه، بلکه په دوران د سفر کښې هم په ګاړې کښې بل انسان ته ځائ ورکول اسلامي تعليمات دي.

﴿ يَفْسَحِ ٱللَّهُ ﴾ جواب امر په وجه مجزوم دې، او دلته مراد دفراخي نه عام دې چه الله تعالىٰ به تاسو ته خپل رحمت فراخه کړي، فراخي به درکړي په جنت کښې، په قبرونو کښې، او په رزق کښې، نو داجزاء من جنس العمل ده، لکه په صحيح حديث کښې دي، مَن بنٰى لِلهِ مسجداًبنى الله له بيتًا في الجنة، په يو بل حديث کښې دي، ومن يسّرعلى معسرٍ، يسّرالله عليه في الدنياوالاخرة، والله تعالى في عونِ العبدماكان العبدفي عونِ اخيهِ.

﴿ وَإِذَا قِيلَ ٱنشُزُواْ فَٱنشُزُواْ ﴾ عامومفسرينو دا معنى کړيده چه کله تاسو ته په يو مجلس کښې د مونځ، قتال يا د نورو څه نيکو د پاره دپاسيدلو حکم اوشي نو دا حکم منئ او پاسئ، بعض وائي چه کله تاسوته دمجلس دحضور ﷺ نه دپاسيدلو حکم اوشي نو پاسئ، ځکه چه د حضور ﷺ خپلې ذاتي تقاضې هم وي،

**حضرت شيخ حسين علي** رحمه الله فرمائي چه دحضور ﷺ په مجلس کښې به چونکه منافقان هم ناست وو، نو کله کله به دخاص امورو اظهار د دوئ په مخکښې مُضر وو، نو په دې وجه مؤمنانو ته هم دا حکم اوشو چه کله تاسوته دپاسيدلو حکم اوشي نو پاسئ چې منافقين هم لاړ شي او خاص صحابه کرامو سره دې متعلق مشوره اوشي.

﴿ يَرْفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ جواب امر په وجه مجزوم دې او دا هم جزاء من جنس العمل وه، ځکه چه مأموربه تفسح او ترک دتنافس دې او په دې مأموربه باندې عمل کول په وجه دتواضع سره وي، او تواضع سره درجات رفع کيږي، كقوله عليه السلام: من تواضعَ لله رفعهُ الله. او بيا چونکه د علماؤ مقام په مجلس کښې زيات او چت وي نو د دوئ ذکرئې اوکړو چه دوئ ته اتيان په مأموربه باندې اسان شي (روح المعاني) مفسرين وائي دې آيت کښې لوئ فضيلت دې دعلماؤ چه په

ایمان والؤکښې دَعلماؤدرجه اوچته ده دَوجې دَعلم نه.﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾زجردې هغه چاته چه امتثال دَامر نه کوی(والله اعلم).

| |
|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ |
| اې ایمان والؤاکله چه پټې خبرې کول غواړئ درسول ﷺسره نواول وړکړئ مخکښې دَجرګوخپلونه |
| صَدَقَةً ؕ ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَاَطْهَرُ ؕ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا |
| صدقه،دااول صدقه وړکول غوره ده ستاسودپاره اوښه پاکونکې ده.پس کچرته بيانه مومئ تاسو |
| فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾ ءَاَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ |
| نو بيشکه الله جَلَّ جَلَالُهُ بخښونکې رحم کونکې دې،آيا اويريدئ تاسودَدينه چه اول وړکړئ مخکښې |
| نَجْوٰىكُمْ صَدَقٰتٍ ؕ فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا وَتَابَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَاَقِيْمُوا |
| دَجرګوخپلونه صدقې،پس کله چه اونه کړوتاسو دغه کارصدقه وړکول او توبه قبوله کړه الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو نوقائم کړئ |
| الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌ |
| مونځ اووړکړئ زکوٰة اوخبره منئ دَالله جَلَّ جَلَالُهُ اودَرسول دَهغه،اوالله جَلَّ جَلَالُهُ ښه خبردې |
| بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳﴾ |
| په هغه چه تاسوئې کوئ. |

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَـٰجَيْتُمُ ٱلرَّسُولَ﴾ **دا دريم قانون دې براۓ اصلاح** ،منافقان به دَ حضور ﷺمجلس ته راتلل،نوخپل ځان مخلص ښکاره کولواودَحضور ﷺوخت ضائع کولو، او دَ نورو صحابؤو محرومه کيدلو دپاره به ئې دَنبی علیه السلام سره پټې خبرې کولې،اوبې ضرورته تپوسونه به ئې کول،حضور ﷺبه ورته دَشرافت په وجه څه نه وئيل،نوالله جَلَّ جَلَالُهُ داحکم نازل کړوچه څوک هم دَحضور ﷺسره خبرې کوی اوتپوس ورنه کول غواړی نو اول به صدقه کوی بيابه مجلس ته راځی،چه اخلاص ئې معلوم شی،نومنافقان په دې وجه دَخپل عمل نه منع شول.

دا حکم انتهائي مختصر مدت پورې وو ، بیا زر الله ﷻ پکښې تخفیف راوستلو . حتي چې حضرت علي رضي الله عنه نه ماسوا بل چا ته په دې حکم باندې عمل موقع هم نه وه میلاو ، چې الله ﷻ پکښې تخفیف راوستلو ، په یوروایت کښې دی چه حضرت علی رضی الله عنه په دې حکم باندی عمل کړې وؤده سره یودینار وؤهغه ئې په لس دراهمو بدل کړو او چه کله به یئ دَحضور ﷺ مجلس ته حاضری کوله یو درهم به ئې صدقه کولو . ځنې مفسرینو د دې حکم مدت نیمه ورځ او ځنو لس ورځې لیکلې دې ،

دا حکم وجوبي وو او که استحبابي ؟ ځنې مفسرین فرمائي چې دا استحبابي وو او ځنې وائي چې وجوبي وو ،دې باره کښې څه واضح نص نشته او په آیت کښې دَ دواړو جانب قرائن شته ، او یو جانب له علي التعیین ترجیح ورکول مشکل دي «حاشیه القونوي علي البیضاوي» بهر حال چې کوم قول هم اختیار کړې شي خو دومره خبره متفق علیه ده چې اول حکم عزیمت باندې مبني او دویم په رخصت باندې مبني دې ، او دې باندې اګرچې دَ متقدمینو په اصطلاح کښې ناسخ منسوخ اطلاق کیدې شي خو متاخرینو په نیز معروف د نسخ اصطلاح اطلاق پرې نشي کیدې .

﴿ذَٰلِكَ ﴾مشار الیه تقدیم صدقه ده﴿خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ځکه چې فانی په بدله کښې باقی اجر میلاویږی ، ﴿ وَأَطْهَرُ ﴾زړه پاکي ذریعه ده ،ځکه چې باربار صدقه ورکولو سره مال سره محبت کښې کموالی راځي او زړه دَدنیا محبت نه پاکیږی .

﴿فَإِن لَّمْ تَجِدُوا ﴾اول صورت کښې دې رخصت موجود وو . چې کوم صاحب استطاعت وو هغوئ خو ددې حکم مخاطب وو خو غریبانان وو نو هغه ترینه مستثني وو جزاء دَ شرط محذوفه ده چه "فلا علیکم"یعنی که ستاسو طاقت دَصدقی نه وی نو په تاسو هیڅ ګناه نشته .

﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ دَمحذوفی جزاء علت دې ،او قائم مقام دَجزا ګرځولي شوي دي . «روح»

«(اشفقتم ان تقدموا)» دې کښې د ماقبل حکم«صدقې» کښې تخفیف بیان دې ،حضرت تهانوي رحمه الله لیکي چې ځنو مسلمانانو باندې مخکښنې حکم شاق وو ، ځکه چې نه هغوئ ډیر مالداره وو چې صدقه ئې ورکولې او نه ډیر غریبانان وو چې رخصت دائره کښې شمار وې نو هغوئ د سرګوشئ نه بالکل منع شو . نو دې آیت کښې دا قسم کسان اصل

مخاطب دي.(بيان القرآن بتصرف) استفهام توبيخي دي. يعني تاسو سره د صدقې کولو د وجهې نه د فقر خوف وو چې تعميل ئې درته گران شو ﴿فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا﴾ خو خير چې کله درنه دې حکم تعميل اونشو ﴿وَتَابَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ﴾ الله ﷻ ته خو رجوع اوکړه نو الله ﷻ دربانديې نظر کرم اوکړو او رخصت ئې درکړو دَ مناجات دَ رسول ﷺ بغير د تقديم دَصدقې نه ، نو اوس دَدې دَتدارک دپاره اقامت دَصلاة کوئ او ايتاء دَزکوة کوئ او په هر کار کښې دَ الله ﷻ او دَهغه دَرسول اطاعت کوئ.

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ |
| آيا ته نه گورې هغه خلقوته (منافقانو ته) چه دوستي کوي دَهغه قوم سره چه غضب کړيدې الله ﷻ په هغوئ. |
| مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿١٤﴾ |
| ندي هغوئ (منافقان) ستاسو نه اونه دَهغوئ (يهوديانو) نه اوقسم کوي په درغو او حال داچه دوئ پوهيږي (پخپلو درغو) |
| أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٥﴾ |
| تيار کړيدې الله ﷻ دوئ دپاره عذاب سخت بيشکه دوئ ډير بد دی هغه عملونه چې دوئ يې کوي |
| اتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ ﴿١٦﴾ |
| نيولی دی دوئ قسمونه خپل ډال بيا (خلق) منع کوي دوئ دَلارې دَالله ﷻ نه نو دوئ له عذاب دې سپکونکې. |

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا﴾ دې آياتونو کښې منافقينو ته د هغوئ **يو بل خباثت** باندې زجر دې. منافقانو به دَ دنيوی منافعو او وقتی مصالحو په بناء ظاهراً دَ اسلام دعوه کوله، او باطنًا دَ يهودو سره ملګرې وو، دَمسلمانانو رازونه به ئې هغوئ ته رسول، او کله به چې مسلمانانو ته دَ داسې يو کار پته اولګيده نو بيا خپلې صفائي او خلوص ثابتولو د پاره د دروغو قسمونه خوړل .((الذين تولوا)) دينه مراد منافقان دي ﴿قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِم﴾ دينه مراد يهود دی لقوله تعالى:من لَعنهُ اللهُ وغضبَ عليه(مائده: ٦٠)﴿مَا هُم مِنكُمْ وَلَا مِنْهُمْ﴾ يعنی دا منافقان

نه پوره ستاسو سره دي او نه هغوئ(يهودو)سره،بلکه مذبذب دی لکه په سورة نساء(۱۴۳)کښې ذکردی

﴿وَيَحْلِفُونَ عَلَى ٱلْكَذِبِ﴾دَ دروغونه مراد دعوه دَ اسلام . مسلمانو خلاف پټو سازشونو نه براءت ، اسلام سره د وفادارئ اظهار او نبي ﷺ پسي بد رد نه وئيل وغيره امور دي .

﴿وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ حال دې دَفاعل دَ﴿وَيَحْلِفُونَ﴾نه يعنى دوئ ته خه پتہ وي چې دروغ او خلاف حقيقت خبره کوو

﴿أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا﴾دا ئي د سزا بيان دې چې الله ﷻ دوئ له په آخرت کښې سخت عذاب تيار کړې دې.

﴿ ٱتَّخَذُوٓا۟ أَيْمَـٰنَهُمْ ﴾ دا د **منافقينو بل خباثت** بيان دې ، چې دوئ دا د دروغو قسمونه ځان دپاره سپر گرځولي دي چې کله مؤمنانو ته د دوئ اسلام د شمني پته نو دوئ بيا قسمونه خوري او ځان مؤمنان حسابوي ،کله چې مؤمنان د دوئ په قسمونو اعتماد اوکړي نو بيا دا نه کوي چې نور د خپل خباثتونو نه بس کړي او په صدق ايمان راوړي بلکه هغه شان په کفر قائم وي او اسلام دپاره رکاوټونو جوړه وي ، ' ايمان' جمع دَ 'يمين' ده پمعنى دَقسم،يعنى لکه ځرنگه چه په ډهال سره سړې دَدشمن دَحملې نه محفوظ وی،دغه شان دوئ خپل درغو قسمونه دَ مسلمانانو دَ تورو نه دَ حفاظت دپاره ډهالونه گرځولی دی،خپل ځانونه اومالونه پری محفوظ کوی.﴿فَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ فاء تفريعيه ده ، 'صدوا'لازمى اومتعدى دواړه استعماليږي ، يعني دې دورغو قسمونو په وجه ئي ځان هم د الله ﷻ لاري نه منع کړو او نور خلق د اسلام نه منع کوي ، چې په دروغه ورته د اسلام يو بد شکل پيش کوي او هغوئ د اسلام راوړلو لاره کښې رکاوټ جوړيږي.

| |
|---|
| لَّن تُغْنِىَ عَنْهُمْ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَـٰدُهُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا ۚ أُو۟لَـٰٓئِكَ |
| هرگزبه نکړی دفع دَدوئ نه مالونه دَدوئ اونه اولادونه دَدوئ (دَعذاب) دَالله ﷻ نه هيڅ څيز،دغه کسان |
| أَصْحَـٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ ۝١٧ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ ٱللَّهُ جَمِيعًا |
| اور والادی ،دوئ به وی په هغی کښې هميشه ،په هغه ورځ چه راپورته کړی دوئ الله ﷻ ټول |

| |
|---|
| فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ |
| نوقسمونه به خوری الله ﷻ ته لکه چه قسمونه خوری تاسوته اوگمان به کوی چه دوئ په څه خیرباندی دی. |
| اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿۱۸﴾ اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَاَنْسٰهُمْ |
| خبردارشئ!چه بیشکه دوئ هم دوئ دروغژن دی،غلبه موندلی ده په دوئ شیطان پس هیرئی کړو دَ دوئ نه |
| ذِكْرَ اللّٰهِ ۭ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ۭ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ |
| ذکریادِ الله ﷻ،دغه کسان ډله دَشیطان ده،خبردارشئ،بیشکه ډله دَشیطان |
| هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۹﴾ |
| هم دوئ زیان مندی. |

﴿ لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ ﴾دی آیاتونو کښې منافقانوته تخویف دې چه دوئ مال او اولاد په وجه نن پوره پوره په اسلام کښې نه داخلیږي ، خو دغه مال اولاد به ورله بیا قیامت په ورځ هیڅ فائده هم ورنکړي ﴿ مِنَ اللّٰهِ ﴾ای من عذابه.

﴿يَوْمَ ﴾متعلق دې دَ﴿ لَنْ تُغْنِيَ ﴾سره،﴿ فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ ﴾ دیکښې د دوئ نفاق شدت بیان دې ، چې دا نفاق او دروغ وئیل او دروغو قسمونه خوړل د دوئ رګ او روح کښې پیوست شوی دی ،دا صرف د دنیا خبره نه ده آخرت کښې به هم دوئ دروغ وائي او صرف تاسو سره ئي دا معامله نه ده بلکه الله ﷻ چې علیم بالسرائر دې هغه په مخکښې به د دروغو قسمونه خوري.

﴿وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ ﴾دَ شئ نه مرادجلب منفعة،اودفع مضرة دې یعنی دوئ به گمان کوی چه لکه څرنګه مونږته په دنیاکښې په دی دروغوقسمونوسره نفع میلاویدله نن په آخرت کښې به هم میلاؤشی.

﴿ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ ﴾ای غلبَ علی عقولهم،استحواذ دَحوذ نه دې ، په یو څیز داسې غلبه او قدرت د تصرف حاصلولو ته وائي چې هغه شې بیا د خپل اختیار پاتې نشي ، او چې څه پرې کول غواړې هغه پرې کوي ، نو مطلب دا دې چې دوئ په عقلونو شیطان قبضه

كړې ده ، او د الله ﷻ ذکر نه ئې غافله کړې نو ځکه داسې د بې وقوفۍ خبرې کوي . کنې الله ﷻ نه به څوک څه پټ کړي ﴿أُولَٰئِكَ حِزْبُ الشَّيْطَانِ﴾ يعنی منافقان دَشيطان لښکردې اودَهغه اَتباع دی اودَشيطان لښکراواتباع په کامله خساره کښ دی،ځکه چه دوئ دآخرت ابدی نعمتونونه ځانونه محرومه کړل اودَهغی په بدله کښ ئی عذاب اليم واغستلو.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَٰئِكَ فِي الْأَذَلِّينَ ﴿٢٠﴾ |
| بيشکه هغه خلق چه مخالفت کوی دَالله ﷻاودَرسول دَهغه دغه خلق په ډيروذليل شوؤکښ دی |
| كَتَبَ اللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِي ۚ إِنَّ اللَّهَ |
| ليکلی دی «فيصله ئي کړې ده» الله ﷻ .چه خامخا به غالبه کيږم زه اورسولان زما،بيشکه الله ﷻ |
| قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٢١﴾ |
| ډيرقوی دی ښه غالب دی |

﴿ إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ ﴾دازجراوتخويف دې کافرانو،منافقانوته،اوتعليل دې دَماقبل،چه حزب الشيطان ځکه په کامله خساره کښ دې چه کوم خلق دَالله ﷻاودَهغه دَرسول دَاحکاماتونه مخالفت کوی هغه ناکامه،سپک اوذليله دی الله ﷻپه لوح محفوظ کښ دغه نيصله کړيده چه حق اوصداقت ته به غلبه وی.﴿كَتَبَ اللَّهُ﴾اهلِ اسلام دپاره دَغلبې بشارة دې ای اثبت فی اللوح المحفوظ،يا"کتب"پمعنی دَقضیٰ وحکم سره دې.

| |
|---|
| لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ |
| اوبه نه مومی ته داسې قوم چه ايمان راوړی په الله ﷻاوپه ورځ دآخرت چه دوستی به کوی دَهغه چاسره |
| حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ |
| چه مخالفت کوی دَالله ﷻاودَرسول دَهغه اګرکه وی دامخالفين پلاران دَدوئ ياځامن دَدوئ يارونړه دَدوئ |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَوْ | عَشِيْرَتَهُمْ | اُولٰٓئِكَ | كَتَبَ | فِيْ | قُلُوْبِهِمُ | الْاِيْمَانَ |
| يانورخپلوان | دَدوئ قوم قبيله | دغه خلق | راسخ كړي دي | الله جل جلاله په | زړونو ددوئ كښ | ايمان |
| وَاَيَّدَهُمْ | بِرُوْحٍ | مِّنْهُ ؕ | وَيُدْخِلُهُمْ | جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا |
| اوقوى كړى ئى دى دوئ | په مددسره | دَخپله طرفه، | اوداخله وى به دوئ | جنتونه | چه بهيږى | به دَلاندى دَهغى نه |
| الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا ؕ | رَضِيَ | اللّٰهُ | عَنْهُمْ | وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ |
| نهرونه | هميشه به وى | په هغى كښ، | راضى شويدي | الله جل جلاله | دَدوئ نه | اودوئ راضى دى دَالله جل جلاله نه. |
| اُولٰٓئِكَ | حِزْبُ اللّٰهِ ؕ | اَلَآ | اِنَّ | حِزْبَ اللّٰهِ | هُمُ | الْمُفْلِحُوْنَ ۝ |
| دغه خلق | ډله دَالله جل جلاله ده، | خبردارشئ | بيشكه | ډله دَالله جل جلاله | هم دوئ | كامياب دى |

﴿ لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ دى آياتو نو كښ ترغيب دې مؤمنانوته چه دامناسبه نه ده چه مؤمنان دى دَهغه خلقوسره دوستى اوكړى چه هغه دَالله جل جلاله او دَهغه دَرسول دشمنان دى، اګركه هغه ئى پلاران، رونړه، ځامن يائى دَقبيله وى.

دصحابه كرامو زندګى دَقرآن مجيد د دې آيت عملى تفسير دې، حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته يوورځ خپل ځوى اوئيل چى باباجان! ته په جنګ كښې څو څو ځله ځما تورې لاندې راغلې ، خو ماخپله توره اوچته كړه، حضرت ابوبكر رضي الله عنه ورته اوئيل بچيه كچرته ته يوځل هم ځما تورې لاندې راغلې وې نوما به ستاسر قلم كړې وو.

امين الامت حضرت ابوعبيده بن جراح رضي الله عنه بدر په ميدان كښ خپل پلار قتل كړې وو، مصعب بن عمير رضي الله عنه خپل ورور عبيد بن عمير قتل كړې وو، حضرت عمر رضي الله عنه خپل ماما عاص بن هشام قتل كړې وو، حضرت حمزه رضي الله عنه ، حضرت على رضي الله عنه ، اوحضرت عبيده بن حارث رضي الله عنه خپل تره ځامن اوقبيلى افراد عتبه، شيبه، اوولید بن عتبه كړي وو. دې حضراتو ته ټولو نه عزيز دَ الله جل جلاله دين وو، اوهغې په مقابله كښ به ئې د لومة لائم پرواه نه كوله، نن مونږه يو چې قوميت ، مفاد پرستى اومصلحت پرستى دپاره مو په دين كښ څه څه لوبي اونكړى، اوالحب في الله و البغض في الله خصلت نن زمونږ دَ معاشرې نه عنقاء دې.

«لاتجدون قوما يؤمنون بالله » مؤمنانو نه يا كامل مؤمنان مراد دي . نو دې صورت كښې دا د واقع بيان دې، چې چرته به هم تا ته يو كامل مؤمن داسې ميلاؤ نشي چې هغه د الله ﷻ دشمنانو سره محبت ساتي، او يا مطلق مؤمنان مراد دي ، نو دې صورت كښې بيا دا د واقع بيان نه دې ، بلكه مبالغه في النهي ده ،يعني پكار دا ده چې د ايماني غيرت دا كيفيت وي چې چرته هم يو مسلمان د كافر ملګرې او نه موندلې شي

«يوادون» مودت نه مراد دلته موالات دي ،چې كافر سره ئې نفع او نقصان يو شي او دين ته پكښې ثانوي حيثيت ميلاؤ شي ، نو د دې نه منع راغلې ده ، د كافر سره كوم قسم تعلق ساتلې شي او كوم قسم نه ،نو د دې تفصيل په سورت آل عمران كښې تير دې ، هلته رجوع اوكړئ

﴿ مَنْ حَآدَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾مرادورنه كافردې،بعضِ وائی فاسق ته هم شامل دې.ځكه دكافرانوپه شان دَفاسقانوسره دَدوستئ نه هم منع راغلې ده.﴿أُولَٰٓئِكَ ﴾اشاره ده هغوته چه دكافرانو ،فاسقانوسره دوستئ نه كوی،﴿كَتَبَ فِى قُلُوبِهِمُ ﴾ای اثبته الله تعالیٰ

﴿وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ ﴾منه ضميرراجع دې الله ﷻ ته،اودَروح نه مراددَزړه نور دې، الله ﷻ خپلوبندګانو كښ چه چاته اوغواړی هغه په زړه كښ ئی اچوی چی دَهغی په ذريعی سره ورته اطمينان ميلاويږی(روح) بعضِ وائی روح القدس،جبرئيل ؑ ورنه مراددې(والله اعلم).

﴿وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى ﴾يعنی چه كله دی اولينوصحابوْدَايمان په بنياددَالله ﷻ دَ دشمنانو سره دشمنی اوكړه حتّی چه خپل اقارب ئی پخپلولاسونوقتل كړل،نودَدی په بدله كښ به الله ﷻ دوئ جنتونوته داخله وی چه دوئ به په هغی كښ هميشه وی،الله ﷻ دَدوئ نه راضی شواودوئ دَالله ﷻ نه راضی شول،هم دغه خلق دَالله ﷻ لښكردې چه په دنيااوآخرت كښ كامياب دی،فرضی الله عنهم ورضواعنه،اللّهم ارزقناحبّهم واتباعهم.

| ركوعاتها (٣) | سورة الحشر مدنية | آياتها (٢٤) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې سروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (٥٩) وحسب النزول (١٠١)**

نزلت بعد البینه و قبل النور

**ربط** : (١)داسورة هم دَسورة حدید په مضمون ثانی یعنی ترغیب الی القتال في سبیل الله باندی متفرع دې مخکښې سورة مجادله کښې بدترین قسمه منافقانوباندی زجرونه وو،دی سورة کښې علی سبیل التنزل کمی درجی منافقانو باندی زجرونه ذکر کیږی.

(٢)مخکښنی سورت کښې دَ الله ﷻ او ذ هغه رسولانو د غلبې اوکافرونو رسوائی اعلان وؤ. ان الذین یحادون الله ورسوله اولئک في الاذلین کتب الله لاغلبن اناورسلي ، دې سورت کښې دَ دغه اعلان عملی نمونه ذکر کیږې چې هغه دَبنو نضیر اومنافقینو رسوائی اوذلت دې.

**دسورة دَمضامینواجمالی خلاصه**

په ابتداء کښې دعوه دَتوحید ده،بیاتخویف دنیوی دې یهودوته بیاتقسیم دَمال فئ دې،بیازجرونه دی منافقانوته،په آخرکښې دَتوحید دعوه سره دَدلائلو.

**تفصیلی خلاصه**:

﴿سَبَّحَ لِلّٰهِ﴾آیت(١)دَعوه دَتوحید ده چه دااصل مقصودی دعوه ده.

﴿هُوَ الَّذِیْٓ اَخْرَجَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا ﴾آیت(٢)نه ترآیت(٥)پوری دَتخویف دنیوی نمونه ده،چه یهودیانو ته الله ﷻ څنګه سزاورکړه

﴿وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ ﴾ آیت(٧)نه ترآیت(١٠)پورې دَمال فئ تقسیم طریقه ده.

﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِیْنَ نَافَقُوْا ﴾آیت(١١)نه ترآیت(١٧)پورې منافقانوته زجرونه دی.

﴿یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ ﴾آیت(١٨)نه ترآیت(٢١)پوری منافقانوته زجردې اومؤمنانوته ترغیب دې دَقتال.

﴿هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِي لَآ إِلَٰهَ﴾ آيت (۲۲) نه تر آخره پورې اعاده دَ دعوی ده.

سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَهُوَ

پـاکي بيانوي الله جل جلاله هرهغه څه چه په آسمانونوکښ دي اوهرهغه څه چه په زمکه کښ دي. اوهغه

الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝١ هُوَ الَّذِيْٓ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

غالب دې ډېر حكمتونووالادې الله جل جلاله هغه ذات دې چې وې ويستل هغه خلق چه كفرېې كړې وو

مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ مَا ظَنَنْتُمْ

دَاهل كتابونه يعنى بنى نضير دَ كورونو خپلونه په وخت دَ اولې جلا وطنۍ .گمان نه كوؤتاسو (اې مؤمنانو)

اَنْ يَّخْرُجُوْا وَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مَّانِعَتُهُمْ حُصُوْنُهُمْ

داچه اوبه وځی دوئ اوگمان كولودوئ چه بيشكه منع كونكې (حفاظت كونكې) دَدوئ دى قلاگانى دَدوئ

مِّنَ اللّٰهِ فَاَتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوْا ۖ وَقَذَفَ

دَعذاب دَالله نه،پس راغلودوئ ته عذاب دَالله جل جلاله دَهغه ځائ نه چه گمان هم نه كوؤدوئ اوواچولوئې

فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُوْنَ بُيُوْتَهُمْ بِاَيْدِيْهِمْ وَاَيْدِي الْمُؤْمِنِيْنَ ۖ

په زړونودَدوئ كښې رُعب،ورانول ئې كورنه خپل په لاسونوخپلوسره اوپه لاسونودَمؤمنانوسره،

فَاعْتَبِرُوْا يٰٓاُولِي الْاَبْصَارِ ۝٢

پس عبرت واخلئ تاسواې خاوندانودَعقلونو

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دادعوه دَتوحيد ده،چه دَكائناتوهرڅيزدَالله جل جلاله پاكي بيانوي قولاً ياحالاً،نوتاسوئې هم پاكي بيان كړئ اودَشريک نه ئې منزه اوگڼړئ.

﴿هُوَ ٱلَّذِيٓ أَخۡرَجَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ دادَتخويف دنيوى نمونه ده،چې الله جل جلاله باندې ايمان نه راوړئ . كني انجام به مو داسې وي لكه چې د بنو نضير وو. دَ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ نه مرادبني

نضیر دی، اودی آیاتونوکښې **غزوهٔ بنی نضیر** طرف ته اشاره ده.بنی نضیر دَ یهودو مشهوره قبیله وه، سبب دَدې غزوې داوؤچه بئر معونه په موقع باندې چې کوم اویا(۷۰)صحابه کرام شهیدان شوی وؤ،هغوئ نه عمروبن امیه ضمری بچ شوي وؤ. دې مدینې ته راروان وؤ په لار کښې ورته بنو عامر دوه کسان مخې ته راغلل، او د ده گمان داؤو چې دا غداری مونږ سره بنو عامر اوکړه ، نو ده هغه کسان قتل کړل او مدینې ته چې رااورسیدو نو نبی ﷺ یې ده دینه خبر کړو،دَبنی عامر دَحضورﷺسره دَصلح معاهده وه، او حقیقت کښې هغوئ عهد شکنی هم نوه کړې. نو ځکه بنی عامرته ئې دَدیت ورکولو اراده اوکړه، بنی نضیر چونکه دَ مسلمانانو حلیف وؤ نوپه دې وجه دَدیت څه حصه په دوئ ورکول هم لازم وؤ،نو په دې غرض حضورﷺ دَ بنو نضیر خوا ته تشریف یوړلو،یوڅوصحابه کرام هم ورسره وؤ،هلته دَدیوال سوری لاندې کیناستل، بنونضیرورسره دَاعانت وعده اوکړله،لیکن دَیوبل سره ئې مشوره اوکړه چه دَ حضورﷺ دَ قتل کولوښه موقع ده،یوکس دې چهت ته اوخیجی اودَبری نه دې یوه درنه غټه گټه په ده باندې رااوغورځوی نو دې به مړه شی،په دې کښې وخت نه وؤ تیر، چه جبرئیل علیہ السلام وحی راؤړله اوحضورﷺئې دَدوئ دَمنصوبې نه خبرکړو،حضورﷺفوراًدَخپل ځائ نه داسې راپاسیدلو لکه دَضرورت دپاره چه څوک راپاسی،واپس مدینې ته راغې،صحابه کرام ئې دَ دوئ دَغدارئ نه خبرکړل اودَحملی حکم ئې وربانډې اوکړو،بنونضیرته ئې اطلاع اوکړه چه ستاسو دَ غدارئ په وجه اوس زمونږاوستاسومینځ کښې عهدباقی نه دې،لهذاتاسوته لس (۱۰) ورځې مهلت دی چې په دې کښې دا خالی کړئ،خپل اهل وعیال اوسامان چه څومره وړلې شئ هغه هم ځان سره یوځئ اوجلاوطن شئ،دوئ دَجلاوطن کیدلو اراده اوکړه لیکن دَ منافقانو سردارعبدالله بن ابی منع کړل چه مه ځئ مونږه تاسوسره یو،دَمسلمانانوپه مقابله کښې کلک شئ که چرې تاسواوویستلې شوئ دَوطن نه نومونږبه هم درسره اوځو،اوکه مسلمانانو درسره جنگ کولونومونږبه موملگرتیاکوؤ(ورستوپه دویمه رکوع کښې دَدې ذکردې) په دې خبره بنی نضیردهوکه شول اودَجلاوطن کیدلونه ئې انکاراوکړواوجنگ ته تیار شول، حضورﷺعبدالله ابن مکتومؓدَمدینې عامل مقررکړواوبنی نضیرطرف ته روان شولو، بنی نضیرپخپلو قلعوکښې داخل شول،حضورﷺدَدوئ محاصره اوکړله،یومنافق ئې هم مدد ته رانه غلو،دوئ ورنه هم نااُمیده شول،حضورعلیہ السلامصحابه کراموته دَدوئ دَباغونو دَ ونو قطع کولو او سیزولو حکم اوکړو. آخر دوئ تنگ شول او جلاوطن کیدل ئې منظور کړل، حضورﷺورته حکم اوکړوچه څومره سامان بغیردَسامان جنگ نه چه اوړلې شئ هغه یوځئ،

دوئ رااووتل ځوک خیبرته لاړل ځوک بل خوا، او دَ مال دَحرص په وجه ئې دَ خپلو کورونو دروازې ، چوکاټونه وغیره رااوباسل ځان سره ئي یوړل، ﴿يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُم بِأَيْدِيهِمْ﴾ کښې دیته اشاره ده، دَدوئ دَتللونه ورستوحضورﷺ دَدوئ مالونه په مهاجرینوباندې تقسیم کړل، چه ورستوئې ذکرراځي.

﴿لِأَوَّلِ الْحَشْرِ﴾ لام دَتوقیت دَپاره دې، (١) "حشر" معنی یا جلاوطنی ده یعنې دَ دوئ دا اوله جلا وطني ده ، دینه مخکښې دوئ چرته وطن بدرکړي شوی نه وو، بخلاف دَنورو یهودو، چې هغوئ بخت نصر بادشاه جلاوطن کړی وو. یامطلب دادې چې دادَدوئ اول ځل جلاوطنی ده ، دینه بعد به یوځل بیاهم وطن بدر کیږي، لکه حضرت عمر ﷺ دور کښې دوئ دَخیبر نه شام طرف ته جلاوطن کړي شوی وو، (٢) یا حشر دلته دَ جمع پمعنی کښې دې اومراد ترینه جنګ دپاره جمع کیدل دی، یعنی الله ﷻ ورته دَجنګ په اول وهله کښې شکست ورکړو. او جلاوطنئ باندې آماده شول.

﴿مَا ظَنَنتُمْ أَن يَخْرُجُوا﴾ یعنی دَبنی نضیرودَبهادرئ، اوقوت اودَ کثرت اسبابو په وجه مسلمانانو هم دا خیال نه وو چه دوئ به جلاوطن کړې شي، اودَدوئ هم داګمان وو چه زمونږ مضبوطی قلعی به مونږدَالله ﷻ دَعذاب نه بچ کړې اومانع به اوګرځي.

﴿مِّنَ اللَّهِ﴾ ای من عذاب الله ﴿فَأَتَاهُمُ اللَّهُ﴾ یعنی عذاب اوفیصله دَالله ﷻ، دَجمع ټول مذکوره ضمیرونه بنی نضیروته راجع دی.

﴿مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا﴾ حیث ظرف مکان دې او دلته ترینه مراد د مسلمانانو جهت دې، چه دَبی سروسامان مسلمانانودَلاسه جلاوطن کړې شول حالانکه دادوئ ګمان هم نه وو چه زمونږ په شان خلق به د داسې بې سروسامانه خلقو د لاسه جلاوطن کړې شي،

«وقذف في قلوبهم الرعب» دا تفصیل دې د الله ﷻ د عذاب ، چې الله ﷻ دَ دوئ په زړونو کښې دَ مسلمانانو رعب واچولو. ﴿يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُم بِأَيْدِيهِمْ﴾ یعنی دَحرص په وجه ئې کورونه خپل ورانول چه لرګی، چوکاټونه، دروازې دَځان سره یوځي(لکه مخکښې تیرشول)اودغه رنګه چه زمونږدَتللونه ورستودَمسلمانانولپاره دَاستعمال قابل پاتې نه شي.

﴿وَأَيۡدِي ٱلۡمُؤۡمِنِينَ﴾مؤمنانو دَبهرنه ورته کورونه ورانول لپاره ددی چه رُعب پری راشی اونیول ئی اسان شی،اودغه شان نوره صدمه ورته اورسی،دمسلمانانو دتخریب نسبت هم هغوئ ته اوشوځکه چه هغوئ سبب دَتخریب وو.ځکه چه عهدشکنی اودهوکه نی کړې وه،نودا په اصل کښ سبب طرف ته اسنادشویدې(کشاف،تهانوی رحمه الله).

﴿فَٱعۡتَبِرُواْ يَٰٓأُوْلِي ٱلۡأَبۡصَٰرِ﴾یعنی دوئ پخپلوقلعواوطاقت باندی اعتمادوو،الله ﷻ ورته سزا ورکړه نوتاسوهم دَدوئ دَانجام نه عبرت واخلئ دَالله ﷻ نه ماسوی په بل څیزباندی اعتماد مه کوئ،فقهاؤو دا آیت دَقیاس دَحجیت لپاره دلیل ګرخولې دې،تفصیل په کتب: اصول فقه کښ ملاحظه کړئ.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَوۡلَآ | أَن | كَتَبَ | ٱللَّهُ | عَلَيۡهِمُ | ٱلۡجَلَآءَ | لَعَذَّبَهُمۡ | فِي | ٱلدُّنۡيَاۖ |
| اوکچرته نه وی مقررکړې الله ﷻ پدوئ باندی جلاوطنی نوخامخاعذاب به ئې ورکړې وې دوئ ته په دنیاکښ | | | | | | | | |
| وَلَهُمۡ | فِي | ٱلۡأٓخِرَةِ | عَذَابُ | ٱلنَّارِ ۝٣ | ذَٰلِكَ | بِأَنَّهُمۡ | شَآقُّواْ | ٱللَّهَ |
| اودوئ دپاره دې په آخرت کښ عذاب دَاُور،داسزاپوجه دَدی چه بیشکه دوئ مخالفت کړې ووځ دَالله ﷻ | | | | | | | | |
| وَرَسُولَهُۥۖ | وَمَن | يُشَآقِّ | ٱللَّهَ | فَإِنَّ | ٱللَّهَ | شَدِيدُ | ٱلۡعِقَابِ ۝٤ | |
| اودَرسول دَهغه،اوځوک چه مخالفت کوی دَالله نوبیشکه الله ﷻ سخت عذاب ورکونکې دې | | | | | | | | |
| مَا | قَطَعۡتُم | مِّن | لِّينَةٍ | أَوۡ | تَرَكۡتُمُوهَا | قَآئِمَةً | عَلَىٰٓ | أُصُولِهَا |
| هغه چه پری کړی دی تاسو،دَ اونودکجوررونه یاپریخی دی تاسوهغه اونی ولاړی په بیخونوخپلو | | | | | | | | |
| فَبِإِذۡنِ | ٱللَّهِ | وَلِيُخۡزِيَ | ٱلۡفَٰسِقِينَ ۝٥ | | | | | |
| نوداتول په اجازت دَالله سره دی،اوچه رسواکړی فاسقان | | | | | | | | |

﴿ وَلَوۡلَآ أَن كَتَبَ ٱللَّهُ ﴾دا جمله معترضه ده او دې کښې سبب د عذاب بيانيږي ،چې چونکه دوئ د الله ﷻ او د هغه رسول مخالفت کړې دې نو ځکه په دنيا کښې په دوئ باندې عذاب راتلل لازمي وو، او هغه عذاب ورله الله ﷻ د جلاوطنۍ په صورت کښې ورکړو ، او

کچرته دا عذاب نه وي نو بل عذاب به پرې راغلي وي . قتل او قيد کړې شوي به وو . لکه بدر په موقع باندې قريش او غزوه خندق نه ورستو د بنو قريظه چې کوم انجام وو. خو بهر حال د الله عذاب په دوئ دنيا کښې راتلل لازمي وو. ځکه چې «بانهم شاقوا الله ورسوله » دوئ خالص عناد او ضد په وجه مخالفت کړې دې. ﴿وَلَهُمْ فِي ٱلْآخِرَةِ عَذَابُ ٱلنَّارِ﴾ يعني صرف د دنيا په عذاب اکتفا نه ده بلکه آخرت کښې د دوئ استوګنه جهنم دې

﴿مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ﴾مفسرين وائي چه دادیهودو دَيوی طعنی اواعتراض جواب دې.چه کله بنو نضير د تسليم کيدو نه انکار اوکړو او قلعه بند شو نو نبي کريم ﷺ مسلمانانو ته د دوئ اونې او باغات سوزولو حکم اوکړو،نو مسلمانانو د بويره مقام کښې د دوئ باغات سوزول شروع کړو نو دوئ دا اعتراض اوکړو چې اونی قطع کول اوسيزه ول خو فساد دې. پخپله فساد کوئ او مونږ ورنه منع کوئ، نوجواب اوشو چې دا فساد نه دې. ځکه چې ددې حکم الله ﷻ ورکړې دې او کوم شي حکم چې الله ﷻ ورکړي هغه فساد نه وي .﴿مِّن لِّينَةٍ﴾ من بيانيه دې دَ﴿ مَا قَطَعْتُم﴾ بيان کوی «لِينَة»عمده کجوری اُونی ته وائی. عرب سوا د عجوه او برني کهجورو نه، نور هر قسم کهجورې وني ته لينه وائي. او ميوې ته ئې لون وائي. په اصل کښې لِوْنَةٌ دې،واؤماقبل مکسورپه ياء سره بدل شوي دې (التحرير والتنوير)

﴿أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً﴾ جواب اګرچې «ما قطعتم» سره پوره شو ،خو د دې راوړلو کښې نکته دا ده چه څنګه کهجورې نه کټ کول فساد نه دې نو دغه شان کټ کول ئې هم فساد نه دې ، ځکه چې دَ دې حکم الله ﷻ کړې دې ، او دغه شان ديکښې مسلمانانو ته تسلي ده. ځکه چې کله دوئ ته د باغونو کټ کولو حکم اوشو نو څنې مسلمانانو عمده او غير عمده هر قسم کهجورې کټ کړې ،چې يهودو غيظ وغضب نور هم زيات شي او څنو عمده کهجورې پريخودلي او غير عمده اونې ئې کټ کړې ، ځکه چې دا هسې هم مسلمانو لاس ته را رواني دي، نو بيا دواړو فريقينو سره وسواس شو چې مونږ څه اوکړو دا مو خه اوکړو او که نه ؟ نو الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې دواړه کاره کول صحيح دی که مو پريخولي نو بيا هم دَ دوئ ذلت دي، ځکه چې دَدوئ عمده عمده باغونه اوفصلونه مسلمانو قبضې ته لاړ شی اوهغوی به ترينه فائده اچتوی،او دوئ چې دا وينی نو نور به سوزی اوغم وغصه کښې به مبتلا کيږی، او

چا چې دا باغونه کټ کړل او اوسیزل ئې،هغوئ هم خه کړی دی خکه چې دیکښې هم دَدې
یهودیانو ذلت اورسوائی ده،چې دوئ ټول عمر محنت نن دَدوئ په مخ کښې په اورکښې دُود
کیږی، اودوئ سوا دَ حسرت نه نور هیڅ نشی کولې.

﴿ فَبِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾جواب شرط دې. او ﴿ مَا قَطَعْتُم﴾شرط دې او﴿وَلِيُخْزِىَ ٱلْفَـٰسِقِينَ ﴾ علت دې د
"اذن" او عطف دې په مقدرباندی ای لیعزّالمؤمنین یعنی الله ﷻ دې اجازت درله خکه درکړو چه
مسلمانانوته عزت ورکړی او فاسقان (بنی نضیر)رسوا اوذلیله کړی.

| |
|---|
| وَمَآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنْهُمْ فَمَآ أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ |
| اوهغه مال چه ورکړې دې، الله ﷻ رسول خپل ته دَ کافرانو نه، نونه دی زغلله ولی تاسو په هغی باندی هیڅ اسونه |
| وَلَا رِكَابٍ وَلَـٰكِنَّ ٱللَّهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُۥ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ |
| اونه اوښان لیکن الله ﷻ مسلط کوی خپل رسولان په هغه چا چه ئې خوښه شی،اوالله ﷻ |
| عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ۞ مَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰ |
| په هر شیزباندی قادردې.هغه مال چه ورکړې دې الله ﷻ رسول خپل ته دَ کلو والا نه |
| فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَـٰمَىٰ وَٱلْمَسَـٰكِينِ وَٱبْنِ ٱلسَّبِيلِ |
| نوداد الله دپاره دې اودَرسول دپاره دې اودَپاره دَخپلوانودَرسول دې،اویتیمانواومسکینانواومسافرودپاره دې، |
| كَىْ لَا يَكُونَ دُولَةًۢ بَيْنَ ٱلْأَغْنِيَآءِ مِنكُمْ ۚ وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ |
| دپاره دَدې چه نشی دامال گرزیدونکې په مینځ دَمالداروستاسوکښې،اوهغه خه چه درکړی تاسوته رسول ﷺ |
| فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَٱنتَهُوا۟ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۖ |
| نواخلئ هغه،اوهغه خه چه منع کوی تاسو(رسول الله)دَهغی نه نومنع شئ (دَ هغی نه)،او اویریږئ د الله نه |
| إِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ۞ لِلْفُقَرَآءِ ٱلْمُهَـٰجِرِينَ ٱلَّذِينَ |
| بیشکه الله ﷻ سخت عذاب ورکونکې دې(دغه مال فئ استحقاق دې ) د فقیرانو هجرت کونکو . هغه |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أُخْرِجُوْا | مِنْ | دِيَارِهِمْ | وَأَمْوَالِهِمْ | يَبْتَغُوْنَ | فَضْلًا | مِّنَ | اللهِ | وَرِضْوَانًا |
| چه ويستلى شوى دى | | دكوروننوخپلونه | اومالونوخپلونه | طلب كوى | فضل | | دالله | اورضاء |
| وَيَنْصُرُوْنَ | اللهَ | وَرَسُوْلَهُ ط | أُولَٰٓئِكَ | هُمُ | الصّٰدِقُوْنَ ۝٨ | | | |
| اومددكوى | ددين | دالله جَلَّ جَلَالُهُ اودرسول | دغه،دغه خلق | هم | دوئ رښتنى دى | | | |

﴿ وَمَآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنْهُمْ ﴾دبنى نضيرودجلاوطنئ نه ورستومسلمانانوته دهغوئ مالونه پاتى شول.نو اوس دهغى حكم اومصارف ذكركيږى.روايت دې چه دبنى نضيرو د جلاوطنئ نه ورستو مسلمانانو مطالبه اوكړه چه ددوئ مالونه دى دمال غنيمت په شان په مونږ تقسيم كړې شى.نو داآيت نازل شوچه دامالِ غنيمت نه دې،داماِل فئ دې چه ددى ټول مالكانه اختيار حضور ﷺ ته دې،دحضور ﷺ په مرضئ او فيصلى سره به د حضور ﷺ رشته دارانو يتيمانانو ، مسكينانو ،مسافرو ،باندى خرچ كولې كيږى،(روح،قرطبى)

فيء: رجوع ته وائى كقوله تعالى فان فاؤوا ،په دې وجه زوال نه ورستوسورى ته هم فيء وئيلې كيږى، ځكه چه دې وخت كښې سورې د هر څيز را واپس شى. په اصطلاح دفقه كښې مالِ فيء هغه دې چه دكافرانونه صلحًاواغستلې شى ياورباندى رُعب راشى اوپاتې شى ورنه،اوكوم مال چه په غزا ،قتال سره واغستې شى هغه مالِ غنيمت دې چه حكم ئى په لسمې(١٠)سپارى په ابتداء كښې شويدې،

فيء: كښې نبي كريم ﷺ اختيار مالكانه وو، او په آيت كښې مذكورو مصارفو كښې صرف كولو حكم داسې وو لكه چې عام سړي ته خپل مال كښې زكات، صدقات وركولو حكم دې، نبي كريم ﷺ دېكښې څه حصه د خپل اهل وعيال نان نفقې د پاره پريخوده او د هغوئ د كال خرچه به ئي ترينه پوره كوله، او ديكښې به چې هم كوم مال زياتي شو هغه به ئي د الله ﷻ په لاره كښې وركړو. او دينه علاوه نور ټول مال فيء به ئي الله ﷻ په لاره كښې لګوو، نبي كريم ﷺ وفات نه ورستو د دې حيثيت د وقف شو او محل د ميراث نه وو چې اولاد او بيبيانو مينځ كښې تقسيم كړې شوې ، نبي كريم ﷺ نه بعد د دې اختيار د وخت حاكم سره دې خو دا اختيار صرف د تصرف دې ، مالكانه ، نه دې، هغه به ئي د مسلمانانو مصالح عامه كښې صرف كوي

((افاءالله)) دلته ((افاء)) د "فيء" نه دي ، خو اصطلاحي معنی په کښې ملحوظ ده ، لغوي معنی ئي نه ده ملحوظ، يعني دلته صرف د "ورکولو" معنی کښې استعمال شوې دې. د رجوع او واپسي معنی په کښې نشته ، ځکه چې دا ځمکې او مالونه دينه مخکښې مسلمانانو ملکيت کښې نه وو ، البته په داسې مال باندې فيء اطلاق او افاء لفظ سره تعبير کښې دي طرف ته اشاره ده چې کفار خپل مملوکه مال هم حق دارنه دي، بلکه مؤمنان يې حقدار دي ،هم دي وجهې نه مال فيء ته فيء ويلې کيږي،چې داخپل اصل مستحقينو ته واپس راشي.

﴿ فَمَآ أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ ﴾ايجاف،سيرسريع ته وائي،﴿مِنْ خَيْلٍ ﴾"من"زائددې براځ تاکيد.

﴿وَلَا رِكَابٍ ﴾رکاب اوښانو ته وائي،واحدئې راحله رازي من غيرلفظه،عرب اطلاق دَراکب په هغه چاکوی چه په اوښ ناست وی.اوفارس چه په فرس ناست وی(کبير)مطلب دادې چه دَ دی مال په ميلاويدلو کښ نه تاسوته دَسفرمشقت رسيدلې دې ځکه چه بنی نضيردَمدينی نه دوه ميله باندې وو،اونه دَمعتدبه قتال.((ولکن الله يسلط رسله)) بلکه د الله ﷻ طرف نه دخپل رسول خصوصي مدد وو ،چې هغوئ په زړونو کښې ئي رعب واچولو ، او هغوئ دا پريخودلو او اوتختيدو(جلاوطن شو)،نو په دې وجه دې مال کښې صرف د الله رسول حق دې، ستاسو په کښ استحقاق نشته.

﴿ مَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ ﴾ دا آيت د ماقبل آيت بيان او تفصيل دې ، دا رنګه ماقبل کښې حکم خاص وو په بنو نضير پورې ، ديکښې حکم تعميم دې، چې مال فيئ کوم ځائ کښې چې هم درته ميلاو شي هغې مصارف دا دي ﴿مِنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰ ﴾نه مراد فدک اوځه حصه دَخيبروغيره دی چه داهم بغيردَقتال نه ميلاؤشوی وؤ،

﴿فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ ﴾ دا اول مصرف دې د "فيئ". ذکر دَ الله تبرکاً دې او اشاره ده ديته چه مالک حقيقی ئی صرف الله ﷻ دې دَهغه دَحکم مطابق به تقسيمولې شی. او نبي کريم ﷺ حق پکښې د ملکيت وو ، په خلاف د نورو مصارفو ، بخاری مسلم وغيره کښ دی چه حضور ﷺ به مالِ فئ نه دَخپل اهل لپاره دَيوکال نفقه جداکوله اومابقی به ئې دَجهاد په سازوسامان کښ خرچ کولو. حصه دَرسول ساقطه شوې ده په موت سره،

﴿وَلِذِي ٱلْقُرْبَىٰ﴾ **دويم مصرف دي** ، او دينه مراد دَ حضورﷺ رشته داران، بنو هاشم، بنو مطلب دي،اودَدوئ حصه ځكه مقرره شوه چه دوئ باندى نورنفقات واجبه اخستل حرام وؤ.
«واليتامى» **دريم مصرف دي** «والمساكين» **څلورم مصرف دي** «وابن السبيل» **پنځم مصرف دي**

﴿كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةًۢ﴾ دادَمصارفودَعلت بيان دي "دولة"دولة معنى مفسرينو دا كړيده،الدولة مايتداول بين الايادي يعنى هغه شى چى يوځو مخصوص لاسونو كښ تاويږى راتاويږى.يعنى الله ﷻ دامصارف ځكه بيان كړو چى مال فيئ صرف مالدارو پورې منحصر نشى چې كله يو مالدار اوكله بل ته ميلاوشى بلكه داد غريبانانو ضرورت او احتياج پوره كولو يو ذريعه ده.

﴿وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَٱنتَهُوا۟﴾ دا حكم د فئي او د هغې مصارفو بيان په مينځ كښې جمله معترضه ده، دا خبره مخكښې تيره ده چې صحابه كرامو بنو نضير مال په باره كښې هم دا ګمان وو چې دا به غنيمت په شان تقسيميږي ،خو دلته د هغوئ توقع خلاف حكم راغې او زيات په ځائ كم ميلاو شو او ځنو ته بالكل ميلاو نشو ، نو دوئ سره احساس د محرومئ پيداشو، نو دې آيت كښې الله ﷻ د هغې ازاله فرمائي . چې ديته مه پريشانه كيږئ ، د يو مسلمان دپاره ټولو نه لويه سرمايه د نبي حكم اطاعت دې او ټولو نه لوئ نقصان د رسول مخالفت دې ، لهذا د دې فكر كوئ.

نزول په اعتبارسره اګرچه داحكم خاص دې مال فئ پورى،ليكن حكم يى عام دې ټول احكاماتو كښ دَحضورﷺاطاعت واجب دې،اودى كښ اشاره ده چه دَهرامراونهى وجودپه قرآن كښ ضرورى نه دې بلكه ډيراوامراونواهى اللهﷻدَحضورﷺپه ذريعه سره بيان كړي دى، بخاري وغيره كښ دى ابن مسعودﷺاوفرمائيل:لعن الله الواشمات والمستوشمات و المتنمصات و المتفلّجات للحسن المغيرات خلق الله، يعنى اللهﷻلعنت كړيدې په خالونو لګونكو او لګولو زنانه ؤباندى اوپه هغه زنانه ؤباندى چه ويخته ويستونكى وى (دَ ورځونه چه نرى شي اوښكلى ښكاري)اوپه هغوزنانه ؤباندى چه دَحسن لپاره غاښونه فراخونكى وى چه دَاللهﷻخلقت بدلونكى وى،نويوى ښځى داواؤريدل نواشكال ورته اوشو چه ما خو ټول قرآن تلاوت كړوليكن دالعنت مى پكښ اونه ليدلو ،نودَابن مسعودﷺخواته راغله اوداخبره

نی ورته اوکړه،نوهغه ورته اوفرمائيل کچرته تاتول قرآن صحيح لوستلې وې نوتاته به پکښې دا لعنت ميلاؤشوې وؤ.آياتاداآيت نه دې لوستلې ﴿وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمۡ عَنۡهُ فَٱنتَهُوا۟﴾ نو هغې ورته اووئيل لوستلې مې دې،نوابن مسعودﷺورته اوفرمائيل چه په چا باندې حضورﷺلعنت کړې وې نوپه هغه الله ﷻهم لعنت کړيدې

﴿ لِلۡفُقَرَآءِ ٱلۡمُهَـٰجِرِينَ ٱلَّذِينَ ﴾بدل دې دَماقبل﴿ وَلِذِى ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَـٰمَىٰ ﴾نه، يعنې هغې ما قبل څلور اصناف ټول د دې مصرف ګرځي خو به طور خاص مهاجرن فقرا د دې ډير مستحقين دې ، ﴿ٱلَّذِينَ أُخۡرِجُوا۟ ﴾دی کښې دَ مهاجرينو صحابؤيوڅوصفات ذکرکيږی.دائې **اول صفت** دې، چې کورونه نه ويستلی شويدی،بې سروسامان دی،

﴿ يَبۡتَغُونَ فَضۡلًا ﴾**دويم صفت** دې يعنې دَ الله ﷻ د رزق او رضا طلب ګاردي، فضل نه مرادرزق دې ای طالبين منه تعالی رزقًافی الدنیاومرضاةً فی الاخرةِ

﴿ وَيَنصُرُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ﴾ **دريم صفت** دې، يعنې نصرت دين دَهغوئ شعار اومقصود اصلی دې، يعنې دَالله ﷻاودَهغه دَرسولﷺدَدين حفاظت کوی

﴿أُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّـٰدِقُونَ﴾ دا **څلورم صفت** بيانيږی،چې دادَعقيدې اوايمان ،قول اوعمل اعتبار سره ريښتنی خلق دې. دادَالله ﷻدَطرفه دَصحابه کرامو دَايمان اواخلاص ګواهی ده.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيۡنَ | تَبَوَّؤُ | الدَّارَ | وَالۡاِيۡمَانَ | مِنۡ | قَبۡلِهِمۡ |

او (استحقاق دې دا مال ) د هغه خلقو چه اوسيږې په کور دَ هجرت(مدينې)کښې او ايمان کښې،مخکښې دَمهاجرينونه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُحِبُّوۡنَ | مَنۡ | هَاجَرَ | اِلَيۡهِمۡ | وَلَا | يَجِدُوۡنَ | فِيۡ | صُدُوۡرِهِمۡ | حَاجَةً |

محبت کوی دَهغه چاسره چه هجرت ئې کړيدې دوئ ته اونه مومی په سينوخپلوکښې حسد

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّمَّآ | اُوۡتُوۡا | وَيُؤۡثِرُوۡنَ | عَلٰٓى | اَنۡفُسِهِمۡ | وَلَوۡ | كَانَ |

پوجه دَهغې مال چه مهاجرينوته ورکړې شويدې اوغوره کوی(ترجيح ورکوی)په خپلوځانونورخلق اګرکه وی

| |
|---|
| بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۚ وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝٩ |
| پدوئ تنګی،اوهرهغه څوک چه اوساتلې شودبخل دخپل نفس نه،نودغه خلق هم دوئ کامیاب دی. |
| وَالَّذِينَ جَاءُوا مِنْ بَعْدِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا |
| «دامال فئ استحقاق دې ، د هغه کسانو چه راغلی دی ورستودوئ«مهاجرینو»نه،وائی دوئ اې ربه زمونږ |
| اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ |
| بخنه اوکړه مونږته اوورڼوزمونږته هغه چه ړومبې داخل شویدی زمونږنه په ایمان کښ اومه ګرځوه |
| فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ۝١٠ |
| په زړونوزمونږکښ کینه هغی کسانوته چه ایمان ئی راوړې دې،اې ربه زمونږ!بیشکه ته ډیرمهربانه،ډیررحم کونکې ئی. |

﴿وَالَّذِينَ تَبَوَّءُو الدَّارَ وَالْإِيمَانَ﴾ دَاکثرومفسرینوپه نیزدا عطف دې په ماقبل «للفقراء المهاجرین» باندې، مراد دَ دینه انصار دَ مدینی دی،یعني څنګه چې فقرا مهاجرین به طور خاص د دې مستحقین دي نو دغه شان انصار هم د دې مستحق دي ، دیکښ دَ انصارو یو څو صفات بیانیږی،دا **اول صفت** دې،یعنی دهغه خلق دي چې ایمان په حالت کښ مدینه کښ اوسیږی.

﴿ الدَّارَ﴾نه مراد دارالهجرة دي چه مدینه ده،نسبت دَتبوء دارته حقیقی دې،اوایمان ته مجازی دې،دَایمان تشبیه دَمحفوظ مکان سره ورکړې شویده.(۲)بعضِ وائی دادَقبیلی دَعلفتُهاتبنًاوماءً بارداً نه دې،تقدیردارنګه دې:تبوّء الدارَ واخلصوالایمان،یعنی مدینه ئی خپله استوګنه ګرځولې ده اوایمان ئی خپل خالص کړیدې.(۳)بعضِ وائی اصل عبارة دارنګه دې،تبوّءوا دارالهجرة ودارالایمان،اومراد دَدارینونه مدینه ده«روح المعانی».

﴿مِن قَبْلِهِمْ﴾جارمجرور متعلق دَتبوّءوا سره اوکلام کښ مضاف مقدردې ای من قبل هجرتهم اومطلب دادې چه دَمهاجرینودَراتلونه مخکښ ئی ایمان راوړې وؤ،اودامطلب نه دې چه دَمهاجرینودَایمان راوړونه مخکښ ئی ایمان راوړې وؤ.

﴿يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ﴾ **دويم صفت** دې دَانصارو ،چې خپل مهاجرينو رونړو سره مينه محبت ساتی انصارو دَمهاجرينوسره دَمحبت داحال وؤچه حضور ﷺ دَهرمهاجردَانصاری سره اخوت قائم کړې وؤ، تردی پوری چی دَيوبل وارث به وؤبياچه کله آيت دَميراث نازل شونوبيادا حکم دامنسوخ شو.

﴿وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً﴾ **دريم صفت** دې دانصارو ،چې کوم مال نبی کريم ﷺ ته غنيمت اوفيئ کښ ميلاؤ شی اونبی کريم ﷺ ئې فقرا مهاجرينو کښ تقسيم کړی،نو هغی باندې زړه کښ خفگان نه راولی،او نه دامحسوسه وی،بلکه پدی باندې رضااو خوشحاله وی، ﴿لايجدون﴾وجدان نه مراد وجدان عقلی دې،يعنی اگرچه غير اختياری اوطبعی تقاضه خو وی خوليکن دوئ هغه دومره دباؤ کړې وي لکه چی سره وی هم نه،«حاجة»**حاجت نه مراد** يا خپله معنی حقيقی احتياج ده ، دې صورت کښ «مما اوتوا» کښ "من" تعليليه دې،يعنی مهاجرينو ته ورکولو په وجه دومره خوشحاله وی چی دوئ سره دَخپل احتياج احساس هم نه وی، **يا**«حاجة» معنی محتاج اليه ده، اې طلب مايحتاج اليه يعنی هغه مال چی نبی کريم ﷺ ئې فقرا مهاجرينو له ورکوی،دوی باوجود دَ احتياج نه دهغې طلب اوطمع په زړه کښ نه لری، **يا** «حاجة» نه مراد اثرلازمی دَحاجت دې،چی هغه حسد اوکينه ده يعنی دوئ زړونو کښ څه حسد اوکينه نه وی.

﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ﴾داتی **بل صفت** دې چه مهاجرينوته دَخپل ځان نه زياته ترجيح ورکوی اگرکه خپله په فاقی اوتکليف کښ وی،حتّی چه دَچابه دوه ښځی وی نو يوې ته به ئی طلاق ورکړو او دَ مهاجر سره به ئې ورله نکاح اوکړه،بخاری،مسلم وغيره کښ دی چه دَ ابوهريره ؓ نه روايت دې چه يوصحابی ؓ دَنبی اکرم ﷺ خدمت کښ حاضرشو اودَخپلې لوږې شکايت ئی اوکړو، نبی ﷺ خپلو کورونو ته سړې اوليږلو،خوچرته هم څه بيا نه موندلې شول، نو نبی ﷺ صحابؤته اوفرمائيل چه څوک شته چه دَده يوې شپې ميلمستيا اوکړی؟ يو انصاری صحابی عرض اوکړو( په يوروايت کښ دی چه دا ابوطلحه ؓ وو)څه به ئي بوځم يارسول الله! هغه ئی کورته بوتلو او بی بی ته ئی اووئيل چه دا دَ حضور ﷺ ميلمه دې،څومره چه ئی اکرام کولې شی،کمې پکښ مه کوه،اوڅه چيزمه پټوه،بی بی ورته اووئيل:په الله ﷻ مې دقسم وی

چه دماشومانو ډپاره مى څه لږغوندى ځيزايخي دي،نورهيڅ هم په كوركښ نشته،صحابى ورته او فرمائيل ماشومان دلاسه كړه او اودهٔ يې كه، خوراك راوړه، مونږ به هم ميلمه سره كينو . بيا ته دډيوى سمولو په غرض پاسه او ډيوه مړه كړه،نوبى بى هم داسى اوكړل، دواړو ښځي خاوند او ماشومانو نهره شپه تيره كړه اوكله چه صبا شونو حضور ﷺ اوفرمائيل د فلاني او د فلانئ دشپې سلوك الله ﷻ ته ډيرخوښ شو.

په يوروايت كښ دى چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمائى چه يوصحابى ته چادچيلئ سر په هديه كښ وركړو ،نوهغه داخيال اوكړوچه ځمافلاني وروردي زيات ضرورت منددي،دبال بچ خاونددي پدي وجه ئى هغه ته اوليږلو ،مختصره داچه داسراوه،۷،كورونوكښ اوګرځيدلو، بيادړومبى صحابى كورته راغي.

﴿وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾اى فاقة وحاجةً،او دا صفت اعلى دي دهغى نه چه الله ﷻ فرمائيلى دى:ويطعمون الطعام على حبّهِ.اودغه شان:واتى المال على حبّهِ.

﴿وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ﴾ يعنى انصاروته لالچ اوبخل نه وؤ. الله ﷻ ورنه بچ كړى وؤ، او څوك چه الله ﷻ د لالچ اوبخل نه بچ كړى هغه كامياب وى.

**شح او بخل كښ فرق** دې ،بخل دا دي چى شرعاً د خرچ موقع وى اوانسان هلته خپل مال خرچ نكړى،مثلازكات،صدقات واجبه، جهاد، وغيره،او شح دادي چي خپل مال هم خرچ نكړى او د بل مال ناجائزې طريقى لاس ته كولو په چكر كښ وى،اودهغه هرپ كولو دپاره منصوبې اوحربې جوړه وى،دي وجهى نه حديث كښ سختئ سره ددينه منع راغليده،چى شح نه ځان ساتئ ،ځكه چي دې ستاسونه مخكښ خلق تباه كړي دى، دې دوجهى نه هغوئ يو بل وينى توئ كړې، او د احترام رشتې ئي پامالي كړې (مسلم)

نن صبا كائنات كښ خورفساد منبع هم دهغه شح دې،حديث كښ راځى،چى آخرى وخت كښ به زمانه يوبل ته نيزدې شى،علم به قبض شى ،زړونو كښ به شح واچولى شى اوهرج به ډير شى صحابه كرامو عرض اوكړو،اى دالله ﷻ رسوله!هرج څه ته وائى،نبى كريم ﷺ اوفرمائيل: قتل عام ته.(مسلم شريف ۱۵۷)

﴿وَالَّذِينَ جَآءُو مِنۢ بَعْدِهِمْ﴾داهم داكثروپه نيزعطف دې په ماقبل او يو صنف دې د مستحقينو د مال فئ يعنى دصحابؤ رضي الله عنهم نه ورستوترقيامته پورى مسلمانان هم دمال فئ

مستحق دی، بعضِ وائی مراددینه هغه دی چه دَموجوده مهاجرینو نه ورستونی هجرت کړې وؤ مدینی ته. ﴿وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا﴾ای حسداًوبغضاً، یعني زمونږ زړونه د مؤمنانو سره حسد او بغض نه پاک اوساتې ، امام مالک رحمه الله دَدی آیت نه استنباط کړیدې چه روافض(شیعه ګان) دَ مال فئ مستحق نه دی ځکه چه دوئ موصوف نه دی په صفت مذکوره سره،صحابه کرام سره بغض ساتی اوبدردورته وائی(لعنهم الله).

ابن ابی لیلی فرمائی چه دَخلقودری درجی دی(۱)مهاجرین(۲)انصار(۳)دَدی دواړو سره محبت ساتونکی اودَدوئ په نقشِ قدم باندی تلونکی،نوته کوشش کوه چه دَدی دریؤنه خارج نه شی(خطیب شربینی).

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ | تَرَ | إِلَى | الَّذِينَ | نَافَقُوا | يَقُولُونَ | لِإِخْوَانِهِمُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا |
| آیاته نه ګوری هغه خلقوته چه منافقان شویدی وائی دوئ ورنړوخپلوته هغه چه کافران دی | | | | | | | | |
| مِنْ | أَهْلِ | الْكِتَابِ | لَئِنْ | أُخْرِجْتُمْ | لَنَخْرُجَنَّ | مَعَكُمْ | | |
| دَاهل کتابونه،قسم دې کچرته تاسوویستلی کیدئ نوخامخامونږبه هم اوزودَستاسوسره، | | | | | | | | |
| وَلَا | نُطِيعُ | فِيكُمْ | أَحَدًا | أَبَدًا ۙ | وَإِنْ | قُوتِلْتُمْ | | |
| اوخبره به اونه منومونږبه حق ستاسوکښ دَهیچا کله هم ، او کچرته جنګ کولې شی ستاسوسره | | | | | | | | |
| لَنَنْصُرَنَّكُمْ ۖ | وَاللَّهُ | يَشْهَدُ | إِنَّهُمْ | لَكَاذِبُونَ ⑪ | | | | |
| نوخامخا به مونږ مدد کوؤ د تاسو، او الله ګواهی ورکوی چه بیشکه دوئ یقیناً دروغژن دی، | | | | | | | | |
| لَئِنْ | أُخْرِجُوا | لَا | يَخْرُجُونَ | مَعَهُمْ | وَلَئِنْ | قُوتِلُوا | لَا | |
| قسم دې کچرته اوویستلی شی هغوئ(بنی نضیر)اوبه نه ووځی دوئ دَهغوئ سره،اوکچری جنګ اوکړې شی دَهغوی سره نومدد به | | | | | | | | |
| يَنْصُرُونَهُمْ | وَلَئِنْ | نَصَرُوهُمْ | لَيُوَلُّنَّ | الْأَدْبَارَ | ثُمَّ | لَا | يُنْصَرُونَ ⑫ | |
| اونکړی دَهغوئ،اوبفرض محال کچری دوئ ورسره امداداوکړی نوخامخابه اوګرځوی شاګانی بیابه مدداونکړشی | | | | | | | | |

| |
|---|
| لَاَانْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ |
| يقينا چې ستاسو ډير دې هيبت په سينو د دوئ کښې په نسبت الله ﷻ نه.داپدې وجه چه بيشکه دوئ |
| قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ⑬ لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا اِلَّا فِيْ قُرًى |
| داسې قوم دې چه نه پوهيږي.نشي کولې جنګ دوئ تاسوسره ټول په يوځائ مګرپه هغه کلوکښې |
| مُّحَصَّنَةٍ اَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ ۭ بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ ۭ |
| چه محکم وي په قلعوسره ياورستوډديوالونونه،جنګ ددوئ په مينځ ددوئ کښې ډيرسخت دې، |
| تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا وَّقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ |
| ګمان به کوې ته په دوئ چه يوځائ متحديدې حال داچه زړونه ددوئ جداجدادي.داپدې وجه چه بيشکه دوئ |
| قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ⑭ |
| داسې قوم دې چه نه پوهيږي. |

﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا ﴾دا زجر او تخويف دې منافقانوته،په ابتداءکښې تيرشول چه منافقانوبنی نضيروته پيغام راوليږلوچه جلاوطنی مکوئ،مونږتاسوسره يو،که تاسو څوک زبردستی اوباسی نومونږ به هم درسره اوځو،او که څوک تاسو سره جنګ کوی نومونږبه درسره نصرت کوو،الله ﷻ ددی ګواهی کوی چه دوئ پدی خبره کښې کاذب دی.﴿اِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ ﴾مرادورنه دين اواعتقادی رونړه دی ﴿ولانطيع فيکم﴾يعنی تاسو سره وتلو کښې که راته څوک بل څه خبره کوی (چې مه اوځئ وغيره )نو هيڅ چرته به ئې او نه منو.«والله يشهد انهم لکذبون» يعني يهودو سره کومې وعدې کوي دا د دروغو وعدې دي، چرته ئې هم نه پوره کوي او نه ئې پوره کولې شي.

﴿لَئِنْ اُخْرِجُوْا﴾ ديکښې د «لکذبون» بيان دې ﴿ وَلَئِنْ نَّصَرُوْهُمْ ﴾که بالفرض والمحال نصرت ته راشي هم نوبيابه راهِ فرار اختيار وي.

﴿لَاَنْتُمْ اَشَدُّ﴾دیکښې مؤمنانو ته تسلي ده چې تاسو د یهودو او منافقینو اتحاد ته مه پریشانه کیږئ ، دوئ که متفق هم شي خو په زړونو کښې د ستاسو رعب او خوف پروت دې دوئ خو ستاسو نه دومره یریږي چې دومره د الله ﷻ نه هم نه یریږي، نو دوئ څنګه ستاسو سره جنګ کولې شي، ﴿فِيْ صُدُوْرِهِمْ﴾ضمیرمنافقانواویهودیانو دواړوته راجع دي﴿ذٰلِكَ﴾ د سبب بیان دې ، او اشاره ده ماقبل حکم ته یعنی ستاسونه یریدل او دَ الله ﷻ نه،نه یریدل ﴿لایفقهون﴾یعنی دوئ ظاهر پرسته دی،ظاهری مشاهدی نه یریږی،لیکن حقیقی قوت او مقدرت والا چې هغه الله دې، هغه دوئ ته نه ښکاری.

﴿لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا﴾ دیکښې هم د دوئ بزدلئ بیان دې، ضمیردَغائب دلته هم دواړوته راجع دې، چه دوئ دومره بُزدله دی چه اول خو تاسو سره جنګ نشي کولې ، که بالفرض کول غواړي نو ټول به نه کوي او چې کوم کوي هغوئ هم اقدام نشي کولې بلکه شکست خورده قوم په شان به قلعو اوښارونو کښې به محصور وي او د ځان دفاع به کوي .

﴿بَأْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ﴾ سبب د بزدلئ ذکر کیږي ، چې هغه د دوئ داخلي افتراق دې ﴿تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا﴾یعنی دَمسلمانانوپه مقابله کښې دَهغوئ په ظاهری اتفاق،اتحادمه دهوکه کیږئ، دَهغوئ په زړونوکښې یوبل سره هیڅ الفت اوخیرخواهی نشته،بلکه یوبل سره ئې عداوت دې،دې کښې تسلی ده مؤمنانوته اوتحریض علی القتال دې

﴿ذٰلِكَ﴾یعنی داافتراق دَزړونودَدوئ،﴿ لایعقلون﴾اي لایعرفون الحق یعنی دَدوئ اختلاف اصل سبب حق نه انکار اوخواهشاتو اتباع ده،ځکه چې حق یودې او هغې سره اتفاق راځی، او خواهشات دَهر چا جدا جدا دی،نوځرنګه به اتفاق پیدا شی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَمَثَلِ | الَّذِيْنَ | مِنْ | قَبْلِهِمْ | قَرِيْبًا | ذَاقُوْا | وَبَالَ |
| مثال دوئ په شان دَ هغو خلقو دې چه مخکښې وو دَ دوئ نه په نیزدې زمانه کښې ، چه اوڅکله | | | | | | |
| اَمْرِهِمْ | وَلَهُمْ | عَذَابٌ | اَلِيْمٌ | ۞ | كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ | اِذْ |
| هغوئ سزا دَ عمل خپل،اودوئ لره عذاب دردناک دې (مثال دَدوئ)په شان دَشیطان دې کله چه | | | | | | |

قَالَ لِلْإِنسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِّنكَ

اووائي انسان ته كافرشه.نوكله چه كفراوكړي انسان نوشيطان ورته اووائي بيشكه څه بيزاره يم ستا نه.

إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ⑯ فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَا

بيشكه څه يريږم د الله ﷻ نه چه ربّ العالمين دې. نو شي آخرى انجام د دواړو دا

أَنَّهُمَا فِي النَّارِ خَالِدَيْنِ فِيهَا وَذَٰلِكَ جَزَاؤُا الظَّالِمِينَ ⑰

چه دواړه به په اور دَجهنم کښې وی هميشه هميشه په هغې کښې.او دا جزاء دظالمانو ده

﴿كَمَثَلِ الَّذِينَ﴾ دې کښې د بنو نضير انجام طرف ته اشاره ده . چې دوئ قلعه بند شو او د منافقينو په وعدو مطمئن شو ، چې په مونږ څوک غالب نشي راتلې او نه مو څوک اوباسلې شي ، نو الله ﷻ فرمائي چې د دوئ قلعه ګانو او د دوئ مال و دولت کر وفر دوئ ته هيڅ فائده ورنکړه ، او د دوئ هغه انجام اوشو چې کوم دَ دوئ نه مخکښې متکبرينو د قريشو او بنو قينقاع شوې وو.،«کمثل» خبر دَ مبتداء محذوف دې،اى مثلهم كمثل الذين... ضمير په "مثلهم" کښې بنى نضيروته راجع دې اودَ﴿مِن قَبْلِهِمْ﴾نه مراد(١)اهل بدر دى، يعنى دَدى بنونضيرو انجام به هم دَاهل بدرپه شان وى چه دنياكښې هم ورته سزا ميلاو شوه او ذليله شول اوپه آخرة کښې به هم ورته دردناک عذاب وى(٢) او دغه شان مراد ورنه بنى قينقاع هم دى.بنى قينقاع دَ يهودو يوه قبيله وه چه دَرسول الله ﷺسره ئى عهدشکنى کړې وه چه دَهغى په وجه حضورﷺ دوئ شام ته جلاوطن کړل.

﴿قريبا﴾ مفعول فيه دې،دَ "استقر" فعل محذوف،چې هغى سره "من قبلهم"هم متعلق دې، يا مفعول فيه دې دَ«ذاقو»دَپاره يعنى ډير زر يى خپل عمل سزا وڅکله ﴿ذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ﴾ دا جمله تفسيريه ده،دَ "مثل" تفسير کوى

﴿كَمَثَلِ الشَّيْطَانِ إِذْ قَالَ﴾دا دويم مثال دې دبنو نضير د انجام ، اول مثال او دې مثال کښې فرق دا دې چې هغې کښې بنو نضير انجام ذکر وو او ديکښې ورسره د منافقينو وعدو انجام بيانيږي ، يعني منافقين چې دوئ سره کوم د امداد دعوې او وعدې کولې ، هغه دَ دوئ تشې

لافې وي، موقع باندې ورسره بيا ئې مدد اونکړو، او بالکل د شيطان غوندې کار ورسره ئې اوکړوچې دې دنيا کښې انسان ته د کفر ترغيب ورکوي ، گناه ورته مزين کړي او وعدې ورسره اوکړي ، او انسان په خه سرکشئ باندې آماده کړي ، نو کله چې د حساب کتاب ورځ شي او د الله ﷻ عذاب راشي نو بيا ترينه برات اعلان اوکړي .لکه سورت ابراهيم کښې تفصيل سره دَدې ذکردې،« وقال الشيطان لماقضى الامر ان الله وعدكم... » (ابراهيم :٢٢) اوکله کله دنيا کښې هم داسې صورت پيدا شي لکه ابوجهل ته ابليس دَ بدر په ورځ دَسُراقه بن مالک کنانی په صورت کښې ظاهرشوی وؤ اوورته ئې وئيلي وؤ: «لاغالب لكم اليوم من الناس و انى جارٌ لكم... »(انفال:۴۸) او بيا ئې ورنه په عين موقع براءت وکړو چه «انى اَرىٰ مالاترونَ»﴿اِنِّیْ اَخَافُ اللهَ﴾خوف نه مراد خوف طبعي دې باقي تفصيل په سورة انفال ۴۸کښې تير دې.

﴿فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَآ ﴾يعنی عاقبة اواخری انجام دَشيطان اودَانسان کافرداوی چه دواړه هميشه لپاره جهنم ته لاړشي.

| |
|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ |
| اې ايمان والؤاويريږئ دَالله ﷻ نه اواودې گوری هرکس چه څه ئې ليږلی دی لپاره دَصبا، |
| وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ |
| اويريږئ دَالله نه،بيشکه الله ﷻ خبردار دې په هغه څه چه تاسوئی کوئ اومه کيږئ په شانته دَهغه خلقو |
| نَسُوا اللّٰهَ فَاَنْسٰىهُمْ اَنْفُسَهُمْ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۱۹﴾ لَا يَسْتَوِيْٓ |
| چه هيرکړې ئی دې الله،نوهيرکړل الله ﷻ دوئ نه دَدوئ ځانونه ،دغه خلق هم دوئ فاسقان دی. نه دی برابر |
| اَصْحٰبُ النَّارِ وَاَصْحٰبُ الْجَنَّةِ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۲۰﴾ |
| خاوندان دَاوردَجهنم اوخاوندان دَجنت،خاوندان دَجنت هم دوئ کامياب دی |

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ منافقانوته زجراوتخويف نه ورستومسلمانانو ته وعظ او ارشاد دې،چه تقویٰ اختيارکړئ،اوهرکس دی داسوچ اوکړی چه دَآخرت لوئ سفردپاره ئی څه ذخيره جمع کړيده،دَدنياوړکی سفردپاره خامخاهرکس تياری کوی دَلاری خرچه وغيره

برابره وی،نو د آخرت او د سفرلپاره خو هم تیاري ضروري دي ﴿مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ د "غد" نه مراد ورځ د قیامت ده، تعبیر ترینه په "غد" سره ځکه اوشو چه قیامت هم داسې نیزدې دی لکه صبا چه نیزدې دې، یا د وجې د تیقن فی الوقوع نه، بعض وائی د ﴿لِغَدٍ﴾ نه مراد ورځ د مرګ ده (روح).

﴿وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ﴾ تکرار لپاره د تاکید دې، یا اول نه مراد تقوی ده په ادا د فرائضو او واجباتو کښ، او دویم کښ تقوی ده په ترک د محارمو او معاصیو کښ

﴿ولاتکونوا﴾ دیکښې تحذیر او منع ده د دین نه د تغافل او اعراض، چې الله ﷻ احکاماتو خلاف ورزي مه کوئ او د کافرانو او منافقانو طرز عمل مه اختیاره وئ، ﴿کالذین نسوا الله﴾ ای حقوقه وعهوده، یعنی نه د الله ﷻ حقوق اداکوی، او نه چې کومې وعدې کړیدې هغه پوره کوی. ﴿فَأَنسَىٰهُمْ أَنفُسَهُمْ﴾ د الله ﷻ حقوق او هغه سره کړې وعدو هیرولو سزا الله ﷻ داورکړه چې دوئ نه یې د دوئ ځانونه هیرکړل، په دنیا کښ ورسره د ځان اصلاح او آخرت د پاره څه زادراه جمع کولو هڅو سره فکر هم نشته او آخرت کښ به ورله هم داسې سزا ګانې ورته اوښائی چې دوئ نه به د دوئ ځانونه هیرکړی

﴿لَا يَسْتَوِىٓ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ﴾ دیکښې د ماقبل آیتونو نتیجې بیان دي ، چې کوم خلق الله ﷻ نه اویریږي او الله ﷻ احکاماتو اومني او عمل پرې اوکړي نو هغه به اهل جنت وي او کوم چې ورنه اعراض اوکړي او په ژوند دنیا کښې د ځان اصلاح اونکړي نو دا به اهل جهنم وي او اواهل جنت او جهنم چرته هم نشي برابر کیدې ، هغوئ کامیابه او جنتیان دی، او د دوئ ټهکانه به جهنم وی.

| |
|---|
| لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُۥ خَٰشِعًا مُّتَصَدِّعًا |
| کچرته نازل کړې وې مونږ دا قرآن په یو غرباندې نو خامخا به تا لید لې وو دا (غر) بریدونکې، ټوټې ټوټې کیدونکې |
| مِّنْ خَشْيَةِ ٱللَّهِ ۚ وَتِلْكَ ٱلْأَمْثَٰلُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٢١﴾ |
| دیرې د الله نه ، او دا مثالونه بیانوؤ مونږ دا خلقو ته چه کیدیشی دوئ فکراوکړی. |

| |
|---|
| هُوَ اللهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ عٰلِمُ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ |
| داالله هغه ذات دې چه نشته لائق دَعبادت بل هیڅ څوک مګرهم دې دې.عالم دې په غیبواوپه ښکاره باندې. |
| هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِیْمُ ﴿۲۲﴾ هُوَ اللهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ |
| هغه په هر چا مهربانه ډیررحم کونکې دې.داالله هغه ذات دې چه نشته لائق دَعبادت بل هیڅ څوک مګرهم دې دې. |
| اَلْمَلِكُ الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَیْمِنُ الْعَزِیْزُ |
| بادشاه دې ډیرپاک دې،سلامتیٔ ورکونکې دې.امن ورکونکې دې،ساتونکې دې دَخلقو،غالب دې، |
| الْجَبَّارُ الْمُتَکَبِّرُ سُبْحٰنَ اللهِ عَمَّا یُشْرِکُوْنَ ﴿۲۳﴾ |
| کارساز دې،یواځې دې په لویئ کښې پاک دې الله جَلَّ جَلَالُهُ دَهغې نه چه مشرکان ئې ورسره شریکوی. |

﴿لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا الْقُرْآنَ عَلَىٰ جَبَلٍ﴾ **دا ترغیب دې** لپاره دَ فکر او تأمل کولو په قرآن کښې او تمثیل دې دَ علوّ شان دَ قرآن،چه باوجود دَدې چه غرسخت اوغیرمتأثردې،کچرته عاقل جوړکړې شې اوقابل دَخطاب جوړکړې شې په شان دَانسان اوقرآن ورباندې نازل کړې شی نو دَ الله جَلَّ جَلَالُهُ دَخوف نه به ټکړې ټکړې شی،لیکن آفسوس دې په انسان چې تلاوت ئې او رې او بیاهم پکښې تقوی اوخوف خدا نشته.

﴿هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ دَسورت په آخر کښې **دعوه دَ توحید** مدلل ذکرکیږی،چې الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ماسوا بل څوک اله او معبود نشته.

﴿عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ **دلیل اوعلت دې** دَدعوې یعنی الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ماسوا بل څوک اله نشته ، ځکه چې صرف هغه دَعالم غیب اومشاهد احوالو باندې خبردې،بل چاسره داسې علم نشته. "**غیب**" هغه ته وائی چی دَهغې ادراک انسان نه په حواسو سره کولې شی او نه په عقل سره، او "**شهادة**" نه مراد هغه امور دی چې انسان بصریابصیرت سره دَهغې مشاهده کولې شی.

﴿هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ﴾ **بل دلیل دې** په دعوې،یعنی الله جَلَّ جَلَالُهُ ته دَټولو بندګانو حاجات او ضروریات معلوم دی په ټولو باندې رحم کوی،اوحاجات اوضروریات ورله پوره کوی،خواه

بنده مؤمن وي اوکه کافر،البته کافر باندې رحم صرف دنیا کښې دې اومؤمن باندې دنیا او آخرت دواړو کښې دې،اودالله ﷻ له نه ماسوا دبل چا رحمت.نودهغې څه نسبت د الله ﷻ رحمت سره نشته لکه حديث کښې راځي،چې الله ﷻ درحمت سل حصې ګرځولی دي،يوکم سل(۹۹) ئي څان سره پريخيدی اويوه حصه دنيا ته راليږليده.نومخلوقاتو کښې چې مونږ کوم تراحم وينو دادهغې مظهر دې،درحمت ظهور چونکه دعلم نه بعد کيږی څکه چې د چا د حاجت اوپريشان حالی علم ورسره نه وی نورحمت به پرې څنګه اوکړی،نوځکه د عالم الغيب نه بعد« هو الرحمن الرحيم »ذکر اوشو.

﴿هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ﴾تکرار دې لپاره دتاکيد اواهتمام﴿الملک﴾ بل دليل دې په توحيد ،چې الله ﷻ على الاطلاق بادشاه دې، د هغه امر د هر چا نه بالا دې،بل څوک ورسره شريک نشته. صفت رحمت نه ورستو صفت "الملک" راوړلو کښې ديته اشاره ده چې رحمت د الله ﷻ فضل دې،ګنی الله ﷻ مختار بادشاه دې ،څه غواړی هغه کولي شی

﴿ٱلْقُدُّوسُ﴾بل دليل دې په توحيد ،د "قدس" نه مشتق دې،لغت کښې طهارت اوبرکت په معنى کښې استعماليږی دلته "قدوس" فعول په وزن مبالغې صيغه ده،يعنی هغه ذات چې د هر قسم نقائصو اوعيبونو نه پاک،هرقسم خيالاتو،تصوراتواو اوهامو نه ماوراء او هر صفت کمال پکښې موجود وي،او دغه معنى صرف الله ﷻ په ذات مبارک کښې موجود ده بل څوک نشته چې هغه دې سره متصف شی نوثابته شوه چې بل څوک "اله"هم نشی کيدې.

﴿ٱلسَّلَـٰمُ﴾ بل دليل دې د توحيد، سَلِمَ يَسلَمَ نه مشتق دې، لغوى معنى ئي عافيت اوسلامتيا ده، دلته ترينه مراد هغه ذات دې چې د هلاکت نه او د هر قسم آفاتو،تغيراتو او عيوبونو نه سالم اومحفوظ وي،او دغه صرف الله ﷻ دې بل څوک نشي کيدي کماقي قوله تعالى كل شئ هالک الا وجهه لهذا اله هم صرف الله ﷻ دې، بل څوک نشته،«السلام» معنى «القدوس» ته قريب قريب ده څنی مفسرينو دواړو کښې دافرق بيان کړيدې چې «السلام» تعلق د زمانه استقبال سره دې،او«القدوس» تعلق زمانه ماضى اوحال سره دې.

﴿ٱلْمُؤْمِنُ﴾بل دليل دې په توحيد ،«المؤمن» معنى يا امن ورکونکي ده،يعنی دفزع اکبر نه امن صرف اوصرف هغه ورکونکې دې بل څوک نشته،دعذاب نه نجات اوامن ورکونکې

صرف هغه دي ، د بل يو "اله" يا د شفيع اختيار او وس نشته.يا «المؤمن» معنى تصديق كونكې ده ،يعنى دَ خپل الوهيت ، دَخپل انبياوؤ رسالت او دَ مؤمنانو دَايمان تصديق كونكې پخپلو آياتونو سره لکه شهد الله انه الااله الاهواو يا په معجزاتو سره.

﴿ٱلْمُهَيْمِنُ﴾بل دليل دې په توحيد ، المهين اسم فاعل صيغه ده دَ هَيمن نه، "هيمن" اصل كښې ايمن دې،دَ "امن" نه ماخوذ دې، همزه بيا "هاء" سره بدل كړې شوه ،نو هَيمن ترينه جوړ شو، المهيمن معنى ده دَ كائنات مكمل نظام نگران چې د هغه محكمې نگرانئ په وجه ټولو مخلوقاتو ته امن ميلاؤ دې،اونظام كښې تبديلي اوفساد نه پيدا كيږي،داسې بل څوک چرته كيدې شي چې دومره لوئ سلطنت اودومره ډيرو مخلوقاتو نگراني انتظام اوكړي.

﴿ٱلْعَزِيزُ﴾يعنى غالب دې،نه ترينه څوک ځان خلاصولي شي او نه ورسره څوک مقابله كولي شي.

﴿ٱلْجَبَّارُ﴾جبار يادَ "جبر" نه دې، اي الذي جبرالخلق على ما اراد يعنى هغه ذات چې خلق يې خپل قضا و قدر فيصلو باندې مجبور كړى دى،كه څوک ډير كوشش اوكړي، خو د هغې نه نشي وتلې،ياجبار دَ "جبيرة" نه دې،پمعنى دَمصلح اوجوړونكى سره.يعنى كارساز ذات دې.

﴿ٱلْمُتَكَبِّرُ﴾.ډير لوئ اوبرتر ذات چې دَهغه كبريائى اوبادشائى هم څه انتها نشته ، او دَهغه صفات هم دَ كمال دي چې دهغې كمال څه انتها نشته . مخلوقاتو سره يې څه مشابهت او مماثلت نشته. ﴿سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾دي صفاتو كښې هغه سره څوک شريک نشته،اونه يې بادشاهت دَپاره څوک مشير شته نه معاون.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هُوَ | ٱللَّهُ | ٱلْخَٰلِقُ | ٱلْبَارِئُ | ٱلْمُصَوِّرُ | لَهُ |
| خاص هغه الله دې،پيدا كونكې دې،راويستونكې دې (هر شي لره دَ عدم نه وجود ته) صورت وركونكې دې ، هغه لره | | | | | |
| ٱلْأَسْمَآءُ | ٱلْحُسْنَىٰ | يُسَبِّحُ | لَهُۥ مَا | فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ | وَٱلْأَرْضِ |
| نومونه دي ښائسته،پاكى بيانوى هغه لره هغه څه چه په اسمانونوكښې دى اوزمكه كښې دى، | | | | | |

**وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢٤﴾**

اوهغه غالب دي، حکمتونو والا دي.

﴿ هُوَ ٱللَّهُ ٱلْخَـٰلِقُ ﴾ دا په **توحيد باندې بل دليل** دې ،دیکښې د پیدائش درې (۳) مراحلو بیان دې، بلاتشبیه د دې مثال داسې دې لکه چې یو انسان څه جوړه وی نو اول دهغه شی د پاره یو سوچ او تصور اوکړی، بیاورله مواد راپیدا کړی، بیاهغه مواد له ترتیب ورکړی او دخپل سوچ او نقشی مطابق یې مکمل کړی. نو الله ﷻ دخپل حکمت موافق اول دیوڅیز منصوبه جوړه کړی، او اندازه اولګوی، دَ دې ذکر په «الخالق» کښې اوشو ،بیاورله وجود ورکړی، دې ذکر په «البارئ» کښې اوشو ،او بیا ورله دخپل تقدیر اوارادې موافق صورت ورکړی. نو دې ذکر په «المصور» کښې اوشو. خلاصه د دلیل داشوه چې صرف الله ﷻ دکائناتو خالق او مقدر دې ، وجود هم هغه ورکړې اونقشه یې هم هغه تیاره کړې ده ، نو اله هم صرف هغه دې.

«الخالق» خالق دوه معنو کښې استعمالیږی: (۱) **الایجاد**: یعنی عدم نه یو شی وجود ته راوستل، خو چې دهغې مثل مخکښې موجود نه وی، (۲) **تقدیر**: یعنی یوشي وجود ته راوستلو نه مخکښې دهغې مکمل منصوبه بندی کول، او هغې له نظم وضبط جوړه ول، دلته دادویمه معنی مراد ده

﴿ٱلْبَارِئُ ﴾ الباریٔ وجود ورکونکې، ﴿ٱلْمُصَوِّرُ ﴾ دخپل ارادې اوتقدیر مطابق صورت ورکونکې.

﴿لَهُ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ ﴾ یعنی دَدې نه علاوه دَالله ﷻ دپاره نورهم ښایسته ښائسته نومونه دی چه په ښائسته ښائسته معانیؤباندې دلالت کوی

﴿يُسَبِّحُ لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ **دَ دعوی دَ سورة اعاده ده** چه په ابتداء کښې مذکوره وه. د سورت شروع کښې «مبح» ماضی صیغه استعمال شوی ده، اودلته مضارع، دیکښې اشاره ده تجدید او استمرار ته چې داتسبیح دَ ازل نه شروع ده او ترابده به جاری وی.

دَسورة حشر دَدی آخری آیاتونو ډیر فضائل په روایاتو کښې راغلی دی، په یو روایت کښې دی چه حضور ﷺ فرمائی چه څوک په وخت دَصبا کښې "اعوذبالله السّمیع العلیم من الشّیطان الرجیم" دری (۳) ځلی اووائی اوبیادا آخری دری آیاتونه اُولولی نو الله ﷻ اویا (۷۰) زره ملائک مقرري

کړی چه دَده لپاره ترمابنامه پوری بخنه غواړی،اوپه بعضِ روایاتوکښې دی چه دَده حفاظت کوی ترمابنامه پوری.اوکه دې مړ شو په دغه ورځ کښې نو شهید مړ شو، او څوک ئې چه مابنام او وائی نوترسهاره پوری ورته دعااواستغفارکوی.په یوروایت کښې دی چه دَاللهﷻ اسمِ اعظم په آخردَسورة حشرکښې دې.

| ركوعاتها (۲) | سورة الممتحنه مدنية | آياتها (۱۳) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۶۰) وحسب النزول (۹۱)**

نزلت بعدالاحزاب وقبل النساء

**ربط** : ماقبل سورتونوکښې منافقانوته زجرونه وو،دی سورة کښې هغه مخلص مؤمنانو باندی زجردي چه په باره دَجهاد کښې ورنه کوتاهی شوې وه.

**خلاصه**:په ابتداء اوانتهاء کښې زجردې مؤمنانوته،په تعلق ساتلودکفاروسره،چه دکفارو سره تعلق مه ساتئ،بلکه دَابراهیم علیه السلام متبع شئ،اوپه درمیان کښې یوقانون برائ مؤمنین اوبل قانون برائ نبی کریم ﷺ.

| |
| --- |
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ |
| اې ایمان والؤمه نیسئ تاسودشمن ځمااودشمن خپل دوستان ، وړاندې کوئ تاسو |
| اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ |
| هغوئ ته پیغام دَ دوستئ ،اوحال داچه کفرکړیدې هغوئ په هغه چه راغلې دې تاسوته دَحق(دین)نه |
| يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ |
| اوباسی دوئ رسول ﷺ اوتاسوهم(دمکی نه)، په وجه د دې چه ایمان راوړیدې تاسوپه الله جل جلاله چه رب دې ستاسو، |
| اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِيْ سَبِيْلِيْ وَابْتِغَآءَ مَرْضَاتِيْ ۖ |
| کچرته تاسو راوتلی یئ دَپاره دَجهاد په لاره ځماکښې اولپاره دَغوښتلودَرضاځما، |
| تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ ۖ وَاَنَا اَعْلَمُ بِمَآ اَخْفَيْتُمْ |
| په پټه لیږئ تاسوپیغامونه هغوئ ته دَدوستئ ،حال داچه زه عالم یم په هغه چه پټوئ ئې تاسو |

وَمَآ اَعۡلَنۡتُمۡ ؕ وَمَنۡ یَّفۡعَلۡهُ مِنۡكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِیۡلِ ①

اوپه هغه چه ښکاره کوئ ئې.اوهرڅاچه اوکړوداکاردَتاسونه،پس يقيناًده خطا کړه سمه لاره

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ﴾دازجردي مؤمنانوته د كفارو سره همدردئ اظهار او دوستئ باندې، دَ دی آياتونوشان نزول دادې چه كله حضورﷺدفتح مكی اراده اوكړه او صحابه كرامو﷢ته ئې په خفيه طوردَتيارئ حكم اوكړو.حضرت حاطب ابن ابی بلتعه ﷛يومهاجربدری صحابی وۀ،اصلاًدَيمن وۀ،قريشوسره ئې هيڅ خپلولی نه وه،ليكن بال بچ ئې په مكی كښ وۀ،ده سوچ اوكړوچه ځه به قريش مكه ۆته دَحضورﷺدَتيارئ اطلاع اوكړم، نو دَ دی احسان په بدله كښ به هغوئ ځمادَبال بچ خيال اوساتی.اودائی يقين وۆچه حضور ﷺ ته به اللهﷻفتحه وركوی،مسلمانانوته يااسلام ته پدی رازښكاره كيدوسره هيڅ نقصان نه رسی.چنانچه هغه دَدی تيارئ اطلاع په يوخط كښ اوليكله،يوه ښځه چه ظعينه نوم ئې وۀ،په بل روايت كښ دی چه امِّ ساره نوم ئې وۀ،هغی ته ئې حواله كړوچه داقريشوته اورسوه،په خط كښ ليكلی وۀ:انَّ رسولَ اللهﷺتوجّه اليكم بجيشٍ كاللّيل يسير كالسيرِ،واقسمُ باللهِ لوسارَ اليكم وَحدهُ لنصرهُ اللهُ عليكم فانه منجزٌله ماوعدهُ(روح)

دَدی اطلاع په ذريعی دَوحی حضورﷺته اوشوه،نوحضورﷺ،حضرت علی﷛اوحضرت مقداد﷛اوحضرت زبير﷛ته اوفرمائيل چه لاړشئ،روضهٔ خاخ مقام كښ به يوه ښځه وی چه مكی ته به روانه وی،هغی سره به يوخط وی هغه ورنه راوړئ.داحضرات حسب الحكم په آسونوباندی سواره شول،عين مقام كښ ئې هغه ښځه اونيوله اوورته ئې اووئيل چه تاسره كوم خط دې هغه راكړه هغی انكاراوكړوچه ماسره خط نشته،دوئ ورنه تالاشی واخسته اوئې نه مندلو.خويقين ئې وۆچه خط خامخاورسره دې،حضرت علی﷛ورته اووئيل خط راكړه ورنه "لنلقيّن الثياب"كپړی به درنه اوباسو،نوبيا هغی دَ خپلو كمسو نه خط را اوباسلو، دی حضراتو خط حضورﷺته راوړلو، دَحاطب﷛نوم وۆپكښ حضورﷺرا اوښتلو، تپوس ئې ورنه اوكړوچه تاولې داكاركړيدې،حاطب﷛ ورته عرض اوكړوچه يارسول اللهﷺما دا كار دَ كفر او ارتداد په بناء نه دې كړې،بيائی ورته خپل غرض بيان كړو،حضورﷺئې تصديق اوكړو، هيڅ ناراضگی ئې ورنه اونكړه،دی واقعی په بناء داآياتونه نازل شول اومؤمنانوته تنبيه اوشوه چه دكافرانوسره داسی قسمه تعلقات مه ساتئ.قرطبی﷫ ليكلی دی چه كله دا

آيت نازل شونوحضرت حاطب ﷺ ډیرخوشحاله شوچه الله ﷻ خه په صفت دایمان سره یاد کړمه، اوډیری خوشحالئ نه بی هوشه شو.

﴿ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ ﴾ القاء لغت کښ دلاس نه یوشی په زمکهٔ راغورځولوته وائی، اومجازأیی اطلاق بغیر دسوچ اوتدبر نه کارکولو باندی هم کیږي، دلته دغه دویمه معنی مراد ده، یعنی تاسودعاقبت اوانجام نه بي پرواه دوئ سره دوستی کول غواړئ او "باء" په «بالمودة» کښ زائده ده یا "القاء" پمعنی "افضاء" دي، یعنی تاسو دهغوئ سره پټه دوسی کول غواړئ، او "باء" دپاره دتعدیه ده، اویا القاء دمودة کنایه ده دارسال نه او "باء" دسببیت لپاره ده، یعنی تاسوهغوئ ته په سبب دمودّة دحضور ﷺ خبرونه لیږئ،

﴿وَقَدْ كَفَرُوا﴾ دا **اول علت دي** دپاره د«لا تتخذوا عدوي »، یعني دوئ سره دوستي څکه مه کوئ چې دوئ کافران دي ، ﴿يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ﴾ **دويم علت دي** ، یعني دوستي څکه مه کوئ چې رسول ﷺ او تاسو ئي د خپل علاقې نه په اوباسلي یئ صرف د دی وجهې نه چې تاسو د الله ﷻ په وحدانیت ایمان راوړي دي، ﴿ أَن تُؤْمِنُوا بِٱللَّهِ ﴾ "ان" مصدریه دي، مخکښ ورنه لام تعلیلیه مقدردې، ای لایمانکم بالله.

﴿إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ﴾ **دريم علت دي** ، یعنی کچرته تاسو د الله ﷻ په لاره کښې واقعی جهاد کول غواړئ او دَ الله ﷻ رضامندی تلاش کول غواړئ نو بیادَ الله ﷻ دشمنانو سره تعلق دَ دوستئ مه ساتئ، څکه چې الله ﷻ رضامندي په دې کښې ده چې د هغه دشمنانو سره دوستي اونکړې شي ، دې تعلق لاتتخذواسره دې، اوغوره قول دا دې چې دا حال واقع دې دَ «لا تتخذوا» ضمیر مرفوع نه ، دې تقدیر باندې شرط دپاره جزا رااوباسلو ضرورت نه وي، او نه "إِنْ" دلته د شک معني ورکوي بلکه د تحقیق د پاره وي او خپل متعلق د پاره باعث جوړیږي ،یعني کله چې تاسو الله ﷻ په لار کښې جهاد کوئ او د هغه رضاغواړئ نو بیا ولې د هغه دشمنانو سره دوستي کوئ .﴿جِهَٰدًا﴾ مفعول له دي

﴿ تُسِرُّونَ إِلَيْهِم ﴾داهم سبب دَ عتاب دي، بدل دي دَ﴿تُلْقُونَ إِلَيْهِم ﴾نه، ﴿ وَأَنَا أَعْلَمُ ﴾اعلم

اسم تفضيل دي مفضل عليه منکم محذوف دي ﴿بِمَآ أَخْفَيْتُمْ﴾ يعنى پټ او ښکاره هر څه الله ﷻ ته برابر دي هغه نه څه نشئ پټولې، ﴿وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ﴾ ضمير منصوب مرجع اسرار ده يعنى که څوک داسى کار کوى اودايى سوچ وى چې څه به دا دَالله ﷻ نه پټ اوساتم نو دې بالکل په غلطه باندې دې، يا دَ ضمير منصوب مرجع اتخاذ دې،يعنى څوک چې هم د مسلمانانو نه کافر دوست جوړول غواړى نو دې په غلطه باندې دې

| |
|---|
| إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَآءً وَيَبْسُطُوٓا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ |
| که چرى وس اورسى دَدوئ په تاسونوشى به دوئ ستاسودشمنان اواوږده به کړى تاسوته لاسونه خپل |
| وَأَلْسِنَتَهُم بِالسُّوٓءِ وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ ۝ لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ |
| اوژبې خپلې په تکليف سره اوخوښوى به دوئ چه تاسوکافران شئ،هرګزبه نفع درونه رسوى تاسوته خپلولى ستاسو |
| وَلَآ أَوْلَادُكُمْ ۚ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ۚ وَاللّٰهُ |
| اونه اولادستاسو،په ورځ دَقيامت،جدائى به اوکړى الله ﷻ په مينځ ستاسوکښې،اوالله ﷻ |
| بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝ |
| په هغه څه چه تاسوئى کوئ ښه ليدونکې دې |

﴿إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَآءً﴾ **څلورم علت دې** ، يعنې دوئ سره دوستي مه کوئ ځکه چې تاسو هر څومره دَدوستئ اظهارورسره اوکړئ خوداکافران هيڅ کله ستاسوخيرخواه نشي کيدلې،کچرته په تاسوئى لاس برشى نوښکاره دشمنى به درسره کوى.﴿وَيَبْسُطُوٓا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ﴾لاسونه به اوږده کړى يعنى تاسوبه قتل کوى اووهى به مو،اوکفرته به مودوباره واپس کوى.

﴿لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ﴾ **پنځم علت دې** ،او رد دې دَ خيال دَ حاطب ﷛ خصوصًا، او دَ هر مسلمان عمومًا،چه دَ کومو اقاربو او اولادو په وجه تاسودَ کافرانوسره مودّت کوئ هغه

اولاد ، اقارب تاسوته دَقیامت په ورځ هیڅ نفع نشی درکولې،نو ددوئ په وجه خپل آخرت مه خرابوئ «ارحامكم» دلته ترینه یا حقیقی معنی مراد ده یعنی خپلولی اورشته داری،اویاترینه مجازی معنی مراد ده یعنی خپلوان اورشته داران.﴿ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾(۱)متعلق دې دَ﴿لَن تَنفَعَكُمْ ﴾ سره،یعنی دَقیامت په ورځ دوئ تاسوته هیڅ نفع نشی درکولې ځکه چه﴿ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ﴾ الله ﷻ به جدائی راولی ستاسو مینځ کښې په سبب دَهولناکئ.دَیوبل نه به منډئ وهئ، کقوله تعالی:یومَ یفرّ المرء من اخیه... (عبس:۳۴)

(۲) یا﴿ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾متعلق دې دَورستو﴿يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ﴾سره

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ

په تحقیق سره ستاسودپاره نمونه ښائسته ده. په ابراهیم علیه السلام کښې اوپه هغه کسانوکښې چه دَده سره وو،

إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ

کله چه ئې اووئیل قوم خپل ته چه بیشکه مونږبیزاره یوستاسونه اودَهغه څه نه چه عبادت ئې کوئ تاسو

مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ

بې دَالله ﷻ نه،انکارکړې دې مونږ د ستاسواوښکاره شویده په مینځ زمونږکښې اوستاسوکښې دشمنی

وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ إِلَّا قَوْلَ إِبْرَاهِيمَ

اوبغض همیشه دَپاره تردې چه تاسو ایمان راوړئ په الله ﷻ باندې یواځې مګر اقتدامکوئ دَیوې خبرې دَابراهیم علیه السلام

لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَا أَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللَّهِ

چه وئیلی وو پلارخپل ته چه خامخابه څه بخنه غوارم ستادپاره،اوڅه اختیار نه لرم د بچ کولو تالره دَعذاب دَالله ﷻ نه

مِن شَيْءٍ رَّبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ④

دَهیڅ څیز.اې ربه زمونږخاص په تاباندې اعتمادکړیدې مونږاوخاص تاته رجوع کړیده مونږاوخاص تاته درتلل دی،

| |
|---|
| رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ |
| اې ربه زمونږه مه ګرځوه مونږ تختهٔ مشق لپاره دکافرانواوبخنه اوکړه مونږته اې ربه زمونږ،بیشکه هم نه |
| الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْهِمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ |
| ډیرغالب ډیرحکیم یې،خامخاپه تحقیق سره ده ستاسودپاره په هغوئ کښ نمونه ښائسته،یعنی،دپاره دهغه کس |
| كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ ۭ وَمَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ |
| چه هغه امیدساتی دملاقات دالله اودورځې دآخرت،اوهغه څوک چې مخ اوګرځوی،نوبیشکه الله ﷻ |
| هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ۝ |
| هم هغه بې پرواه دې ډیرستائیلې شوېدې |

﴿ قَدْ كَانَتْ لَكُمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾دکافرانوسره دعدم موالاتودپاره دابراهیم علیه السلام مثال ذکر کیږي،چه دابراهیم علیه السلام متبع شئ چه دتوحیددپاره ئې دخپل مشرک قوم نه براءت اوکړو،د﴿وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ﴾نه مراددده مؤمنان متبعین دی لکه لوط علیه السلام یاورنه مرادانبیاءکرام دی، ﴿اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ﴾جمع دبرئ ده ﴿ كَفَرْنَا بِكُمْ ﴾ یعنی چې تاسو دالله ﷻ وحدانیت اوپه هغې باندې واضح آیاتونه انکار کوئ نو مونږ هم ستاسو څه پرواه نکوو،مونږ هم ستاسو اوستاسو معبودانونه انکار کوو،"کفر" دلته کنایه ده تحقیر شان نه،یعنی زمونږ په نیز تاسو اوستاسو معبودان هیڅ نه دي.

﴿وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَآءُ اَبَدًا ﴾یعنی ترڅوچه تاسودالله ﷻ په وحدانیت باندې ایمان نه وی راوړې ترهغې به زمونږستاسومینځ کښ بغض اوعداوة وی."عداوة"ښکاره دشمنی ته وائی اوبغض پټې دشمنی یعنی حسدته وائی،بعض وائی داواړه متقارب دی"بغضاء" شدة البغض ته وائی.

﴿ اِلَّا قَوْلَ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ ﴾استثناء ده د﴿ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾نه،یعنی دابراهیم علیه السلام په تولواقوالو،افعالوکښ ستاسودپاره اسوهٔ حسنه ده،تابع داری ئې کوئ

مګرپه دې قول کښې ئې تابعداري مه کوئ،يعنې دمشرکانونه برأت درباندې ضروري دې
ليکن دهغوئ لپاره استغفار درباندې حرام دې.استغفار دابراهيم عليه السلام لپاره دخپل مشرک پلار
په سورة مريم (۴۷) کښې تيرشويدې.

﴿وَمَآ أَمۡلِكُ لَكَ مِنَ ٱللَّهِ﴾ واؤ حاليه دې اوجمله په محل دنصب کښې ده،حال دې دفاعل
د﴿ لَأَسۡتَغۡفِرَنَّ لَكَ﴾نه يعنې استغفار خودرله کولې شم خونور وس مې نشته چې دالله تعالى
دعذاب نه دې هم بچ کړم. استثناء په «الا قول ابراهيم» کښې صرف داستغفارنه ده، وما املک
سره يې تعلق نشته ،ځکه داقول قابلِ اتباع دې.

﴿رَّبَّنَا عَلَيۡكَ تَوَكَّلۡنَا﴾داهم دعاءدابراهيم عليه السلام ده،ياپکښې قولوا مقدردې،امردې دې امت
ته، اوتنبيه ده په انابت الله تعالى ته.اوپه استعاذې دعذاب داهل کفرنه،اودخپل ګناهونونه
استغفار باندې.﴿ لَا تَجۡعَلۡنَا فِتۡنَةً ﴾اى موضع فتنة وعذاب،يعنې دکافرانودعذاب ځائ مونږه
مه ګرځوه،يا فتنة مصدر په معنى دمفتون دې،اى ربّنالاتجعلنامعذبين للذين كفروا(روح).

﴿لَقَدۡ كَانَ لَكُمۡ فِيهِمۡ﴾تکراردتاکيددپاره دې په اتباع کښې﴿ لِّمَن كَانَ﴾بدل دې د لكم نه

| |
|---|
| عَسَى ٱللَّهُ أَن يَجۡعَلَ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَ ٱلَّذِينَ عَادَيۡتُم مِّنۡهُم |
| نزدې ده چې الله تعالى به پيداکړي په مينځ ستاسوکښې اودهغه کسانوکښې چې دشمنى لرئ تاسودهغوئ سره |
| مَّوَدَّةٗۚ وَٱللَّهُ قَدِيرٞۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ۝ لَّا يَنۡهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ |
| دوستى،اوالله تعالى به قادردې اوالله تعالى مغفرت کونکې ديررحم والادې،نه منع کوى تاسوالله تعالى دهغه خلقونه |
| لَمۡ يُقَٰتِلُوكُمۡ فِي ٱلدِّينِ وَلَمۡ يُخۡرِجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمۡ |
| چې نه ئې دې کړې جنګ تاسوسره په دين کښې اونه ئې ويستلى يئ تاسودخپلوکورونونه |
| أَن تَبَرُّوهُمۡ وَتُقۡسِطُوٓاْ إِلَيۡهِمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُقۡسِطِينَ ۝٨ |
| ددينه چې نيکى اوکړئ ورسره اوچې انصاف اوکړئ ورسره،بيشکه الله تعالى خوښه وى انصاف کونکى. |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّمَا | يَنْهٰىكُمُ | اللّٰهُ | عَنِ | الَّذِيْنَ | قٰتَلُوْكُمْ | فِي | الدِّيْنِ | وَاَخْرَجُوْكُمْ |
| بیشکه منع کوی تاسو الله تعالیٰ د هغه خلقونه چه جنګ ئی کړې وی تاسوسره په دین کښ او اوباسلی ئی تاسو | | | | | | | | |
| مِّنْ | دِيَارِكُمْ | وَظٰهَرُوْا | عَلٰٓى | اِخْرَاجِكُمْ | اَنْ | تَوَلَّوْهُمْ | | |
| د کورونو د ستاسو نه | او مددئی کړیدې | په | اوباسلو ستاسو کښ، د دینه | چه | نیکی | ورسره وکړئ | | |
| وَمَنْ | يَّتَوَلَّهُمْ | فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الظّٰلِمُوْنَ | ۝ | | | |
| او هغه | څوک | چه | ملګرتیا کوی | د دوئ | نو دغه | خلق | هم | دوئ | ظالمان | دی |

﴿عَسَى اللّٰهُ أَن يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ﴾ دی کښ مؤمنانو ته د هغوئ مشرک اقاربو د ایمان راوړلو بشارة دې، او تسلی ده ورته چه د ایمان پوجه د کومو رشته دارانو سره، اباؤو او ابناؤو سره تعلقات ختم شوي دی عنقریب به الله تعالیٰ ستاسو او د هغوئ په مینځ کښ مودت پیدا کړی، یعنی هغوئ ته به د ایمان راوړلو توفیق ورکړی، نو بُغض به په مودت بدل شی، الله تعالیٰ د مسلمانانو سره دا وعده پوره کړه چه د فتح مکی په وخت کښ ډیرو اهل مکو ایمان راوړلو، لکه ابوسفیان، سُهیل بن عمرو، حارث بن هشام وغیره.

﴿لَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ﴾ دا د یو بل نوعیت بیان دې دکفارو سره د تعلقاتو، یعني دوستي او موالات خو هر قسم کافر سره منع دې خو احسان او همدردي کول د هر کافر سره منع نه دي بلکه هغې کښ تفصیل دې، چې کوم اهل حرب دي هغوئ سره منع دې او کوم چې ذمیان دي یا صلح کونکي او مستامنین دي نو هغوئ سره احسان کول منع نه دي،

« لا ینهاکم الله » کښې د ذمیانو او مصالحینو حکم بیان دې. ﴿أَن تَبَرُّوهُمْ﴾ بدل دې د ﴿الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ﴾ نه، بخاری وغیره کښ دی چه اسماء رضی الله عنها وائی چه د صلح حدیبیه نه ورستو ځما مور مدینی ته راغله، څه حاجت ئی وؤ، نو ما د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو چه آیا څه هغی ته د صله رحمئ په طور څه ورکولې شم؟ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو، نو نبی کریم علیه السلام ورته اوفرمائیل چه هاؤ ، خپلی مور سره صله رحمی اوکړه، په یو روایت کښ داسی دی چه د دی مور د دی خواته راغله او څه هدایائی ورته راوړی، دا مشرکه وه نو ځکه ورنه اسماء رضی الله عنها انکار اوکړو او کورته ئی نه داخله وله، تردی چه د عائشی رضی الله عنها په ذریعه ئی د حضور ﷺ نه د دی باره کښ تپوس اوکړو، نو

نده ﷺ داآيت نازل کړو، نوحضورﷺ ورته امراوکړوچه هدایاورنه قبولی کړه اوکورته ئی بوځه، دی آيت نه فقهاؤداثابته کړيده چه دَغيرمسلم مصالح ته نفلی صدقات ورکول جائزدی
﴿إِنَّمَا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ﴾دينه مراد اهل حرب غير مصالحين دي، لکه عام مشرکين مکه ﴿أَن تَوَلَّوْهُمْ﴾بدل دي دَ﴿ٱلَّذِينَ﴾نه، ﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾حصرکښ مبالغه ده.او دوئ ظالمان ځکه دی چه دَدشمنی په ځائ ورسره دوستی اوکړه اوهم دادَظلم تعريف دی، يا ظلم کونکی دی پخپلوځانونوچه عذاب ته ئی ځان وړاندی کړو.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا جَآءَكُمُ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ مُهَٰجِرَٰتٍ فَٱمْتَحِنُوهُنَّ ۖ ٱللَّهُ

اې ايمان والو! کله چه راشی تاسوته مؤمنانی ښځی هجرت کونکی نوامتحان ئی واخلئ،اللهﷻ

أَعْلَمُ بِإِيمَٰنِهِنَّ ۖ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ

ښه عالم دی په ايمان دَهغوئ،پس کچرته پوهه شئ تاسوپه هغوئ چه مؤمنانی دی نومه واپس کوئ هغوئ

إِلَى ٱلْكُفَّارِ ۖ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ ۖ وَءَاتُوهُم

کافرانوته،ځکه چه ښدی دوئ حلالی دَهغوئ لپاره اونه هغوئ حلال دی دَدوئ لپاره،اوورکړئ کافرانوته

مَّآ أَنفَقُواْ ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَن تَنكِحُوهُنَّ إِذَآ

هغه مال چه لګولي ئی دی اونشته هيڅ ګناه په تاسودَی چه نکاح ورسره اوکړئ خوکله چه

ءَاتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ۚ وَلَا تُمْسِكُواْ بِعِصَمِ ٱلْكَوَافِرِ

ورکړئ ورته ښځوهجرت کونکوته مهرونه دَهغوئ اومه ساتئ تاسوتعلق نکاح دَکافروښځو،

وَسْـَٔلُواْ مَآ أَنفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُواْ مَآ أَنفَقُواْ ۚ ذَٰلِكُمْ

اوغواړئ هغه مال(مهر)چه لګولي دی تاسو،اوغواړی دی کافران هغه مال چه هغوئ لګولي دي،دا

حُكْمُ ٱللَّهِ ۖ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ۚ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾

حکم دَاللهﷻ دي،حکم کوی په مينځ ستاسوکښ،اواللهﷻ ډيرپوهه اوډيرحکمت والادي

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا جَآءَكُمُ ٱلْمُؤْمِنَـٰتُ﴾ دا اول قانون دې مؤمنانوته په باره دَ مؤمناتو مهاجراتو کښې، چه کله دَ کفارو خوانه تاسوته زنانه هجرت اوکړی اودَایمان دعوه کوی نو تاسو ئې امتحان واخلئ چه په دعوه کښې ریشتنې دی اوکه نه؟که ستاسو یقین اوشی چه په رشتیا مؤمنانی دی،نوبیائې کفاروته مه واپس کوئ،دَهغوئ دپاره اوس دوئ حلالې نه دی، دَ دې آیت شان نزول باره کښې مفسرین وائی چه دَصلح حدیبیه په شرطونو کښې یوداشرط هم وو چه کچرته دکافرانونه دَمسلمانانوخواته څوک لاړشی اواسلام راوړی نومسلمانان به ئې واپس کوی،اوکه دَمسلمانانونه څوک لاړشی نوکافران به ئې نه واپس کوی،امّ کلثوم بنت عقبه دَ مسلمانانو خواته راغله هجرت ئې اوکړو، نودَدې رونړه پدې پسې راغلل او دَ حضور ﷺ نه ئې مطالبه اوکړه چه داموږته راواپس کړه،نوداآیت نازل شو،حضور ﷺ ورته واپس نه کړه، دَ زیدبن حارثه رضی الله عنه سره ئې ورته نکاح اوکړه،بعضې وائی هجرت کونکې سبیعه بنت الحارث وه،بعضې وائی امیمه بنت بشروه،چه کومه یوه هم وی خودآیت مطلب دادې چه دَصلح حدیبیه شرط صرف دَسړوباره کښې دې،ښځوباره کښې نه دې.دا قانون په اووه دفعاتو او احکاماتو باندې مشتمل دې:

(۱)هجرت کونکې ښځو امتحان اخلئ چې په کوم نیت یې هجرت کړې دې،

(۲)کچرته دوئ مؤمناتې وې نوبیایې کفارو ته مه واپس کوئ ځکه دوئ هغوئ دَ پاره اوهغوئ دَدوئ دَپاره اوس حلال نه دی.

(۳) دې مهاجراتومهردَ دوئ کافرخاوندانوته حواله کړئ.

(۴) "دار" بدلیدو سره دوئ دَسابقه خاوندانونه آزادې شوي دي، نو تاسو ورسره بشرط اداء مهر اوس نکاح کولې شئ.

(۵) دغه شان دکومو مسلمانانو کافرې ښځې په دارالحرب کښې پاتې دی هغوئ نکاح مسلمان خاوندانو سره ختم شو.

(۶) دغه شان خاوندان یوبل سره دَ مهر تبادله کولې شی.

(۷)کچرته کافرنه وې تیار، نو مسلمانان دې هم بیامهاجرې ښځې مهر کافر له نه ورکوی.

﴿فَٱمْتَحِنُوهُنَّ ۖ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَـٰنِهِنَّ﴾ دا اول حکم دې یعنی باطنی کیفیاتو باندې ئې الله تعالیٰ ستاسونه زیات عالم دې،صرف ظاهری حالات ئې معلوم کړئ چه دَځه مقصد دپاره ئې هجرت کړیدې، دَخاوندسره ئې ورانه خونه ده کړې؟یادَعشق دَوجې نه ئې خو هجرت نه دې

کړي، بعض روایاتو کښې راغلیدي چې حضرت عمرﷺ به ورته قسم ورکولوچه: ماخرجت رغبةً بارضٍ عن ارض،وبالله ماخرجت من بُغض زوج،وبالله ماخرجت التماس دنيا، وبالله ماخرجت الا لله ورسوله (روح).

﴿فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى ٱلْكُفَّارِ﴾دویم حکم دې، روایت دې چه کله به مهاجرې ښځې دغه قسم اوکړو،نوحضورﷺ به ئې کافرخاوندته دَهغې مهروغیره واپس ورکړو، او دا به ئې نه واپس کوله. ﴿لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ﴾تعلیل دې دَنهې مذکورې،چه اللهﷻ دَ مؤمنې نکاح دَ کافر سره حرامه کړې ده اودغه شان کافره ئې دَمسلمان دپاره حرامه کړیده.

﴿وَءَاتُوهُم مَّآ أَنفَقُوا﴾ دریم حکم دې او حکم امام المسلمین ته دې،چه دَهجرت کونکې ښځې کافر خاوند ته هغه مهروغیره واپس ورکړئ چه دې ښځې ته ئې ورکړیدې،چه دوه تاوانه ورباندې رانشي،تاوان دَښځې اومال،امام به دغه مهردَبیت المال نه ورکوي.

﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ﴾خلورم حکم دې، یعنې دَهجرت کونکې ښځې نکاح دَ کافر خاوند سره په سبب دَاختلاف ددارینوفسخ شواوس ورسره مسلمان نکاح کولې شي بغیر دَ تیرولو دَ عدت نه، کچرته حامله نه وي.اګرچه کافرخاوندورته طلاق نه وي ورکړې،البته شرط دا دې چه مهربه ورته ورکوي،کافرخاوندته چه کوم مهرواپس شویدې هغه قائمقام دَ دې دَ مهر نه دې.

﴿وَلَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ ٱلْكَوَافِرِ﴾پنځم حکم دې، «کوافر» جمع دَ «کافرةً» ده او «عصم» جمع دَ«عصمة» ده،دلته ورنه مراد نکاح دې اومقصددادې چه که دَیومومن ښځه کافره په مکه کښې پاتې شوې وي ، هجرت ئې نه وي کړې،نونکاح دَدوئ ختم شو،دَدې دَنزول نه قبل دَمسلمان اودکافرې ښځې نکاح یابالعکس جائزوه،دینه بعد ناجائز شوه،

﴿وَسْـَٔلُوا مَآ أَنفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُوا مَآ أَنفَقُوا﴾شپږم حکم دې، یعنې کچرته(نعوذبالله)یوه مسلمانه ښځه مرتده شي اوکافرانوته لاړه شي نومسلمانان دې دَمهرمطالبه ورنه اوکړي،اوکه یوه ښځه مسلمانه شي اوراشي نوکافران دې دَخپل مهرمطالبه اوکړي.

وَإِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ فَآتُوا

اوکچرته یاتی شی ستاسونه څه شي دَ ښځوستاسو کافرانوته نوچه ستاسونمبرپری راشی نوورکړئ

الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُم مِّثْلَ مَا أَنفَقُوا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ

هغه کسانو(مسلمانانو)ته چه تلی دی ښځی دَهغوئ په شانته دَهغی(مهر)چه دوئ لګولې دي.اوبیریږئ دَالله تعالیٰ نه

الَّذِي أَنتُم بِهِ مُؤْمِنُونَ ⑪

هغه الله چه تاسوپری ایمان راوړی دي.

﴿وَإِن فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ﴾ **اووم حکم دې**، روایت دې چه کله مذکوره حکم نازل شو نو مسلمانانو دَ مهاجراتو مهرونه واپس کړل،لیکن کافرانو انکار اوکړو نو دا آیت نازل شو﴿شَيْءٌ﴾نه مراد مهر دې ، او دا احتمال هم مفسرینو ذکر کړې دې چې دینه مراد زوجه وي ،او شیئ سره ئي ذکر دَ پاره دَ تحقیر دې ، یعني که ستاسو نه یوه ښځه کافرانو ته لاړه شي او کافران دَ هغې مهر تاسو ته واپس نه کړي ﴿فَعَاقَبْتُمْ﴾ دَ "عقبة" نه مأخوذ دې، نوبت او نمبر ته وائی،حاصل دا دې چه کچرته لاړی شی بعضی دَ ښځو ستاسو نه کفارو ته او هغوئ دَ هغی مهر مسلمان ته نه واپس کوی، نو بیا ستاسو نمبر راشی، یعنی دَ کافرښځه مسلمانه شی نو دَ هغی مهر دَ هغی کافرخاوند ته مه ورکوئ بلکه هغه مسلمان ته ئی ورکوئ چه دَهغه ښځه کافرۀ شویده،اومهرته ورته نه دې واپس شوې، ((مثل ما انفقوا)) یعنی بقدر مهرمال دې مسلمان له ورکړی او که بقایااضافی مال پاتی کیږی نو هغه دي بیا کافرخاوند ته حواله کړی(تفسیر عثمانی)

ځنې مفسرین فرمائي چې ((فعاقبتم))دَعقاب نه ماخوذ دې یعنی کله چې بیاتاسو دوئ سره جهاد اوکړئ او تاسوته مالِ غنیمت میلاؤشی نودَدینه دی دغه مسلمان ته دَهغه مهرورکړې شي، ابن عباس رضي الله عنه وائی چه حضور ﷺ به دَخمس نه مخکښ دغه شان مسلمان ته مال ورکولو (روح وغیره).

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ عَلٰٓى اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ |
| اې نبی ﷺ کله چه راشي تاته مؤمناني ښځې بيعت کوی تاسره پدی چه شريک به نه ګرځوی |
| بِاللّٰهِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِيْنَ وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَاْتِيْنَ |
| دَالله جل جلاله سره هيڅ شې، اونه به کوی غلا اونه به کوی زنااونه به قتله وی اولادخپل اونه به راتله کوی |
| بِبُهْتَانٍ يَّفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ وَلَا يَعْصِيْنَكَ |
| په بهتان چه تړی به هغه په مينځ دَلاسونوخپلواوخپوخپلوکښ،اونافرمانی به نه کوی ستا |
| فِيْ مَعْرُوْفٍ فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑫ |
| په نيک کارکښ نوبيعت ورسره اوکړه اوبخنه ورله غواړه دَالله جل جلاله نه.بيشکه الله جل جلاله غفور رحيم دې |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ﴾ دا دويم قانون دې حضور ﷺ ته په باره دَبيعت دَ زنانه وُکښ،مفسرين وائی چه کله حضور ﷺ مکه فتحه کړله نوزنانه به راتللې اسلام به ئی قبولو، بيعت به ئی کولو،نوداآيت نازل شو،چه کوم زنانه داشپږشرطونه قبول کړی نوته ورنه بيعت قبول کړه.

﴿وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ﴾ دينه مرادوأدالبنات يعنی ژوندئ لونړی خخول دی، يا ورنه مطلق اولاددې ځکه چه عربوبه دَفقرفاقی پوجه اولادقتلول،كقوله تعالى: ولا تقتلوا اولادكم خشية املاق.

﴿وَلَا يَاْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ يَّفْتَرِيْنَهٗ﴾ جمهور مفسرين دي مطلب دابيانوی چی زمانه جاهليت کښ چې به دکومې ښځی اولاد نه کيدو،نودَطلاق دَخوف نه به يی داسی اوکړو چی خيته پړسولو والا دوائ به يی اوڅکله اوخيته به يی خاوند ته ښکاره کړه چی خه حامله يم، اوبيا مدت حمل پوره کيدلو وخت کښ به يی په ځان درد راوستلو،اوچرته نه به يی بچی راوستلو اوخپو مينځ کښ به يی اوغورځولو اودابه يی اوئی چهٔ ځما بچې اوشو،مطلب داچی دَ پردی هلک نسبت خپل خاوندانو ته مه کوئ(التحرير والتنوير)

﴿بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ﴾ بين ايدهن اول حالت اعتبار سره دي، چې خاوند ته به پرسيدلي خيټه ظاهره کړه چې څه حامله يم حالانکه حامله به نه وه، چونکه خيټه دلاسونو مينځ کښې ده ، نو ځکه بين ايديهن ذکر شو، او ارجلهن آخر حالت اعتبار سره دي يعنې بچې به يې راوړو، او خپو مينځ کښې به يې اوغورځولو، اوبيا به ئې خاوند ته اوونيل چې داځما ستانه شوې دې ، يا ﴿بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ﴾ کنايه ده دذات نه، اي يفترينه من قبل انفسهن يعنې دځان نه يې جوړه وي.

﴿وَلَا يَعْصِينَكَ فِي مَعْرُوفٍ﴾ دې کښې ټول احکام دشريعت، اوامر، نواهي داخل دي، عائشه رضي الله عنها فرمائي چه کوموښځوبه دااقراراوکړونوحضور ﷺ به ورته اوفرمائيل: انطلقن فقد بايعتکن تاسو لاړې شئ ماستاسو بيعت قبول کړو، والله مامسّت يدُرسول الله ﷺ يدامراةٍ قطّ، يعنې نبي عليه السلام په وخت دبيعت کښې داجنبي زنانه دلاس سره لاس نه دې لګولې، په يوروايت کښې دي چه کله حضور ﷺ دزنانه ؤسره بيعت کولو، نوپه لاس باندې ئې کپړه وه، دې روايت نه مصافحه معلوميږي، ليکن مشهوره داده چه مصافحه به نه وه، ابو حيان رحمه الله وائي چه بيعت د زنانه ؤسره په دويمه ورځ دفتح مکې وؤ، ورستودفراغت دسړونه، حضور ﷺ په صفاغونډئ ناست وؤ، عمر رضي الله عنه لاندې وؤ، حضور ﷺ په امر سره به ئې دزنانه ؤ نه بيعت اخستلو او د حضور ﷺ خبرې به ئې هغوئ ته نقل کولې،

اسماء بنت يزيدوائي چه په وخت دبيعت کښې دابي سفيان رضي الله عنه بي بي هندبنت عتبه هم موجوده وه، ځان ئې په برقعه کښې پټ کړې وؤچه حضور ﷺ مې اونه پيژني، ځکه چه دې په أحد کښې دحضور ﷺ تره حمزه رضي الله عنه سره ډيرظلم کړې وؤ، نبي کريم عليه السلام په زنانه ؤداآيت لوستلو، کله ئې چه اوفرمائيل ﴿عَلَىٰ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا﴾ نودې اوونيل چه داخولازمي شرط دې، دسړونه شرک قبول نه دې نومونږبه څنګه قبول شي، کله ئې چه اوفرمائيل ﴿وَلَا يَسْرِقْنَ﴾ نو دې اوونيل چه ابو سفيان بخيل سړې دې، څه دهغه دمال نه په پټه لږمال اخلم، پته نشته چه هغه به ځمادپاره حلال وي اوکنه؟ ابوسفيان رضي الله عنه ورته اوونيل ځمامال ستادپاره ټول حلال دې، حضور ﷺ اوخاندل اوونې پيژندله چه ته هندبنت عتبه ئې، دې ورنه معافي اوغوښتله چه ماته

خپل جرم معاف کړه، کله چه ئې دااوفرمائيل ﴿وَلَا يَزْنِينَ﴾ نودی اووئيل، زنا خو دَ شريفو ښځو کار نه دې آيا حرائرې هم زناکوې؟ کله چه ئې دااوفرمائيل ﴿وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَـٰدَهُنَّ﴾ نودی اووئيل: مونږ خپل اولاد واړه غټ کړل، تاسو راله په بدرکښ قتل کړل، اشاره ئې خپل ځوی حنظله بن ابی سفيان ته وه چه بدرکښ قتل شوې وُ، عمر﷛ په دې خبره دومره اوخاندل چه سملاست، او حضور ﷺ تبسم اوکړو، کله ئې چه دااوفرمائيل ﴿وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَـٰنٍ﴾ دی اووئيل، بهتان امر قبيح دې، او الله ﷻ دَ ښه اخلاقو امرکوی، کله ئې چه دا اوفرمائيل ﴿وَلَا يَعْصِينَكَ فِى مَعْرُوفٍ﴾ نو دی اووئيل په الله ﷻ قسم چه ستاپه مجلس کښ مونږ ناستی يوزمونږ په زړونوکښ داخيال نشته چه مونږ به ستانافرمانی اوکړو.

| |
|---|
| يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَوَلَّوْا۟ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ قَدْ |
| اې ايمان والو! مکوئ دوستئ دَهغی قوم سره چه غضب کړيدې الله ﷻ په هغوئ، په تحقيق سره |
| يَئِسُوا۟ مِنَ ٱلْـَٔاخِرَةِ كَمَا يَئِسَ ٱلْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَـٰبِ ٱلْقُبُورِ ﴿١٣﴾ |
| نا اميده شوی دی دوئ دَآخرت ثواب نه لکه چه نااميده شويدی کافران دَخاوندانو دَقبرونونه |

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَوَلَّوْا۟ قَوْمًا﴾ په آخرکښ مؤمنانوته دَزجراعاده ده کوم چه په ابتداء کښ تيروؤ، قوم مغضوب نه مراديهوديان دی، لقوله تعالیٰ بل لعنهم الله وغضب عليه' اولی دا ده چه ټول کافران ورنه مرادشی، ﴿قَدْ يَئِسُوا۟ مِنَ ٱلْـَٔاخِرَةِ﴾ ای ثواب الاخرة

﴿كَمَا يَئِسَ ٱلْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَـٰبِ ٱلْقُبُورِ﴾ «من» يا بيانيه دې، «اصحاب القبور» دَ «الکفار» بيان دې اومطلب دادې چه لکه څرنګه اصحاب القبورکافران دَ آخرت دَثواب اونجات نه نااُميده شوي دی دغه شان دوئ هم دَ آخرة نه نااُميده دی، يا «من» ابتدائيه دې، او «الکفار» وضع دَظاهرده په موضع دَ ضمير، اومطلب دادې چه داکفاردآخرت نه داسی نااميده دی لکه چه دوئ دَاصحاب القبورُ دَدوباره ژوندی کيدلونه نااُميده شوي دی. (والله اعلم)

| ركوعاتها (۲) | سورة الصّف مدنية | آياتها (۱۴) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۶۱) وحسب النزول (۱۰۹)**

نزلت بعد التغابن وقبل الجمعة

**ربط**: ماقبل په شان دی سورة کښې هم مضمون دَجهادبيانيږي، او زجرونه دي هغې مسلمانانو ته چه جهاد کښې ورنه کوتاهي شوې وه.

**خلاصه**: ابتداء کښې بيان دَتوحيد دې، چه دَدې دَخاطره جهاد لازم دې، درې (۳) خطابونه دي مسلمانانو ته، په آخر کښې بشارت دَفتح دې.

| |
|---|
| سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ |
| پاکی بيانوی الله لره هغه څه چه په اسمانونوکښې دی اوهغه څه چه په زمکه کښې دی، اوالله تعالیٰ غالب |
| الْحَكِيْمُ ۝١ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ۝٢ كَبُرَ مَقْتًا |
| حکيم دې، اې ايمان والوْولي وايئ تاسو هغه چه نه ئې کوئ ډيره دَخفګان خبره ده |
| عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ۝٣ |
| په نيزدَالله داچه وايئ تاسوهغه څه چه نه ئې کوئ، |

﴿سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ﴾ دابيان دَتوحيد دې چه دَدې دَخاطره جهادکول لازم دی، باقی تفصيل ئې ماقبل کښې تيرشويدې.

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ﴾ دااول خطاب دې مؤمنانو ته، چې کومه خبره کوئ بيا هغه پوره کوئ، داسې خبره مه کوئ چې بيا صبا پوره کولې نشې، قول دې يو څه وی او عمل دې بل څه وی په دې الله تعالیٰ ډير خفه کيږی.

روایاتو کښې دي چې یوځوصحابه کرام ناست وؤ او دا مذاکره ئي کوله چه کچرته مونږته معلومه شی چه کوم عمل الله ﷻ ته زیات محبوب دې نو مونږ به پری عمل اوکړو، نو الله ﷻ دا سورة نازل کړو، چې ماته ناخوخ عمل دادي چې دعوی دې یوه وي اوعمل دي هغې مخالف وی اوخوخ عمل دادې چې څماپه لار کښې نظم وضبط سره قتال اوکړئ.پدیکښې مؤمنانو ته زجردې چې الله ﷻ ته محبوب عمل نظم وضبط سره قتال وجهاد کول دي،نوکله چې دا حکم نازل شو نو تاسو بیاولې دا وایئ« لم کتبت علینا القتال،لولا اخرتنا الی اجل قریب » او ولې خو په جنګ احد کښې بدانتظامی مظاهره اوکړه

﴿كَبُرَ مَقْتًا عِندَ ٱللَّهِ﴾ «کبر»دلته فعل ذم دې ،فاعل یې ضمیر مستتر مبهم دې چې ﴿مَقْتًا﴾ تمیز ئي تفسیر کوي، ﴿أَن تَقُولُوا﴾ مخصوص بالذم دې،دیکښې ناخوخ عمل بیان دې﴿مَقْتًا﴾خفګان اوناراضګئ ته وائي. -

| |
|---|
| إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم |
| بیشکه الله خوښه وی هغه خلق چه جنګ کوی په لاره دَالله کښې صف تړونکی ګویاچه دوئ |
| بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ ﴿٤﴾ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ لِمَ |
| عمارت دې کلک شوې په قلعی سره،اوکله چه اووئیل موسیٰ علیه السلام قوم خپل ته اې قومه څماولې |
| تُؤْذُونَنِي وَقَد تَّعْلَمُونَ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ فَلَمَّا زَاغُوا |
| تکلیف راکوئ ماته حال داچه تاسوپوهیږئ پدې چه بیشکه زه الله رالیږلی یم تاسوته،نوهرکله چه کاږه شول دوئ |
| أَزَاغَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿٥﴾ |
| نوکاږه کړل الله زړونه دَ دوئ،اوالله ﷻ نه کوی هدایت قوم فاسقانوته |

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلَّذِينَ﴾ دې آیت کښې بیان دې دَ محبوب عمل دَالله ﷻ،ورستو دَ مبغوض عمل عندالله نه ﴿صَفًّا﴾ یامفعول مطلق دې ای یصفون انفسهم صفا،یاحال دې دَضمیر

﴿يُقَـٰتِلُونَ﴾ نه، پمعنی دَ((صافّین))﴿كَأَنَّهُم بُنْيَـٰنٌ مَّرْصُوصٌ﴾ ((بنیان)) عمارت ته وائی ((مرصوص)) ؔرصَّ یو شي بل سره ملاولو اومضبوطولو ته وائی،یعنی عمارت چی هغی مختلف اجزاء ترتیب او مضبوطئ سره یوبل سره میلاو کړي شوي وی چې هغه یو وحدت نمونه پیش کوي.

((بنیان مرصوص)) سره تشبیه کښ دوه قوله دي: **یو دا** چه دَدوئ تشبیه دَبنیان مرصوص سره دَ یوبل سره جُخت جخت اودریدلوکښ ورکړې شوي ده،په دی شان چه دَدوئ په مینځ کښ خالی ځائ او فاصله،مخکښ والې ورستووالې نه وی، یعنی داسی کلک اوټینګ ولاړوی په میدان جهادکښ لکه دوئ دیوالونه وی په قلعی (سیسی) سره ټینګ کړې شوی اوجوړشوي وي. **بعض وائی** مراد ورنه اتحاد او اتفاق دي په نظریاتو او مقاصدو کښ(روح المعانی).

﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ يَـٰقَوْمِ﴾دانمونه بیانیږی چه موسیٰ علیه السلام بنی اسرائیلوته دَ جهاد حکم اوکړو لیکن هغوئ ورنه انکار اوکړو نو الله ﷻ وربانذی مهرِ جباریت اولګولو، نو تاسو دَ هغو په شان مه کیږئ

﴿لِمَ تُؤْذُونَنِى﴾ ایذاء نه مرادمخالفت دي دَحکم دَموسیٰ علیه السلام، موسیٰ علیه السلام ورته وئیلي وو: (( یاقومِ ادخلوا الارض المقدّسة التی....))(مائده:۲۱) دوئ ورته په جواب کښ اووئیل:(( یا موسیٰ انّ فیها قومًا جبّارین.....الی قوله تعالی فاذهب انتَ وربّک فقاتلا)) ﴿وَقَد تَّعْلَمُونَ﴾ جمله حالیه ده﴿فَلَمَّا زَاغُوٓا۟﴾یعنی چه کله ئی دَجهادکولونه اعراض او انکار اوکړو﴿أَزَاغَ ٱللَّهُ﴾یعنی الله ﷻ وربانذی لعنت اوکړو.

| |
|---|
| وَإِذْ قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ يَـٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُم |
| اوکله چه اووئیل عیسیٰ ابن مریم علیه السلام اې بنی اسرائیلوبیشکه ځه الله رالیږلې یم تاسوته |
| مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَىَّ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ وَمُبَشِّرًۢا بِرَسُولٍ |
| تصدیق کونکې یم دَهغی کتاب چه مخکښ ځمانه دې چه توراة دې اوزیرې ورکونکې یم په هغه رسول سره |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَأْتِي | مِنْ | بَعْدِي | اسْمُهُ | أَحْمَدُ | فَلَمَّا جَاءَهُم |
| چه راځي به | ورستو | څما | نه چه نوم دَهغه احمد ﷺ دي، | پس هركله چه راغې دوئ | ته هغه رسول |
| بِالْبَيِّنَاتِ | قَالُوا | هَٰذَا | سِحْرٌ | مُبِينٌ ⑥ | |
| په ښكاره | معجزوسره | نووئ | وئيل | داخوسحردې | ښكاره، |

﴿وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ دادويمه نمونه ده چه عيسىٰ عليه السلام بني اسرائيلوته دعوت وركړوليكن هغوئ ئې تكذيب اوكړو نوالله تعالىٰ دهدايت نه محرومه كړل.نوتاسواې مؤمنانو داسې مه كوئ.

﴿مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ﴾ دتورات دتصديق نه مطلب دادې چه دَدې تصديق كومه چه توراة دَالله تعالىٰ دَطرفه نازل دې،اوځه دَهغې په احكاماتو .اخباروباندې يقين ساتمه، او ځه چه كوم دعوت دركومه داهم په حقيقت كښ دَتورات دعوت دې،نولكه څرنګه چه تاسو په موسىٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام باندې ايمان راوړې وؤ،نوپه ماهم ايمان راوړئ،

ابن كثيراوبعضِ مفسرين وائي چه دَ﴿مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ﴾ مطلب دادې چه څما وجود دَ توراة تصديق كوی ځكه چه دكوموخبروپه تورات كښ خبروركړې شوې دې دَهغې مصداق ځه يم.

﴿وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ﴾ يعنې ځه تاسوته دآخرالنبيّن احمد ﷺ دَ راتلو بشارت دركومه، احمد دَ حضور ﷺ په نومونو كښ يو نوم دې، بخاري، مسلم وغيره كښ دَ جبير بن مطعم رضي الله عنه نه روايت دې چه نبي كريم عليه السلام فرمائي: انّ لي اسماءً، انا محمّد و انا احمدُ، و انا حاشرٌ الّذي يُحشرالنّاسُ على قدمي، و انا الماحي، يعنې څماڅونومونه دی،ځه محمّديمه،اوځه احمد يمه، او ځه حاشر يمه يعنې جمع كونكې چه الله تعالىٰ به په ماباندې ټول خلق راجمع كړي، اوځه ماحي يمه، يعنې محوه كونكې دكفراوشرک، او ځه عاقب يمه، يعنې ځه ورستو دَ ټولو پيغمبرانو نه راغلې يمه، ورستو رانه بل نبي نشته.

«احمد» يا اسم تفضيل دې،يعنې احمد الحامدين، دَ ټولو حمد كونكو نه زيات حمد كونكې دَ الله تعالىٰ،ياپمعنی دَ محمود دې، يعنې ستائيلې شوې، دَ محمّد معنی هم محمود

یعنی ستائیلې شوې ده،لیکن په محمّدکښې مبالغه اوتکرار دې،هغه هستی چه باربار ستائیلې شوې وی او تعریف ئې شوې وی(قرطبی).

دَ قرآن مجید دَ دې تصریح نه بعدچه عیسیٰ بنی اسرائیلوته دَحضورﷺدَراتلوبشارت ورکړې دې بل دلیل اوحجت ته هیڅ ضرورت نشته،لیکن صدآفسوس په عیسایانو چه څومره لرې دَ حق نه پراته دی،اوعذاب مخلدئی قبول کړیدې،اوپه حضوراخرالنبیّنﷺباندی ایمان نه راوړی،دوئ باندې الزام حجت دپاره دلته مونږ دَ دوئ دَ انجیلونو نه یوڅوحوالې ورکوؤچه په هغې کښې هم عیسیٰ علیہ السلام دَحضورﷺدَراتلوبشارت اوپه هغه باندی دَایمان راوړلوترغیب ورکړې دې، دَ انجیل یوحنّاپه څوارلسم(۱۴)باب،شپاړسمی(۱۲)جملی کښې دی: "اوځه خپل پلار نه (پلارنه عیسایان دَاللهﷻذات مرادکوی)"درخواست کومه،هغه به تاسوته بل فارقلیط عطاء کړی چه همیشه به تاسوسره وی.....الخ.

اوپه آیت(۲۲)کښې دی:"لیکن هغه فارقلیط(یعنی روح القدس)چه هغه به پلار(الله)ځماپه نوم رالیږی،هغه به تاسوته هرڅه درأوخائي،او کومی خبرې ماتاسوته وئیلې دی هغه به ټولې تاسو ته یادې کړی".

اوپه آیت(۲۹)کښې دی:"اواوس ماتاسوته دَهغه دَراتلونه مخکښې اووئیل چه کله هغه راشی نو تاسو وربانده ی ایمان راوړئ".

اوپه شپاړلسم(۱۲)باب آیت(۷)کښې دی:"لیکن ځه تاسوته رښتیاوایم چه ځماتلل ستاسو د پاره فائده مند دی، ځکه چه کچرته ځه لاړنه شم نو هغه (فارقلیط) به ستاسو خوا ته نه راځی، لیکن چه لاړشمه نوهغه به ستاسوخواته رااولیږمه".

دې بشارتونوکښې دَ "فارقلیط" لفظ راغلې دې،دې معنی احمدﷺده،عیسیٰ علیہ السلام عبرانی لغت کښې کلام کړې وؤ اوخالص دَ"احمد"نوم ئې اخستې وؤ،کله چه مترجمینوپه یونانی لغت کښې ترجمه اوکړه نودَ"احمد"ترجمه ئې"پیرکلوطوس"اوکړه،بیاچه کله دالفظ دَیونانی لغت نه عبرانی ته نقل شونو"فارقلیط"ورنه جوړ شو.

**عیسایان اعتراض کوی** چه یونانی نسخوکښې دا لفظ "پاراکلی طوس" دې،معنی ئې معین، مددگار اوکاساز وکیل ده،لهذا دَ مسلمانانو دَ دینه استدلال صحیح نه دې چه عیسیٰ علیہ السلام دَحضورﷺدَراتلوبشارت ورکړې دې.

**جواب**(۱): دې دواړو لفظونو (پیرکلوطوس، پاراکلي طوس) کښې صرف دَ رسم الخط تفاوت دې معنی کښې تفاوت نشته، او دا تفاوت دَ تلفظ په وجه او دَ عدم اعراب په وجه راغلې دې، ځکه چه په بعضِ لغاتو کښې دَ اعراب په ځائې حروف مفرده ذکر کيږي.
(۲) که داهم تسلیم کړې شي چه صرف رسم الخط تفاوت نه دې، نوبیاهم زمونږ مدعیٰ ثابته ده ځکه چه زمونږ دَ نبی کریم ﷺ نوم معین، وکیل هم دې
(۳) دَ عیسایانو مشرانو چه په تورات مقدس کښې لوئ لوئ تحریفات کړیدی بعیده نه ده چه په دې لفظ کښې ئې هم تحریف کړې وی.

**بل اعتراض عیسایان** داکوی چه دَ "فارقلیط" نه مراد حضور ﷺ نه دې بلکه "روح القدس" دې چه دَ عیسی علیه السلام نه ورستو په حوارینو نازل شوې وو دَ اختر په ورځ.

**جواب**(۱): دینه روح القدس نه شی مرادکیدلې ځکه چه په قول دَ عیسی علیه السلام کښې دی "چه هغه به همیشه تاسوسره وی" حالانکه روح القدس همیشه نه وو بلکه یوه ورځ صرف دَ لږ وخت لپاره راغلې وو، بله داچه روح القدس هغه خبری نه وی بیان کړې کومی چه عیسی علیه السلام بیان کړې وی، او په قول دَ عیسی علیه السلام کښې دی "هغه به تاسوته ټولې خبری درښائی اوچه ماتاسوته وئیلی دی هغه به ټولې تاسوته یاده وی".

(۲) بعضِ عیسایانو دَ ظهور محمدی نه قبل دَ دې دعوه کړې وه چه لفظ دَ "فارقلیط" مصداق مونږ یو، مثلاً په دویمه صدئ کښې دَ عیسایانو لوئ ریاضت گزار، عابد، او دَ ټولو نه لوئ متقی "مونټینس" دعووه کړې وه چی دَ "فارقلیط" وعده چه عیسی علیه السلام کړې وه هغه ځه یم (بہ حوالہ بائبل سے قرآن تک) دینه معلومیږي چه دَ "فارقلیط" دَ راتلو انتظار ابتدائی عیسوی صدئ کښې ډیر زیات وو، ورنه چه یو څیز دَ سره نه وی نو انتظار او دعوی ئې څنگه کیدې شی، دغه رنگه دَ حضور ﷺ دَ زمانې اهل کتاب هم دَ یو نبی دَ راتلو منتظر وو، چنانچه دَ حبشي بادشاه نجاشی ته چه کله دَ نبی علیه السلام خط مبارک اورسیدلونو اوئې وئیل: ځه الله ﷻ گواه گرځوم چه داهغه نبی دې چه اهل کتاب ئې انتظار کوی، دغه شان دَ قبطیانو سردار مقوقس ته هم چه کله دَ حضور ﷺ خط مبارک میلاؤشونو اقرار ئې اوکړو چه ځما په علم کښې وه چه یو نبی اخرالزمان باقي دې، چه هغه راتلونکې دې، دغه رنگه دَ سلمان فارسی رضی الله عنه تفصیلي واقعه هم ده په آخرکښې ورته یو راهب دَ نبی اکرم ﷺ دَ تشریف آورئ بشارت ورکړې وو، او هم په دې غرض دې مدینی ته راغلې وو (خلاصہ از تفسیر حقانی، بائبل سے قرآن تک).

﴿فَلَمَّا جَآءَهُم﴾ضمیر دَمفرد باعیسی علیه السلام ته راجع دي، یا احمد علیه السلام ته راجع دي(روح).

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | أَظْلَمُ | مِمَّنِ | افْتَرٰى | عَلَى | اللّٰهِ | الْكَذِبَ | وَهُوَ | يُدْعٰى |
| اوڅوک به وی غټ ظالم دَهغه چانه چه دَخانه تړی په الله جل جلاله باندی دروغ اوحال داچه دي رابللي کیږی | | | | | | | | |
| إِلَى | الْإِسْلَامِ ؕ وَاللّٰهُ | لَا | يَهْدِي | الْقَوْمَ | الظّٰلِمِيْنَ ۞ | يُرِيْدُوْنَ | لِيُطْفِئُوْا | |
| اسلام ته | اوالله جل جلاله نه | کوی | هدایت | قوم | ظالمانوته | غواړي | دویٔ چه مړه کړی | |
| نُوْرَ | اللّٰهِ | بِأَفْوَاهِهِمْ ؕ | وَاللّٰهُ | مُتِمُّ | نُوْرِهٖ | وَلَوْ | كَرِهَ | الْكٰفِرُوْنَ ۞ |
| رڼا | دَالله جل جلاله | په خُلوخپلوسره، | اوالله جل جلاله پوره | کونکې | دي رڼاخپلی لره | اګرکه | بد ګڼری | کافران |
| هُوَ | الَّذِيْٓ | أَرْسَلَ | رَسُوْلَهٗ | بِالْهُدٰى | وَدِيْنِ | الْحَقِّ | لِيُظْهِرَهٗ | |
| الله جل جلاله هغه ذات دي چه رالیږلي ئی دي رسول خپل په هدایت سره اوپه دین حق سره لپاره دَدی چه غالب ئی کړی | | | | | | | | |
| عَلَى | الدِّيْنِ | كُلِّهٖ | وَلَوْ | كَرِهَ | الْمُشْرِكُوْنَ ۞ | | | |
| په | تولو | دینونو | باندی، اګرکه | بد | ګڼری | مشرکان | | |

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى﴾زجر دي کافرانو ته ، چې دا نبي چې د ده بشارت عیسي علیه السلام ورکړې وو او واضحه معجزات ئې د الله طرف نه روارې دي ، دوئ ئې تکذیب کوي ، ساحر ورته وائي او د ده دین ختمولو کوششونه کوي.

﴿يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِئُوْا نُوْرَ اللّٰهِ﴾ نورالله نه مراد دین دَالله تعالی دي،یعنی داکافران کوشش کوی چه دین دَالله جل جلاله باطل کړی اوتکذیب ئی اوکړی په شبهاتو واهیؤ اوپه درغو پروپیګنډو سره، او داتمثیل دي دَدویٔ دَدی باطل کوشش،یعنی مثال ئی داسی دي لکه یوبی وقوفه سړي چه دَنوریاسپوږمۍ رڼاپه پوکلوسره مړه کوی

﴿هُوَ الَّذِيْٓ أَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى﴾دیکښ الله جل جلاله خپله دَحضور ﷺ صداقت اولویٔ شان بیانوی،دَدی دواړو آیاتونو تفسیردَسورة التوبه آیت(۳۲، ۳۳)کښ تیرشوي دي،دلته ئی دوباره ذکرکولوته حاجت نشته.

| |
|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ |
| اې ايمان والو! آيااوښايم تاسو ته داسې تجارة چه نجات به درکړي ناسودعذاب |
| اَلِيْمٍ ⑩ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِكُمْ |
| درناک نه. ايمان راوړئ په الله جل جلاله اوپه رسول دهغه اوجهاداوکړئ په لاره دالله جل جلاله کښ په مالونوخپلوسره |
| وَاَنْفُسِكُمْ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ⑪ يَغْفِرْ لَكُمْ |
| اوپه نفسونوخپلوسره،داډيرغوره دې تاسولره كچرته تاسو پوهيږئ.اوبه بخښي تاسوته |
| ذُنُوْبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ |
| گناهونه ستاسو اوداخل به کړي تاسوداسې جنتونوته چه بهيږي به لاندې دهغې نه نهرونه |
| وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ⑫ وَاُخْرٰى |
| او(داخل به مو کړي)خايونوپاکيزوته،په جنتونودهميشه اوسيدلوکښ،داکاميابي ده لويه.اودربه کړي بل نعمت |
| تُحِبُّوْنَهَا نَصْرٌ مِّنَ اللّٰهِ وَفَتْحٌ قَرِيْبٌ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ⑬ |
| چه خوښوئ تاسوهغه،مرددې دطرفه دالله جل جلاله اوفتحه ده نيزدې اوزيرې ورکړه مؤمنانوته |

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ﴾ دادويم خطاب دې مؤمنانوته اوترغيب دې قتال فی سبيل الله ته.﴿تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُجَاهِدُوْنَ﴾ مضارع په دواړوځايونوکښ پمعنی دامرده"ای آمنوا وجاهدوا"اومراددايمان راوړونه دوام اوثابته پاتې کيدل دې په ايمان﴿يَغْفِرْ لَكُمْ﴾ جواب امرپوجه مجزوم دې،ياجواب دشرط مقدردې،ای ان تفعلوه يغفرلكم(جلالين).

﴿وَاُخْرٰى تُحِبُّوْنَهَا﴾ ياپه موضع دنصب کښ دې ای ويُعطِكم نعمة اخرىٰ،يعنی يوبل انعام به درکړي،ياپه محل درفع کښ دې ای ولكم نعمةٌ اخرىٰ،يا﴿وَاُخْرٰى﴾ مبتداء دې او﴿نَصْرٌ مِّنَ

اَللّٰهِ ﴾نی خبردې،﴿وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ﴾نه مراد فتح دَخيبراو فتح مکه ده،یاروم وغیره مراددی چه دَخلافت راشده ﷺ په زمانی کښې فتح شوی وؤ.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُونُوٓا۟ أَنصَارَ ٱللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ |
| اې ايمان والو! شئ تاسومددګاران (دَدين) دَالله ﷻ لکه چه وئيلی وؤعيسیٰ ابن مريم |
| لِلْحَوَارِيِّـۧنَ مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ ۖ قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ |
| حوارينوته څوک دې مددګارځماپه دعوت الی الله کښې،اووئيل حوارينومونږ يومددګاران (دَدين) دَالله، |
| فَـَٔامَنَت طَّآئِفَةٌ مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَكَفَرَت طَّآئِفَةٌ ۖ فَأَيَّدْنَا ٱلَّذِينَ |
| پس ايمان راوړلويوی دلې دَبنی اسرائيلواوکفراوکړوبلی دلې،پس امداداوکړومونږ دَهغه خلقو |
| ءَامَنُوا۟ عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا۟ ظَٰهِرِينَ ﴿١٤﴾ |
| چه ايمان ئی راوړې وؤپه دشمنانودَهغوئ پس اوګرځيدل هغوئ غالب |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُونُوٓا۟ أَنصَارَ ٱللَّهِ﴾دادريم خطاب دې مؤمنانوته دی کښې هم ترغيب دَقتال دې﴿ أَنصَارَ ٱللَّهِ ﴾ای انصاردين الله،هرمؤمن ته حکم دې چه دَدين دَالله ﷻ دی مددګار شی، لکه چه څنګه حوارينودَعيسی علیه السلام نصرت کړې وؤپه هغه وخت کښې چه ده ورته اووئيل ﴿مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ای من ينصرنی و يکون عونی لتبليغ دعوة الله(صفوة التفاسير)علماء وائی چه دينه معلومه شوه چه دَبل نه استعانت اونصرت طلب کول په دين کارکښې سنت دَ انبياؤ دې.

﴿قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ﴾جمع دَحواريّ ده،مخلص او راز دار دوست ته وائی کقوله علیه السلام لکل نبی حواري وحواری زبير ﷺ،دادولس(۱۲)کسان وؤاول ايمان راوړونکی وؤ،کله چه دوئ اووئيل ﴿نَحْنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ ﴾نوعيسی علیه السلام بيادوئ دَشام ښارونوته دَدعوت تبليغ لپاره اوليږل. په

حواری کښې زیات تفصیل اووجه تسمیه دَسورة آل عمرآن آیت(۵۲)کښې تیرشویدې هلته ئې اوګورئ،

﴿فَآمَنَت طَّآئِفَةٌ مِّنۢ بَنِیٓ إِسْرَآءِیلَ﴾یعنی بنی اسرائیل دوه جماعتونو ته تقسیم شول، یو جماعت ایمان راؤړودَعیسیٰ علیه السلام تصدیق ئې اوکړو،اویوجماعت کفراوکړو اوتکذیب ئې اوکړو ﴿فَأَیَّدْنَا ٱلَّذِینَ ءَامَنُوا۟ عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا۟ ظَٰهِرِینَ﴾مشهوره داده چه په شریعت دَ عیسیٰ علیه السلام کښې قتال حکم نه وُونوپدی وجه دلته دَنصرت اوغلبې نه مرادپه اعتبار دَ حجت او برهان سره غلبه ده، بعضِ وائی چه رفع عیسیٰ علیه السلام نه ورستومؤمنانواوکافرانومینځ کښې قتال اوشونوالله تعالیٰ مؤمنانوته غلبه ورکړه،لیکن داقول خلاف مشهوردې، تهانوی رحمه الله فرمائی چه ممکنه ده چه ابتداءً جنګ دَ کافرانونه شوې وی اومؤمنانومدافعت کړې وی، نو دا په حکم دَقتال کښې نه دې داخل.

| ركوعاتها (۲) | سورة الجمعة مدنية | آياتها (۱۱) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۶۲) وحسب النزول (۱۱۰)**

نزلت بعد الصّف وقبل الفتح

**ربط**: (۱) ماقبل څلور(۴)سورتونه دَسورة حديدپه دويم مضمون يعني جهادفي سبيل الله مرتب وؤ، اوس آئنده څلور سورتونه،جمعه،منافقون،تغابن،طلاق په اول مضمون يعني انفاق فى سبيل الله مرتب دى.سورت الجمعه دَ انفاق دَپاره يو تمهيد دي،ځکه انفاق دَ مسلمانانو يوه اجتماعى مسئله ده،او جمعي ورځ هم دَمسلمانو اجتماع وى،نوپديكښ دَ انفاق ترغيب سره دا مقصد ښه طريقي سره حاصليږي.

(۲)مخکښې سورت کښې دَرسول الله ﷺ دَبعثت بشارت وؤ(( ياتي من بعد اسمه احمد )) ديکښ دَ بعثت مقاصدو ذکر دي.

(۳)سورت الصف کښې د،يهود دَحضرت موسى عليه السلام سره دَعناد ذکروؤ،چې باوجود دينه چې ښه ورته پته ده چې موسى عليه السلام دَالله ﷻ رسول دي خوبيا يې هم ايمان نه راوړو،((کماقال تعالى:وقدتعلمون اني رسول الله اليكم، فلما زاغوا)) دلته نبى كريم ﷺ سره دَعناد ذكر دي.

**خلاصه**: ابتداء کښې مسئله دَتوحيدده،

آيت نمبر ۲ نه تر ۴ پورې،دې امت فضيلت بيان دي.

آيت نمبر ۵ کښې دَ يهودو اولې دعوې رد دي.

آيت نمبر ۷-۸ پورې دَيهود دويمې دعوې رد دي.

آيت ۹، ۱۰ کښې دَيهودو دريمې دعوې رد دي.

او آخر کښې مؤمناتو ته زجر دي.

| يُسَبِّحُ | لِلّٰهِ | مَا | فِي | السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي | الْاَرْضِ | الْمَلِكِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

پاکی بیانوی دَالله ﷻ هغه څیزونه چه په آسمانونکښ دی اوهغه څه چه په زمکه کښ دی،چه بادشاه دي،

| |
|---|
| الْقُدُّوْسِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ① هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْأُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا |
| پاک دې، غالبه دې، حکمتونو والا دې . الله جل جلاله هغه ذات دې چه ليږلې ئې دې په اميانو کښې رسول |
| مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ |
| دَدوئ جنس نه چه لولي په هغوئ آياتونه دَ الله او پاکوي دوئ «دَ قبائحو نه » او ښائي ورته کتاب اوسنت، |
| وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ② وَّاٰخَرِيْنَ |
| اوبيشکه وُو دوئ مخکښې«دَمبعوث کيدلو دَرسول نه» په گمراهئ ښکاره کښې «ليږلې ئې دې» نورو خلقوته |
| مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ③ ذٰلِكَ |
| دَدوئ نه، چه تراوسه پورې نه دي پيوست شوي دَدوئ سره، اوالله غالبه دې حکيم دې. دا «راليږل دَرسول» |
| فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ④ |
| فضل دَالله دې ورکوي ئې چاته ئې چه خوښه شي، اوالله جل جلاله خاوند دَفضل لوئ دې |

﴿ يُسَبِّحُ لِلّٰهِ ﴾ ديکښې مسئله توحيد بيان دې.

﴿هُوَ ٱلَّذِى بَعَثَ فِى ٱلْأُمِّيِّـۧنَ ﴾ دادَ **دې امت فضيلت بيان** دې، يعني نبی کريم ﷺ بعثت، دَ دې امت دومره لوئ فضيلت دې چې دابل چاته نه دې حاصل، دوئ اميان وو، هغه دَ خپل تعليم وتربيت اوتزکيه په برکته دوئ نه داسې خلق جوړ کړل چې دوئ دَ نورو دَپاره مقتديان اوگرځيدل، اوقيامته پورې راتلونکی انسانانوته ئې داسې هدايت پريخودلو چې څوک پرې هم عمل کوی، نوهغه به يو کامل مکمل انسان جوړيدلي شي.

﴿ٱلْأُمِّيِّـۧنَ ﴾نه مرادعرب دی څکه چه اکثروپدوئ کښې ليکل اولوستل نه شول کولې، په صحيحينو وغيره کښې دی "اِنّاامة اُمية لانکتب ولانحسب" نوامی منسوب دې ام يعنی مور ته، انسان چه دَ مور نه پيدا شي نوليکل اولوستل نه شی کولې، ﴿رَسُولاً مِّنْهُمْ﴾ واضح دليل دې چه حضور ﷺ بشردې، ﴿يَتْلُواْ عَلَيْهِمْ ءَايَـٰتِهِۦ ﴾ د **رسالت مقاصدو بيان دې**، دا **اول مقصد** دې، چې

الله ﷻ آيات او احکام به په خلقو لولی.«يتلوا» واحد صيغه ده دَجمع نه ده، ﴿وَيُزَكِّيهِمْ﴾ دويم مقصد دې يعنی غلط اوفاسد عقائد اعمال او اخلاقو نه خلق پاکول ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَٰبَ﴾ دريم مقصد دې، او «الكتب» نه مرادمعانی دَ کتاب الله دی ځکه چه دَالفاظو ذکر په «يتلوا» کښې راغلې دې، ﴿وَٱلْحِكْمَةَ﴾ دَ راجح قول په بناء دَدينه مراد سنت دَ رسول ﷺ دې.

تنبيه: دَدی آيات تفصيلی تفسير او منکرينو حديث باندې رد دَسورة البقرة آيت(۱۲۹) او آلِ عمران(۱۶۴) کښې دَوالدمحترم غفرالله له دَلاسه ليکلې شوې دې هلته دی اوکتلې شی.

﴿وَإِن كَانُوا۟﴾ "ان" مخففه عن المثقله دې ﴿مِن قَبْلُ لَفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ﴾ يعنی دَحضور ﷺ دَمبعوث کيدلونه قبل دوئ په شرک او دَجاهليت په ګنده رسمونو کښې مبتلاوؤ، نو بعثت دَنبی کريم عليه السلام په دوئ لوئ احسان دې.

﴿وَءَاخَرِينَ مِنْهُمْ﴾ «آخرين» جمع دَ "آخر" ده په معنی "غير" کښې استعماليږی، دلته ترينه مراد يا غير عرب يعنی عجم دی، اودې تائيد دَحضرت ابوهريره رضی الله عنه حديث نه هم کيږی چی مونږ نبی کريم ﷺ سره ناست وؤ چې دا سورت نازل شو، نبی ﷺ په مونږ دا اولوستلو، کله چی «وآخرين منهم لما يلحقو بهم» ته اورسيدو نو يو صحابی عرض اوکړو، چې يارسول الله ﷺ دا کوم خلق دی چی لا تراوسه پورې مونږ سره ميلاؤ شوی نه دی، نو نبی کريم ﷺ خپل لاس سلمان فارسی رضی الله عنه باندی کيخودلو او اوئې فرمائيل: چې قسم مې دې وی په هغه ذات چې هغه په قبضه کښې ځماځان دې کچرته ايمان ثريا ستوری سره هم وی نو دَده قوم به هغه حاصل کړی، نو ديکښې اشاره ده چې دينه مراد اهل عجم دی، برابره خبره ده که هغه وخت موجود وؤ او که روستو راغلی دې او يا راروان دی، البته موجودينو په حق کښې « لما يلحقوا » نه مراد "لحوق فی الاسلام" دې، يعنی تر اوسه ئې لا ايمان نه دې راوړې خو عنقريب چې ايمان به راوړی، او غير موجودينو حق کښې "لحوق" نه مراد متبادره معنی ده، يعنی لحوق زمانی دې.

يا «آخرين» نه مراد دلته مغائرت زمانی دې يعنی موجودينو نه علاوه چې څوک هم دی برابره خبره ده چې هغه عرب وی او که عجم تولوته نبی کريم ﷺ مبعوث شوي دې.

«آخرين» **يا حالت جري** كښې دې اوعطف دې په « الامين» اي بعث في الآخرين، يا «عليهم» ضمير مجرور باندې، اي: يتلو على الآخرين آيته ، **يا حالت نصبي** كښې دې، "واؤ" بمعنى "مع" دې ،او مفعول معه دې او دې تعلق « يتلو، يزكي، يعلم » درې وارو فعلو نوسره دې او د هغوئ پکښې تنازع ده، يعنى بعثت مقاصد صرف امیینو پورې خاص نه دی بلکه «آخرين» هم په دې کښې شامل دی،**او يا** « يعلمهم » ضمير منصوب باندې عطف دې يعنى د آخرينو دپاره هم معلم دې.

﴿مِنْهُمْ﴾ اي كائنين منهميعنى دوئ سره به يې تعلق وی، يا صرف ديني ،اويا دينى او نسبى دواړو اعتبار سره ،ضمير مجرور «الامين» ته راجع دې او ياجارمجرور«آخرين»سره متعلق کیږی، اي مغائرين لهم يعنى چې دَامیینو نه غير دی،«حدائق الروح والريحان»

﴿وهو العزيز الحكيم﴾دا بمنزله دليل دې ځکه چې کله دا اوئیلی شو« وآخرين منهم» نو ذهن کښې دا خبره راتله چې آخرينو ته به دَنبوت مقاصد څنګه رسی نو الله ﷻ اوفرمائيل چې ځه قادريم اوځمادَحکمت هم داتقاضا ده، لهذاقيامت پورې ماخپل قوت اوحکمت سره ده د دې تکوينى انتظام کړې دې.

﴿ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ﴾اشاره ده مذكور تولو صفاتو ته يعنى دَنبى كريم ﷺ بعثت تلاوت ، تعليم و تزکیه،او انقاذ من الضلالة داټول دَالله ﷻ په تاسو فضل عظيم دې، دې فضيلت کښې درسره بل څوک شريک نشته.

**فائده**: دې آيتونو کښې دَدې امت څوفضيلتونه بيان شول:

(۱)الله ﷻ پکښې خپل آخرى پيغمبر مبعوث اوفرمائيلو.

(۲)باوجود دَدينه چې دوئ اميان وؤ، جهالت کښې پراته وؤ،الله ﷻ دَنبى كريم ﷺ دَتعليم وتزکیه په برکته مقتديان اوګرځولو.

(۳)دَنبوت مقاصد تلاوت،تعليم تزكيه دَنبى كريم ﷺ نه بعد دوئ ته حواله دې،اوهغه کار چې دينى ذمه وارى وه اوس دَدوئ سره ده، دوئ به يې آخرينو ته رسوی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَثَلُ | الَّذِينَ | حُمِّلُوا | التَّوْرٰىةَ | ثُمَّ | لَمْ | يَحْمِلُوْهَا | كَمَثَلِ الْحِمَارِ |

مثال دَهغه خلقوچه مكلف (پابند) كړې شوى وؤدَعمل په تورات،بيائى اونكړوعمل په هغى.په شانته دَخره دى

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَحْمِلُ | اَسْفَارًا ۭ | بِئْسَ | مَثَلُ | الْقَوْمِ | الَّذِيْنَ | كَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ |

حه باركړى ئى وى غټ كتابونه،ډيربددې مثال دَهغه قوم چه تكذيب كوى په آيانونودالله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ | لَا | يَهْدِي | الْقَوْمَ | الظّٰلِمِيْنَ | ۝ |
| اوالله ﷻ | هدايت | نكوى | قوم | ظالمانوته | |

﴿مَثَلُ ٱلَّذِينَ حُمِّلُوا ٱلتَّوْرَىٰةَ﴾ ديكښ دَ **يهودو اولې دعوې رد دې**،چې دوئ به وې:مونږ ته په تاسو فضيلت حاصل دې،ځكه چې مونږ اهل كتاب يو اوتاسو اميان يئ ،الله ﷻ فرمائى چې دوئ كوم په خپل كتاب باندې عمل كړيدى؟ كچرته واقعى اهل كتاب وې نو خپل كتاب باندې دې عمل اوكړى چې هغې كښ دَنبى كريم ﷺ صفات ذكر دى اوپه هغه باندى ايمان راوړلو حكم دې،كتاب احكاماتوباندى عمل نه كولو باوجود اهل كتاب كيدل داسې دي لكه خرباندې چې لوئ لوئ كتابونه بازكړى، نو كتابونه بار كيدل څنګه هغه د پاره فضيلت خبره نه ده نو داسې د دوئ د پاره هم نه ده.

﴿حُمِّلُوا ٱلتَّوْرَىٰةَ﴾ اي كلفوا العمل بها، يعنى هغى باندى عمل كولو مكلف ګرځولى شوى وؤ، ﴿ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا﴾ اي لم يعملوا بها يعنى بيا پرى عمل اونكړو،((كمثل الحمار )) خره سره تشبيه وركولو دَهغوئ بې وقوفتيا اظهار اوتحقير مقصود دې.﴿يَحْمِلُ أَسْفَارًا﴾دَ سفر جمع ده، غټ كتاب ته وائى،يعنى لكه څرنګه چه په خرباندى دَغټو كتابونو بار پروت وى اوروان وى ماسوئ دَتكليف او سترتيانه ورته هيڅ فائده نه وركوى،دغه شان دايهوديان هم دى. ﴿الظٰلمين﴾ظالمان ورته په دې وجه اووئيلې شو،چې تورات كښ دوئ ته دَنبى كريم ﷺ اتباع او تصديق حكم شوې وو او دوئ د تصديق په ځائ تكذيب كوى.

| |
|---|
| قُلْ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ هَادُوْٓا إِنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَآءُ لِلّٰهِ |
| اووایه ای پیغمبره ای یهودیانو اکچرته گمان کوئ تاسوچه تاسودوستان یئ دَالله |
| مِنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٦﴾ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗ |
| په غیردنورو خلقونه نوتاسواوغواړئ مرګ کچرته یئ تاسوریښتنی وبه نه غواړی دوئ مرګ |
| أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيْهِمْ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿٧﴾ قُلْ |
| هیڅ کله پوجه دَهغه عملونوچه مخکښ لیږلی دی لاسونودَدوئ.اوالله ښه پوهه دې په ظالمانو.اووایه |
| إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَإِنَّهٗ مُلٰقِيْكُمْ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ |
| بیشکه چه هغه مرګ چه تختئ ورنه تاسونوبیشکه هغه راتلونکې دې تاسوته بیابه بوتلې شئ تاسو |
| إِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٨﴾ |
| هغه ذات طرف ته چه عالم دې په پټ اوښکاره.پس خبربه کړی تاسوپه هغه عملونوچه تاسو کول |

﴿قُلْ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ هَادُوْٓا إِنْ زَعَمْتُمْ﴾ دیکښ دَ یهودو دویمې دعوې رد دې،چې مونږ ته په تاسو باندې ځکه فضیلت حاصل دې چې مونږ دَ الله ﷻ اولیاء،ابناء او احباء یوؤ،اوجنت به صرف مونږ ته میلاویږی، نو الله ﷻ ورته اوفرمائیل چه کچرته تاسوپدی خپله خبرې کښ ریښتنی یئ نو مرګ اوغواړئ.

دَسورة بقری په تفسیرکښ تیرشویدی چه دَابن عباس رضی الله عنه نه مروی ده چې مراد دَ ﴿فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ﴾ نه مباهله ده او په دې آیت کښ دعوت دَمباهلی دې،ابن کثیر رحمه الله هم دامتعینه کړې ده چه مراد ترینه دُعاعلی وجه المباهلة ده،عام مفسرین داسې توجیه کوی چه کچرته تاسو ریښتنی یئ پخپله دعوه نومرګ اوغواړئ ځکه چه کوم څیزدَمحبوب دَحصول ذریعه اوسبب وی نودَهغی دَ ذریعې طلب ضروری وی،اګرکه داذریعه فی نفسه مکروه اوترخه وی،نوچه جنت تاسولره یقینًا دې،اوتاسو الله ﷻ ته ډیر محبوب یئ- اوجنت ته دَرسیدلو او الله ﷻ سره ملاقات ذریعه خو مرګ دې- نو دَ موت سوال اوکړئ.لیکن مونږ دا پیشن ګوئي کوؤ چه تاسو

دَ مرگ تمنا هيڅ کله نه کوئ، نومعلومه شوه چه تاسو کاذبان يئ.دَ دې مزيد تفسير پاره اوّل جلد صفحه (۲۰۸) آيت نمبر (۹۴) مطالعه اوکړئ.

﴿قُلْ إِنَّ ٱلْمَوْتَ ٱلَّذِى تَفِرُّونَ مِنْهُ﴾ ماقبل سره متعلق دې، چه دَ کوم مرګ د يرې نه تاسو دَ مباهلې نه تختئ هغې نه خلاصيدل بياهم نشته، کقوله تعالى: اين ماتکونوا يدرکم الموت و لوکنتم ... (النساء:78) ﴿فَإِنَّهُۥ مُلَٰقِيكُمْ﴾ اسم موصول متضمن دې معنى دَ شرط لره نوځکه فاء داخله شوه،.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا نُودِىَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ فَٱسْعَوْا۟ |
| اې ايمان والو! کله چه اوازاوکړې شي اذان لپاره دَمونځ په ورځ دَجمعې نواهتمام سره ځئ |
| إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ وَذَرُوا۟ ٱلْبَيْعَ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩﴾ |
| ذکر دَالله جل جلاله ته اوپريږدئ بيع، دا ډيرغوره دې تاسولره کچرته تاسو پوهيږئ، |
| فَإِذَا قُضِيَتِ ٱلصَّلَوٰةُ فَٱنتَشِرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَٱبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ |
| پس کله چه اداکړې شي مونځ نوخواره شئ په زمکه کښ اوطلب کړئ دَفضل دَالله نه رزق |
| وَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٠﴾ |
| اوذکرکوئ دَالله جل جلاله ډير لپاره دَدې چه تاسوکامياب شئ، |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا نُودِىَ﴾ ديکښ دَ يهودو دريمې دعوې رد دې، چې دوئ به يوم السبت باندې فخرکولو، اودَ هغې په ذريعه ئې خپل فضيلت ظاهرولو، نو الله جل جلاله دې آيتونو کښ مسلمانانو ته دَجمعې مونځ ترغيب ذکر کوى، ځکه چې دايوم السبت په مقابله کښ مسلمانانو ته ورکړې شوى ده اودهغې نه غوره ورځ ده.

﴿نُودِىَ لِلصَّلَوٰةِ﴾ دينه مراد اذان ثانى دې چه په وخت دَ قعود امام په منبر باندې کيږى، ځکه اذان اول دَ نزول قرآن په وخت کښ نه وؤ، دَحضور ﷺ په وخت کښ به يو اذان کيدلو، دَ ابوبکر رضي الله عنه اودَحضرت عمر رضي الله عنه هم دغه معمول وؤ، ليکن چه کله دَعثمان رضي الله عنه خلافت راغې او

خلق زيات شول، كورونه دَ مسجدنبوی ﷺ نه لری شول، نوعثمان ؓ امر اوکړو دَاول اذان، چه دَ مسجدنبوی نه بهردَ زوراء پہ مقام کښې به کیدلو، خلقوبه دا اذان واوریدلو نوجمات ته به راغلل ، بیابه دویم اذان اوشو، اذانِ اول هم مسنون دې دَ وجه دَ قول دَحضور ﷺ نه عليكم بسنّتي وسنة الخلفاء الراشدين من بعدي دغه رنګه صحابه کرامو کښې هیڅ چاهم په اول اذان باندې اعتراض اونکړو، په دې وجه احنافورحمهم الله تعالى په نیز دَ بیع وغیره په حرمت کښې اذانِ اول حکم په مثال دَثلنی اذان دې، یعنی دَاذان اول نه ورستوبیع وغیره مشاغل ممنوع اوګرځی، ځکه چه دَعلت په اشتراک سره اشتراک په حکم کښې هم راځی، البته آذان قدیم (اذان ثانی)کښې داحکم منصوص او قطعی دې او اول اذان کښې داحکم مجتهد فیه او ظني دې (عثمانی).

﴿مِن يَوۡمِ ٱلۡجُمُعَةِ﴾ من پمعنی دَ في دې ای في يوم الجمعة، کمافی قوله تعالی: «اروني ماذا خلقوامن الارضِ» ای في الارض (روح) یا من بیانیه دې دَ اذا بیان او تفسیر کوی (کشاف) جُمُعَة بضم الميم هم راغلې دې اوبالسکون هم راغلې دې، پمعنی دَمجموع سره، جمعې ورځی ته ځکه جمعه وائی چه خلق پکښې دَ لرې لرې نه دَجمعې مونځ لپاره راجمع کیږی، **بعضِ وائی** چه په دې ورځې آدم علیه السلام دَخپلی بی بی حواء سره په زمکه میلاؤشوې وؤ، ځکه ورته جمعه وائی. **بعضِ وائی** چه په دې ورځی خلقت دَآدم علیه السلام جمع شوې وو.

جاهلیت په زمانه کښې دیته یوم العروبه وئیلی کیدل، دَعروبه معنی رحمة ده (روح المعانی).

اودجمعه اطلاق ټولونه اول کعب بن لؤی(دحضور ﷺ جدامجد) کړې دې او یا پرې اسلام کښې شویدې، لکه بعضو روایاتو کښې راځی چه دَحضور ﷺ دحکم مطابق انصارو دَ هجرت نه قبل اجتماعی عبادت لپاره داورځ مقرره کړې وه، خالی ورځ دَیهودواوداتوار دَ نصاریٰ وُ د پاره متعینه وه، نومسلمانان سعدبن زراره ؓ خواته جمع شول، هغه ورته وعظ او نصیحت اوکړو بیا ئې ورته دوه رکعته مونځ اوکړو، نودَغې وخت نه دی ورځی ته جمعه اووئیل شول، لیکن دا ورباندې فرض نه وؤ، هجرت نه ورستواول کال باندې داآیت نازل شو او دَجمعې مونځ فرض شو، بعضِ وائی اصح داده چه په شپږم کال دَهجرت دَجمعې مونځ فرض شوي دې.

(روح المعانی)

ملائکه به په قیامت کښ دی ورځی ته یوم المزیدوائی ځکه چه په دې ورځ به الله ﷻ اهلِ جنت ته تجلی کوی. په احادیثو کښ دې ورځې ته سیدالایام او افضل الایّام وئیلې شوي دي، په دې ورځې کښ یو داسې وخت دې چه دَحرام سوال نه علاوه پکښ هره دعاقبولیږی، تعین دَ دغی ساعت نشته، الله ﷻ خفی کړیدې په شان دَاسم اعظم اولیلة القدر

﴿فَٱسْعَوْاْ﴾ مراددَسعی نه منډه وهل نه دی، ځکه چه په حدیث کښ دی اذا اُقیمت الصلاة فلاتأتوها و انتم تسعون، واتوها و انتم تمشون ، وعلیکم السکینة ، فما ادرکتم فصلوا وما فاتکم فاتمّوا، بلکه مرادورنه اهتمام سره اواول وخت کښ تلل مراد دې. دَ ﴿ذِكۡرِ ٱللَّهِ﴾ نه مرادخطبه او مونځ دواړه دی، ﴿وَذَرُواْ ٱلۡبَيۡعَ﴾ مراد دَبیع نه مطلق عقداومعاملات دی، که بیع وی که شراء وی او که اجاره وغیره وی، او امر دَ وجوب لپاره دې، نو دَ اذان نه ورستو دا هر څه حرام دی. صاحب دَ روح المعانی دَ عطاء نه نقل کړي دی چه مباح کار، کورته راتلل اوخط کتابت کول وغیره ټول حرام دی دَاذان دَجمعی نه ورستو. ﴿ذَٰلِكُمۡ﴾ ای السعی الی ذکرالله وترک البیع (روح).

﴿فَإِذَا قُضِيَتِ ٱلصَّلَوٰةُ فَٱنتَشِرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ﴾ امر دَ اباحت دپاره دې ﴿وَٱبۡتَغُواْ مِن فَضۡلِ ٱللَّهِ﴾ فضل الله نه مرادرزق اوربح ده، بعضِ سلفونه مروی ده چه کوم سړي دَجمعی مونځ کولو نه ورستو تجارت اوکړی نو الله ﷻ به هغی کښ اویا (۷۰) درجی برکت اچوی (ابن کثیر).

﴿وَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ كَثِيرٗا﴾ یعنی چه کله تاسوبیع شراء کوی نوبازارونه دَغفلت ځائ دي نوهلته ذکر ډیر کوئ، حدیث کښ دی چه څوک بازارته لاړشی اوهلته دادعااووائی: لااِلٰه الاّالله وحدهٗ لا شریک له، له الملکُ وله الحمدوهوعلی کلّ شئ قدیر، هغه ته لس لاکهه نیکیانی ورکولې کیږی لس (۱۰) لاکهه ګناهونه ئی معاف کیږی.

| |
|---|
| وَإِذَا رَأَوۡاْ تِجَٰرَةً أَوۡ لَهۡوًا ٱنفَضُّوٓاْ إِلَيۡهَا وَتَرَكُوكَ قَآئِمٗاۚ قُلۡ |
| کله چی اولیدلو دوئ تجارت او لهوه نو منډې ئي کړی هغی ته او پریخودې ئي ته ولاړ ، ته ورته اووایه |

| مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱﴾ |
| --- |
| هغه څه چه الله ﷻ سره دی غوره دی دلهوی نه اودتجارت نه،اوالله ﷻ ډیرغوره دي درزق ورکونکونه |

﴿وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا﴾ دا زجر دې بعضې مؤمنانو ته. بخاری،مسلم، وغیرهما کښ دَ جابر بن عبدالله ﷺنه مروی دی چه یوځل حضور ﷺدَجمعې په ورځ خطبه فرمایله چه مدینې ته تجارتی قافله راغله،صحابه کرام چه خبرشول نوورپسی لاړل صرف دولس(۱۲)کسان ورسره په مسجدکښ پاتې شول،نوالله ﷻ داآیت نازل کړو،په یوروایت کښ دی چه دولس سړی او وه(۷)ښځې پاتې شولې،نوحضور ﷺاوفرمائیل کچرته تاسو ټول تلی وئ نو دا ؐوادی ٔ به ټوله په تاسودَ اُورنه ډکه شوی وه.

«اذا» دلته دَماضی معنی ورکوی،استقبال دَپاره نه دې،(روح المعاني،التحرير والتنوير) دَ «لهوا» نه مراد، هغه دف وغیره دې چه دَقافلی راتلووخت کښ به وهلې کیدلو.« انفضوا الیها » ؐهاءٔ ضمیر « تجارة » او « لهوا» دواړو ته راجع دې، او عطف په « او» سره شوې دې، نو ځکه ورته ضمیر دَ مفرد راجع شو،او چونکه دې ؐانفضاضٔ او وتلو اصل سبب تجارت وؤ،لهو نه وه نو ځکه ضمیر د مؤنث راوړلې شو،او دیکښ اشاره ده دیته هم چې تجارت دَ وجهې نه خطبه پریخودل ګناه ده حالانکه تجارت یو مباح امر دې، نو لهو دَوجهی نه پریخودل خولاغټه ګناه ده.﴿وَتَرَكُوكَ قَآئِمًا﴾استدلال کړې شوي دې په دې سره په مشروعیة دَقیام په خطبه کښ،

﴿قُلْ مَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ﴾یعنی ثواب اونعمتونه دَجنت،﴿وَٱللَّهُ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ﴾نوپس الله ﷻطرف ته سعی اوکړئ اودَهغه نه رزق طلب کړئ.

| ركوعاتها (۲) | سورة المنافقون مدنية | آياتها (۱۱) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۶۳) وحسب النزول (۱۰۴)**

نزلت بعد الحج و قبل المجادلة

**ربط**: ماقبل سورة کښې دَانفاق حکم وؤچه دَجمعې خطبې ته حاضريږئ او انفاق فی سبيل الله مسائل آورئ، اوس دې سورة کښې هم دَانفاق حکم دې چه زمونږدَدرکړې شوی مال نه دَمرګ نه مخکښې مخکښې انفاق اوکړئ.

**خلاصه**: منافقانو ته زجرونه اودَهغوئ نه شکوی دی، چه دوئ وائی په مهاجرينو باندی مال مه خرچ کوئ، اودَهغوئ دَاحوال خبيثه ؤبيان دې، آخرکښې مقصودی مضمون يعنی دَانفاق في سبيل الله حکم دې (تمت).

**شانِ نزول**: روايت دې چه په سفردَغزوه بنی مصطلق کښې دَيومهاجر صحابیؓ اوانصاری صحابی په څه خبره په اوبوباندی جګړه اوشوه، نومهاجرصحابی په انصاری باندی ګزاراوکړو، نوانصاری صحابی خپلو انصاروته آوازاوکړو: يالَلأنصار، اې انصاروراشئ، مهاجر خپلومهاجرينوته اواز اوکړو: يالَلمهاجرين، قريبه وه چه دَانصارو اومهاجرينو مينځ کښې لويه جګړه شوې وې، حضورﷺ تشريف راوړو اواوئی فرمائيل: مَابال دعوىٰ الجاهلية، اوبيائی او فرمائيل: دعوها فانّها مُنتنةٌ، دا بدبوداره دعوه پريږدئ، دَصحابه ؤپه مينځ کښې روغه اوشوه، رئيس المنافقين عبدالله بن سلول چه خبرشونوئی وئيل: چه زمونږاودَمهاجرينومثال خو داسی ده لکه متل دې چه "سَمِّن کلبک يأکلک" خپل سپې غټ کړه چې تاوخری داتاسودَخان سره پخپله اوکړل، پخپلوکورونوکښې موورته ځائ ورکړو، خرڅې موورباندی اوکړې نواوس دوئ قوی شول اوتاسوضعيف شوئ، لهذاپدوئ خرڅې مکوئ چه چرته بل ځائ ته لاړشی، اودائی هم اووئيل ﴿لَئِن رَّجَعْنَآ إِلَى ٱلْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ ٱلْأَعَزُّ مِنْهَا ٱلْأَذَلَّ﴾ زيدبن ارقمؓ هم پدغه موقع باندې موجود وو، کله چې يې دغه خبره واؤريدله، نو حضورﷺ ته يی داخبره

اورسوله، حضرت عمر ﷺ اجازت طلب کړو یارسول الله! ماته اجازت راکړه چه دَدې منافق سر پریکړم ، لیکن نبی کریم ﷺ دې منع کړو ،چه خلق به وائی داپیغمبرخپل ملګری قتلوی، بیا حضور ﷺ عبدالله ابن سلول راوغوښتلو ،تپوس ئې ورنه اوکړوآیاتاداخبره کړیده؟ هغه ورته قسمونه اوکړل چه ماداسې څه خبره هم نه ده کړې، اوزید ﷺ کاذب دې،زید ﷺ چونکه پدغه وخت کښ کم عمره وو نوحاضرینو اووئیل چه کیدیشی زید ﷺ ته وهم شوې وی اوعبدالله به داخبره نه وی کړې،نوحضور ﷺ دَعبدالله بن سلول تصدیق اوکړو.اودَزید ﷺ خبره ئې اونه منله،زیدبن ارقم ﷺ فرمائی چه څه پدې سخت ملامته شوم،اودومره پریشانه شوم چه دومره بل څوک نه وؤ پریشانه،دَزید ﷺ یقین وؤچه الله ﷻ به خمادَتصدیق باره کښ خامخاوحی نازلوی حتّی چه پدغه سفرکښ داسورة نازل شو ،دَزید ﷺ تصدیق اوشواودَعبدالله بن سلول تکذیب اوشو ، بعضِ صحابه ؤ ابن سلول ته اووئیل چه ورشه معافی اوغواړه حضور ﷺ به درته معافی اوکړی او مغفرت به درله اوغواړي لیکن ده انکاراوکړو ،چه ورستوراروان دی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | جَآءَكَ | الْمُنٰفِقُوْنَ | قَالُوْا | نَشْهَدُ | إِنَّكَ | لَرَسُوْلُ اللّٰهِ | وَاللّٰهُ | يَعْلَمُ |
| کله چه | راشی تاته | منافقان | وائی دوئ | ګواهی کوؤ | مونږچه بیشکه | ته یقیناً چې دالله رسول ئې | اوالله ﷻ | پوهیږی |
| إِنَّكَ | لَرَسُوْلُهٗ ؕ | وَاللّٰهُ | يَشْهَدُ | إِنَّ | الْمُنٰفِقِيْنَ | لَكٰذِبُوْنَ ① | | |
| چه ته | خمخادَهغه رسول ئی | اوالله ﷻ | ګواهی ورکوی | چه بیشکه | منافقان | دروغژن دی | | |

﴿إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُنَـٰفِقُونَ ﴾دیکښ دَ منافقینو اول خباثت ذکر دې چې دوئ دروغو ګواهانئ ورکوی،او« المنافقون» نه مرادعبدالله بن أبي دې او دَ ده ملګری دي، « نشهد انک لرسول الله» مونږ تاواقعی دَالله ﷻ رسول ګڼړودَزړه نه داګواهی ورکوؤ. ﴿وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ ﴾ جمله معترضه ده راوړې شوې ده دَ پاره دفعِ توهم، چه سامع دا توهم اونکړی چه قول دَدوئ «انکَ لرسول الله» هم کذب دې.

﴿وَٱللَّهُ يَشۡهَدُ إِنَّ ٱلۡمُنَـٰفِقِينَ لَكَـٰذِبُونَ ﴾دامنافقینو دعوې رد دې تکذیب یاراجع دې شهادت دَدوئ ته،یعنی دوئی ته،یعنی دوئی دروغژن دی په شهادت کښ څکه شهادت دَزړه خبری ته وائی نو الله ﷻ فرمائی چه دوئ دروغ ژن دی،دادَدوئ ژبانی جمع خرچ دې ، زړه نه

دوئ ستاد رسالت منکرین دی.یاتکذیب په نسبت سره اعتقاد دَدوئ ته دې،یعنی دروغژن دی په مشهود به کښې دَخپل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِتَّخَذُوْٓا | اَيْمَانَهُمْ | جُنَّةً | فَصَدُّوْا | عَنْ | سَبِيْلِ | اللّٰهِ | اِنَّهُمْ | سَآءَ |
| نیولی دی دوئ | قسمونه خپل | ډال | پس منع | شول دوئ | دلاری | دَالله ﷻ | بیشکه دوئ | ډیربددی |
| مَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ ② | ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | اٰمَنُوْا | ثُمَّ | كَفَرُوْا | |
| هغه | عملونه چه دوئ | ئی کوی، | داپه وجه | دَدې چه بیشکه دوئ | ایمان راوړو | بیانی | کفراوکړو | |
| فَطُبِعَ | عَلٰى | قُلُوْبِهِمْ | فَهُمْ | لَا | يَفْقَهُوْنَ ③ | | | |
| نومُهروهلې شویدې | په | زړونودَدوئ | پس دوئ | نه | پوهیږی | | | |

﴿اتَّخَذُوٓا أَيْمَـٰنَهُمْ جُنَّةً﴾داد **منافقانو دویم خباثت** ذکرکیږی،چه دَروغوقسمونه ئی دَخپل ځان دَ بچ کولو لپاره ډهالونه جوړکړیدی،چی هغی په ذریعی سره دوئ یو طرف ته ځان مسلمانان ظاهری کړی اودَ مجاهدینونه پرې خپل جان ومال بچ کړی،اوبل طرف ته پری مسلمانانو ته نقصان رسوی،چی کوم خلق اسلام راوړل غواړی،یااسلام دَپاره جانی ومالی یا بل څه تعاون کول غواړی دوئ مختلف شکوک وشبهات اوحیلو حربوسره (هغوئ) په لار کښی رکاوټونه پیدا کوی،چونکه دوئ ځان مسلمانان اودین همدرد ظاهر وی نودې وجهی نه څنی خلق دَدوئ سازشونو شکار شی.

﴿فَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ فاء تفریعیه ده یعنی دروغو قسمونو خوړلودَوجهې نه دوئ چونکه ځان مؤمنان ظاهرکړی نو بیا دوئ ته ډیر ښه موقع میلاؤ شوی،او مختلفو طریقوسره خلق دَاسلام نه منع کول شروع کړی.﴿ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾نه مرادنفاق اودَدروغو قسمونه دی،

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ ثُمَّ كَفَرُوا۟ ﴾دې کښې دَدوئ خباثتونو وجه اوسبب بیانیږی،اشاره دَدوئ خباثتونو ته ده،یعنی وجه ئې داده چې دوئ په ژبه ایمان راوړو اوپه زړه کښې ترینه منکر وؤ، نو الله ﷻ ورله په زړه باندې مهرجباریت اولګولو،نو اوس دوئ هیڅ خیرنه پیژنی،خباثت دَ دوئ فطرت اوګرځیدلو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ وَإِن يَقُولُوا تَسْمَعْ | | | | | | |
| اوكله چه ته اووينې دوئ نوپه تعجب كښې به واچوي تا جثې ددوئ. اوكه خبرې كوي دوئ نوغوږبه كيدې ته | | | | | | |
| لِقَوْلِهِمْ كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ۖ يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ | | | | | | |
| خبرودَدوئ ته.گويا كه دوئ لرگي دي تكيه كړې شوې ديوال ته.گمان كوي دوئ دهراواز چه واقع دې په مونږباندې. | | | | | | |
| هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ ۚ قَاتَلَهُمُ اللَّهُ ۖ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ④ | | | | | | |
| هم دوئ دشمنان دي،نوځان ورنه اوساته، هلاک دې كړي دوئ الله . كوم طرف ته اړه ولې كيږي. | | | | | | |

﴿وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ ﴾دا ئي **بل قباحت ذكر** كيږي،چې ظاهري صورت ته اوگورې نوډير خائسته ، خبرې ئي ډيرې فصيحې،چې تاسو له به خوند دركوي ،خوچې باطن ته ئې اوگورئ نو انتهائي گنده، طلب نه خالي، دشمنئ نه ډک، بې فائده ،بزدله اويروندكي خلق دي.

﴿تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ﴾يعنې ظاهري شكل وصورت اوهيئت ئې سړې په تعجب كښې اچوي،خه غوړ پړ وي،هندو پرې مسلمانيږي،﴿وَإِن يَقُولُوا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ﴾يعنې دومره فصيحه دي چه خلق ئې خبروته متوجه كيږي،ابن عباسؓفرمائي چه عبد الله بن أُبي ابن سلول جسيم، فصيح وؤ ، مجلس دَ حضورﷺته به راتللوسره دَخپلوملگرو،حضورﷺاوصحابه كرام به ئې شكل و صورت ته حيرانيدل،او دَ هغه خبرو ته به ئي غوږكيخودلو﴿كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ﴾يعنې ظاهري چال چلن خو ئې ښه دې ليكن باطن كښې هيڅ نه وي،تش كدوان دي،مثال ئې داسې دې لكه لرگي چه ديوال ته تكيه كړې شوې وي،تشبيه دَ منافقانو دَ لرگو تكيه كړې شوؤ سره (۱) يا په عدم نفع اوخيركښې وركړې شوې ده. ځكه چه كوم لرگي ديوال ته اودره ولې شي نوهغه بې فائدې وي په عمارت وغيره جوړه ولوكښې نه استعماليږي،ماسوا دَ سوزولو نه ، نو دغه شان دامنافقين هم دي چې جهنم دَاور خشاك جوړيدونه علاوه بل څه سره نه جوړيگي. (۲) يادا چه دوئ په مجلس دَحضورﷺكښې تكيه لگه ولې داسې بې طلبه ناست وې لكه لرگي،چه په هيڅ هم نه پوهيږي.

﴿يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ﴾ اي واقعةً عليهم. دوئ دومره بزدله دي چه څه څوک خبره کوي نودوئ يريږي چه لکه دا زمونږ خلاف څه خبره کيږي. مقاتل رحمه الله وائي چه چابه دڅه ورک شوي څيزاعلان کولوياڅه بل څه اعلان، نودوئ به اويريدل چه زمونږباره کښ اعلان دې، بعضِ وائي چه دوئ به هروخت کښ په ويره کښ وو،چه هسې نه الله تعالى زمونږباره کښ څه نازل نکړي چه زمونږحقيقت ښکاره شي ((هم العدو)) دادستاسو اصل دښمنان دي، ځان ترينه ساتئ. ﴿قَاتَلَهُمُ اللَّهُ﴾ الله دي دوئ غرق کړي په کومه روان دي، دومره هم حق ته نه ګوري.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | قِيلَ | لَهُمْ | تَعَالَوْا | يَسْتَغْفِرْ | لَكُمْ | رَسُولُ | اللَّهِ | لَوَّوْا |
| اوکله چه | اوونيلې شي | دوئ ته | چه راشئ | چه بخنه اوغواړي | تاسو لره | رسول | د الله تعالى | نوکاږه کړي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رُءُوسَهُمْ | وَرَأَيْتَهُمْ | يَصُدُّونَ | وَهُمْ | مُسْتَكْبِرُونَ ۝٥ |
| سرونه خپل | اووينې ته دوئ | چه منع کيږي(دراتلونه رسول الله ته) | اودوئ | تکبرکونکي دي |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سَوَاءٌ | عَلَيْهِمْ | أَسْتَغْفَرْتَ | لَهُمْ | أَمْ | لَمْ | تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ |
| برابرده | په دوئ باندې | که بخنه غواړې | ته دوئ لپاره | اوکه | نه | غواړې بخنه دوئ لپاره، |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَنْ | يَغْفِرَ | اللَّهُ | لَهُمْ | إِنَّ | اللَّهَ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ | الْفَاسِقِينَ ۝٦ |
| هرګزبخنه | نه کوي | الله تعالى | دوئ ته | ، بيشکه | الله تعالى | نه کوي هدايت | قوم | فاسقانوته |

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ﴾ دابل **قباحت د منافقانو** دې. چې انتهائي متکبر دي کله چې ترينه غلطي اوشي ، او ورته اويلې شي لاړ شئ رسول الله ﷺ ته چې مغفرت درله او غواړي نودوئ نه ځي، روايت کښ دي چه کله الله تعالى دزيدبن ارقم رضي الله عنه تصديق اوکړو نو خلقو عبد الله بن أبي بن سلول ملامته کړو، اوبعضومسلمانانو ورته اوونيل، ورشه حضور ﷺ ته اودخپل جرم اعتراف اوکړه هغه به درله بخنه اوغواړي ليکن ده انکاراوکړو، او ورته ئې اوئيل: تاسوراته وئيل چه ايمان راوړه نوايمان مې راوړو، تاسو راته اووئيل زکوٰة ورکړه نو زکوٰة مې ورکړو، اوس نور څه نه دي پاتي مګر داچه تاسوماپه سجده کوئ محمّد ﷺ ته.

﴿لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ﴾ تاوه ول دَسرونو کنایه ده دَتکبراواعراض نه.یاحقیقةً تاوه ول ورنه مراد دی لکه څنګه چه عادت دې دَانکارکونکو.

﴿سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ أَسۡتَغۡفَرۡتَ لَهُمۡ﴾دازجراوتخویف دې منافقانو ته،چه دَدوئ مغفرت نشی کیدې اګرچه سید الکونینﷺ ورله مغفرت اوغواړی،څه ضروری تفسیردَدی آیت متعلق دَ لسمی(۱۰)سپاری په آخرکښ سورة التوبه کښ تیرشویدې هلته ئی اوګورئ.

| |
|---|
| هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا |
| دامنافقان هغه دی چه وائی دوئ مه کوئ نفقه په هغه چاچه دَرسول الله سره دی لپاره دَدی چه تول خواره شی، |
| وَلِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ ۝ |
| اوخاص الله لره دی خزانی دَاسمانونو اودَزمکی لیکن منافقان نه پوهیږی. |

﴿هُمُ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُواْ﴾دائی بل قباحت ذکر کیږی،چی دوئ وائی صحابه باندی خرچ مه کوئ،دوئ سره مالی تعاون مه کوئ،دامهاجره بي کوره خلق دی چی تاسو ورسره امداد بند کړئ نو دوئ به خپله نبی ﷺ اتباع پریګدی، قائل دَدی خبری رئیس المنافقین عبدالله بن ابي وؤ ، او نور منافقان ورسره په دې راضی وؤ.دَ آیت شانِ نزول ابتداءکښ تیرشویدې.﴿عَلَىٰ مَنۡ عِندَ رَسُولِ ٱللَّهِ﴾ دینه مرادئی فقراء مهاجرینﷺدی،﴿رَسُول ٱللَّهِ﴾ سره تعبیر ئی صرف ظاهراً کړیدې اعتقاداً ئی ندی وئیلی﴿حَتَّىٰ يَنفَضُّواْ﴾حتی تعلیلیه دې، "انفضاض" تفرق او انتشار ته وائی یعنی په دوئ خرچه بنده کړئ چی دوئ منتشر شی.

﴿وَلِلَّهِ خَزَآئِنُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾رد دې په قولِ مذکور دَ منافقانو،چی دَ اسمانونو او دَ زمکی دَ رزق خزانی صرف الله سره دی،مخلوق سره نه دی چه په چاځ بندی کړی،لیکن منافقان په دې نه پوهیږی.

| |
|---|
| يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ ؕ |
| وائی دوئ منافقان کچری واپس شومونږ مدینی ته نو خامخا اوباسی به عزت مند دَ مدینی نه ذلیلو لره، |

| وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ | وَلِرَسُوْلِهٖ | وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ | وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ | لَا يَعْلَمُوْنَ ۵ |
|---|---|---|---|---|
| اوخاص الله لره دي عزة | اودهغه رسول لره دي | اومؤمنانولره دی | لیکن منافقان | نه پوهیږی |

﴿يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَآ إِلَى ٱلْمَدِينَةِ﴾ دا ئي **بل قباحت دې**. چې دوئ وائی مونږ دمدینی معززین یو اودامهاجرین ذلیل خلق دي،چې کله مدینې ته اورسو نو مونږ به دوئ دمدینی نه اوباسو. ددی قائل هم ابن أبي بن سلول دې

﴿وَلِلَّهِ ٱلْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِۦ﴾ رد دې ددوئ دقول مذکور،یعنی دا خبره صحیح ده چې مدینی عزت مند خلق به ذلیل خلق اوباسی لیکن عزت مند خلق خومؤمنان دی اوتاسو ذلیل ئی،لهذا هم تاسو به دمدینی نه اوځئ. تقدیم دخبر «لله» تخصیص لپاره شویدي.چې عزت صرف الله ﷻ او د الله ﷺ رسول او مؤمنانو دپاره دې، دوئ نه علاوه چې څوک هم دی هغه ذلیل دي.

**فائده**: دې آیت نه ثابتیږی چې عزت معیار صرف الله ﷻ او د هغه رسول اتباع او اسلامی طورطریقې اواسلامی علوم دی، آه! انقلاب د زمانې ته اوګورئ چې نن په مسمانانو داسې زمانه راغلیده چې هغوئ ته عزت په غیرو طریقو او دنیوی علومو و فنونو کښې ښکاری اودینی علوم اودهغی حاصلونکی ورته سپک لیدې شی

**فائده**: «خزائن السمٰوات» تخصیص صرف الله ﷻ سره اوشو اوعزت تخصیص الله ﷻ، رسول اومؤمنانو درې واړو سره اوشو،دیکښې اشاره ده دې خبرې ته چې مؤمن مالداره کیدل ضروری امر نه دې،البته عزت مند به خامخا وي.

په روایاتونوکښې راغلی دی چه دعبدالله بن أبي بن سلول داخبره چه کله د ده ځوی واؤریدله، او هغه مخلص مسلمان وؤ،نوتوره ئی راواوباسله اوپلار ته ئی اووئیل چه په الله ﷻ مې دې قسم وی تر هغې دې نه پریدم چه دااونه وائی محمد ﷺ عزت مند دې اوځه ذلیل یمه، حتّی چه پلار ني دې خبری وئیلو ته مجبورشولو.

| يٰٓاَيُّهَا | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا | تُلْهِكُمْ | اَمْوَالُكُمْ | وَلَآ | اَوْلَادُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اې | ایمان | والؤ! | غافله دې | نکړی تاسولره | مالونه | ستاسواونه | اولادستاسو |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَنْ | ذِكْرِ | اللّٰهِ | وَمَنْ | يَّفْعَلْ | ذٰلِكَ | فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ | ⑨ |
| دذکردالله | نه.اوهرچاچه | اوكړو | داكارنودغه | خلق | هم | دوئ | ـوـبـن | دي | |

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ﴾داپه آخردَسورة كښ مؤمنانوته دَ انفاق فى سبيل الله ترغيب دې،مؤمنانوته حكم دې چه په مال او اولادكښ دومره انهماک مه كوئ چه په هغى سره دَاللهﷻ دَيادنه غافل شئ﴿ذِكْرِ اللّٰهِ﴾نه مرادمطلق عبادت دې ﴿وَمَن يَفْعَلْ ذٰلِكَ﴾يعنى دَدنياپوجه دَدين نه غافله كيدل ډيرلوئ تاوان دې،څكه چه داغوره كول دَفانى څيزدى په مقابل دَباقى كښ.

| |
|---|
| وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ |
| او خرچ كوئ دَهغى مال نه چه دركړيدې مونږتاسوته مخكښ ددينه چه راشي يودستاسونه مرګ |
| فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ فَاَصَّدَّقَ |
| نوبيابه وائى اې ربه څما، ولې دې ورستو نه كړم څه ترنيتى نيزدى پورى.نوصدقه به مى كړې وې |
| وَاَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ⑩ وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا ط |
| اوشوې به وې څه دَنيكانونه.اوهرګزنه ورستوكوى اللهﷻ هيڅ نفس لره كله چه راشى نښه دهغى. |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ | خَبِيْرٌ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | ⑪ |
| اوالله ﷻنبه | خبردې | په | هغه | عملونوچه | تاسوئى | كوئ |

﴿وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُم﴾ ترغيب دې انفاق ته صراحتًا ،يعنى دآخرت دَذخيرى جمع كولو د پاره دَخپل مالونه څه حصه خرچ كوئ ﴿اَن يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ﴾ اى: اماراته ومقدماته. يعنى دَ مرګ آثار راتلو نه مخكښ مخكښ نفقه اوكړئ ورنه بيابه تمنا كوئ چه ياالله ماته لږغونته مهلت راكړه چه څه صدقه اوكرم،«لولا اخرتني»كښ «لو» تحضيض دپاره دې يعنى ولې دې ماله لكه نوره زندګي نه راكوله.

«فاصدق واكن من الصٰلحين» جواب ـ لولا ـ منصوب هم راځی، ـأنْ ـ ناصبه مقدره دَ وجهی نه. او مجزوم هم راځی، دَ ـإنْ ـ شرطيه مقدره دَ وجهی نه، نو دي وجهي نه «اَصَّدَّقَ» منصوب راغليدي او «اَكُنْ» مجزوم راغلې دي، او «اَكُنْ» عطف دي په «فَاَصَّدَّقَ» باندې. دَ فاء ـ مدخول نه دې. اي ان اخرتني اكن من الصالحين.

دغه شان تعبيز سره مختصر الفاظو كښې دوه فائدې حاصلې شوې. (۱) تسبب (۲) تعليق. مطلب به دَ آيت دا شی، اې ځما ربه تامالـه لګه نوره زندګی ولې نه راكوله، چې ما ستا په لار كښې مال خرچ كړې وې او اې ربه! كه ته ماله زندګی راكړې نو څه به ښه كارونه كوم، «التحرير والتنوير»

﴿وَلَن يُؤَخِّرَ ٱللَّهُ نَفْسًا ﴾ يعنی الله ﷻ هيڅ چاته هم دَمقررى نيتى نه ورستومهلت نه وركوی، اوس درته ډيرمهلت دي چه څه نيک كاركوئ اوكړئ.

| ركوعاتها (۲) | سورة التغابن مدنية | آياتها (۱۸) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۶۴) وحسب النزول (۱۰۸)**

نزلت بعد التحريم و قبل الصّف

**ربط**: ماقبل سورة په آخرکښې دَانفاق حکم اوشو، دې سورة کښې هم دَانفاق حکم دې بطور ترقي، چه د امال ستاسو دې لیکن په قرض ئې الله تعالی ته ورکړئ، څوګنه زیات اجربه ئې درته درکړي.

**خلاصه**: دې سورت دوه حصې دي:

**اوله حصه ایت نمبر ۲ تر ۱۳ پورې ده.**

آیت نمبر ۱ نه تر ۴ پورې توحید بیان دې.

آیت نمبر ۵ ، ۶ کښې رسالت بیان دې.

آیت نمبر ۷ کښې معاد بیان دې.

آیت نمبر ۸ کښې ماقبل درې وارو مسئلو باندې تفریع ده.

آیت ۹ ، ۱۰ کښې بشارت او تخویف دې.

آیت ۹-۱۳ تسلی ده مؤمنانو ته

آیت نمبر ۱۴ نه د **سورت دویمه حصه** شروع کیږي، دیکښې دوه مانع دَانفاق ذکر کیږي، بیا انفاق حکم دې او آخر کښې دهغې ترغیب ذکر کیږي

| |
|---|
| يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِۚ لَهُ الْمُلْكُ |
| پاکي بیانوي الله ﷻ لره هغه څه چه په آسمانونو کښې دي او هغه څه چه په زمکه کښې دي، هم ده لره بادشاهي ده، |
| وَلَهُ الْحَمْدُۡ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ① هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ |
| او هم ده لره ثنا ده، او الله ﷻ په هرڅه باندې قادر دې، الله ﷻ هغه ذات دې چه پیدا کړي يې تاسو پس څنې په تاسو کښې |

| |
|---|
| كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ② |
| كافردی اوځنې په تاسوکښې مؤمنان دی.اوالله ﷻ په هغه څه چه تاسوئی کوئ ښه ليدونکی دی |
| خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ۚ |
| پيداکړيدی الله ﷻ اسمانونه اوزمکه په حقه سره اوصورتونه ئی درکړيدی تاسو ته ښائسته صورتونه ئی درکړيدی |
| وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ③ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ |
| اوخاص هغه ته ورتلل دی.عالم دی الله ﷻ په هغی چه په اسمانونوکښې دی اوپه زمکه کښې دی |
| وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ④ |
| اوعالم دی په هغی چه پټوئ تاسواوپه هغی چه ښکاره کوئ یی.اوالله ﷻ ښه عالم دی په رازونودسينوباندی |

﴿يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِى ٱلسَّمٰوٰتِ﴾ دې ځائی نه **توحيد بيان** شروع کيږی.اودا تمهيد دې چې کائنات کښې چې څه هم دی هغه دَالله ﷻ تسبيح بيانوی.ځکه چې هغه دټول کائنات تن تنها بادشاه دې، اوصرف هغه دَحمد مستحق دې.اودَ هغه په هر څه باندې قدرت دې.

﴿هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَكُمْ﴾ دَ **اول دليل عقلی** په توحيد دې.﴿فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ﴾ دا دليل عقلي په ضمن کښې شکوه ده،چې الله ﷻ تاسو پيداکړئ.قوت اواستعداد يی درله درکړو،علمی اوعملی کمالاتو نه ئی مشرف کړئ،دې تقاضه خوداوه چې تاسوټولو ايمان راوړې وې، ليکن په ځائ ددې، تاسو په فرقو اوحصو کښې تقسيم شوئ.چاايمان راوړو اوچا کفر اوکړو،خو دا واورئ چې دا هرڅه الله ﷻ گوری هغهٔ په درله بدله درکوی.

﴿خَلَقَ ٱلسَّمٰوٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ﴾ دا **دويم دليل عقلی دې** په توحيد،چې الله ﷻ د کائنات تخليق داسې انداز سره کړيدې چې هغی کښې دانسان سراسر نفع ده،دنيوی هم اخروی هم، اوانسان ئې هم دومره ښائسته نقشې باندی جوړکړيدې چې داسې ترتيب اوتناسق سره بل مخلوق نه دې جوړ.نو دا کارونه صرف الله کړي دي بل څوک داسې نشته چې دا کارونه اوکړي. ﴿واليه المصير﴾ دا تخويف اخروي دې چې دا کافران دې بی غمه کيږی نه،کائنات کښې

چې څه کیږی او څوک چې څه کوی ، دهغې ټولو رجعه الله ﷻ ته کیږی نو ستاسو اعمالو خبر هم الله ﷻ ته رسی .الله ﷻ به درله دهغې سزا درکوی.

﴿يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ دادریم دلیل عقلی دې په توحید ،چې الله ﷻ علیم بکل شئ دې.

| |
|---|
| أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَبْلُ فَذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ |
| آیا ندې راغلې تاسوته خبردهغې خلقوچه کفرئې کړې وؤمخکښې ددینه،پس اوڅکلوهغوئ عذاب دعمل خپل |
| وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۞ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُ كَانَتْ تَأْتِيهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ |
| اوهغوئ لره عذاب دې دردناک.داپه سبب ددې چه وؤراتلل به دوئ ته رسولان ددوئ په دلائلوښکاروسره. |
| فَقَالُوا أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوْا وَاسْتَغْنَى اللَّهُ |
| نووئیل به دوئ آیا بشر به مونږته هدایت کوی.پس کفرئې اوکړواواعراض ئې اوکړواوبښکاره کړه الله ﷻ غنی خپله. |
| وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ۞ |
| اوالله ﷻ غنی(بی پرواه)دې،ستائیلې شویدې. |

﴿أَلَمْ يَأْتِكُمْ﴾ دیکښې **مسئله رسالت بیان** دې،او رسالت نه انکار باندې تخویف دې،یعنی رسول الله ﷺ دَالله ﷻ رسول دې،ده باندې ایمان راوړئ،ګنې تاسوته دَ مخکښنو کفارو نمونې مخې ته دی، چې دَخپلو رسولانو تکذیب ئې اوکړو،نو الله ﷻ ورله په دنیا کښې څنګه سزا ورکړه.او آخرت سزا دینه علاوه ده . ﴿ذَٰلِكَ﴾یعنی داعذاب دنیوی او اخروي په سبب ددې چه دوئ دَ رسولانو دَحکم منلونه ئې همیشه انکارکړې وؤ.

﴿فَقَالُوا أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا﴾ دا اعتراض دې د دوئ په رسولانو.چې زمونږغونته سړې څنګه زمونږ دَ هدایت لپاره رالیږلې شوې دې؟ ګویا که دَ دوئ په نیز دَ بشریت او رسالت په مینځ کښې منافات وؤ.نوپه دې وجه ئې کفراختیارکړواودَرسولانودَحکم منلونه ئې مخ واړو.داآیت

دَ هغې عقيدې واضح ترديد کوې چه دَرسول دَبشريت نه انکارکوې.«بشر» نه مراد جنسِ بشر دې، نو څکه ورته په «يهدوننا» کښې ضمير دَ جمعې راجع شوې دې.

﴿ وَٱسْتَغْنَى ٱللَّهُ﴾اى اظهرسبحانه غناهُ عن ايمانهم،يعنى الله جَلَّ جَلَالُهُ دَدوئ دَايمان راوړلو او طاعت نه بې پرواه شولو،مطلب دادې چه عذاب ئې ورباندې راوستلو نو ټول ئې هلاک برباد کړل

زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا أَن لَّن يُبْعَثُوا ۚ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي

غلط گمان کړيدې کافرانو چه هرگزبه دوباره پورته نکړې شى دوئ،اووايه نه.ولى نه،قسم دې په رب ځما

لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ۚ وَذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ

چه خامخابه دوباره پورته کولې شئ تاسو،بيابه خبرکړې شئ په هغې چه کړى دى تاسو،اوداکاربه الله جَلَّ جَلَالُهُ باندې

يَسِيرٌ ﴿٧﴾ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالنُّورِ الَّذِي أَنزَلْنَا ۚ وَاللَّهُ

آسان دې،پس ايمان راوړئ په الله جَلَّ جَلَالُهُ اوپه رسول دَهغه اوپه هغه نور(قرآن)چه مونږنازل کړيدې،اوالله جَلَّ جَلَالُهُ

بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٨﴾ يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ۖ ذَٰلِكَ

په هغه څه چه تاسوئې کوئ ښه خبردار دې،هغه ورځ چه راجمع به کړى الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو،په ورځې دَجمع کيدلو کښې،داورځ

يَوْمُ التَّغَابُنِ ۗ وَمَن يُؤْمِن بِاللَّهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُكَفِّرْ

ورځ دَکټنې بيلنې ده،اوهغه څوک چه ايمان راوړى په الله جَلَّ جَلَالُهُ اووکړى عمل نيک،لرى به کړى(معاف به کړى)

عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ

دَده نه گناهونه دَ ده اوداخل به يې کړى جنتونوته چه بهيږى به دَلاندې دَهغې نه نهرونه هميشه به وى دوئ

فِيهَا أَبَدًا ۚ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٩﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا

په هغې کښې هميشه،داکاميابى ده لويه.اوهغه کسان چه کفرئې کړيدې اوتکذيب ئې کړيدې دآياتونوزمونږ،

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أُولَٰئِكَ | أَصْحَٰبُ | ٱلنَّارِ | خَٰلِدِينَ | فِيهَا | ۖ | وَبِئْسَ | ٱلْمَصِيرُ ١٠ |
| دغه | كسان | خاوندان دأوردى | هميشه به وى په | هغى كښې. | | اوډيرېدځاى | دورتلودي (جهنم) |

﴿زَعَمَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ﴾ ديكښې **مسئله معاد بيان** دي اوشكوه ده مشركينو نه، چې دوئ داګمان دي چې مونږبه دوباره نه ژوندي كيږو ؟ضروربه دوئ دوباره ژوندى كيږى. اوالله ﷻ به ترينه دَ عملونو حساب كتاب اخلى. اوداكارالله ﷻ ته هيڅ ګران نه دي

﴿فَـَٔامِنُواْ بِٱللَّهِ﴾ داپه ماقبل باندې **تفريع** ده. يعنى كله چې مسئله توحيد، رسالت اومعاد واضحه شونوتاسوله پكارده چې تاسو اوس په الله ﷻ، د هغه په رسول او د هغه په كتاب باندي ايمان راوړئ. ﴿وَٱلنُّورِ﴾ نور نه مرادقرآن دي، ځكه چې قرآن هم دَ نورپشان واضحه دې او بل لره هم روښانه كونكې دي. ﴿و الله بما تعملون خبير﴾ترغيب دې ايمان ته. اواعمال صالحوۆ ته

﴿يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ﴾مؤمناتو ته **بشارت اخروى** اوكافرانوته **تخويف اخروى** دي چې دګټې او تاوان ورځ قيامت ده. هغه ورځ به تاسو ټول الله ﷻ جمع كوى اوتاسو عملونو مطابق به بدله دركوى. مؤمنان به جنت ته ځى اوكافران به هميشه هميشه لپاره جهنم ته ځي

﴿يَوْمَ﴾متعلق دي ﴿لَتُنَبَّؤُنَّ﴾ پورې اويا« اذكر» فعل محذوف پورې. «ليوم الجمع» يوم الجمع دَ قيامت په نومونو كښې يونوم دې قيامت ته يوم الجمع ځكه وائى چه پدى ورځ اولين اخرين، انس و جن ټول جمع كړې شى﴿ذَٰلِكَ﴾يعنى داورځ جمع كولو﴿يَوْمُ ٱلتَّغَابُنِ﴾داهم دَ قيامت په نومونوكښې يونوم دي، «تغابن» د غبن نه مشتق دې غبن تاوان وركولو ته وائى. يعنى قيامت په ورځ به حقيقى ګټې او تاوان پته لګى، دنيا كښې خو صرف سودا شوي ده، كافرانو دنيا دَ ژوند سوداكړې ده، كماقال الله تعالى:اولئک الذين اشتروا الحيوة الدنيا بالاخرة(البقره: ٨۶)او مسلمانانو د آخرت ژوند سودا كړيده، كما قال تعالى:ان الله اشترى من المؤمنين انفسهم(توبه، ١١١) وقال الله تعالى:ومن الناس من يشترى نفسه ابتغاءمرضات الله(البقره ٢٠٧) نو دَ دې سودا پته به قيامت په ورځ لګى چې چا پكښې ګټه اوكړه او چاتاوان (قرطبى)

﴿وَمَن يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ﴾ دا دَ تغابن وضاحت دي، مؤمنانو ته بشارت اخرويه دي. ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا﴾ تخويف اخروي دي کافرانو ته.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَآ | اَصَابَ | مِنْ | مُّصِيْبَةٍ | اِلَّا | بِاِذْنِ | اللّٰهِ | وَمَنْ | يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ |

نه رسيږي چاته هيڅ مصيبت مګرپه حکم دَالله ﷻ سره.اوهغه څوک چه ايمان راوړي په الله ﷻ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَهْدِ | قَلْبَهٗ | وَاللّٰهُ | بِكُلِّ | شَيْءٍ | عَلِيْمٌ ⑪ | وَاَطِيْعُوا | اللّٰهَ |

هدايت به وکړي الله ﷻ زړه دَهغه ته،اوالله ﷻ په هرڅيزښه عالم دي.اواطاعت کوئ دَالله ﷻ

وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ⑫

اواطاعت کوئ دَرسول ﷺ،پس کچرته اعراض اوکړئ تاسو،نوبيشکه په رسول زمونږباندې رسه ول ښکاره دی

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۭ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ⑬

الله ﷻ چه دې نشته دې هيڅ څوک لائق دعبادت بغيردَده نه،اوصرف په الله ﷻ دې توکل اوکړي مؤمنان

﴿مَآ اَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ ديکښ مؤمنانو ته تسلي او دَ صبر و استقامت درس دي، چې کله تاسو ايمان راوړو اودَ آخرت سودا مو اوکړه نو اوس دې لاره کښ به په تاسو ستونزې او تکليفونو راځي، دا به خه استقامت سره برداشت کوئ او دَ حالاتو دَ وجهې نه به دَ الله ﷻ او د هغه رسول اطاعت نه پريګدئ، بلکه په الله ﷻ باندې به توکل او بهروسه ساتئ، ځکه چې دا ټول حالات هغه طرف نه راځي، اوهغه ئي په لرې کولو قادر دې.

﴿وَمَن يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ﴾ يعنی څوک چې مشکلاتو باندې صبر اوکړي او تقدير باندې تسليم و رضا اختيار کړي، ﴿يَهْدِ قَلْبَهٗ﴾ (۱) الله ﷻ به ورته دَ زړه سکون نصيب کړي چې دهغې په نتيجه کښ به ورته په ايمان باندې مزيد استقامت او په عباداتو کښ مزيد انشراح نصيب شي، (۲) او الله ﷻ به ورباندې دَمعرفت هغه دروازې کولاؤ کړي چې دې مجاهدو بغير دَ هغې حصول نشی کيدې.

﴿ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ترغيب دې اطاعت ته، چه هر وخت کښې دَالله ﷻ او دَرسول الله ﷺ اطاعت کوئ خاص کرېه وخت دَمصيبت کښې﴿فَإِن تَوَلَّيْتُمْ﴾يعنى كه تاسو اعراض اوكړئ دَاطاعت دَرسول نه، داشرط دې جزاء ئې محذوفه ده چه:فلابأس عليه.﴿فَإِنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴾دادَمحذوفې جزاء علت اوقائمقام دې يعنى كه تاسو دَاطاعت دَرسول نه اعراض اوكړئ نو پدې هغه ته هيڅ ضرر نه رسيږي ځکه چه هغه تاسو ته احکام ښه په وضاحت سره در رسولى دى او د هغه ذمه واري بس دومره وه.

﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ د اعاده ده مقصودي دعوې،چې دَ الله نه ماسوىٰ بل څوک اله، حاجت روانشته،نو په وخت دَمصيبت کښې دَهغه نه مدد غواړئ،اوهم صرف په هغه توكل كوئ. دې سورتونو کښې ضمناً ځائ په ځائ ددې اعاده کيږي ، د پاره ياد دهانئ چې اصل مقصود د الله ﷻ وحدانيت باندې ايمان دې او انفاق وغيره نور ټول اعمال د هغې تابع دي.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوٓا اِنَّ مِنۡ اَزۡوَاجِكُمۡ وَاَوۡلَادِكُمۡ عَدُوًّا لَّكُمۡ فَاحۡذَرُوۡهُمۡ‌ۚ |
| اې ايمان والؤ بيشكه چه بعضى دَښځوستاسونه اودَځامنوستاسونه دشمنان دى تاسولره نوځان اوساتئ دَهغوئ نه، |
| وَاِنۡ تَعۡفُوۡا وَتَصۡفَحُوۡا وَتَغۡفِرُوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۱۴﴾ |
| اوكچرته عفوه اوكړئ اومخ اوګرځوئ دَملامته كولونه اوبخنه اوكړئ نوبيشكه الله ﷻ بخښونكې مهربان دې. |

﴿يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا﴾دى ځائى نه دَ **سورت دويمه حصه** شروع كيږي چى دې كښې دَ انفاق بيان دې،اول دا انفاق دَپاره موانع ذكر كيږي اوبيا آخر كښې د انفاق حكم اوترغيب ذكر كيږي،

﴿ إِنَّ مِنْ أَزْوَٰجِكُمْ وَأَوْلَٰدِكُمْ ﴾دا **اول مانع بيان دې**،انسان دپاره ځنې وخت انفاق نه مانع او ركاوټ خپله ښې او اولاد اوګرځى،چونكه دوئ ، انسان د ځان دَپاره ټولونه زيات همدرده او خيرخواه ګڼړى نوځكه دوئ په دام كښې راشى، نو الله ﷻ فرمائى: خيال كوه اې

انسانه! دغه شان ببيانې او اولاد ستا همدرد اوخيرخواه نه دی بلکه دا د ستا دشمنان دي . دوئ نه ځان ساته.

﴿وَإِن تَعْفُوا﴾ يعنى داسى ببيانو او اولاد علاج دا نه دې چې ته هغوئ سره په جنګ شي،او سزا ورله ورکړئ،بلکه دَمصلحت اودَهوش نه کار اغستل پکار دي. اوشرعى حدود کښې دننه دَ عفو درګزر معاملې سره دَ هغوئ اصلاح کوشش پکار دي، يقيناً چې الله ﷻ به معامله خير طرف ته بوځى،«تعفوا» معاف کړئ سزاورله ور نه کړئ. ﴿وَتَصْفَحُوا﴾ پيغور اوملامت هم اونه کړئ. «تغفروا» اخفاء کښې يى هم اوساتئ.﴿فان الله غفور رحيم﴾جزاء محذوفې قائم مقام دې او ديکښې ترغيب دې عفو درګزر ته.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَآ | أَمْوَٰلُكُمْ | وَأَوْلَٰدُكُمْ | فِتْنَةٌ ۚ | وَٱللَّهُ | عِندَهُۥٓ | أَجْرٌ | عَظِيمٌ ⑮ |
| بيشکه | مالونه | ستاسواواولادستاسوازميښت | دې ، | او | الله جل جلاله | سره | اجردې لوئ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَٱتَّقُوا | ٱللَّهَ | مَا | ٱسْتَطَعْتُمْ | وَٱسْمَعُوا | وَأَطِيعُوا | وَأَنفِقُوا | خَيْرًا |
| نواويريږئ دَالله جل جلاله نه | خومره | چې موطاقت وى، | | اواورئ دَالله جل جلاله خبره | اواطّاعت ئې کوئ | اونفقه کوئ | دابه خيروى |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِّأَنفُسِكُمْ ۗ | وَمَن | يُوقَ | شُحَّ | نَفْسِهِۦ | فَأُولَٰٓئِكَ | هُمُ | ٱلْمُفْلِحُونَ ⑯ | |
| تاسودَپاره،اوڅوک | چه | اوساتلې | شودَبخل | دَځپل نفس | نه،نوهم | داخلق | هم | دوئ کامياب دى |

﴿إِنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ﴾ دويم مانع بيان دې،چې بعض اوقات انسان مال خه الله ﷻ په لار کښې خرچ کول غواړى خو دَ مال يا اولاد محبت ورله مانع اوګرځى،او دې ئې خرچ نه کړى،او لوئې لوئې اجرونو نه محروم شى،نوالله ﷻ افرمائيل:که دَ مال اولاد داسې محبت وى چې انسان دَطاعاتونه منع کړى نوبيا دافتنه ده. دَ مال محبت چونکه لويه اوکثير الوقع فتنه ده نوځکه تقديم دَ "اموال" اوشو په "اولاد" باندى،اولاد مکرر راوړلو کښې غالباًنکته دا ده چې اول آيت کښې کومو اولادو ذکر وۀ،هغه منع انفاق دَپاره سبب هم وۀ او امر کونکى هم وۀ، دې آيت کښې دَ هغه اولادو ذکر دې چې منع دَپاره صرف سبب خو دي ، خو امر کونکى نه دي:(والله اعلم)

په حدیث کښې دي چه :یؤتی برجلٍ یوم القیامة فیقال:اکل عیاله حسناته،په ابوداؤد،ترمذی وغیره کښې دي چه یو ځل نبی کریمﷺ خطبه وئیله،حسن حسینؓ راغلل، دَ سرو لکیرو والا قمیصونه ئې اغوستي وو،غورزیدل بیابه پاسیدل،بیاپاسیدل، حضورﷺ دَمنبرنه راکوز شو، دواړه ئې اوچت کړل خپل ځان سره ئې کینول اواوئې فرمائیل:چه الله تعالیٰ رشتیاوئیلي دي چه:«انما اموالکم واولادکم فتنةٌ» ما دا دواړه بچي اولیدل چه راپاسي او غورزیږي نو صبر مې او نه شو حتّی چه خپله خبره مې قطعه کړه دوئ مې رااوچت کړل په یوحدیث کښې دي:الولد ثمرة القلوب و انهم مجبنة مبخلة، محزنةٌ، بچي دَ زړونو میوې دي اوبیشکه دوئ سړې بزدله کوي، بخیل کوي،غم جن کوي (ابن کثیر).

﴿وَاللَّهُ عِندَهُۥٓ أَجۡرٌ عَظِيمٞ﴾ الله تعالیٰ به اجرعظیم ورکوي هغه چاته چه ترجیح ورکړي محبت او طاعت دَالله تعالیٰ ته په محبت دَاموالواواولادوباندې.

﴿ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ﴾ دیکښې دَ انفاق حکم دي،چې الله تعالیٰ نه یریږئ،اوهغه چې کوم حکم ورکوي نو جان ومال سره دَهغې اطاعت کوئ،اودهغه په لار کښې انفاق کوئ،دَهغې فائده به تاسوته رسي ﴿مَا ٱسۡتَطَعۡتُمۡ﴾ای ابذلوا فیها استطاعتکم(کشاف)یعنی خپل طاقت په تقویٰ کښې خرچ کړئ. روایاتو کښې راځي چه کله چه«یا ایهاالذین امنوا اتقوالله حق تقاتِهِ» (ال عمران)نازل شو نو مسلمانانو باندې عمل کول سخت شول ، نو دا آیت نازل شوچه دَخپل وس موافق تقویٰ کوئ.

﴿خَيۡرٗا لِّأَنفُسِكُمۡ﴾ سیبویه وائي چه"خیراً"مفعول به دې دَفعل محذوف دپاره ای وأتوا خیراً لانفسکم،یعنی چه کوم خیزستاسولپاره بهتردې هغه اوکړئ،او یا خبر دي، دَ "یکن" فعل ناقص محذوف دپاره.

| |
|---|
| إِن تُقۡرِضُواْ ٱللَّهَ قَرۡضًا حَسَنٗا يُضَٰعِفۡهُ لَكُمۡ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡۚ |
| کچرته قرض ورکړئ تاسوالله تعالیٰ ته قرض ښائسته،نودوه چنده به ئې کړي تاسولره،اومغفرت به اوکړي تاسوته، |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ شَكُوْرٌ حَلِيْمٌ ۝ | عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ | الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ | | |
| اوالله ﷻ قدردان دي،صبرناک دي، | عالم دي په غيبواوپه ښکاره | غالب دي،ډيرحکمت والادي | | |

﴿ إِن تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾دیکښې دَانفاق فی سبیل الله بیان دې، ماقبل سورة نه بطورِترقی، اوترغیب دې چه خپل مال الله ﷻ ته قرض ورکړئ،څه ګنه زيات اجر به ئې درته درکړی،﴿وَيَغْفِرْ لَكُمْ﴾ په برکت دَانفاق سره به موګناهونه معاف کړی﴿وَاللَّهُ شَكُورٌ ﴾الله ﷻ قدردان دې،لګ په بدله کښې ډير ورکوي.﴿عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ﴾هيڅ هم ورنه پټ نه دی،دَهرڅه بدله به ورکوی.

| ركوعاتها (۲) | سورة الطلاق مدنية | آياتها (۱۲) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دی سروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۶۵) وحسب النزول (۹۹)**

نزلت بعد الرحمٰن و قبل البيّنة

**ربط** : دې سورت كښې هم د انفاق بيان دې ، خوماقبل سورتونو كښې دِانفاق نفلي بيان وؤ، او دې سورة كښې اِنفاق واجبي بيان دې.

**خلاصه**: دَښخوسره متعلق څلورمسائل،طلاق،عدت،نفقه اوسكنى بيانيږى،تخويف دنيوى،بشارت اوتوحيد باندى دليل عقلي(تمت).

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ |
| اې نبی(خپل اُمت ته اووايه)كله چه طلاق وركول غواړئ تاسو ښځوخپلونه نوطلاق وركوئ هغوئ ته |
| لِعِدَّتِهِنَّ وَاَحْصُوا الْعِدَّةَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ ۚ |
| په وخت دَعدت دَهغوئ كښې اوشمارئ(يادئي ساتئ)عدت،اوويريږئ دَالله ﷻ نه چه رب دې ستاسو. |
| لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْۢ بُيُوْتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ |
| مه اوباسئ دَغه(مطلقې)ښځې دكورونودَهغوئ نه اونه دې اوځى دوئ بخپله هم،مګرداچه راتلل اوكړى |
| بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۗ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۗ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ |
| په بدئ ښكاره ، او دا پولي دَالله ﷻ دى ،اوڅوک چه اوځى دَ پولو دَ الله ﷻ نه نوپه تحقيق سره ظلم ئى اوكړو |
| نَفْسَهٗ ۗ لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ① |
| په ځان خپل،نه پوهيږى ته(اې طلاق وركونكيه)چه كيديشى چه الله ﷻ پيدا كړى ورستودَيوطلاق نه څه نوى خبره |

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِذَا طَلَّقۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ ﴾ دا اوله مسئله ده دښځو سره متعلق څلورو مسائلو کښې، دې کښې مدخول بهاذوات الحيض ښځوته دَطلاق دَ ورکولو شرعي زمانې او وخت بيان دې، چې که څوک خپلې بي بي له طلاق ورکول غواړي، نو په داسې مده اوزمانه کښې دې ورکوي، چې هغې کښې هغه دَحيض نه پاکه وي،

فقهاء کرامو دَ مجموعي رواياتو او آثارو نه ورسره مزيد نور قيدونه هم اضافه کړيدي.

(١) يو داچې په دې طهر کښې ورسره جماع نه وي کړې.

(٢) بل داچې حمل ئې واضح نه وي.

(٣) بل داچې درې طلاقه په يو طهر کښې نه وي.

رواياتو کښې راځي چې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ خپلې بي بي ته دَحيض په حالت کښې طلاق ورکړې وؤ، حضرت عمر ﷺ حضور ﷺ ته دَدې ذکراوکړو، حضور ﷺ ديرناراضه شو، بيا ئې اوفرمائيل: «لِيُرَاجِعْهَا، ثُمَّ يُمْسِكْهَا حَتَّى تَطْهُرَ، ثُمَّ تَحِيضَ فَتَطْهُرَ، فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فَلْيُطَلِّقْهَا طَاهِرًا قَبْلَ أَنْ يَمَسَّهَا، فَتِلْكَ العِدَّةُ كَمَا أَمَرَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ» (بخاري:4908).

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ ﴾ نداء حضور ﷺ ته ده، ليکن حکم کښې عموم دې، دَ«النساء» نه مراد مدخول بها ښځې دي، چه ذوات الحيض وي، حاملې نه وي، اونه ائسه؛ ځکه دَ دوئ حکم ورستو را روان دې. اومعنى دَ ﴿إِذَا طَلَّقۡتُمُ﴾ اذا اردتم تطليقهنّ، ده. ﴿لِعِدَّتِهِنَّ﴾ لام دَپاره دَتوقيت دې، او "عدت" نه مراد امام شافعي رحمه الله او امام مالک رحمه الله طهر اغستې دې ، او معنى ئې بالکل واضحه ده، چې طلاق ورله په زمانه دَطهر کښې ورکوئ، دَدينه امام شافعي رحمه الله دا استنباط هم کوي، چې عدت اعتبار به په طهر سره کيږي، حيض سره به نه کيږي، ځکه چې دلته دَعدت زمانه کښې طلاق ورکولو حکم دې، اودې مصداق صرف طهر کيديشي، حيض نشي کيدې، ځکه چې حالت حيض کښې طلاق ورکول بالاتفاق ناجائز دې.

امام ابوحنيفه رحمه الله دَ"عدت" نه مراد "حيض" اغستې دې، نو د هغوئ په مذهب دا اشکال کيږي، چې دې مطلب خو به بيا داشي چې په زمانه دَحيض کښې خپلو ښيبيانو له طلاق ورکوئ حالانکه داخو بالاتفاق ناجائز دي.

دې وجهي نه هغوئ فرمائي چې جارمجرور طلقوهن سره متعلق نه دې، بلکه د دې متعلق محذوف دې ، چې هغه "مستقبلات" دې ، اي: طلقوهن مستقبلات لعدتهن و متوجهات اليهن ،

یعني دوئ له دَعدت مدې (حيض) راتلونه مخکښ مخکښ طلاق ورکوئ،لپاره دَدې چې را روان حيض نه بيا هغوئ خپل عدت شمارلې شی،او دَ دې تائيد هغې روايت نه هم کيږی چې نبی کريم ﷺ "من قبل عدتهن" لوستلې وؤ(احکام القرآن للتهانوی)

باقی دامسئله چې عدت اعتبار به په حيض سره کولې کيږی اوکه طهر سره؟ ددې تفصيل سورت بقره کښ والمطلقت يتربصن بانفسهن ثلاثة قروءپه ذيل کښ تير شويدې.

﴿وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ﴾ **دا دويمه مسئله ده چه عدت ئي** ياد ساتئ . ابتداء او انتهاء ئی پيژنئ، خکه چې دې صحيح ضبط او دَ ياد نه ساتلو دَوجه ډيرې خرابيانې پيداکيږی: (۱)کله به د بوې زنانه دَ عدت مده پوره نه وی او هغه به بل ځائ کښ نکاح اوکړی (۲)کله به خاوند رجوع کول غواړی اودې به دَرجوع نه محرومه شی،(۳)اوکله به دعدت مده پوره وی او خزه به هسې ناسته وی ،اوعدت مده به وربانديې اوګده شی.

﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ﴾داجمله معترضه ده په مابين دَطلاق اود عدت د احکاماتو، يعنی دَطلاق او عدت مسائلو کښ الله ﷻ نه ډير يريږئ، چې چرته افراط اوتفريط درنه اونشی.

﴿لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ﴾ **دادريمه مسئله ده** چې ښځه به دوران عدت خاوند کور کښ اوسی،خاوند بانديې دَهغې نفقه اوسکنی لازم ده ، دې دوران نه خاوند له جائز ده چې ښځه دَ کوره اوباسی، او نه ښځې له جائز ده چې دادَ کوره اوځی.﴿ بُيُوتِهِنَّ ﴾اضافت دَ بيوت مطلقوؤ ته تاکيداً شوې دې.

﴿بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ ﴾دا دَماقبل حکم نه استثناء ده، د دې جملې مفسرينو متعدد توجيهات بيان کړيدی:

(۱)حضرت عبد الله بن عمر ﷺ فرمائی چې« فاحشة بينة» نه مراد نفس خروج دَښځی دې په دوران عدت کښ،نو مطلب به داشی :"لا تسمح لهن الخروج الا الخروج الذي هو فاحشة بينة" نو ديکښ دَخروج اجازت نه دې،بلکه نفی ده په ابلغی طريقې سره ،لکه عرب وائی لاتزن الا ان تکون فاسقا،لا تشتم اخاک الا ان تکون قاطع رحم.

(۲)حضرت ابن عباس ﷺ ترینه مراد بداخلاقي اغستې ده. مطلب دادې چې سوا دَدې صورت نه، چې ښځه کور والوسره، ډیره بداخلاقي شروع کړی.اونور په کور کښ پاتې کیدلو دَ وجهي نه حالات مزید ابتری(خرابي)طرف ته درومي. نو دې صورت کښ بیاجائز ده چې دادې خاوند کور پریګدی.

(۳)څني مفسرینو ترینه مراد زنا اغستې ده، یعني سوا د دې صورت نه چې زنا اوکړی او بیا حد دَپاره باهر اوباسلې شي.

﴿وَتِلْكَ﴾ دا خلورم حکم دې،چې دیکښ رجوع طرف ته اشاره ده.چې طلاق او دَعدت کوم احکامات الله ﷻ مقرر کړي دی، دا حدود دي ، لهذا د دې رعایت ساتئ.دینه تجاوز مه کوئي ، کچرته تجاوز مو اوکړو، نوځان ته به تاوان اورسوئ.څکه چې کیدیشی دینه ورستو خو خیال بدل شی، او دوباره جمع کیدل غواړئ،اوبیارجوع یا بالکل ممکن نه وی. لکه دَ یو طلاق په ځائ درې طلاقونو ورکول صورت کښ. یا رجوع کول ممکن وی خو خوله مو نه جوړیږی،لکه بدسلوکئ په صورت کښ. ﴿ومن يتعد﴾دیکښ ترهیب دې دَ حدود الله نه تجاوز کولونه، ﴿لَا تَدْرِى لَعَلَّ ٱللَّهَ﴾دیکښ ترغیب دې دَ حدودو رعایت ساتلو،خطاب په « لا تدری » کښ عام دې،﴿أَمْرًا﴾ نه مراد د حالاتو تبدیلي ده، چې کیدې شی چې بیاخونفرت په محبت بدل شی، بې رخي په توجه بدله شی،دَ فراق غوختنه دَ وصال په تمناګانو بدله شی.

| |
|---|
| فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ |
| پس کله چه ورسیږی هغوئ، نیتی خپلی ته نوبانی اوساتئ په ښه شان سره اویاجداکړئ هغوئ په ښه شان سره، |
| وَأَشْهِدُوا ذَوَىْ عَدْلٍ مِّنكُمْ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ |
| اوګواهان جوړکړئ دوه کسان خاوندان دَعدل دَستاسونه،اوقائمه کړئ(ورکړئ)ګواهي صرف دَالله ﷻ رضادپاره، |
| ذَٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِۦ مَن كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ |
| داحکمونه ، نصیحت کیږی پدی سره هغه چاته چه ایمان راوړی په الله ﷻ اوپه ورځ دَاخرت |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | يَتَّقِ | اللَّهَ | يَجْعَل | لَّهُ | مَخْرَجًا ② | وَيَرْزُقْهُ | مِنْ | حَيْثُ | |
| اوخوک چه اویریږی د الله ﷻ نه اوبه ګرځوی هغه لره لاردوتلو (دهرتکلیف نه) اوروزی به ورکړی ورته دهغه ځایه | | | | | | | | | |
| لَا يَحْتَسِبُ ۚ | وَمَنْ | يَتَوَكَّلْ | عَلَى اللَّهِ | فَهُوَ | حَسْبُهُ ۚ | إِنَّ اللَّهَ | | | |
| چه ګمان به نه وی دده، اوخوک چه توکل اوکړی په الله ﷻ، پس الله ﷻ کافی دی هغه لره، بیشکه الله ﷻ | | | | | | | | | |
| بَالِغُ | أَمْرِهِ ۚ | قَدْ | جَعَلَ | اللَّهُ | لِكُلِّ | شَيْءٍ | قَدْرًا ③ | | |
| پوره | کونکې | دې | دکارخپل، تحقیق | سره | ګرځولې | ده | الله ﷻ د پاره | دهرخیزیوانداز | |

﴿فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ﴾ای قاربن انقضاء العدة(قرطبی) ، دا د طلاق متعلق بله مسئله ده، چه د طلاق رجعی ورکولونه بعد چه کله مطلقه ښځه عدت ختمیدلوته نیزدې شی، نو یا خو ئې صرف رجوع سره بغیر د نکاح جدید نه خپل عقد کښې اوساتئ. او که ساتئ ئی نه، نو بیا ئې په خې طریقی سره رخصت کړئ. دامضمون په تفصیل سره د سورة البقرة آیت (۱۳۰) او (۱۳۱) کښې تیرشویدې.

﴿فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ﴾ای فراجعوهنّ بحسن معاشرة(روح)یعنی په وجه شرعی سره ورته رجوع اوکړئ، صرف د تطویل عدت لپاره ورته رجوع مه کوئ. لکه په جاهلیت کښې دغه شان عادت وو.﴿أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ﴾یعنی مهرورته ورکړئ، متعه د طلاق ورکړئ.

﴿وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ﴾ ،یعنی که رجوع کول غواړئ اویا ئی پریخودل غواړئ دواړو صورتونو کښې بهتره داده چې په دې باندی کم ازکم دوه ثقه کسان ګواهان جوړ کړئ، چه تنازع په وخت کښې بیا ګواهی کوی. دا امر استحبابی دې د احنافو په نیز، شوافعو په نیز واجبی دې.﴿وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ﴾ګواهانوته حکم دې چه ګواهی خالص د الله ﷻ د رضا لپاره ورکوئ. ﴿ذَٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ﴾اشاره مذکوره ټولو احکاموته ده

﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا﴾جمله معترضه ده لپاره د تاکید د مخکښنی احکامو، یعنی که څوک چه د الله ﷻ نه اویریږی، او مذکوره احکام پوره کړی، نو الله ﷻ به ورته د دنیا

او آخرت هرغم نه دَخلاصی لاره ورکړی، خصوصاً دَ طلاق په وجه ورته چه کوم مشکلات او غمونه لاحق شوی وی، هغی نه به ورته نجات ورکړی، حضرت ابوذر ﷺ فرمائی حضور ﷺ دا آیت بار بار تلاوت کولو حتّی چې ماله خوب راغې او بیائی اوفرمائیل: یااباذر: لو انّ الناس کلهم اخذوا به لکفتهم. یعني اې ابوذر ! کچرته خلقو په دې حکم عمل کولې نو دې کښې ئې د ټولو مسائلو حل موجود دې

مفسرینو دې آیت په ذیل کښې دَحضرت عوف بن مالک اشجعی ﷺ قصه ذکر کړیده چه دَ حضور ﷺ خدمت کښې حاضرشو ،عرض ئی اوکړوچه یارسول الله ! چه ځماځوې (سالم یا عوف) دشمنانو قید کړیدې، او مونږ ډیری پریشانئ کښې یو ،حضور ﷺ ورته دَصبر تلقین اوکړو او ورته ئی اوفرمائیل: چه ځوی ته دې پیغام اولیږه چه رسول الله ﷺ تاته امرکوی چه ' لاحول ولاقوة الاّ بالله ' په کثرت سره وایه، ځوې ئی دشمنانو په زنځیرونو کښې تړلې وو ،زنځیرونه ورنه پخپله کلاؤ شول،په یو اوښ باندی سورشو راروان شو ،مخی ته ورته دَقوم ډیر اوښان میلاؤ شول،په یو روایت کښې دی چه څلورزره اوښان وو،هغه ئی هم دَځان سره راروان کړل،کورته را اورسیدلو ، آواز ئي اوکړو پلارئی اوونیل: داعوف دې وربّ الکعبة،مورئی اوونیل: افسوس عوف به څنګه راشی هغه خو په زنځیرونو کښې تړلې شویدې،چه دواړو دروازې ته منډه کړه، نو عوف ولاړ وؤ ، ډیر اوښان ورسره وؤ، پلار ته ئي خپله قصه اوکړه،پلار ئي ورته اوونیل (باوجود دَ دې چه ډیره تنګی وه وربانذی)، چه اودریږئ چه دَحضور ﷺ نه تپوس اوکړم، چه آیا دا اوښان مونږ د پاره جائزدی؟ حضور ﷺ ورته اوفرمائیل: دا ستاًمال دې ، څه دې چه خوښه وی ، هغه پرې اوکړه.(ابن کثیر)

﴿وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾ څوک چه په الله ﷻ اعتماد اوکړی الله ﷻ ورلره دَ ټولو کارونو پوره کولو ذمه وارشی،حدیث قدسی دې چه: اذا توکل عليّ عبدي لو کادته السمٰوات والارض جعلتُ له من بين ذلک المخرج،چه کله ځما بنده په ما توکل اوکړی نو کچری اسمان او زمکه ئی راګیر کړی نو بیا به هم څه ورته دَهغې نه لاره اوباسم(روح المعانی بحواله الزهد للامام احمد).

﴿إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ﴾ یعنی امراوفیصله دَالله ﷻ نافذه او پوره کیدونکی ده، د کوم څیز اراده چه الله ﷻ اوکړی، هغه خامخاکیدونکې وي. ﴿قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا﴾ یعنی

الله ﷻ دَ هرڅيزدپاره، که خوشحالي وي که غم يواندازه او يوه انتهاء مقررکړيده، چه دَهغي نه بو اندازه دَ عدت هم ده، يا﴿ قَدْرًا ﴾پمعنی دَتقديرسره دي. والمرادتقديره قبل وجوده(روح) بعنی هرڅه په تقدیردَ الله ﷻ سره کيږي نوهم الله ﷻ ته خپل کارونه سپارل پکاردي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالّٰٓئِیْ | یَىِٕسْنَ | مِنَ | الْمَحِیْضِ | مِنْ | نِّسَآىِٕكُمْ | اِنِ ارْتَبْتُمْ |

او هغه ښځې چه نااُميده شوی وی دَحيض نه، دَ ښځو ستاسو نه کچرته په شک کښې يئ تاسو(په عدة دهغوئ کښې)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَعِدَّتُهُنَّ | ثَلٰثَةُ | اَشْهُرٍ | وَّالّٰٓئِیْ | لَمْ | یَحِضْنَ | وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ | اَجَلُهُنَّ |

نوعدة دهغوئ دری مياشتې دي، او دَ هغو ښځو هم چه حيض ئې نه راځي. اوحاملې ښځې عدة دهغوئ دادي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ | یَّضَعْنَ | حَمْلَهُنَّ | وَمَنْ | یَّتَّقِ | اللّٰهَ | یَجْعَلْ لَّهٗ | مِنْ اَمْرِهٖ |

چه اوزيګوی حمل خپل(بچي پيداشي)، اوڅوک چه يريږي دَالله ﷻ نه اوبه ګرځوی ده لره په کاردهغه کښې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| یُسْرًا ۝ | ذٰلِكَ | اَمْرُ | اللّٰهِ | اَنْزَلَهٗۤ | اِلَیْكُمْ | وَمَنْ | یَّتَّقِ اللّٰهَ |

آسانی دا حکم دَالله ﷻ دي چه نازل کړې ئې دې تاسوته، اوهغه څوک چه يريږی دَ الله ﷻ نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| یُكَفِّرْ | عَنْهُ | سَیِّاٰتِهٖ | وَیُعْظِمْ لَهٗۤ | اَجْرًا ۝ |

نو لرې به کړی دَ هغه نه ګناهونه دَ هغه، او لوئ به ورکړی ورته اجر

﴿وَالّٰٓئِیْ یَىِٕسْنَ مِنَ الْمَحِیْضِ ﴾دی آيت کښې **دَعدت بيان دي**، روح المعاني وغيره مفسرينو دَ دې آيت شان نزول باره کښې ليکلي دی، چه کله دَسورة البقره آيت(۲۲۸)والمطلّقات يتربصن بانفسهن ثلثة قروء، نازل شو، نو څه کسانوعرض اوکړو: يارسول الله! چه دخنو ښځو دَ عدت متعلق حکم ذکرشوی نه دې: (۱)کم عمروالا(۲)اوډيرعمروالاچه حيض ئې نه راځي او (۳) حاملې ښځې ،نودَدوئ عدت څه دې؟ نوالله ﷻ دا آيت نازل کړو، نودلته دَغيرحائضې دَعدت بيان دې چه دَ دې دری(۳)صورتونه دی:

﴿وَالّٰٓئِیْ یَىِٕسْنَ ﴾ **دا اول صورت دې**، يعنې هغه ښځې چه دَ کبرسنې په وجه دَحيض نه نا اُميده شوی وی نوچه طلاق ورته ورکړی شی نوعدت ئې دری(۳)مياشتې دې.

﴿وَالّٰئِی﴾ مبتدا دي او ﴿فَعِدَّتُهُنَّ﴾ ئی خبر دي

**سنِ اياس** کښې اختلاف دي،بعض وائی(٦٠)کاله دي،بعض وائی(٥٥)کاله دي.ليکن اصح داده چه دَدې دپاره څه خاص زمانه معينه نه ده.بلکه دَدې انحصارپه جسمانی.او آب و هوا په تفاوت باندې دې.بس چه کله حيض بند شی نو دا'سنِ اياس' دي

﴿إِنِ ٱرْتَبْتُمْ﴾ شرط دلته پمنزله دَقيد اتفاقی دي، دَ واقع حکايت کوی. چې چونکه تا سو دَدې حکم نه جاهله يئ او سوال مو کړې دي، نودا ئې حکم دې. احتراز دَ پاره نه دي . چې کچرته شک کښې وئ نو بيائی داعدت دې، او که شک کښې نه وئ نو بيائی داعدت نه دي.

﴿وَالّٰئِی لَمْ يَحِضْنَ﴾ **دادويم صورت دې** ، چه دَ صغرسنی په وجه ورته حيض نه راځی. چه طلاق ورته ورکړې شی نودَدوئ عدت هم درې(٣)مياشتی دي﴿وَالّٰئِی لَمْ يَحِضْنَ﴾مبتداء دي او خبر ئې يامحذوف دي ای والئ لم يحضن کذالک،يا عطف دي په﴿وَالّٰئِی يَئِسْنَ﴾ باندې او ﴿فَعِدَّتُهُنَّ﴾ورله خبردي.

﴿وَأُولَٰتُ ٱلْأَحْمَالِ﴾ **دا دريم صورت دې** ، چه دَحمل په وجه ئې حيض نه راځی،نو دَ دوئ عدت وضع دَحمل ده،برابره خبره ده که طلاق ورته ورکړې شوې وی يامتوفیٰ عنهازوجهاوی او په سورة البقرة آيت(٢٣٤)والّذين يتوفون منکم.....کښې چه دکوم عدت يعنی څلورمياشتی لس(١٠) ورځی ذکردې، هغه دَغيرحاملی متوفّٰی عنهازوجهادې،اوچه حامله متوفّٰی عنها زوجها وی نوعدت ئې وضع دَحمل ده،اګرکه ورځ دوه پس ولې نه وی،حضرت عمرؓ فرمائی: لووُلدتْ وزوجهاعلی سريره،لم يُدفن حلّت،يعنی که خاوندئ تراوسه پوری دفن شوې هم نه وی اوبچې ئې اوشی نوعدت ئې ختم شی،باقی تفصيل په کتب دفقه کښې مذکوردې.

﴿وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّهُۥ مِنْ أَمْرِهِۦ يُسْرًا﴾څوک چه ځان کښې تقویٰ پيدا کړی الله ﷻ به ورته ټول کارونه اسان کړی. 'من' يا بيانيه دي، يا پمعنی'فی' دي(روح)﴿ذَٰلِكَ﴾اشاره مذکوره احکاماتونه ده.

أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ

اُسوئ دا مطلقې ښځې چرته چه تاسو اُوسیږئ دخپل طاقت مطابق.اوضررمه رسوئ هغوئ ته

لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ ۚ وَإِن كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ

چه تنګی راولئ په هغوئ،اوکچرته وی دغه مطلقې ښځې حاملې نونفقه کوئ پدوئ تردې چه اوزیګوی

حَمْلَهُنَّ ۚ فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ۖ وَأْتَمِرُوا

حمل خپل. پس کچرته تې ئې(پئ)ورکولوستاسودپاره.نوورکړئ هغوئ ته مزدوری دهغوئ،اومشوره کوئ

بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ ۖ وَإِن تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ ⑥

په خپل مینځ کښ په نیکئ سره،اوکه سختی اوکړئ تاسوپه یوبل نوبیا دې تې ورکړی بچی ته بله ښځه

لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ ۖ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ

خرچه دې کوی خاونددغنادخپل طاقت موافق،اوهغه څوک چه تنګ کړې سوې وی په هغه رزق دهغه

فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ ۚ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا

نوخرچه دې کوی دهغی مال نه چه ورکړې وی ورته الله جل جلاله.نه احوی بار الله جل جلاله په چا مګر

مَا آتَاهَا ۚ سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ⑦

د هغې چه څومره ئې وس ورکړې وي ورته . زرده چه اوبه ګرځوی الله جل جلاله ورستودسختئ نه آسانی

﴿أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم﴾ دی کښ هم دَ عدت مسائلو بیان دې ، چه معتدهٔ لپاره حسبِ استطاعت تر انقضاء دَعدت پوری دَسکنیٰ انتظام دَخاوندپه ذمه واجب دې،امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز طلاق رجعی اوبائن دواړوکښ سکنیٰ اونفقه دواړه واجب دی،ځکه چه سکنیٰ واجبه شی ، نو ښکاره خبره ده چه خوراک هم دَخاوندپه ذمه شی،کچرته صرف سکنیٰ مراد شی نو دَ هغی حکم خومخکنی آیت﴿لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِن بُيُوتِهِنَّ﴾ کښ تیر دې، بله داچه دَابن مسعود رضی الله عنه په قراءت کښ "اسکنوهنّ من حیث سکنتم وانفقوا علیهنّ" راغلې دې،په دې سره هم دَ

امام صاحب قول تائید کیږی، دغه شان دَفاطمه بنت قیس رضي الله عنها قول حضرت عمر رضي الله عنه رد کړې وُ چه حضور ﷺ ماته وئیلی وُ چه: لاسکنٰی لکِ ولانفقة، په هغه وخت کښې چه کله ماته خاوند درې طلاقه راکړی وُ، نوحضرت عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائیل: لاندعُ کتاب ربّناولاسنة نبینابقول امرأةٍ لاندری صدقت ام کذبتْ حفظت ام نسیت، یعنی مونږ دَ یوې ښځې په وینا سره دَالله تعالیٰ کتاب او دَ هغه دَرسول سنت نشوپریښودلې، چه دانه ده معلومه مونږ ته، چه دیته یاد دي که ورنه هیر دی، صادقه ده که کاذبه، ظاهره ده چه دَحضرت عمر رضي الله عنه مراددکتاب الله نه هم داآیت دې. او دَ دینه استدلال کوی چه مطلقی ثلاثه ته نفقه اوسکنٰی دواړه واجب دی، اودَسنت ئی مراد دا وُچه دې فرمائی: ماپخپله دَحضور ﷺ نه اوریدلی دی یقول لهاالسکنی والنفقة (طحاوی وغیره).

﴿مِنْ حَيْثُ﴾ کښې "من" یاتبعیضیه دې، یعنی دَخپل کورپه څه ځائ کښې ورله ځائ ورکړئ. اوکه صرف یوه کمره وی ، نوپه طلاق بائن کښې یوځائ اوسیدل جائزنه دی بلکه یوه پرده به حائله کړی، یا "من" ابتدائیه دې ﴿وَلَا تُضَآرُّوهُنَّ﴾ یعنی په خوراک، سکنٰی کښې وربانده سختی مه کوئ چه هغه مجبوره شی اوتنګه شی، دکورنه اوځی ﴿وَإِن كُنَّ أُولَٰتِ حَمْلٍ﴾ یعنی که چرته دامطلقه حامله وی نوهغی ته هم دَوضع حمل پورې نفقه ورکوئ، که څوک سوال: اوکړی چه هرکله دَاحنافوپه نیزهرقسمه مطلقی ته سکنٰی اونفقه دواړه واجب دی نودَ ﴿وَإِن كُنَّ أُولَٰتِ حَمْلٍ﴾ ذکرکولوڅهٔ ضرورت وُ؟جواب: دادې چه مده دَحمل کله کله اوږده شی نوچابه وهم کولو چه کیدیشی دری میاشتونه زیات نفقه، سکنٰی ساقطیږی، نودَ دې وهم نفی اوشوه (کشاف).

﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ﴾ دیکښې بل حکم ذکرکیږی چه دَوضع حمل نه ورستوکچرته مطلقه ښځه ستاسو بچی ته پئ ورکوی نوهغی ته به دَپئ ورکولومزدوری ورکوئ.

﴿وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ﴾ یعنی دَدستوراومعمول مطابق دَیوبل رضامندئ اومشوری سره اجرت مقرر کړئ.

﴿وَإِن تَعَاسَرۡتُمۡ﴾ يعني كه تاسو د يو بل نه تنګ شئ، نه مور مناسب اجرت باندې پئ ورکوي او نه پلار ورته مناسب اجرت ورکوي، نو بله ښځه دې پئ ورکړي. ﴿فَسَتُرۡضِعُ لَهُۥٓ أُخۡرَىٰ﴾ خبر دې پمعنی د امر، ضمنًا او اشارةً پکښې عتاب دې.

﴿لِيُنفِقۡ ذُو سَعَةٖ مِّن سَعَتِهِۦ﴾ يعني په خرچ کښې د سړي د حيثيت خيال اوساتلې شي. که مالداره وي نو د خپل حيثيت موافق دې خرچ اوکړي، او که غريب وي نو هغه دې خپل حيثيت ته اوګوري ﴿لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفۡسًا﴾ علت دې د ماقبل

| |
|---|
| وَكَأَيِّن مِّن قَرۡيَةٍ عَتَتۡ عَنۡ أَمۡرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهِۦ فَحَاسَبۡنَٰهَا |
| او ډير د کلو نه داسې وو چې نافرماني ئې کړې وه د حکم د رب خپل نه، او د رسولانو دده نه، نو حساب اوکړو مونږ ورسره |
| حِسَابٗا شَدِيدٗا وَعَذَّبۡنَٰهَا عَذَابٗا نُّكۡرٗا ٨ فَذَاقَتۡ وَبَالَ أَمۡرِهَا وَكَانَ |
| حساب سخت او عذاب ورکړو مونږ ورته عذاب ناآشنا (سخت) پس اوڅکلو هغوئ عذاب د کار خپل او وو |
| عَٰقِبَةُ أَمۡرِهَا خُسۡرًا ٩ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمۡ عَذَابٗا شَدِيدٗا فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ |
| انجام د کار د هغوئ زيان مند تيار کړيدې الله جل جلاله دوئ لپاره عذاب سخت، پس اوويريږئ د الله جل جلاله نه |
| يَٰٓأُوْلِي ٱلۡأَلۡبَٰبِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قَدۡ أَنزَلَ ٱللَّهُ إِلَيۡكُمۡ ذِكۡرٗا ١٠ |
| اې خاوندانو د عقل، هغه کسانو چه ايمان ئې راوړيدې، په تحقيق نازل کړيدې الله جل جلاله تاسو ته نصيحت |
| رَّسُولٗا يَتۡلُواْ عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ مُبَيِّنَٰتٖ لِّيُخۡرِجَ ٱلَّذِينَ |
| (رالیږلې ئې دې) رسول چې لولي په تاسو باندې داسې آياتو نه د الله جل جلاله چې ښکاره کونکي دي حکماتو لره چه راوباسي هغه خلق |
| ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِۚ وَمَن يُؤۡمِنۢ |
| چه ايمان ئې راوړيدې او عملونه ئې کړيدي نيک د تيارو (د کفر او ګمراهئ) نه نور د ايمان ته، او هرچاچه ايمان راوړو |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِاللّٰهِ | وَيَعْمَلْ | صَالِحًا | يُّدْخِلْهُ | جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ | تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | |
| په الله ﷻ او عمل ئې اوكړو نيک داخل به كړي هغه جنتونو ته چه بهيږي به د لاندې د هغې نه نهرونه | | | | | | | | | |
| خٰلِدِيْنَ | فِيْهَآ | اَبَدًا | قَدْ | اَحْسَنَ | اللّٰهُ | لَهٗ | رِزْقًا | ⑪ | |
| هميشه به وي به هغې كښې هميشه. يقيناً ښائسته تيار كړيدي الله ﷻ هغه لپاره رزق | | | | | | | | | |

﴿وَكَاَيِّن مِّن قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا﴾ داتخويف دنيوى اواُخروى دې چې الله ﷻ اودهغه رسول كوم احكامات دركوي په هغې باندې عمل كوئ.كوموخلقو چې دهغې تكذيب اونافرماني كړيده، دهغوئ انجام ته اوګورئ، دنيا او آخرت دواړه ئې تباه شويدى، لهذا د هغوئ نه عبرت واخلئ.

﴿فَحَاسَبْنَٰهَا حِسَابًا شَدِيدًا﴾ دې كښې دنيوى عذاب ذكر دې چې دنيا كښې ترينه مونږ د ګناهونو حساب واغست،او سخت حساب موترينه واغست،اوتباه وبرباد مو كړو.﴿وعذبناها عذابا نكرا﴾ عطف تفسيرى دې چې په دنيا كښې موروته ناآشنا عذاب وركړو،﴿ فذاقت وبال امرها﴾ داپه ماقبل تفريع ده چې نافرمانئ انجام ئې داشو چې دنيا ژوند ئې تباه شو.

﴿ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمْ ﴾ ديكښې داخروى عذاب ذكر دې چې صرف دانه چې دنيائي تباه شوه بلكه آخرت كښې به ورله هم الله ﷻ سخت عذاب وركوى. ﴿فاتقوا الله﴾ داپه ماقبل تفريع ده،چې الله ﷻ اورسول دَاحكاماتو بغاوت انجام سابقينو خلقو داوؤ چې دنيائى هم تباه شوه او آخرت هم،نوتاسو دعقل نه كارواخلئ اوالله ﷻ نه اويريږئ كوم كتاب ئې چې نازل كړيدې اوكوم رسول ئې چې درته راليږلې دې دهغه اتباع اوكړئ،ديكښې ستاسو دنيوى فائده هم ده اواخروى هم.

﴿ذِكْرًا﴾اصح قول دادې چې دينه مراد قرآن مجيد دې ﴿رَّسُولاً ﴾مفعول به دې دَفعل محذوف دَپاره، اي ارسل رسولا

| | |
|---|---|
| اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ ۚ يَتَنَزَّلُ | |
| الله جل جلاله هغه ذات دي چه پيدا كړي ئې دي وه آسمانونه او زمكې په مثل دآسمانونو نازليږي | |
| الْاَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۙ | |
| حكم دالله جل جلاله په مينځ دَدغوكښې چه پوهه شئ تاسوچه بيشكه الله جل جلاله په هرڅه باندې قادردې، | |
| وَّاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا ⑫ | |
| اوبيشكه چه الله جل جلاله په تحقيق سره احاطه كړيده په هرڅيزدَجهته دعلم نه | |

﴿ اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ﴾دا په آخرت دَسورة كښې دليل عقلي دې په توحيد ،اونفى دَشرک فى التصرف ده،چه دَاسمانونو اوزمكو خالق تن تنها الله جل جلاله دې،دټولو كائناتو متصرف او مختار هم صرف هغه دې،نودَعبادت هم صرف هغه لائق دې.

﴿وَمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾ مثلهنّ مفعول دې دَفعل محذوف اى وخلق من الارض مثلهنّ،يعنى زمكې هم الله جل جلاله دَاسمانونو په شان پيداكړيدى،مماثلت اشتراک ته وائى په بعض صفاتو كښې، نو ديكښې خواتفاق دې چه اسمانونه وه(۷)دى،او دَ يو بل دَ پاسه دى، كقوله تعالى:الم تروا كيف خلق الله سبع سموات طباقًا، دغه شان دا هم قطعى ده چه زمكې اووه(۷)دى، څكه دى باره كښې صريح احاديث دى لكه په بخارى،مسلم وغيره كښې دى من اخذ شبراً من الارض ظلمًا فانه طوقه يوم القيامة من سبع ارضين،يعنى څوک چه دَچانه په ظلم سره يوه ليشت زمكه هم واخلى نو قيامت په ورځ به ورته غاړى ته دَ ووَ(۷)زمكو طوق اچولې شى. ليكن كيفيت كښې ئې اختلاف دې، **نوجمهور وائى** چه دا اووه(۷) زمكې دَاسمانونو په شان يوبل دَ لاندى دى، او دَ هرى زمكې په مينځ(۵۰۰)كاله مسافت دې په شان دآسمانونو.اوپه هرزمكه كښې او سيدونكى مخلوقات دى چه حقيقت ئې صرف الله جل جلاله ته معلوم دې،**بعض وائي** : اووه زمكې دى خويوبل سره مطبقى دى فاصله پكښې نشته(قرطبى).

**بعض وائي** : زمكه يوه ده خو وه حصى ورنه مراددى،چه دَهرى حصى دَبلى نه جدائى په سمندر سره راغلې ده،چه هغى ته اووه براعظم وائى،لكه ايشيا ،يورپ،شمالى افريقه،جنوبى افريقه،امريكه،انټارټيكا،استريليا.( روح المعانى).

**بعض وائی** چه مثلیت دَزمکی اسمانونوسره صرف په خلق کښ دي نه په عدد کښ،یعنی زمکه هم دَاسمانونوپه شان دَالله تعالیٰ مخلوق ده.لیکن داقول رد دي په حدیث سره چه ذکر شو. او دغه رنګه بل حدیث کښ دی:اللّٰهم ربّ السّموات السبع وماأظللن ورب الارضين السبع و ما اقللن....(شرح مشکل الآثار للطحاوي، عمل اليوم و الليلة للنسائي)دی توجیهاتو نه علاوه نور توجیهات هم شته، لیکن اصح قول دَجمهوردي کوم چه اول ذکرشو(والله اعلم).

﴿يَتَنَزَّلُ ٱلْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ﴾امرنه مرادامرتکوینی لکه حیات،موت،غنیٰ،فقر،صحت،بیماری هم دي اوامرِتشریعی هم دي،او﴿ بَيْنَهُنَّ ﴾ضمیرراجع دي تولواسمانونو او تولوزمکوته.

﴿لِتَعْلَمُوٓا أَنَّ ٱللَّهَ ﴾ متعلق دي یادَ خلق سره،یاتقدیردارنګه دي:اخبرتُکم بذلکِ لتعلموا یااعلمتکم بذلک لتعلموا.

| ركوعاتها «۲» | سورة التحريم مدنية | اٰياتها «۱۲» |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي سروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل «۶۶» وحسب النزول «۱۰۷»**

نزلت بعدالحجرات و قبل التغابن

**ربط:** سورة التحريم د سورت الحديد په مضامينو باندې متفرع سورتونو كښې آخري سورت دې، او ديكښې د سورت الحديد دواړه مضمونونه يعنى انفاق فى سبيل الله اوجهاد بيانيږي.خو انفاق مسئله پكښې ضمناً او اشارتاً، او د قتال ذكر پكښې صراحتاً شوې دې.

**خلاصه:** اول كښې تمهيددې،خطاب دې حضورﷺ ته چه خپل اهل دَخلاف رضادَبارى تعالى دكارونونه منع كړه،بل خطاب دې مؤمنانوته چه خپل ځان اواهل وعيال دَاورنه بچ كړئ، دَهغى نه بعدامردَانفاق فى سبيل الله دې اشارةً،اوامردَجهاددې صراحتًا،اخركښې مثالونه بيانيږى دَدى دپاره چه مداردَنجات په ايمان اوعمل صالحه دې،اومداردَهلاكت په كفر دې(تمت).

| يٰٓاَيُّهَا | النَّبِيُّ | لِمَ | تُحَرِّمُ | مَآ | اَحَلَّ | اللّٰهُ | لَكَ | تَبْتَغِيْ | مَرْضَاتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اي | نبیﷺ | ولی | حراموي | ته | هغه | چه | حلال کړيدی | الله جل جلاله تالره، | غواړی ته رضامندی |

| اَزْوَاجِكَ | وَ | اللّٰهُ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ | ① |
|---|---|---|---|---|---|
| د بيبيانو خپلو | او | الله جل جلاله | بخونكې دې | مهربانه دې | |

﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ ﴾ دا تمهيد دې، او نبي كريم ﷺ ته حكم دې، چې د الله رضامندي غواړه، د بيبيانو د رضامندئ د پاره د الله جل جلاله رضا مندي خلاف كار او نه كړې.

دَدى آياتونوشان نزول باره كښې صحيح قول هغه دې چې په صحيحينووغيره كښې دَحضرت عائشهؓنه منقول دى چه دَحضورﷺمعمول وۆ چه دَ مازيګر مونځ نه ورستو به ئې دَ خير خبر

اغستلو د پاره لړوخت دازواجو مطهراتو کورونو ته تشریف وړلو. ام المؤمنین حضرت زینب ﷺ ته چا ګبین په هدیه کښې ورکړې وو، چه کله به حضور ﷺ د دې خوانه تشریف یوړلو. نو دې به ورته دګبین شربت جوړکړو چه د دې په وجه به دې سره لګ زیات حصارشو. په دې وجه به بی بی عائشه ﷺ اوبی بی حفصه ﷺ خفه کیدلې، نو یو تدبیر منصوبه ئې جوړه کړه چه حضور ﷺ هلته د حصاریدلو نه اوګبین څکلو نه منع شو. هغه دا چه دګبین څکلو نه ورستو چه د کومې بی بی خوا ته تشریف یوړو، نو هغې به ورته اووئیل. یارسول الله آیا تا مغافیرخوړلی دی؟ ستاسو د خولې مبارکې نه خود مغافیرو بوئ راځی، "مغافیر" یو خوږ څیز وو لیکن بدبو داره وو، او نبی ﷺ بدبوئ ډیره بدی شوه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه مغافیرمې نه دی خوړلی، بلکه دګبین شربت مې څکلې دې. انده به ئې نه څکمه، په ماباندې حرام دی. اوبی بی حفصه ﷺ ته ئې اووئیل داخبره امانت اوساته څوک پرې مه خبره وه. هغې عائشه ﷺ ته اوئیل نو الله پاک داآیاتونه نازل کړل.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَدْ | فَرَضَ | اللّٰهُ | لَكُمْ | تَحِلَّةَ | اَيْمَانِكُمْ | وَاللّٰهُ |

په تحقیق سره مقررکړیدې الله ﷻ ستاسو لپاره حلال والې دقسمونوستاسو(په کفارې) سره اوالله ﷻ

مَوْلٰىكُمْ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ۝٢ وَاِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ

مددګاردې ستاسو، اوهغه ښه عالم ښه حکمت والادې. اوکله چه پټه اوکړه نبی ﷺ یو بی بی خپلې ته ( حفصی ﷺ )

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حَدِيْثًا | ۚ | فَلَمَّا | نَبَّاَتْ | بِهٖ | وَاَظْهَرَهُ | اللّٰهُ |

یوه خبره، پس کله چه خبرورکړوهغې بی بی(حفصه ﷺ) د هغې خبرې(عائشه ﷺ ته)اوښکاره کړه هغه خبره الله ﷻ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | عَرَّفَ | بَعْضَهٗ | وَاَعْرَضَ | عَنْۢ | بَعْضٍ ۚ | فَلَمَّا |

په نبی ﷺ باندې، ظاهره کړه نبی ﷺ بعض خبره اواعراض ئې اوکړو د بعضې خبرې نه، پس کله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نَبَّاَهَا | بِهٖ | قَالَتْ | مَنْ | اَنْۢبَاَكَ | هٰذَا ۖ | قَالَ |

چه خبرکړه نبی ﷺ بی بی حفصه پدغه خبره باندې هغې اوئیل چاخبرکړې ته پدې خبرې، نبی ﷺ اووئیل

| نَبَّأَنِيَ | الْعَلِيمُ | | الْخَبِيرُ | ③ |
|---|---|---|---|---|
| خبراکړوماته | هغه | الله جل شانه چه | عالم | دي | خبرداردي |

﴿قَدْ فَرَضَ ٱللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَـٰنِكُمْ﴾ بعضُ روایاتوکښ دی چه حضورﷺقسم کړې وؤ، نو دې آیت کښ ورته دَقسم ماتولوحکم دې په ذریعه دکفاری سره.بعضی وائی قسم ئی نه وؤ کړې، بلکه مباح څیزپه ځان حرامول قسم دې،نوځکه دکفاری حکم اوشو،دی کښ اختلاف دې چه آیاحضورﷺکفاره اداکړې وه اوکنه؟نوبعضِ وائی چه نه وه اداکړې، ځکه چه داتعلیم دې مؤمنانوته،حضورﷺمغفوردې دَماتقدم وماتأخرمن ذنبه،لیکن صحیح داده چه رقبه ئی ازاده کړې وه.

﴿تَحِلَّةَ أَيْمَـٰنِكُمْ﴾ تحلة په اصل کښ تحللةدې یولام بل لام کښ مدغم شویدې،مأخوذ دې دَ حل نه،پرانستل او حلالولوته وائی،مراد ورنه کفاره دَقسم ده چه بیان ئی په مائده آیت(۸۹) کښ تیرشویدې،

﴿وَإِذْ أَسَرَّ ٱلنَّبِىُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَٰجِهِۦ حَدِيثًا﴾بعض ازواجه نه مراد حضرت حفصه رضي الله عنها ده اوپته خبره دا وه چې ګبین می په ځان حرام کړې دې،آئنده به دَحضرت زینب رضي الله عنها سره نه څکم.

﴿فَلَمَّا نَبَّأَتْ﴾نبی کریم ﷺ داخبره حضرت حفصه رضي الله عنها ته اوکړه ، خوورته ئی داهم اوئیل چې دابل چاته مه وایه، چونکه دا دَحضرت حفصه اوحضرت عائشه رضي الله عنها مشترکه منصوبه وه،نو که نور چاته ئی نه وئیلو هم، حضرت عائشه رضي الله عنها ته خو به ئی وئیلو، نو ځکه حفصه رضي الله عنها ددې ذکر عائشه رضي الله عنها سره اوکړو،الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته دَدې خبرورکړو. نبی کریم ﷺ دَ حضرت حفصه رضي الله عنها نه دَدې ګله اوکړه چې تاځما راز ښکاره کړو، «نبأت»کښ ضمیرراجع دې حفصهرضي الله عنهاته، یعنی حفصهرضي الله عنهاداخبره عائشهرضي الله عنهاته اوکړه.

﴿وَأَظْهَرَهُ ٱللَّهُ عَلَيْهِ﴾ جمله حاليه ده يعنى الله ﷻ دا خبره حضور ﷺ ته ظاهره كړى وه چه ستا راز ئي ښكاره كړيدې.

﴿عَرَّفَ بَعْضَهُۥ وَأَعْرَضَ عَنۢ بَعْضٍ﴾ يعنى حضور ﷺ حفصه ؓ ته ګله اوكړه چه خمارازدى ښكاره كړو، ليكن دَحسنِ اخلاقو په وجه ئى ورته ټوله خبره اونكړه . بلكه صرف ئى دومره ورته اوئيلو چې ګوره تا څما راز ښكاره كړو، لپاره دَدى چه هغى ته ندامت كم وى.

﴿فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِۦ﴾ نبا كښې ضمير مستتر رسول پاك ﷺ ته راجع دې، او "ها" ضمير راجع دې حفصه ؓ ته ﴿قَالَتْ مَنْ أَنۢبَأَكَ هَٰذَا﴾ حفصه ؓ ورته اووئيل چه ته چاپدى خبر كړى چه ما ستا راز ښكاره كړې دې، ګمان ئى داؤچه عائشه ؓ ورته وئيلى دى

﴿قَالَ نَبَّأَنِيَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْخَبِيرُ﴾ يعنى ماته هغه ذات خبرراكړې دې چه دَهغه نه هيڅ هم پټ نه دى.

**فائده**: دينه معلومه شوه چه حضور ﷺ ته دَغيب علم نه وؤاودَغه شان دَازواج مطهراتوهم داعقيده وه چه حضور پاك ﷺ ته علم غيب نشته.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِن | تَتُوبَآ | إِلَى | ٱللَّهِ | فَقَدْ | صَغَتْ | قُلُوبُكُمَا | ؕ |

كه توبه اوباسئ تاسى دواړه الله ﷻ ته نودا په تاسوضرورى ده څكه چه بې شكه كاږه شويدى زړونه ستاسو(دَحق نه)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِن | تَظَٰهَرَا | عَلَيْهِ | فَإِنَّ | ٱللَّهَ | هُوَ | مَوْلَىٰهُ | وَجِبْرِيلُ |

اوكچرته تاسومددكوئ دَيوبل په مقابلې دَپيغمبر كښې نوبيشكه الله ﷻ هغه ئى مددګاردې اوجبرئيل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَصَٰلِحُ | ٱلْمُؤْمِنِينَ | وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ | بَعْدَ | ذَٰلِكَ | ظَهِيرٌ | ④ |
| اونيكان | مؤمنان | (ئى هم مددګاردى)، اوفرشتې | ورستودَدينه | ئى | مددګارانى | دى |

﴿إِن تَتُوبَآ إِلَى ٱللَّهِ﴾ دې كښې ترغيب دې توبې ته، اوخطاب حضرت حفصه اوعائشه رضي الله عنهما ته دې، چې كه توبه اوباسئ نوبه تاسو دَپاره خه وى، څكه چې تاسو كوم كار كړې

دي، دا مو دَ معاشرت آدابو خلاف کارکړي دي. داشرط دي جزاءمحذوفه ده چه فذاک واجبٌ، یا فکان خیرالکما، یا یمح اثمکما(روح وغیره)

﴿ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا﴾ ای زاغت ومالت عن الحق(قرطبی)، داقائمقام دَجزاءِمحذوفه دي او سبب دَتوبی دي، چه بیشکه ستاسودَدواړو زړونونه مائله شویدی د حق نه دیته چه دَ زینب ﷺ خصوصیت ختم کړئ، اوپیغمبر علیه السلام ځان ته راواړه وئ، نوداا گرچه فی نفسه حسن دي ځکه چه لوئ سعادت دي، لیکن مستلزم دي قبیح لره، چه حق تلفی ده دَبلی زوجی. اوقبیح لره مستلزم قبیح وی. نو په دی وجه توبه ضروری ده(تهانوی رحمه الله)

بعض دَ﴿ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا﴾ معنی داکوی چه:مالت قلوبکماالی التوبة(قرطبی)یعنی ستاسو زړونه توبې ته مائله شوی دی، لهذاتوبه اوباسئ«قلوبکما» په اصل کښ "قلباکما"دي، اضافت دَ تثنیه، تثنیه ته ثقیل اوشنیع وی دَعربوپه نیز، نوپدي وجه دَتثنیه په ځائ جمع راوړې شوه،

﴿وَإِن تَظَٰهَرَا عَلَيۡهِ ﴾اوکه تاسو دَدي کارنه توبه نه اوباسئ دغه شان مشترکه منصوبې جوړه وئ او دَیوبل مدد کوئ، دَپیغمبر ﷺ په خلاف، نوواورئ چې تاسو هغه ته پدي سره هیڅ نقصان نشئ رسولې، ځکه چې الله ﷻ ،جبرئیل علیه السلام ،نیک مؤمنان اوملائک دَهغه مددګار دی

﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ مَوۡلَىٰهُ ﴾ ابوحیان رحمه الله په البحر المحیط کښ فرمائی چی چي په "مولی" باندي وقف احسن دي، او«جبرئیل» مبتدا دي او «صالح المومنین» او «الملائکة» ورباندی عطف دي، او«ظهیر» ورله خبر دي، اوځني مفسرینو په«وصالح المؤمنین» باندي وقف کړیدې، دي صورت کښ «جبرئیل» او «صالح المؤمنین» جدا جدا مبتدا دی، اوهر یوله خبر"مولاه"محذوف دي.

﴿وَصَٰلِحُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾دینه مراد تول مؤمنان دي، اوحضرت ابوبکر اوعمر رضی الله عنهما پکښ بطریق اولی سره داخل دی.یعنی که تاسودَپیغمبرﷺ خلاف منصوبی جوړه وئ، نو تول مؤمنان حتی چی تاسو پلاران به هم ستاسو مخالفت او دَ پیغمبر ﷺ حمایت کوی،

«صالح»یا اسم جنس دی،او یا صیغه دَجمع «صالحون» ده. نون د جمع په وجه دَاضافت غورځیدلې دې،او واؤ رسم الخط کښې غورځولې شوې دې.لکه ویدع الانسان‌کښې اوسندع الزبانیة کښې غورځولې شوې دې.

﴿بَعْدَ ذَٰلِكَ﴾ مشارالیه نصرت خداوندی ،نصرت دَجبرئیل اومؤمنانو دې،او بعد پمعنی دَ مع کښې دې اي والملائکه مع ذلک ظهیر."ظهیر"صیغه دَمفرد راوړلو کښې اشاره ده دیته چې دا ټول یومتې اولاس دې دَپاره دَمدد دَپیغمبر نودوه زنانه به څه اوکړي؟

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَسٰى | رَبُّهٗٓ | اِنْ | طَلَّقَكُنَّ | اَنْ | يُّبْدِلَهٗٓ | اَزْوَاجًا | خَيْرًا مِّنْكُنَّ |

قریب دې رب دَده،کچرته طلاق درکړی تاسوته، چه بدل کښی ورکړی ورته بیبیانی بهتری ستاسونه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُسْلِمٰتٍ | مُّؤْمِنٰتٍ | قٰنِتٰتٍ | تٰٓئِبٰتٍ | عٰبِدٰتٍ |

چه هغه به مسلمانانی وی مؤمنانی به وی تابعداری به وی ،توبه ویستونکی به وی عبادت کونکی به وی.

| |
|---|
| سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّاَبْكَارًا ۝ |
| روژه‌نیونکی به‌وی ثیبې اوپیغلې |

﴿ عَسَىٰ رَبُّهُۥٓ إِن طَلَّقَكُنَّ أَن يُبْدِلَهُۥٓ ﴾داتنبیه ده ازواج مطهراتوته،اودَهغوئ دَدی خیال تردیددې، چه کچرته پیغمبر علیه‌السلام مونږته طلاق راکړی نوکوربه نی وران شی،زمونږپه شان به ورته نشی میلاوی،الله ﷻ ورته فرمائی چه څه په دی قادره یمه چه ستاسونه غوره بیبیانی به ورته عطاکرمه،دَدینه دانه لازمیږی چه دَدی نه غوره ښځی پدغه وخت کښې موجودی وی، بلکه مطلب دادې چه کله دوئ ته دَنافرمانئ په وجه طلاق ورکړې شی نودوئ به پدی صفت پاتی نشی، نوښکاره خبره ده چه بیابه نوری دَدوئ نه غوره شی. (کبیر).

﴿مُسْلِمَٰتٍ﴾ یعنی منقادې به وی دَپیغمبر ﷺ، ظاهراً هم او﴿مُّؤْمِنَٰتٍ﴾ باطنًا هم .

﴿سَٰٓئِحَٰتٍ﴾ ابن عباس رضی الله عنه نی معنی "صائمات" کوی،سیاحت نه مشتق دې.چونکه صائم هم توله ورځ دَلوګی تندی میدان طې کوی نوځکه ورته سائح وائی. (روح)

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا وَّقُوْدُهَا النَّاسُ |
| اې ايمان والؤ اوساتئ ځانونه خپل اوبال بچ خپل د اورد جهنم نه چه خشاک دهغې خلق دي |
| وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ |
| اوکاڼي دي.پدې اورمقرري دې داسي فرشتې چه سخت زړه والا دي تکړه دي نه کوي نافرماني دالله ﷻ |
| مَآ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ۞ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| په هغې کښې چه حکم ئې ورته کړې دی اوکوی هغه څه حکم ورته کولې شي اې کافرانو |
| لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۞ |
| عذرمکوئ نن ورځ . بیشکه بدله درکولې شي تاسو ته د هغې چه تاسو به کول |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ﴾ دا اول خطاب دې مؤمنانو ته، چې اهل و عيال په خواهشاتو مه چليږئ، بلکه د الله ﷻ احکاماتولاندې خپله هم ژندګي تيره وئ او اهل عيال ته هم د دې حکم کوئ ،لپاره د دې چه خپل ځان او اهل وعيال د اور د جهنم نه بچ کړئ.ځان بچ کول په ترک د معاصيؤ او په کولو د طاعاتوسره دی،اواهل بچ کول دادی چه ورته نصيحت اوکړې شي،او ادب ورته ورکړې شي، اودينی تربيت ئې اوکړې شي. حديث شريف کښې راځي: الاکلکم راع وکلکم مسؤول عن رعيته، فالامام الذي على الناس راع، وهو مسؤول عن رعيته، والرجل راع على اهل بيته وهو مسؤول عن رعيته، والمرأة راعية على اهل بيت زوجها وولده، وهي مسؤولة عنهم(صحيح البخاري٧١٣٨)

بل روايت کښې راځي مرو اولادكم بالصلاة وهم ابنا عشر.وفرقوا بينهم في المضاجع، (ابوداؤد:٤٩٥) يو بل روايت کښې راځي : مانحل والد ولدا افضل من ادب حسن(الترمذي ١٩٥٢) يعنی دځه ادب خودلونه افضله څه عطيه نشته چې پلار خپل ځوی له ورکړي.

د حضرت علي ﷺ ددې تفسيرداسې انقل دې چه:علّموا انفسكم واهليكم الخير و ادّبوهم (روح المعاني).

پدی آیت سره استدلال کړې شویدې چه واجب دی په سړی باندې چه خپل اهل وعیال ته دَ فرائضو حلال حرام وغیره احکاماتو تعلیم ورکړی(روح)

﴿وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلْحِجَارَةُ﴾ الناس نه مرادمشرکان دی او الحجارة نه مراد دَدوئ بتان دی چه کاڼووغیره نه ئې جوړکړی وؤ ، ﴿عَلَيْهَا مَلَٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ﴾ دَنجات لپاره یوځوطریقې وی دلته دَهغې تولونفې ده . یو دا چه دَچاپړی شفقت راشی،زړه ئې وربانډی اوسوزی،نودلته دَدې نفې ده چه په جهنم داسې فرشتې مقررې دی چه ﴿ غِلَاظٌ﴾ بې شفقته دی. که څوک ورته ډیره ژړا فریاد اوکړی ، خوزړه به ئې وربانډی نه سوزی. دویم داچه په زور زبردستې ځان خلاص کړی، نو دَ دې نفی اوشوه چه﴿ شِدَادٌ﴾ پهلوانانې دی، اقویاءعلی الافعال الشدیدة(روح). دریم دا چه په رشوت او سفارش ترینه ځان خلاص کړي ، نو د دې نفي اوشوه چې ﴿لَّا يَعْصُونَ ٱللَّهَ﴾ دَ الله ﷻ دَحکم نافرمانی نه کوی،په رشوت یاشفارس ورنه ځان څوک نشی خلاصولې،څه چه ورته الله ﷻ حکم اوکړی صرف هغه کوی.((لا یعصون الله)) او ((یفعلون مایؤمرون)) کښې فرق دادې چې عدم عصیان نه مراد احکامات قبولو نه انکار کول،او ((یفعلون ما یؤمرون)) نه مراد حکم مطابق هغې باندې عمل کول اوهغې پوره کولو کښې سستی نه کول دی.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ تخویف اخروی دې کافرانوته﴿لَا تَعْتَذِرُوا۟ ٱلْيَوْمَ﴾ دینه مخکښې يُقال لهم عنددخول النار مقدردې،یعنی چه کله ملائکې دَجهنم کافران اورته داخله وی نوورته به اووائې چه نن ورځ ستاسوهیڅ عذرقبول نه دې،بیشکه تاسوته دَهغې عملونوبدله میلاویږی چه تاسوپه دنیاکښې کول.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ تُوبُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُكَفِّرَ |
| اې ایمان والؤتوبه اوباسئ الله ﷻ ته توبه خالصه،قریبه ده چه رب ستاسولرې به کړی |
| عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ يَوْمَ |
| ستاسونه ګناهونه ستاسواوداخل به کړی تاسوجنتونوته چه بهیږی به دَلاندی دَهغې نه نهرونه،په هغه ورځ |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا يُخْزِي | اللّٰهُ | النَّبِيَّ | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | مَعَهٗ | نُوْرُهُمْ | يَسْعٰى | |
| چه رسوابه نكړي الله تعالىٰ نبي ﷺ اوهغه كسانولره چه ايمان ئې راوړې دې دهغه سره، رڼاددوئ منډې به وهي | | | | | | | | |
| بَيْنَ | اَيْدِيْهِمْ | وَبِاَيْمَانِهِمْ | يَقُوْلُوْنَ | رَبَّنَآ | اَتْمِمْ | لَنَا | نُوْرَنَا | |
| په مخكښې ددوئ اوپه ښې طرفونوددوئ وائي به دوئ اې ربه زمونږه پوره كړه مونږلره رڼازمونږ | | | | | | | | |
| وَاغْفِرْ | لَنَا | اِنَّكَ | عَلٰى | كُلِّ | شَيْءٍ | قَدِيْرٌ ﴿٨﴾ | | |
| اوبخښنه | اوكړه | مونږته، | بيشكه | چه | ته | په | هرڅيزباندې | قادرئي. |

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا تُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ﴾دادويم خطاب دې مؤمنانوته چه دخپلوګناهونونه خالصه اوصادقه توبه اوباسئ، الله تعالىٰ به مومعاف كړي، دآخرت دَرسوائي نه به مو بچ كړي اوجنت ته موداخل كړي﴿تَوْبَةً نَّصُوْحًا﴾اى بالغةً في النصح. نصوح يا دَنصح نه مشتق دې پمعنى دَخالص كولو ، يعني خالصه توبه اوباسئ، اوخالصه توبه دا ده: (۱)چې ګذشته ګناهونو باندې ندامت اختيار كړي.(۲)دكومو ګناهو تلافي كيديشي دهغې تلافي اوكړي.(۳)فوراً ګناه پريګدی.(۴)اوآئنده دپاره نه كولو كلك عزم اوكړي.

يو اعرابي زر زر وئيل : اللّهمّ انّي استغفرک و اتوبُ اليک. نو حضرت علي رضي الله عنه ورته او فرمائيل : داسې زر زرتوبه اوباسل دَ كاذبينو توبه ده،هغه ورته عرض اوكړو،صحيح توبه څنګه وي،ده ورته اوفرمائيل:چه په هغې كښې شپږ(۶)خبرې وي.

(۱)تيرشوي ګناهونوباندې ندامت

(۲)چه كوم فرائض واجبات درنه پاتې وي دَهغې اعاده

(۳)دَ بل چامال واپس كول

(۴)معاف كول دَتكليف

(۵)عزم كول په عدم عودباندې

(۶)اوداچه ته به ويلې(كمزوري)كړې نفس خپل په طاعة دَالله تعالىٰ كښې ، لكه چه غټ كړې دې دې په معصيت كښې(كشاف)،

معاذبن جبل رضي الله عنه عرض اوکړو، یارسول الله! توبة النصوح کومې توبې ته وائی، حضور ﷺ اوفرمائیل: ان یندمَ العبدُ علی الذّنب الّذی اصابَ فیعتذرَ الی الله ثم لا یعودُ الیه کما لا یعودُ اللّبن الضرع

(۲) بعضِ وائی ﴿ نَّصُوحًا ﴾ دنصاحت نه مشتق دې، ګنډلو اوپیوندلګولو ته وائی. یعنی داسې توبه اوباسئ چه په ګناه سره کوم تعلق مع الله شلیدلې وې هغه جوړشی. (روح المعانی)

(۳) بعضِ وائی دَنصیحت نه مشتق دې، یعنی داسې توبه چه خلق ورنه نصیحت اخلی، یعنی په توبه کونکې کښې داسې اثرراشی چه خلق هم دغه شان توبه اوباسی.

﴿عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُكَفِّرَ عَنكُمْ ﴾ دافائده دَتوبې ده، تکفیردَسیئاتو په توبې سره یقینی وعده ده دَالله تعالیٰ دلته ﴿عَسَىٰ ﴾ راوړل اختیارول دَعادة دَملوکو دې، دغه رنګه اشاره ده چه تکفیر دَ سیئاتو او دخول جنت ته صرف فضل اواحسان دې دَالله پاک، اودغه رنګه مناسب دی انسان ته، چه خوف اوامید کښې دی اوسیږی، استدلال کړې شویدې پدې سره چه قبول دَتوبې واجب نه دی په الله تعالیٰ باندی (روح المعانی).

﴿ يَوْمَ لَا يُخْزِى ٱللَّهُ ٱلنَّبِىَّ ﴾ ظرف متعلق دې ﴿وَيُدْخِلَكُمْ ﴾ پورې، مراددَنبی نه سید الانبیاء محمد ﷺ دې، ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ ﴾ عطف دې ﴿ ٱلنَّبِىَّ ﴾ باندی، دی کښې تعریض دې چه کافران اوفاسقان به الله تعالیٰ رسوا کوی.

﴿نُورُهُمْ يَسْعَىٰ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ ﴾ جمله مستأنفه ده یاحال دې، دَنورنه مراد **نور دَ ایمان او انفاق دې** ، لکه سورة حدیدکښې تیر دی، نو دې کښې **مضمون دَ انفاق** ته اشاره ده ضمنًا، یو روایت کښې دی چه حضور ﷺ فرمائی څه به دَقیامت په ورځ خپل امت په دې پیژنم، چه یو نور به دَ دوئ مخې ته روان وی (ابن کثیر).

﴿يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا ﴾ ابن عباس رضي الله عنه فرمائی. چه دادعابه مؤمنان هغه وخت او وائی چه دَمنافقانونورمړشی، لکه په سورة حدیدکښې تیردی، اتمام دَنُورنه مراد دوام دې تر جنت پورې.

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ وَمَاْوٰىهُمْ |
| اې نبي ﷺ جهاد کوه دکافرانو سره اودمنافقانو سره اوسخت شه بدوئ،اوځائ دأسيدلو ددوئ |
| جَهَنَّمُ ۚ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝ |
| جهنم دي، اوډيربدځائ دورتلودې دا جهنم |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ﴾دا دَ دويم مضمون دسورت الحديد يعنى **دمضمون جهاد ذكر دې** صراحتًا ، كفارو سره جهاد پمعنى دَ قتال سره دې اودَمنافقانو سره په حجت اودَلسان پمعنى دې،په قول دَوالد محترم نورالله مرقده چه حضرت شيخ فرمائى هغه منافقان چه بهر دَ مدينى نه وؤ ، نوهغوئ سره هم جهاد پمعنى دَقتال دې.﴿وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ﴾ يعنى دَجهاد په معامله كښ ورسره سختتى كوه هيڅ قسمه نرمى ورسره مكوه.

| |
|---|
| ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ ۚ كَانَتَا |
| بيان كړيدې الله جل جلاله يومثال دكافرانو لپاره دښځى دنوح عليه السلام اودښځى دلوط عليه السلام ، چه وې دادواړه |
| تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتٰهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا |
| په نكاح كښې دَ دوؤ بندګانو د زمونږ دَ بندګانو نه چه نيكان وؤ نو خيانت ئې اوكړودهغوئ سره،پس دَفع نكړوهغوئ |
| عَنْهُمَا مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ ۝ |
| دَخپلوبيبيانونه دَعذاب دَالله جل جلاله نه هيڅ څيزاواوئيل شول ورته داخلى شئ دواړه اُورته سره دَنوروداخليدونكو |

﴿ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا﴾دا په اخركښ دوه مثالونه ذكركيږى،اول مثال كافرانوته دې ، اوآخرى دوه مثالونه مؤمنانو ته دى،كافرانو ته په مثال كښ دا بيانيږى چه دَ چا خپل ايمان اوعمل صالح نه وى نونسب دَ پيغمبر ورته منجى نه دې،لكه دَ نوح عليه السلام او دَ لوط عليه السلام بيبيانى، چه ژوند ئې تول دَپيغمبرپه كوراوصحبت كښ تيروؤ ، ليكن چه ايمان ئې نه وؤ نوجهنم ته داخلې شوې،دغه رنګه ديكښ تعريض اوتخويف دې امهات المؤمنين رضى الله

تعالى عنهنّ ته چه كچرته بالفرض دوئ مخالفت اوكړى د پيغمبر عليه السلام ، نو ...
هيڅ فائده ورنكړى.

﴿فَخَانَتَاهُمَا﴾ خيانت نه مرادزنا ، نه ده ، بلكه عدم ايمان دى . ځكه چه د هيڅ پيغمبر
بى زنا كاره نه ده تيره شوې ، عن ابن عباس رضي الله عنه ما زنت امراة نبيّ قط . چنانچه د نوح عليه السلام د بى بى
خيانت دا وؤ ، چه خلقو ته به ئى وئيل چه دې مجنون دى ، او د لوط عليه السلام د بى بى خيانت دا وؤ
چه كله به ده كره ميلمانه راغلل نوقوم ته به ئى اطلاع وركوله . صاحب د جلالين وائى چه د
شپى به راغلل ، نو اوربه ئي بل كړو ، اوچه د ورځې به راغلل نو لوګې به ئى اوكړو . بعض
وائى دادواړه چغل خورې وى ، الله پاک به چې څه وحى اوكړه نو دوئ به مشركانو ته اورسوله
« فلم يغنيا عنهما » ضمير مرفوع حضرت نوح او لوط عليهما السلام ته راجع دې او ضمير مجرور
دهغوئ بيبيانو ته راجع دې ، يعنى چې بيبيانو پرې ايمان نه راوړو ، نوصرف زوجيت ورله هيڅ
فائده ورنكړه . ﴿وَقِيلَ ادْخُلَا النَّارَ﴾ په وخت د مرګ كښى ورته اوونيلې شويا به ورته په قيامت
كښى اوونيلې شى تعبيرپه ماضى سره لپاره د تحقق د وقوع دى (روح المعانى ، كشاف)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَضَرَبَ | اللّٰهُ | مَثَلًا | لِّلَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | امْرَاَتَ | فِرْعَوْنَ | اِذْ | قَالَتْ | رَبِّ |
| اوبيان كړيدي | الله جل جلاله | مثال | لپاره | دمؤمنانو | دښځي | دفرعون | كله | چه نى اوونيل | اې ربه خما |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ابْنِ | لِيْ | عِنْدَكَ | بَيْتًا | فِي | الْجَنَّةِ | وَنَجِّنِيْ |
| جوړكړه | ماله | ستاخواته | كوربه | جنت | .كښى | اونجات راكړه مانه |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | فِرْعَوْنَ | وَعَمَلِهٖ | وَنَجِّنِيْ | مِنَ | الْقَوْمِ | الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۱﴾ |
| دفرعون | اودعمل | دهغه نه | اونجات | راكړه مانه | دقوم | ظالمانو نه |

﴿وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا﴾ دادويم مثال دى ، مؤمنانو ته بيانيږى چه د چاخپل
ايمان اوعمل صالح وى نو د بل چاكفرورته مضرنه دى ، لكه د فرعون ښځى آسيه چه ايمان
راوړې وؤ ، نو اګرچه ښځه د غټ كافر وه ، ليكن په دنيا كښى ورته زيرې د جنت اوشو دغه شان
ديكښى ترغيب دې مؤمنانو ته چې حالات كه څنګه هم وى د ايمان باندې استقامت پكار دى

اوګورئ يو زنانه دفرعون په کورکښې دهغه جبر و ظلم څنګه مقابله اوکړه اوايمان ئې پرې نخودلو.

﴿امرأت فرعون﴾ددې نوم آسيه بنتِ مزاحم وؤ،دموسى عليه السلام ترور وه ، په موسى عليه السلام ئې ايمان راوړې وؤ،فرعون چه خبرشو ، نو په لالچ وغيره سره ئې منع کړه، ليکن هغې ايمان پرې نه خودلو،فرعون ورته سخت سخت عذابونه تجويزکړل. ليکن بيائې هم کفر اختيار نکړو. ﴿رب ابن لي عندك بيتا﴾ابى هريره رضي الله عنه نه مروى ده چه فرعون پکښې څلورميخونه ټک وهل دوه په لاسونواودوه په خپوکښې نوپدى وخت کښې هغې دادعااوکړه،نوالله تعالى ئې دعاقبوله کړه په جنت کښې ورته کوربنکاره کړې شونوتکليف پرې آسان شو ،اومراددَ ﴿عندك بيتا﴾ نه اعلى درجه دمقربينُ ده،يا﴿ عندك ﴾پمعنى دَعند عرشكَ دي،اوپه تقديم دَ﴿ عندك ﴾ کښې اشاره ده دې قول ته چه"اطلب الجارقبل الدار،قالت العلماء اختارت الجارَقبل الدار"(ابن كثير).﴿ ونجني من فرعون وعمله ﴾دعمل دهغه نه مرادکفراوشرک دې،اودغه شان بغيردجرم نه خلقوته عذاب ورکول اودغه شان نورقبائح.

| |
|---|
| وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهِ |
| اوبى بى مريم لوردعمران هغه چه پاک ساتلې ئې وؤګريوان خپل پس پوکړل مونږپه ګريوان دهغې کښې |
| مِنْ رُوحِنَا وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ ﴿١٢﴾ |
| دروح خپل نه اوتصديق ئې کړې وؤپه کلمودرب خپل اوپه کتابونودهغه اووه هغه دطاعت کونکونه. |

﴿ومريم ابنت عمران﴾دادريم مثال دې، عطف دې په﴿ امرأت فرعون ﴾، يعنى الله تعالى مؤمنانو ته دبى بى مريم عليها السلام مثال هم بيانوى ، چه بى خاونده وه، اوقوم ئې هم اکثرکافران وؤ ، ليکن ددې باوجودئې ځان دهرقسم ګناه نه بچ اوساتلو ، دغه شان په هغې باندې ډير الزامات او طعنونه اولګيدل خوهغې بې خوفه اوبې پرواه دَ دين دعوت جارى اوساتلو ، نو ديکښې مؤمناتو ته ترغيب دې چې تاسو حالاتو او نقشو نه مه متاثره کيږئ، او خلقو طعنونو او استهزاګانو اوالزاماتو په وجه دين کار مه پريګدئ،دغه شان دې کښې بې خاونده ښځو ته هم

تسلی ده چی دویٔ هم لویٔ مرتبې حاصلولې شی کچرته په ایمان اواعمال صالحه باندې استقامت اختیار کړی

﴿ أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا ﴾اکثرمفسرین وائی چه دفرج نه مراد ګریوان دی دقمیص دَ هغی ، نو دا مبالغه ده په پاکدامنیٔ اوعفت کښې، چه خپل ګریوان ته ئی هم دچالاس نه ووُ پریښی،لکه په پښتو کښې خلق وائی فلانیٔ ډیرسپین لمنی ده، او ضمیرپه «فَنَفَخْنَا فِيهِ »کښې ګریوان ته راجع دې ځکه چه جبرئیل علیه السلام دَهغی دَقمیص په ګریوان کښې پوکړل، هغه دَهغې خیټې ته اورسیدلو ، نوحامله شوه لکه په سورة مریم کښې تیردی.

ځنې مفسرینو دَفرج معروفه مراد اغستې ده یعنی دَخپل شرم ګاه حفاظت ئی کړې ووُ،دې صورت کښې فرج کښې نفخ کولو مطلب دادې چې جبرئیل علیه السلام ورله په ګرایوان پوه کړل نو دَ هغې اثر فرج ته رااورسیدلو

﴿ وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَٰتِ رَبِّهَا ﴾کلماتونه مراد یا کلمات دَ توحید دي، یا ورنه عیسی علیه السلام مراد دې، ځکه هغه ته هم کلمة الله وئیلی شویدی،بعضو«کلمات ربها» نه ورې ورې صحیفې مراد اغستې دی، چې ادریس او ابراهیم علیهما السلام اوپه نورانبیاوؤ نازلې شوې وې،«کتبه»نه مراد منزل کتب سماویه اغستی دی. خوراجحه داده چې «کلمات ربها» هغه کلمات اوخبرې چې الله تعالی ورسره دَفرشتو په واسطې کړی دی،لکه په سورت مریم ،آل عمران،کښې ذکر دې، اذ قالت الملائكة يا مريم ان الله اصطفاك"او«کتبه » نه عام کتب سماویه مراد دی (تفسیر عثمانی)

﴿وَكَانَتْ مِنَ ٱلْقَٰنِتِينَ ﴾صیغه دَمذکرتغلیباًذکرشویده یااصل عبارة دارنګه دې:وکانت من نسلِ القانتین،ځکه چه داد نسل دَهارون علیه السلام نه وه،په حدیث کښې دی : په سړوکښې کاملین ډیر دی ، مګرپه ښځوکښې ځلوردي:آسیه بنت مزاحم، امرأة فرعون، ومريم بنت عمران، و خديجه بنت خويلد، و فاطمة بنت محمد ﷺ، وفضل عائشة على النساء كفضل الثريد على سائر الطعام، رضی الله عنهنّ ورضين عنه جلّ جلاله.

**فائده**: ددې دوؤ مثالونو اول دَسورت سره خاص ارتباط دې **اول مثال ربط** داسې دې چې ابتداء دَسورت کښې دَيوې بی بی خيانت ته اشاره وه چې هغې دنبی کريم ﷺ راز نې بلې بی بی ته ښکاره کړې وؤ، نو ديکښې "امرأة نوح و امرأة لوط" سره تذکير دې چې ګورئ داهم پيغمبرانو بيبيانې وې، خوچې پيغمبر سره ئې خيانت اوکړو، نوبيا ورله دَپيغمبر زوجت هيڅ فائده ورنکړه.

**دويم مثال** ابتداء دَسورت ربط داسې دې چې ابتدا کښې دَنبی کريم ﷺ ازواجو تذکره اوشوه او آخر کښې دَبی بی آسيه اومريم تذکره اوشوه اوروایاتو کښې راځی چې دابه جنت کښې دَنبی کريم ﷺ بيبيانې وی، نو ابتدا هم په ذکر دَازواجومطهراتو سره اوانتهاء په ذکر ده ازواجو مطهراتو سره اوشوه.

| رکوعاتها (۲) | سورة الملک مکیّة | اٰیاتها (۳۰) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۶۷) وحسب النزول (۷۷)**

نزلت بعد الطّور و قبل الحاقة

دی سورة ته مانعه او منجیه هم وائی.

**ربط:** دَسورة الحدید نه ترسورة التحریم پورې دَ انفاق او دَ جهاد ذکر وو لپاره دَ توحید، اوس دی سورة نه ترسورة الجن پورې دَ توحید بله پهلو بیانیږی. چه برکت ورکونکې ذات هم صرف یو الله ﷻ دې، او هرسورت کښې علی سبیل الترقی دَدې مسئلې ذکر دې، سورة الملک کښې دلائلو عقلیو سره دَ دې بیان دې، سورة القلم کښې په دې مسئلې کښې لچک او نرمې نه کولو بیان دې، سورة الحاقه کښې تخویف دې ، سورة المعارج کښې پرې زجر ذکر کیږی، سورة نوح کښې دلیل نقلی دې، اوسورة الجن کښې هم دلیل نقلی ذکر کیږی دَ جناتو نه.

**خلاصه دَ سورة دَ مضامینو:** یولس (۱۱) دلائل عقلیه دی په دعوه دَ سورة باندی، درې عقلی عامه دې، او اته عقلی خاصه دی، عقلی خاصه دیته وائی چه په هغې کښې مدار دَ کلام او دلیل ذکر وې ، او عقلی عامه هغې ته وائی چه مدار دَ کلام پکښې نه وی ذکر، دینه علاوه پکښې تخویفات اوبشارتونه دی ، او بیان دَ طرقو دَ تبلیغ دې.

**فضیلت:** (۱) دَابوهریره ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائی قرآن شریف کښې یو سورت دَ دیرش (۳۰) آیاتونو داسی دې چه هغه دَخپل ویونکی دپاره شفاعت کوی، تردی چه دَهغه بخنه اوکړی اوهغه سورة تبارک الَّذی دې (رواه احمد، وابوداؤد وغیرهما).

(۲) یوروایت کښې دَنبی اکرم ﷺ ارشاد راغلې دې چه خمازره غواړی چه داسورة دې دَ هر مؤمن په زړه کښې وی

(۳) یوروایت کښې دی چه چاسو :سورة تبارک الَّذی اوسورة الٓمٓ سجده دَ ماښام او ماسخوتن په مینځ کښې اولوستل گویاهغه دَلیلة القدرشپه رونړه کړه

(۴) یوروایت کښې دی چه داسورة دعذاب قبر دپاره مانع دې حضرت جابر ﷺ فرمائی چه

نبی کریمﷺ به ترهغې وخته پورې نه اوده کیدلو ترڅو چه به يې سورة السجده او سورة الملک نه وو لوستلې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَبٰرَكَ | الَّذِيْ | بِيَدِهِ | الْمُلْكُ | وَهُوَ | عَلٰى | كُلِّ | شَيْءٍ | قَدِيْرٌ | ① |

برکت ورکونکې هغه الله ﷻ دې چه په قبضې دهغه کښې بادشاهی ده. او هغه په هرڅیزباندې قادردې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْ | خَلَقَ | الْمَوْتَ | وَالْحَيٰوةَ | لِيَبْلُوَكُمْ | اَيُّكُمْ |

هغه الله ﷻ چه پیداکړې ئې دې مرګ اوژوندلپاره ددې چه امتحان اوکړې په تاسوچه کوم په تاسوکښې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَحْسَنُ | عَمَلًا | | ط | وَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الْغَفُوْرُ | ② |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ډيرښه | دې | په | عمل | کښې | اوالله ﷻ | غالب | دې | بخښونکې | دې |

﴿تَبٰرَكَ﴾ دا دعوه دسورت ده، دَ «تبارک» درې معنې بیان شوې دی:

(۱) ډیر خیرو احساناتو والاذات دې چې هغه دَخیر او احساناتو څه انتهانشته.

(۲) ذات وصفات سره ډیر لوئ ذات دې، چې دَ چاذات اوصفاتو دهغه سره څه نسبت هم نشته، دې دواړو معنو په صورت کښې دا ماخوذ دې "البرکة" نه، چې په معنی دَ "نما" او "اضافې" سره راځي

(۳) «تبارک» بمعنی دَ "ثبوت" او "دوام" سره دې، یعنی الله ﷻ هغه ذات دې چې هغه لره دوام اوثبوت حاصل دې. دې صورت کښې دا ماخوذ دې "برک البعير" نه، چې اوخ په يو ځائ کښې کينې او قرار واخلي

﴿الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ﴾ دا اول دلیل عقلی عام دې په دعوی دَسورت، چې برکتونو والاذات صرف الله ﷻ دې: ځکه چې دَټول جهان بادشاهی هغه سره ده، دَ زمکی هم اودَ آسمان هم، دَ بحر هم او دَ بر، او دَ فضا هم هغه تن تنها بادشاه دې او هغه شاهنشاه دې. «بيده» "يد" دَ صفاتو متشابهاتو نه دې متقدمين عموما دیکښې تفويض کوی، اومتاخرين عموماً پکښې تاویل کوی چې دینه قبضه اوتصرف مراد دې

﴿وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ **دويم دليل عقلي عام دي**،په دعوى دسورت باندې. چې برکتونو والا ذات صرف الله ﷻ دې ، ځکه چې هر څه باندې قادر دې.هيڅ شې هم دهغه داحاطې قدرت نه باهر نه دې.

﴿الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ﴾**دريم دليل عقلي عام دي**،په دعوى دَسورت باندې.برکتونو والاذات صرف الله ﷻ دې، ځکه چې الله هغه ذات دې چې هغه په عالم کښې دَمرګ وحيات نظام پيداکړيدې. آيا بل څوک داسې شته چې يوبې جانه څيز کښې روح واچوى،هغه کښې وينه په ګرځيدو شي، سترګو کښې رڼا راشي، غوږونو کښې دَ سماعت قوت پيداشي . يا آيا داسې څوک شته چې دَمرګ نظام هغه په لاس کښې وى،چې الله ﷻ ئې مرګ غواړى اوهغه ئې دَ مرګ نه بچ کړى، يا مرګ ورکول دَهغه په اختيار کښې وى.

﴿ خَلَقَ الْمَوْتَ ﴾نه معلوميږى چه موت هم يومستقل وجودى مخلوق دې، صرف عدم حيات ياعدم محض ته موت نه وائى،ځکه چه عدمى سره خلق نه متعلق کيږى،واستدل بهذه الاية مَن قال ان الموت امروجودى(ابن کثير). په دى وجه حديث کښې دَبخارى وغيره کښې راغلى دى چه مرګ به دَقيامت په ورځى دَ لمه ورګډ په صورت کښې راوستلې شى، او بيا به ذبح کړيشى.

دلته ئې موت مقدم ذکرکړوځکه چه(١)الله ﷻ اول موت پيداکړيدې بياحياة لکه په حديث کښې دى،چه دَروح اچولونه مخکښې دَانسان عمل،رزق،اجل،وغيره اوليکلې شى(٢): دويمه وجه داده چه ښه عمل لپاره اقوىٰ داعى موت دې نوځکه ئې مقدم کړو(کشاف).

﴿لِيَبْلُوَكُمْ﴾ديکښې دَمرګ او ژوند تخليق مقصد ذکر کيږى.چې دانظام څه عبث اوتماشه نه ده ، بلکه دينه مقصودستاسوامتحان کول دى چه څوک ښه عمل کوى.حيات ،وخت دَ تيارئ دې لپاره دَ امتحان، او موت ، وخت دَ نتيجى دې،علماء وائى چه په﴿أَحْسَنُ عَمَلًا ﴾ کښې اخلاص ته اشاره ده،ځکه چه اکثرعملاً ښې اونه وئيل،په بعضو رواياتو کښې دَ ((احسن عملاً)) تفسير داسې راغلې دې،ايکم احسن عقلاً و اورع عن محارم الله تعالى واسرع فى طاعة الله تعالى(روح). ﴿ وهو العزيز الغفور﴾ الله ﷻ غالب ذات دې که چاله عذاب ورکول غواړى،

هغه ترينه بچ کيدې نشي، اومغفرت کونکې ذات دې که چاته هم ښنه کوي نوځوک ترينه تپوس کونکې نشته.

| |
|---|
| الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ۖ مَا تَرٰى فِيْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ |
| الله ﷻ هغه ذات دې چه پيداکړي ئې دي وه اسمانونه لاندې باندې اوبه نه وينې ته به پيداکولودرحمان ذات کښې |
| مِنْ تَفٰوُتٍ ۖ فَارْجِعِ الْبَصَرَ ۙ هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ ۞ ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ |
| څه عيب . نو را اوګرځوه ته نظر آياوينې ته څه چاؤد بياواپس کړه نظر |
| كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ اِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَّهُوَ حَسِيْرٌ ۞ |
| باربارواپس به شي تاته نظرستانامراده اووي به دې ستړې دپيداکولوعيب نه. |

﴿ اَلَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ﴾داخلورم دليل عقلي دې اوخاص دې،ځکه چې دَ کلام او دليل مدار پکښې موجود دې، چې هغه ﴿طِبَاقًا ﴾دې، چه الله ﷻ وه اسمانونه لاندې باندې پيداکړيدي، نه خو هغه يوبل باندې راغوځيګي، او نه ئې په يو بل باندې سهاره اواعتماد شته،دې باوجود څه نقص،څه کمزوري څه عيب هيڅ پکښې نه ښکاري،نودينه معلومه شوه خالق اوبرکات ورکولو والا ذات صرف يو الله ﷻ دې،﴿طِبَاقًا ﴾ صفت اول دې دَ «سبع سموات» دَ پاره، دَ دې دوه معنی بيان شوي دي:«۱»لاندې باندې،چې دَ آسمانونه الله ﷻ لاندې باندې پيداکړيدي،يو بل سر جوخت او ميلاؤ نه دي پيدا کړي،لکه احاديثو کښې هم راځي چې يو آسمان نه بل آسمان ته ختلو مسافت پنځه سوه کاله دې.

«۲»مطابقت اومماثلت:دې صورت کښې مطلب دادې چه دا اووه آسمانونه په نظام، هيئت اوصفاتو کښې دَيوبل بالکل مماثل دي.

﴿مَا تَرٰى فِيْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ ﴾دادريم صفت دې دَپاره دسبع سموات دې ، چې دا اووه«۷» آسمانونه ئې لاندې باندې داسې اندازه سره پيدا کړي دي، چې چاته پکښې هيڅ تفاوت نه ښکاري.

﴿ تَفٰوُتٍ﴾ "تفاوت" ډيرې معنې بيان شوې دی. دَهغې نولو رجعه دېنه کيږی چې په ديکښې څه نقص اوعيب شته اونه پکښې څه عدم مناسبت اوبې ډنګه توب شته

﴿فَارْجِعِ الْبَصَرَ﴾دا په ماقبل باندی تفريع ده ، چې که يقين دې نه راځی نو بيرته دې آسمانونو باندې نظرواچوه، او باربار پرې نظر واچوه، که تا ته پکښې څه عيب ښکاره شو نو بيا اوايه.﴿فُطُوْرٍ﴾ "فطور" درزونو او چاودونو ته وائی،يعنی انسان يو معمولی غوندی چهت جوړوی ،دهغې دَپاره ستون اوسهاره هم وی. دَ هغې نه باوجود پکښې درزونه او چاودونه راځی ،خو الله ﷻ قدرت ته اوګوره چې دومره عظيم الشان آسمان ئی بغير دَستون نه اودرولې دې، اوهيڅ چاود او دراز پکښې نشته.

﴿ ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ ﴾امر دَپاره دَ تعجيز دې. او تثنيه نه مقصود دَتکثير دې ﴿خَاسِئًا﴾ دَخسأ يخسأ نه دې، سپې شړلو ته وائی،دلته ترينه مجازی معنی مراد ده . يعنی ذلت سره ناکامه اونامراده کيدل ترينه مراد دی. ﴿حَسِيْرٌ﴾يعنی ستړې به وی ډيروکوشتونو په وجه.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ | زَيَّنَّا | السَّمَآءَ | الدُّنْيَا | بِمَصَابِيْحَ | وَجَعَلْنٰهَا | |
| اوخامخايقيناًښائسته کړې دې مونږدا نيږدې اسمان په ډيرو(ستورو)سره اوګرځولی دی مونږدغه ستوری | | | | | | |
| رُجُوْمًا | لِّلشَّيٰطِيْنِ | وَاَعْتَدْنَا | لَهُمْ | عَذَابَ | السَّعِيْرِ ۝ | |
| ويشتونکی | شيطانانولره | اوتيارکړيدي | مونږدوئ | لره | عذاب | دَجهنم |

﴿ وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا ﴾هغه دليل عقلی دې، او داهم دليل خاص دې، ځکه چې دليل مدار پکښې موجود دې، هغه ﴿بِمَصَابِيْحَ ﴾دې او دا دليل علی سبيل الترقی ذکر شوې دې، چې آسمانونه خو مو هم پيدا کړيدی، او بيا دې سره سره مو آسمان دنيا په بې شماره ستورو سره مزين او ښائسته کړې هم دې، دَالله ﷻ نه ماسوا ذات داسې مزين کول خو پريګده چې دومره ستوری هم نشی پيدا کولې،نومعلومه شوه چې معبود او برکاتو ورکولو والا صرف

الله ﷻ دي ﴿وَجَعَلْنَـٰهَا رُجُومًا﴾ **شپږم دليل عقلي** دي . او **دليل خاص** دي. مدار د دليل «رجوما» دي، داهم على سبيل الترقي ذكر دي،چي آسمانونه خوپيدا كړى دى.آسمان دنيا خو په ستورو سره مزين كړي دي. او بيا خو ورله په دي ستورو سره د شياطينو نه دحفاظت بندوبست هم كړي دي،چي يو شيطان هم بره نشي راتلي.كچرته پكښې څوک كوشش اوكړى نو شهاب ثاقب ورپسې شي او اوئې څوزوي ﴿وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ﴾ شياطينو له دي دنيوى عذاب نه علاوه اخروى عذاب خوورله هم تيار كړي دي

وَلِلَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ٦

اودپاره دهغه كسانوچه كفرئې كړيدي په رب خپل،عذاب دجهنم دى اوډيربدځاى دورتلودي جهنم

إِذَا أُلْقُوا فِيهَا سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا وَهِيَ تَفُورُ ٧ تَكَادُ

كله چه اوغورځولې شى كافران په هغې كښې وابه ورى هغې لره بدآواز اوهغه به خوټكيږى،نيزدې به وى

تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ ۖ كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ

چه اُوچوى دې دغصَى نه (په كافرانو)،هركله چه اوغورځولې شى به جهنم كښې يوه ډله دكافرانو

سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ ٨ قَالُوا

پوښتنه به اوكړى دهغوئ نه چوكيداران دجهنم چه آيانه وو راغلې تاسوته يرونكې . اوبه وائى دوئ

بَلَىٰ قَدْ جَاءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا

چه ولى نه،په تحقيق سره راغلى وو مونږته يرونكى،نوتكذيب اوكړومونږاومونږورته اووئيل

مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ كَبِيرٍ ٩ وَقَالُوا لَوْ كُنَّا

ندې نازل كړې الله ﷻ هيڅ څيز،نه يئ تاسومګرپه ګمراهئ لوئ كښې يئ.اوبه وائى كافران كچرته وې مونږ

نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ ١٠ فَاعْتَرَفُوا بِذَنبِهِمْ

اوريدلې ويامونږعقل لرلې نونه به وې مونږ په جهنم والوكښې پس اقرار ئې اوكړوپه ګناه خپل.

| فَسُحْقًا | | لِّاَصْحٰبِ | | السَّعِيْرِ | ⑪ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس | هلاکت | دي | لپاره | دخاوندانو | دجهنم |

﴿وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ﴾ داتخويف اخروى دي، يعنى دَجهنم عذاب به صرف دَشيطينو دَپاره نه وى بلكه دكافرانو دَپاره به هم وى.

﴿اِذَآ اُلْقُوْا فِيْهَا﴾ دې ځائى نه دَ جهنم مختلف اهوال واحوال بيانيږى، دائى **اول هولناک حالت** بيان دي، چې کله ورته کافران اوغورځولې شى نو دَهغې نه به بد . بد آوازونه راوځى، لکه خر چې آوازونه کوي، دا آواز به جهنم هم کوي ، او جهنميان به هم کوي ، لکه سورت هود آيت نمبر ۱۰۶ کښې دي: هم فيها زفير وشهيق. او "شهيق" بد آواز ته وائى، او دَ خر په آواز باندې هم اطلاق کيږى. ﴿وَهِيَ تَفُوْرُ﴾ دائى **دويم حالت** بيان دي چې جهنم به داسې خوټ کيږى لکه کټوئ چې خوټ کيږى.

﴿تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ﴾ دائى **دريم حالت** بيان دي، "تميز" ټوټو او جدا کيدلو ته وائى او "غيظ" سختې غصې ته وائى، يعنى جهنم به دَسختې غصې نه داسى معلوميږى چې لکه ټوى ﴿كُلَّمَآ اُلْقِيَ فِيْهَا﴾ ديکښې دَاهل جهنم حالت بيانيږى، چې کومه ډله هم جهنم ته داخليږى ، نو فرشتې به ورنه بطور توبيخ اوپيغور تپوس کوى : چې ولى تاسو ته رسولان نه وو راغلى، چې تاسو گمراه شوئ او جهنم ته راغلئ.

﴿قَالُوْا بَلٰى﴾ دوئ به اعتراف اوکړى چې رسولان راغلې وو خومونږ ئى تکذيب اوکړو، او دَ اتباع په ځائ موهغو ته ونيل چې تاسو گمراه يئ. ﴿فَكَذَّبْنَا﴾ يعنى خاص دَدوئ تکذيب مو اوکړو. ﴿مَا نَزَّلَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ﴾ يعنى مطلقا رسالت انکار مو هم اوکړو. ﴿اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ كَبِيْرٍ﴾ په دې خو هم اکتفاء اونکړه، بلکه دَ لوئ گمراهئ نسبت مو ورته اوکړو، ارجح قول دادې چې داهم دکفارو مقوله ده.

﴿وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ﴾ يعنى دوئ به تمنا اوكړى چې كاش مونږ هم ايمان راوړې وي. چې هميشه هميشه دَ پاره خوجهنم كښې نه وې «نسمع» نه مراد په دلائل نقلبه سمعيه باندې ايمان راوړل دى، «نعقل» نه مراد دلائل عقليه باندې غوركول او ايمان راوړل دى يا په «نسمع» كښې اشاره مرتبه تقليد ته ده، او په «نعقل» كښې اشاره ده مرتبه تحقيق او اجتهاد ته. نو دينه معلومه شوه چې فلاح ته رسيدلو دوه لارې دى يو داچې سړې خپله محقق او مجتهد جوړ شى، خو داسې كيدل د هر سړى دَ پاره عادتاً ناممكن دى. ځكه چې دا دَ بل هر يو كار نه فراغت غواړى، چې دې سره دَ كائنات نظام معطل كيږى، لهذا لا محاله دويم صورت دادې چې دَ محقق اتباع او تقليد اوكړى. دَ «نسمع» دَ پاره مفعول نه ذكر كولو كښې اشاره ده عموم ته، چې هغه دَ هر محقق قول دې خواه كه هغه رسول وى او كه غير رسول . نو دا په يو خاص محمل باندې محمول كول دَ تفسير مسلمه اصولو خلاف ده.

﴿فَسُحْقًا﴾ اى فبُعداً لهم من رحمتِهِ تعالى، منصوب دې مفعول مطلق دې براى تاكيد. اى سحقهم الله سحقاً.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | الَّذِينَ | يَخْشَوْنَ | رَبَّهُم | بِالْغَيْبِ | لَهُم | مَّغْفِرَةٌ | وَأَجْرٌ | كَبِيرٌ ⑫ | |
| بيشكه | هغه كسان | چه يريږى | دَرب خپل | نه په غيبه | دوئ دَپاره | مغفرة دې | او اجر | لوئ دې | |
| وَأَسِرُّوا | قَوْلَكُمْ | أَوِ | اجْهَرُوا | بِهِ | | إِنَّهُ | عَلِيمٌ | | |
| او كه پټوئ تاسو | خبره خپله | او كه ښكاره | كوئ ئى | په دواړو الله عالم دې ځكه چه | | بيشكه الله ﷻ | ښه عالم دې | | |
| بِذَاتِ الصُّدُورِ ⑬ | أَلَا يَعْلَمُ | مَنْ | خَلَقَ | وَهُوَ | اللَّطِيفُ | الْخَبِيرُ ⑭ | | | |
| په رازونو دَسينو | آيا نه پوهيږى | هغه ذات چه | خالق دې | حال داچه هغه | عالم دې په رازونو | خبردار دې | | | |

﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم﴾ دابشارت أخروى دې مؤمنانو ته، بعد دَتخويف اخروى نه كافرانو ته. ﴿بِالْغَيْبِ﴾ يعنى دَعذاب دَالله ﷻ نه يريږى حال داچه عذاب ئى ليدلې نه دې، يا مطلب دادې چه دوئ غائب وى دَسترګو دَ خلقو نه، نو دَ الله ﷻ نه يريږى، اطاعت ئى كوى ، نو چه په خلوت كښې اطاعت كوى نو جلوت كښې خو په طريقه اولى كوى، بعض وائى "غيب" دَ

انسان قلب دې چه بل څوک ئې نشي ليدلې، نومعنى دا ده چه د زړه نه يا په زړه کښې د الله ﷻ نه پرېږي (حقاني).

﴿وَأَسِرُّوا قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوا بِهِ﴾ دادماقبل دلائلو ثمره ده. چې دلائلو نه دا ثابته شوه چې الله ﷻ عليم ذات دې، که تاسو په پټه خه خبره کوئ، دهغې نه هم خبردې، که په ښکاره کوئ، هغې نه هم خبر دې، او که په زړه کښې موحه خبر ده دهغې نه هم خبر دې . لهذا برکات ورکونو والا صرف هغه اوګڼئ ، اودهغه نه ټول حاجات غواړئ «اسروا» او «اجهروا» دواړو ځايونو کښې امر پمعنى خبر دې، يعنى که پټوئ تاسو خبره خپله اوکه ښکاره کوئ ئې. خو الله ﷻ ته يوشان ده، دَ هغه نه هيڅ هم پټ نه دى

﴿إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾ تعليل دې دَ ماقبل، چه الله ﷻ خو دَ سينو په پټو رازونو هم عليم اوخبردار دې، نوستاسو خبرى به ورنه څنګه پټې وى

﴿أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ﴾ «من خلق» فاعل دې دَ ﴿أَلَا يَعْلَمُ﴾ . اى الا يعلم الخالق. يعنى آيا خالق دَ خپل مخلوق دَ پټوحالاتو يا خبرونه بې خبره كيديشي؟ استفهام انكارى دې. يعنى نه شى كيدې ، ځکه چه تخليق بې دَ علم نه نشي کيدلې . يا «من خلق» مفعول به دې دَ «يعلم» دَ پاره، او فاعل ضمير مستتر دې، چې راجع دې الله ﷻ ته، مطلب به دا شى چې آيا هغه بې خبره كيديشى دَخپل مخلوق نه، مآل دَدواړو توجيهاتو يو دې «وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ» حال دې دَفاعل دَ ﴿أَلَا يَعْلَمُ﴾ نه تاکيد دې دَماقبل.

| وَكُلُوا | مِنْ | رِزْقِهِ | ط | وَإِلَيْهِ | النُّشُورُ | ⑮ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوخورئ | دَرزق | دَالله ﷻ نه، اوالله ﷻ | ته | دى | پورته | كيدل ورستودَمرګ نه |

| هُوَ | الَّذِي | جَعَلَ | لَكُمُ | الْأَرْضَ | ذَلُولًا | فَامْشُوا | فِي | مَنَاكِبِهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الله ﷻ هغه ذات دې | چه | ګرځولې ئې | ده | ستاسولپاره | زمکه تابعداره | پس ځئ | په | اوږو(طرفونو)دَهغې کښې |

﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ﴾ دا اووم دليل عقلى دې، او دليل خاص دې ﴿ذَلُولًا﴾ مدار كلام دې، يعنى الله ﷻ هغه ذات دې چې زمكه ئې ستاسو تابع ګرځولې ده. تاسو په هغې

کښې ګرځئ راګرځئ. هغې کښې کرونده کوئ. فصلونه ئې خورئ. معدنيات ترينه را اوباسئ. د هغې نه فائده اخلئ. لهذا کوم ذات چې داسې زمکه پيدا کړې ده هم هغه معبود او برکات ورکولو والا دې. د هغه نه خپل حاجات غواړئ

﴿ذَلُولًا﴾ "ذلول" په وزن دَ "فعول" بمعنى الفاعل دې. هغه څاروی ته وائي چې هغه دخپل مالک تابع وی. او اړيکې نه کوی. او دلته مجازاً دَ زمکې دپاره استعمال شوې دې.چې دا زمکه هم الله ﷻ ستاسو لپاره دَ تابع څاروی پشان ګرځولې ده

﴿فَٱمْشُوا﴾ " فاء"دپاره دَتفريع ده،چې څنګه تابع څاروی باندې ګرځئ راګرځئ. دغه شان زمکه هم تاسو لره مسخره ده، ګرځئ راګرځئ پکښې ﴿فِي مَنَاكِبِهَا﴾ مناکب" جمع دَ "منکب" ده. "اوګې" ته وائي، او دلته ترينه مراد مجازاً دَ زمکې اطراف و اکناف دی، اومناکب راوړلو کښې مبالغه مقصود ده دَ زمکې په اتباع اوعاجزئ کښې،(کشاف)

﴿وَكُلُوا مِن رِّزْقِهِۦ﴾ (کلوا) دلته خپلې ظاهري معنى کښې نه دې، بلکه يا معنى "انتفعوا" سره دې، يعنى دَالله ﷻ نعمتونو نه فائده واخلئ،اويا په معنى دَ "التمسوا" سره دې يعنى دَ زمکې اطراف او په اکنافو کښې اوګرځئ اودَ الله ﷻ رزق طلب کړئ(روح)

﴿ وَإِلَيْهِ ٱلنُّشُورُ ﴾داتخويف اخروی دې.يعنى زمکې په اطرافو کښې ګرځئ، او دَ الله ﷻ نعمتونو نه خوند اخلئ، خوګورئ چرته ديکښې ډوب نشئ . او هم دا مقصود اونه ګرځوئ. او دَ الله ﷻ احکاماتو نه روګردانى اونکړئ،دا دنيا فانى ده،آخر به مرئ اوالله ﷻ په حضور کښې به پيش کيږئ.

| ءَأَمِنتُم | مَّن | فِي | ٱلسَّمَآءِ | أَن | يَخْسِفَ | بِكُمُ | ٱلْأَرْضَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| آيا په امن کښې شوئ تاسو دَهغه ذات نه چه په اسمان کښې دې دَدې نه چه ژوندی به موخخ کړی په زمکه کښې | | | | | | | |
| فَإِذَا | هِيَ | تَمُورُ ⑯ | أَمْ | أَمِنتُم | مَّن | فِي ٱلسَّمَآءِ | أَن يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ |
| نو بيا به دا زمکه ولړزيږی. آيابې خوفه يئ تاسودَهغه ذات نه چه په اسمان کښې دې دَدينه چه رااوبه ليږی په تاسو | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَاصِبًا | ط | فَسَتَعْلَمُونَ | كَيْفَ | نَذِيرِ ﴿١٧﴾ | وَلَقَدْ | كَذَّبَ | الَّذِينَ |
| باران دكانړو، پس زرده | | چه پوهه به شئ | تاسوپدې چه څنګه | وډيرول خما | او بيشكه | تكذيب كړې | وو هغه خلق |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | قَبْلِهِمْ | فَكَيْفَ | كَانَ | نَكِيرِ | ﴿١٨﴾ | |
| چه | مخكښ | وو | ددوئ | نه، نو څنګه | وو عذاب | خما |

﴿ ءَأَمِنتُم مَّن فِي ٱلسَّمَآءِ ﴾ داتخويف دنيوى دې، چه داكومه خمكه الله ﷻ ستاسو لپاره تابعه كرځوليده، نوكچرته دَالله ﷻ اطاعت نه كوئ نوپدى خمكه كښ به مودَقارون په شان خسف كړى. "من" نه مراد الله ﷻ دې، ﴿ فِي ٱلسَّمَآءِ ﴾ دمتشابهاتونه دې، ظاهرى معنى ظرفيت نشى مراد كيدلې، څكه چې دينه بارى تعالى لره مكان اوجهت لازميږى. اوپه اتفاق داهل السنت والجماعت دا صحيح نه ده، بلكه ياخوترينه مراد "في السماء" كمايليق بشانه دې لكه متقدمينو مسلک دې ، اويا دَ متاخرينو مسلک مطابق تاويل به كوو ،اي من في السما امره و قضاءه، او دا دَ مشركانو دَمحاورى اواعتقادمطابق ورته اوونيل شول، څكه چه دوئ به الله ﷻ ته اله السّما، وئيل اوخپلو معبودانو ته به ئي آلهة الارض وئيل. بهر صورت دينه ظاهرى معنى مراد نشو اغستى، او نه داسې معنى چې د هغې نه جهت او مكان اثبات لازميږى په اتفاق دَ مفسرينو، او داسې معنى مراد اغستل يا الحاد دې او يا جهل، او دَ اكابر مفسرينو نيم عبارات راغستل، او بيا دَ هغې نه دَخپل خواهش مطابق نتيجه رااوباسل لوئى علمى خيانت اودَخپل مذهب كمزورئ واضح دليل دې.

﴿أَن يَخْسِفَ بِكُمُ ٱلْأَرْضَ﴾ بدل الاشتمال دې دَ﴿مَّن فِي ٱلسَّمَآءِ﴾ نه.

﴿ فَإِذَا هِيَ تَمُورُ ﴾ ديكښ دَخسف منظر كشى ده. "مور" باربار تلوراتلو اوپه تيزئ سره خوځيدلو ته وائى، موجونو ته هم وائى، مطلب داچې داساكنه اوتابعه زمكه به حركت شروع كړى اوموجونو پشان به اوچته شى اوتاسوبه دَځان دَلاندې دوب كړى او اسفل السافلين ته به مواورسوى.

﴿أَمْ أَمِنتُم مَّن فِي ٱلسَّمَآءِ أَن يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ﴾ داهم تخويف دنيوي دي. «ام» د پاره د اضراب انتقالي دي يعني دخسف خبره پريکدئ، دا اوايئ چې آيا تاسو ددينه په امن کښې يئ چې الله ﷻ دربانديې دَ کاڼرو باران رااوليږي، اوقوم لوط اواصحاب الفيل پشان خو تس نس او هلاک کړي.

﴿فَسَتَعْلَمُونَ كَيْفَ نَذِيرِ﴾ «نذير» ياپمعنى دَمُنذرسره دي،حضور ﷺ ورنه مراددي،يعنى بيا به تاسوته معلومه شي اي اهل مکې چه څه رنګه وو رسول ځما،صادق وو که کاذب؟ خوليکن بيا به درته داځه نفع نه درکوي،يا پمعنى دَ «انذار» مصدر سره دي. اى فستعلمون عاقبة انذارى اياكم بالكتاب والرّسول(کبير).

﴿وَلَقَدْ كَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ مرادورنه قوم عاداوقوم ثمودوغيره معذّب امتونه دي، ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ اى انكارى عليهم بانزال العذاب(روح).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوَلَمْ | يَرَوْا | إِلَى | ٱلطَّيْرِ | فَوْقَهُمْ | صَٰٓفَّٰتٍ | وَيَقْبِضْنَ | |
| آيادوئ نه | ګوري | مارغانوته | دپاسه | دځپل ځان | چه وزري | غوړونکي دي | او راټولوي، |

| |
|---|
| مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا ٱلرَّحْمَٰنُ إِنَّهُۥ بِكُلِّ شَيْءٍۭ بَصِيرٌ ﴿١٩﴾ أَمَّنْ هَٰذَا ٱلَّذِي |
| ندي حصارکړي دوئ په هواکښې مګرالله ﷻ،بيشکه الله ﷻ هرڅيزلره ليدونکې دي آياڅوک دي هغه ذات |
| هُوَ جُندٌ لَّكُمْ يَنصُرُكُم مِّن دُونِ ٱلرَّحْمَٰنِ إِنِ ٱلْكَٰفِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ ﴿٢٠﴾ |
| چه هغه لښکرشي ستاسوچه مددمواوکړي،ماسوى دَالله ﷻ نه،ندي کافران مګرپه دهوکه کښې دي |

﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى ٱلطَّيْرِ فَوْقَهُمْ﴾ دااتم دليل عقلي دي،يعنى آيادوئ بره دې مارغانوته نه ګوري چه دَالله ﷻ په قدرت سره الوزي،په هواکښې کله وزرې پرانزي کله ئې راټولوي ، دواړو حالتونو کښې، دوئ دَ راپرې وتلونه الله ﷻ ساتي،هغه ټينګ کړيدي،حالانکه ثقيل او وزني دي دوئ په دې خبرې سوچ نه کوي چې دامرغئ چاپيدا کړې دي؟دوئ ته داالوتل چاخودلي

دی؟ داپه دي فضاکښ دغورځیدلونه څوک ساتی؟کوم ذات چې داټول کارونه کوی هم هغه حقیقی معبوداوبرکات ورکولووالا دې.

دلته د مرغیؤو دوه صفات ذکر شو، وزر غوړول او راټولول. اول صفت دپاره صیغه داسم فاعل «صٰفّٰت» راوړلې شوه او دویم پاره صیغه د فعل مضارع. چې «یقبضن» دی. مفسرین د دې نکته دا بیانوي ،چې چونکه د الوتو په صورت کښې د مرغۍ اصل حالت وزر غوړول وي. او هم دې سره ورله الوتل ممکن وي . نو ځکه دې د پاره صیغه اسم فاعل راوړلې شوه چې دا په استمرار دلالت کوي ، او وزر راټولو حالت عارضي وي ، صرف د آرام حاصلولو د پاره وي ،نو ځکه د هغې صفت بیان د پاره صیغه فعل مضارع راوړلې شوه ، چې دا په تجدد دلالت کوي ، ﴿إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ بَصِيرٌ﴾یعنی یو الله ﷻ دې چې دا د غورځیدلو نه ساتی،اوصرف دانه ،بلکه هر مخلوق باندې نظردې اودهغه ورکی نه ورکی حالت باندې ئې نظر دې

﴿أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي هُوَ جُندٌ لَّكُمْ﴾داتخویف دنیوی دې،یعنی چه کوم معبودان تاسوبرکات دهنده گنړئ،که الله ﷻ تاسوته دعذاب درکولواراده اوکړی، نو آیا هغوئ ستاسو لښکر او باډی گاډ جوړیدې شی، چه ستاسونصرت اوکړی نوعذاب نه موبچ کړی،استفهام انکاری دې یعنی نشی نصرت کولې﴿مَّنْ﴾مبتداء دې﴿هَٰذَا﴾ خبردې، "الَّذِی"موصول یابدل دې د"هذا"نه یا ئې صفت دې،«هذا» اشاره ده، هر "من دون الله" ته.﴿يَنصُرُكُم﴾یعنی د آفاتو او د الله ﷻ د عذاب نه موحفاظت اوکړی، یعنی دفع دمضرت درنه اوکړی.

﴿إِنِ الْكَافِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ﴾"ان"نافیه دې،مطلب دادې چه شیطان کافران دهوکه کړیدی چه داخیال ئې دې چه دهغوئ باطل خدایان اوبتان به ئې دالله ﷻ دعذاب نه بچ کړی، ښه پوهه شئ چه درحمٰن ذات ماسوئ هیڅ څوک ئې مددنشی کولې.

| |
|---|
| أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهُ ۚ بَل لَّجُّوا |
| آیاڅوک دې هغه ذات چه رزق درکړی تاسوته کچرته بندکړی الله ﷻ رزق خپل،بلکه ټینگ دی دوئ |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي | عُتُوٍّ | وَّنُفُوْرٍ ﴿٢١﴾ | اَفَمَنْ | يَّمْشِيْ | مُكِبًّا | عَلٰى | وَجْهِهٖٓ | اَهْدٰٓى |
| به سرکشئ اونفرت کښې.آیاهغه خوک چه روان وی نسکورپه مخ خپل،پرمخ،بنه لاره موندونکي دي | | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَمَّنْ | يَّمْشِيْ | سَوِيًّا | عَلٰى | صِرَاطٍ | مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٢٢﴾ | | |
| اوکه هغه | خوک چه | روان . وی | برابرپه | لاری | نیغی | باندی | |

﴿ اَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ يَرْزُقُكُمْ ﴾داهم تخويف دنيوی دي،کچرته الله ﷻ درباندی رزق او اسباب دَ رزق ، لکه باران وغيره بندکړی ، نو آيا دا باطل خدايان به درله رزق درکړی ﴿ اِنْ اَمْسَكَ رِزْقَهٗ ﴾يعنی په امساک دَباران سره، يا څمکه منع کړی د فصل پيدا کولو نه، يا تيار فصل تباه کړی، يا داچه رزق ډير وی ليکن الله ﷻ درنه قوة دَ خوړلو واخلی، نوڅوک به ئی درباندی اخوری(خطيب).

﴿بَلْ لَّجُّوْا فِيْ عُتُوٍّ وَّنُفُوْرٍ ﴾بل دپاره دَانتقال دي، يعنی دامشرکان پدی ښه پوهه دی چه زمونږ باطل خدايان نه دفع دَمضرت کولي شی، او نه جلب منفعت کولي شی، ليکن په سرکشئ اوعنادکښې دومره پاخه ورننوتی دی چه دَتوحيددلائلو باندی ايمان نه راوړی.

﴿اَفَمَنْ يَّمْشِيْ ﴾داتفريع ده په ماقبل، او دَ مشرک او دَ مؤمن مثال دي چې يوسړی هغه دي چې په داسې لار روان وی چې قدم په قدم هغې کښې خندونه وی، خطرې وی، اوپيچمې وی، دَ لارې هيڅ پته ورته نه لږی،حيران اوپريشان تندکونه خوری، روان وی، او بل هغه دي چې په سمه او معلومه لار برابر روان وی،آيا دا دواړه برابر کيدي شی؟ استفهام انکاری دي، چې دا دواړه نشی برابريدلي،نودغه شان مؤمن موحد اومشرک کافر نشی برابريدلي، مؤمن دَ يو الله ﷻ عبادت کوی اوسيده په لار روان وی،اومشرک دَ ډيرو آلهوعبادت کوی،او بغير تحقيقه دَخپل گمراه آباؤونقش قدم باندې روان وی، نو چرته به هم دې منزل مقصود او کاميابی ته اونه رسی.

﴿مُكِبًّا﴾ پرمخې کيدلو ته وائی، ديکښې دَلارې ويرانئ طرف ته اشاره ده، چې سړې پرې سم نشی تللې بلکه قدم به قدم غورځيږی، گوياچې دې پرمخې روان وی، قتادهؒ وائی چه

دی آیت کښې اخبار دې دَحال دکافراومؤمن نه په آخرت کښې. نو کفار به پرمخې جهنم ته روان وی او مؤمنان به سم په لارې جنت ته روان وی.کماقال تعالی ونحشرهم یوم القیامة علی وجوههم ..(بنی اسرائیل:۹۷).

روایت دې چه حضور ﷺ نه چاتپوس اوکړوچه څنګه به کافر قیامت کښې پرمخې ځی. نو حضور ﷺ ورته اوفرمائیل چه کوم ذات ئې په دنیاکښې په خپوبوځی نو هغه قادردې پدې چه پرمخې ئې بوځی په آخرة کښې(ابن کثیر وروح المعانی).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ؕ | | | | | | | |
| ته اووایه اې نبی ﷺ الله هغه ذات دې چه تاسوئې پیدا کړی یئ او ګرځولې ئې دی تاسولره غوږونه او سترګې او زړونه | | | | | | | |
| قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ۝ قُلْ هُوَ الَّذِيْ ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ | | | | | | | |
| ډیرلږشکر اوباسئ تاسو اووایه اې نبی ﷺ الله هغه ذات دې چه خواره کړی ئې یئ تاسو په زمکه کښې | | | | | | | |
| وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ | | | | | | | |
| اوخاص الله ته به تاسوجمع کړې شئ.اووائی دوئ چه کله به وی داوعده دقیامت کچرته یئ تاسورشتنی | | | | | | | |
| قُلْ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ۠ وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ | | | | | | | |
| ته ورته اووایه اې نبی ﷺ بیشکه علم دقیامت الله ته دې،اوبیشکه زه خو صرف یرونکې یم ښکاره | | | | | | | |
| فَلَمَّا رَاَوْهُ زُلْفَةً سِيْٓـَٔتْ وُجُوْهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَقِيْلَ | | | | | | | |
| پس هرکله چه اووینی دوئ قیامت نیزدې نوتوربه شی مخونه دکافرانو اوورته به اوویلې شی | | | | | | | |
| هٰذَا | الَّذِيْ | كُنْتُمْ | بِهٖ | تَدَّعُوْنَ ۝ | | | |
| داهغه | عذاب | دې | چه | وئی | تاسودغه | موغوښتلو | |

﴿قُلْ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ﴾ دا نهم دلیل عقلی دې ، او داهم دلیل خاص دې په توحید. ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ﴾ مدار کلام دې، چه الله ﷻ تاسو پیدا کړی یئ، او دَ توحید دلائلو اوریدلو د پاره ئې درته غوږونه درکړیدی،سترګې ئې درکړیدی دپاره دلیدلو دَ قدرتونو دَ

توحید، او زړونه ئې درکړیدي دپاره د پوهیدلو. لهذا توحید اومنئ او د الله ﷻ اطاعت کوئ

﴿قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ﴾ ما زائده دي لپاره د تاکید. قلت شکر یا په ظاهر محمول دي. یا خطاب کافرانو ته دي او قلت په معنی د نفی او عدم وجود سره دي. یعنی تاسو بالکل شکر نه اداکوئ.

﴿قُلْ هُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ﴾ دا لسم دلیل عقلی دي په توحید. او داهم دلیل خاص دي، او ﴿ذَرَأَكُمْ فِي الْأَرْضِ﴾ مدار کلام دي، چې الله ﷻ هغه ذات دي چې تاسوئې په زمکه کښې خواره کړی یئ، بل څوک داسې نشته چې ستاسو سلسله داسې محکم او منظم اندازسره جاری کړی، او قیامت په ورځ به بیا هم هغه ذات طرف ته تاسو جمع کیږئ. او حساب کتاب به درنه اخلی، لهذا صرف دهغه عبادت کوئ او هغه برکات ورکولو ولا اومنئ

﴿وَيَقُولُونَ﴾ دا شکوه ده دکافرانو نه، چه دوئ مسخری په طور مؤمنانو ته وائی چه کچرته تاسو صادق یئ په دی دعوه کښې چه قیامت به راځی، حشر به کیږی، نو مونږته ئې وخت بیان کړئ، کله به وی؟

﴿قُلْ إِنَّمَا الْعِلْمُ﴾ جواب شکوه دي. یعنی څما د منصب تقاضه او فریضه داده چې بس تاسو مې خبر کړلئ چې قیامت راروان دي، او الله ﷻ به درنه حساب کتاب اخلی، باقی دا خبره چې دا به کله وی؟ دي تعیین څما منصب سره څه تعلق نشته. دا د الله ﷻ تکوینی امور دی، او څه د تشریعی امورو په تبلیغ او بیان باندې مامور یم.

﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ زُلْفَةً﴾ دا تخویف دي. ضمیر د اکثرو په نیز "الوعد" یعنی عذاب د قیامت ته راجع دي، یعنی چه کله دا کافران د قیامت عذاب اووینی او د قیامت د اهوالو معائنه اوکړی نو مخونه به ئې د ډیرغم په وجه تورشی، فرشتی د جهنم به ورته وائی چه دا هغه عذاب دي چه تاسو په دنیا کښې غوښتلو (اوس ورته تینګ شئ). ﴿زُلْفَةً﴾ حال دي د مفعول د ﴿رَأَوْهُ﴾ نه، په معنی د قریب سره، بعضوئې معنی په حاضرسره کړیده

| قُلْ | | أَرَءَيْتُمْ | | إِنْ | | أَهْلَكَنِيَ | | اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه | ورته | اووایه اې | نبی ﷺ خبراکړئ | ماته | کچرته | هلاک | کړی | ما الله ﷻ |

| |
|---|
| وَمَنْ مَّعِيَ أَوْ رَحِمَنَا ۙ فَمَنْ يُّجِيرُ الْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيْمٍ ﴿۲۸﴾ |
| اوهغه خوک چه ماسره دی یارحم اوکړی په مونږ،نوخوک دي چه پناه ورکړی کافرانوته دعذاب دردناک نه. |
| قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا |
| ته اووایه چه الله په هر چا مهربان ذات دي،ایمان راوړیدي مونږپه هغه اوخاص په هغه مونوکل اعتماد کړیدی. |
| فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۹﴾ |
| پس زرده چه پوهه به شئ تاسوپدی چه څوک دی په ګمراهئ ښکاره کښ |

﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَهْلَكَنِيَ اللّٰهُ ﴾دا اوله طريقه دَ تبليغ ده،اوجواب دي دقول دَ مشركانو .اهل مكه

ؤ به وئيل چه دانبي اومؤمنان به مره شي مونږبه ورنه خلاص شو .كماقال تعالى شاعرٌنتربّصُ به

رَيب المنون(طور ۳۰) نوالله ﷻامراوكړوچه ته ورته اووايه چه مونږخومؤمنان يو .دَ احدى

الحسنيين انتظاركوؤ (۱) يابه مړه شولكه تاسوئي تمناكوئ، نو داهم زمونږلپاره ښه ده. ځكه

چه جنت ته به لاړوشو .(۲)﴿أَوْ رَحِمَنَا ﴾ يابه په مونږ رحم اوكړى غلبه اوقوت به راكړى. دې

دواړو كښې زمونږ خير دې. ليكن تاسوځپل غم اوكړئ.تاسوخوك فرا ن يئ. د عذاب اليم نه به

موځوک بچ کوی

صاحب دکشاف دَدی آیت دری(۳)توجیهات ذکرکړیدی یوه دامذکوره ده.(۲)دویمه داچه

مطلب دادي كچرته مونږه الله ﷻ مړه كړو،حال داچه مونږخوتاسو نه سمه لاربنايو ،دوزخ نه مو

بچ كوؤ، نو تاسوبه بياځوك بچ كوى دَعذاب اليم نه.اوكچرته رحم ئى راباندى اوكړوغلبه ئى

راته راكړه نو تاسو به زمونږ دَ لاسه نه څوک بچ کوی

(۳) دريمه داچه مونږ باوجود دَايمان نه، دَ خوف او رجاء په مينځ كښې يو . نو تاسو به دَ كفر

باوجود دَ عذاب اليم نه څرنګه بچ شئ(كشاف).

﴿ قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ ءَامَنَّا بِهِۦ ﴾دادويمه طريقه دَتبليغ ده.اودَ ماقبل تتمه ده.چه مونږبه

رحمن ذات باندى ايمان راوړي دي مونږبه دآخرت دَعذاب نه بچ كوى.اوخاص په هغه مو

توکل دي.مشکلات اوحوادث به رانه آسانه وي.اوس خوايمان نه راوړئ خوآخرت کښې حي
فيصله اوشي بيا درته پته اولګي چې څوک په حق دي څوک ناحقه

﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَن يَأْتِيكُم بِمَآءٍ مَّعِينٍ ۝٣٠﴾

ته ورته اووايه خبرراکړئ ماته کچرته اوګرځي اوبه ستاسو ډوبې اوچې نوڅوک دی چه رابه ولی تاسوته اوبه رواني

﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَآؤُكُمْ﴾دا يوولسم(۱۱)دليل عقلي دې په توحيد اودليل خاص دې .

﴿غَوْرًا﴾ مدارکلام دې، يعنی دا اووايئ کچرته ستاسودا اوبه الله ﷻ اوچې کړي. نوبل کوم
ذات دې چه هغه ئې درته رااوباسي ماسوا دَالله ﷻ نه. چې بل څوک دومره هم نشي کوې نو
څنګه به دوئ تاسو دَعذاب نه بچ کړي اوڅنګه به برکتونه درکړي؟ لهذا صرف دَالله ﷻ
عبادت کوئ،اوهغه برکات ورکونکې ګڼړئ.
«غورا» مصدر دې مبالغتاً راوړلې شوې دې، اي غائرا ، يعنی اوبه ډوبې لاړې شی او تاسو
ئې بيا را اوباسلې نشئ﴿ بِمَآءٍ مَّعِينٍ ﴾معين ياصفت مشبه دې. دَمعن نه مشتق دې ، پمعنی
دَکثيراوجاری سره،يا معين دَعين نه مشتق دې.ياء پکښې اصلی ده.دَاسم مفعول صيغه ده،
اي ظاهرة تراهُ العيون قرطبي وغيره يعنی ښکاره اوبه چه په سترګو ليدلې شي اوپه اسانئ سره
رااوباسلې شی

| ركوعاتها (۲) | سورة القلم مكيّة | آياتها (۵۲) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۶۸) وحسب النزول (۲)**

نزلت بعد العلق وقبل المزّمل

**ربط**: ماقبل سورة کښې داثابته شوه چه برکت ورکونکې صرف الله ﷻ دې، دی صفت کښې ورسره څوک شریک نشته، دې سورة کښې تنبیه ده چه مشرکان به کوشش کوی اودا به وړی چه تاسو دې مسئله کښې نرمی اوکړئ، مونږبه هم تاسوسره نرمی اوکړو، لیکن تاسوپدی کښې نرمی بالکل مه کوئ کماقال تعالی: وَدُّوا لَوْتُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ.

**خلاصه**: ابتداء کښې تسلی ده حضور ﷺ ته، بیادعوه دَسورة ده، تخویف دنیوی. بشارت. تخویف اخروی دی (تمت).

| |
|---|
| نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ ﴿۱﴾ مَآ اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ ﴿۲﴾ |
| الله عالم دې په مراد خپل، قسم دې په قلم اوپه هغه څه چه کاتبان ئې لیکی، چه نه ئې نه په سبب دَفضل دَرب خپل لیونی |
| وَاِنَّ لَكَ لَاَجْرًا غَيْرَ مَمْنُوْنٍ ﴿۳﴾ وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ﴿۴﴾ |
| اوبیشکه ستا لپاره خامخا ثواب دې نه ختمیدونکې . او بیشکه ته خامخا په اخلاقو لویو باندی ئې |

﴿نٓ﴾ دادَحروف مقطّعاتونه دې، معنٰی حقیقی اومعنٰی مراده ئې الله ﷻ ته ښه معلومه ده لکه تفصیل ئې په ابتداء دَسورة البقرې کښې تیر دې،

﴿وَالْقَلَمِ﴾ په قسم سره مؤکده تسلی ده حضور ﷺ ته، او «واو» قسمیه دې، قسم برائ استشهاد دې، دَ قلم نه مراد یا قلم دَلوح محفوظ دې چه دَهرڅه نه اول الله ﷻ پیدا کړې دې، او دَ تقدیر دَ لیکلو حکم ئې ورته کړې وو، په روایت کښې دی: انّ اوّل ماخلق الله القلمَ، فقالَ له:

اكتب، فقال : يارب وما اكتب،فقال: اكتب القدر، فجرى القلم في تلك الساعة بما كان و ما هو كائن الى الابد (ابو داؤد باب فى القدر)

یادَ قلم نه مراد دَ کراماکاتبینو قلم دې،اولی داده چه دی کښ تعمیم دې .مطلق قلم ورنه مراد دې که دَلوح محفوظ وی،که دَفرشتو وی یادَانسانانو وی که دجناتو

﴿وَمَا يَسْطُرُونَ﴾ پدی کښ هم عموم اولی دې عام اهل قلم ورنه مراد دی(قرطبی)

﴿مَآ أَنتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ﴾داجواب قسم دې،کفاروبه حضور ﷺ ته دَمجنون نسبت کولو (نعوذبالله)، الله ﷻ دَدوئ رداوکړوچې ته په فضل دَالله ﷻ سره مجنون نه ئی،اوقسم او جواب قسم کښ مناسبت دادې ، چې دَالله ﷻ قسم خوری چې اوسه پورې څومره قلمونه راغلی دی، خواه هغه دَفرشتو قلم وی اوکه دَجناتو او دَ انسانانو .اوپه هغې چې څه هم لیکلی شوی دی، هغه ټول پدې ګواه دی چې ته مجنون نه ئی ، ځکه چی ستاکومې خبرې په دې سره لیکلې کیږی،دغه شان خائسته اوقیمتی خبرې دې نه مخکښ نه دی لیکلې شوې، نو بیا څنګه کیدې شی چې ته مجنون وې، او دا دَیو مجنون کلام شی

﴿بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ﴾ بمجنون کښ 'باء' زائده ده'بنعمة'کښ'باء'یاسببیه ده،نعمة نه مراد فضل دې یعنی په سبب دَفضل دَالله ﷻ ته مجنون نه ئی، یا 'نعمة' نه مرادنبوت دې 'باء' ملابسة دپاره ده،یعنی ته مجنون نه ئې، ځکه چه تاته الله ﷻ دَ نبوت لوئ منصب درکړې دې، مجنون ته دامنصب نه ورکولې کیږی.

﴿وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ﴾ای غیرمقطوع،داپمنزله دَدلیل دې ماقبل دپاره چه مجنون قابل ؛ مدح وسبب دَاجرنه وی ځکه دَهغه هیڅ عمل معتبرنه وی،پخلاف دَدینه چه تاته به اجرملاویږی اوهغه هم بې انتهاءاجر.

﴿وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾داهم دلیل دې چه ته مجنون نه ئی ځکه چه ستااخلاق ډیرلوئ اخلاق دی،دَمجنون اخلاق ښه نه وی،هغه خوخلق په کانړوولی،دَحضرت عائشه ﷺ نه چا تپوس اوکړوچه اې امّ المؤمنین دَحضورﷺاخلاق څنګه وؤ؟ هغی ورته اوفرمائیل آیاتاقرآن

نه دي لوستلي. اخلاق دحضور ﷺ قرآن وو. يعني په قرآن كښې چه كوم اوامر او نواهي ذكر كړې شوي دي نو په هغې باندې عمل كول د حضور ﷺ اخلاق و.

فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُوْنَ ۝٥ بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ ۝٦ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ

پس زر به اووينې ته او دوئ به هم اووينى. داچه په كوم يو دساسونه لېوتوب دى. بيشكه رب ستا هغه

اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۠ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝٧

ښه عالم دې په هغه چا چه گمراه شوي وى د لارې د الله ﷻ نه. او هغه ښه عالم دى په هدايت موندونكو باندې

فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِيْنَ ۝٨ وَدُّوْا لَوْ تُدْهِنُ

پس ته مكوه اطاعت د تكذيب كونكو. غواړى دوئ چه كه ته نرمى كوې به مسئله د توحيد كښې

فَيُدْهِنُوْنَ ۝٩

نو دوئ به هم نرمى كوى په تكليف دركولو كښې

﴿ فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُوْنَ ﴾ دا تخويف دې بعض مفسرين فرمائي چې تخويف دنيوى دې، او ديكښې غزوه بدر، فتح مكه او دغه شان نور كوم عذابونه او قحطونه په قريشو نازل شوى دى. هغې ته اشاره ده، او بعض وائي چې دا تخويف اخروى دې، ،چه د مرگ نه ورستو به درته پته اولگى چه ليوني څوک دې؟

﴿بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ ﴾ مفتون يا مصدر ميمى دې پمعنى د ليونتوب. يعنى پته به اولگى چه ليونتوب په چاپورى دې، يا مفتون پمعنى د مجنون دې او باء زائده ده. يعنى څوک ليونى دې؟

﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ ﴾ دا هم دليل دې چه مجنون ته نه ئى بلكه دا كافران مجنونان دى، څكه د دوئ گمراهى د دوئ په جنون دلالت كوى، او ستا هدايت ستا په عدم جنون باندې دلالت كوى. الله ﷻ په هر چا ښه پوهه دې.

﴿فَلَا تُطِعِ ٱلْمُكَذِّبِينَ﴾ «فاء» تفريعيه ده. په مافبل تفريع ده. يعنى كله چه دا وضاحه شوه چه اې پيغمبر ﷺ په تا د الله تعالىٰ فضل دې. ته الحمدلله مجنون نه يې. بلکه دا کفران کونکی دی چه د الله تعالىٰ نافرمانه دی. لهذا ته د دوئ اطاعت مکوه

﴿وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ﴾ «دا دعوه دسورة ده او علت دې د نهي مذکورې. مشرکين غواړی چه ته «نعوذبالله» خپل منصبي کار کښې نرمي اوکړې. يعنى د توحيد به معامله کښې ورسره نرمي اوکړې. او د دوئ د معبودانو مذمت پريدې. نو دوئ به هم ستا په مخالفت کښې نرمي اوکړې. ليکن ته د دعوى خبره مه منه. مسئله د توحيد به واضحه بيانوه. د دوئ د معبودانو نفى کوه.

«تدهن» د «دهن» نه دې. «دهن» تيلو ته وئيلې کيږي. او د تيلو لازمي اثر نرمي ده. نو دې وجه نه هر څه معامله کښې نرمي خودلو باندې هم اطلاق کيږي. او دلته ترينه مراد مطلقا نرمي نه ده. ځکه چې دا خو مامور به ده «کما في قوله تعالى . فبما رحمة من الله لنت لهم». بلکه مراد ترينه دلته مداهنت دې. چې د خپل طرز عمل سره سره خپل موقف کښې هم نحک او نرمي پيدا کړه

**فائده** «مداراة» او «مداهنة» قريب المعنى الفاظ دی. خو مدارات جائز . بلکه مستحسن امر دې. او مداهنت ناجائز امر دې. د دې وجهې نه دواړو کښې فرق پيژندل ضروری دې.

(۱) مداهنت وئيلی کيږی "بذل الدين لصلاح الدنيا" ته چې دنيا جوړلو د پاره دين حکم شاته غورځول او مدارات وئيلی کيږی بذل الدنيا لصلاح الدين او لصلاح الدنيا او لهما معا يعنى دين . يا دنيا . او يا دين او دنيا دواړو د خير د پاره يو دنيوی امر پريخودلو ته

(۲) مداهنت دا دې چې فاسق سرې سره ناسته پاسته کول. دهغه ناجائز کارونه باندې نه نکير کول او نه ترينه اعراض کول، بلکه د خپل طرزعمل سره گويا دهغه تائيد کول، او مدارات دا دي چې جاهل اوناواقف ته حق خودل، خو خودنه کښې ورسره نرمي کول . او دغه شان فاسق د گناه نه منع کول. خو نهی کښې ورسره نرمي کول.

(۳) مدارات او مداهنت دواړو کښې چشم پوشی وی، خو مداهنت کښې د دنيا سلامتی د پاره وی، او مدارات کښې د دين سلامتی د پاره وی.

(۴) مدارات او مداهنت دواړو کښې تلطف او نرمی وی، خو مدارات کښې نرمی د باطل نه راګرځولو د پاره وی. او مداهنت کښې نرمی په باطل باندې اقرار د پاره وی

(۵)مدارات کښې صرف طرز عمل او اسلوب کښې نرمي وي. عقيدې او موقف خپل حال باندې مضبوط پاتې وي، او مداهنت کښې مؤقف او عقيدې کښې هم ورسره نرمي راشي. او هغه په خپل اصل حال پاتې نشي، (قرطبي، فتح الباري، احياء العلوم)

| |
|---|
| وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ۞ هَمَّازٍ مَّشَّاءٍۭ بِنَمِيمٍ ۞ |
| او اطاعت مکوه دهر ډير قسم خور، سپک، پيغور ورکونکي ډير تلونکي په چغلئ سره ډير چغلخور |
| مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ۞ عُتُلٍّۭ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ۞ أَن كَانَ ذَا |
| ډير منع کونکي د خير، تجاوز کونکي، ګناه ګار، بداخلاقه، علاوه د دينه حرامي هم دې، د دې وجې نه چه دې هغه خاوند |
| مَالٍ وَبَنِينَ ۞ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا قَالَ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ۞ |
| د مال او د اولاد. کله چه لوستلې شي په ده باندې آياتونه زمونږ نو وائي دا دروغ قصې د پخوانو خلقو دي. |
| سَنَسِمُهُۥ عَلَى ٱلْخُرْطُومِ ۞ |
| زر ده چه داغدار به کړو مونږ ده لره په پوزه باندې. |

﴿وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ﴾ماقبل کښې د عامو کافرانو د اطاعت نه منع وه، دلته د يو خاص کافر د اطاعت نه منع ده چه وليد بن مغيره، يا ابوجهل، يا اخنس وو، جمهور وائي دا آيت د وليد بن مغيره باره کښې نازل دې، چه دې ډير دروغژن وو، خبرې خبرې باندې به ئي قسمونه خوړل، چغل خور وو، بداخلاقه او سرکشه وو، خپل مال اولاد باندې ډير مغرور وو،

﴿مَّهِينٍ﴾حقير او سپک ته وائي، ﴿هَمَّازٍ﴾همز نه صيغه د مبالغې ده طعنه بلز او پيغور ورکونکي ته وائي. ﴿بِنَمِيمٍ﴾چغلي د فساد وراني راوستلو په غرض د يو کس خبره بل کس ته ورلو ته وائي، (روح، کشاف). ﴿مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ﴾ خير يا پمعنى د اسلام سره دې، منع کونکي وو د اسلام نه، د ده لس(۱۰) خامن وو، دوئ ته او نورو خپلوانو ته به ئي وئيل چه کچرته په تاسو کښې چا اسلام راوړو، نو څه به ورسره چرته هم ښه او نکړم، خپل راشن به ورباندې بند کړم، يا خير پمعنى د مال سره دې، مال منع کونکي وو، حقوق د مال ئي نه اداکول، بخيل وو ﴿مُعْتَدٍ﴾

اعتداء نه دې يعنې ظلم کښې دَحد نه تجاوز کونکې دې. ﴿أَثِيمٍ﴾ فاسق پيشه دې چې کار ئې بس ګناه کول دي (ماجدي) ﴿عُتُلٍّ﴾ بداخلاقه، ډېرجګړمار. دَعتل دَمشتق دې په سختئ سره يوشي لرې کولو ته وئيلې کيږي ﴿بَعْدَ ذَٰلِكَ﴾ "بعد" پمعنی دَ "ثم" دې ، اشاره مذکور ټولو قباحتونو ته ده، "ثمّ" په تفاوت رتبي باندې دلالت کوي، نومطلب دادې چه دَټولونه لوئ قباحت ئې دادې چه حرامي دې، ولدالزناء دې ، يا "بعد" په معنی د "دون" سره دې، يعنې علاوه دَ دې بدو اوصافو نه حرامي هم دې. ﴿زَنِيمٍ﴾ دَ "زنمة" نه مشتق دې، دَ بيزې غوټيالوته وائي، چونکه دغه شان بيزه په نوروبيزوکښې پيژندلې کيږي، نودغه شان دې هم په خلقوکښې په کمينه والي اورذيل والي کښې پيژندلې کيږي، اوچونکه دغه شان دغه غوټيالي فضولي وي، ضرورت ورته نه وي، نودغه شان دې هم په قريشوکښې نه دې بلکه حرامي ولدالزناء دې

روايت دې چه کله داآيت نازل شونوولیدخپلې مورته راغې ورته ئې اووئيل، چه محمّد ﷺ خما نهه(۹) صفات بيان کړل، نورټول ماته معلوم دي ليکن ماسوئ دَآخيری نه، آيا په ريشتيا څه حرامي يم، مورئې تصديق اوکړو، ورته ئې اووئيل، ستاپلار عنين(نامرده) وو، نوڅه دَ هغه په مال ضائع کيدوباندې يريدمه، نويوشپونکي سره مې زنااوکړه، نوته دَهغه ځوې ئې.

﴿أَن كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِينَ﴾ لام تعليليه پکښې مقدردې، اى لان كان ذامال. (۱) او دا علت دې دَ ﴿وَلَا تُطِعْ﴾، يعنې داسې بدکردار انسان اتباع ددې وجهې نه مه کوه چې دَده مال ډير دې اولادئې ډير دی، (۲) او يا علت دې د محذوف ، چه كَذَّبَ يا كَفَرَ دې، اى: كذب لان كان ذا مال... ، مراد دا دې چه دې د تکذيب او دَ مذکوره قباحتونو ارتکاب په دې وجه کوي چه دَمال اولاد په نشه کښې ډوب دې، حالانکه دَمال او اولاد شکر ورته پکاروو.

﴿إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَاتُنَا﴾ دائې بل قباحت دې، چه دَقرآن آياتونوته دَدروغوقصې وائي ﴿سَنَسِمُهُۥ عَلَى ٱلْخُرْطُومِ﴾ دَمذموم اوصافوبيان نه بعدئې اوس دَجزاء بيان دې، چې دَ ده جزاء دا ده چې مونږ به ئې دنيا او آخرت دواړه کښې ذليله او ناکامه کړو، دَدنيا ذلت ئې دا وو چې غزوه بدر کښې مسلمانانو دَ لاسه قتل شو، او دَ آخرت ذلت دَپاره ئې دَقيامت ورځ ده.

((سنسمه)) د وسم نه دي . نشان زد كول او داغ لكولو ته . . . ي و دا داغ حقيقتا وو
او كه صرف كنايه ده د ذلت او رسوائي نه؟ مفسرينو دواړه قوله ذكر كړي دي بعض وائي چې
داكنايه ده ذلت او رسوائي نه.څكه چې پوزه به عربو د عزت محل گڼلو . او خټل ذلت و
رسوائي تعبير به ئې دپوزې كټ كيدلو سره كولو . نو به پوزه د . . لكولو كښې د هغه رسوائي
طرف ته اشاره اوشوه. او بعض وائي دا حقيقتا وو . غزوه بدر كښې د ده به پوزه داغ لگيدلې
وؤ، او آخرت كښې به پرې هم الله ﷻ اولگوي .چې هغې كښې به د ده اهانت هم وي . او كفر او
جرم به ئې هم هر چانه ښكاره شي

((خرطوم)) د هاتي او خنزير خړتم نه وائي.اومراد ترينه دلته پوزه ده. او د انف ذكر كولو
په ځائ خرطوم راوړلو كښې د ده اهانت طرف ته اشاره ده . چې كوم دې د خنزير په شان
بدشكله دې

إِنَّا بَلَوْنَٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَآ أَصْحَٰبَ ٱلْجَنَّةِ إِذْ أَقْسَمُوا۟

بيشكه مونږ ازمائش كړيدې په اهل مكه لكه چه آزمائښ كړې وؤمونږ دباغ والو.كله چه قسمونه اوكړل هغوئ

لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ ﴿١٧﴾ وَلَا يَسْتَثْنُونَ ﴿١٨﴾ فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ

چه خامخاشوكوي به ميوې دباغ په وخت دصباكښې،اوان شاءالله ئې نه وئيل.نوتاؤراتلو سوپه دې باغ يو تاويدونكي عذاب

مِّن رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُونَ ﴿١٩﴾ فَأَصْبَحَتْ كَٱلصَّرِيمِ ﴿٢٠﴾ فَتَنَادَوْا۟

دطرفه درب ستانه اودوئ اوده وؤ.پس اوگرځيدلوهغه باغ پشان دكټ كړې سوې فصل.پس دوئ آوازونه اوكړل يوبل ته

مُصْبِحِينَ ﴿٢١﴾ أَنِ ٱغْدُوا۟ عَلَىٰ حَرْثِكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰرِمِينَ ﴿٢٢﴾ فَٱنطَلَقُوا۟

په وخت دصباكښې.چه دوخته راشئ باغ خپل ته كچرته يئ تاسوميوې شوكونكي.نودوئ لاړل

وَهُمْ يَتَخَٰفَتُونَ ﴿٢٣﴾ أَن لَّا يَدْخُلَنَّهَا ٱلْيَوْمَ عَلَيْكُم مِّسْكِينٌ ﴿٢٤﴾

اودوئ ورو ورو داخبرې كولې.چه داخل نه شي هرگزدې باغ ته نن ورځ په تاسو مسكين.

وَغَدَوْا۟ عَلَىٰ حَرْدٍ قَٰدِرِينَ ﴿٢٥﴾

او سهروختي اوتلل،په دې گمان چې دوئ به منع كولو د مسكينانو، قادر دي.

﴿ إِنَّا بَلَوْنَـٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَآ أَصْحَـٰبَ ٱلْجَنَّةِ ﴾دادنخويف دنيوى نمونه ده.چه دى اهلِ مکړونه مونږ دنياوى نعمتونه.دعيش سامان ورکړل.دينى نعمتونه چه قرآن دي .او بعثت دَ اخرى رسول دي.موهم ورکړل. ليکن دوئ ئى ناشکرى اوکړه. نو مونږ ورباندى ازمائښت اوکړو. قحط او لوږه کښې مومبتلاکړل. لکه څرنګه چه مو باغ والؤو ته نعمتونه ورکړى وؤ،په ناشکرئ سرهورباندى عذاب راغې،باغ ئى هلاک شو،حضورﷺ اهل مکړو ته بد دعاء کړې وه چه"اللّهم اشدد وطأتکَ على مضر ، واجعلهاعليهم سنين کسني يوسف"په دې وجه دوئ په قحط کښې څوکاله مبتلاوؤ

دَ **اصحب الجنت واقعې خلاصه** داده. چې دا يو څو رونړه وؤ . دَ دوئ يو مشترکه باغ وؤ. چې کله ميوې پخې شوې. نو دوئ مشوره اوکړه چې سحر وختى به په. پټه پټه ميوې اوشکوؤ . چې څوک مسکين رانشى او څه رانه اونه غواړي.،کيدې شې دَدغې علاقى دستور به دا وؤ چې مساکينو له به ئى حصه ورکوله. يا دَ دوئ نه مخکښې دَپلار ئى داعمل پاتې شوې وى، لکه بعض آثاروکښې راغلى دى، بهر حال الله ﷻ ته دَ دوئ دامشوره ډير ناخوښه شوه .اوشپې شپې ئى دَدوئ په باغ عذابُ نازل کړو، اوباغ ئى تباه وبربادشو. سحر دوئ مشورې مطابق روان شول،او دَ يرې نه ئى خبرې هم يوبل سره پټې پټې کولې، چې چاته پته او نه لګى،خو چې کله باغ ځائ ته اورسيدل، نوهلته باغ نه وؤ،حيران شول چې لارمو غلطه کړه او که بل څه معامله ده .آخر ورته دَخپلې غلطئ احساس اوشو،او توبه اواستغفار ئى اوکړو.

دا باغ دَ چا وؤ؟ کومې علاقې کښې وؤ؟ اوکومې زمانې کښې دا واقعه تيره شوې ده؟دې باره کښې هيڅ قطعى ثبوت نشته، اونه په قرآن کښې دَ واقعاتو بيان نه دا خبرې مقصود وى، لهذا بهتره خبره دا ده چى داخپل اجمال باندې پريخودلې شى، البته مفسرينو قرائنو او آثارو په بنياد دې متعلق مختلف اقوال ذکر کړى دى،چې هغې کښې اقرب الى الصحة قول دادې ، چى دا باغ صنعاء يمن مضافاتى علاقې کښې دَ يوسړى وؤ،د هغه معمول دا وؤ چې کله به ميوې پخې شوى، نو مساکينوله به ترينه حصه ورکوله ،خوکله چې هغهٔ وفات شو ، نو ځامنو دَ هغه معمول خلاف دامشوره اوکړه. صنعايمن په مضافات کښې واقع . دې علاقې کښې اوس هم تور کانړى اوشواهد شته چې هغه دې احتمال ته ترجيح ورکوى.

﴿ وَلَا يَسْتَثْنُونَ ﴾استثناء درې معنې مفسرينو ذکر کړيدى:

(۱) استثناء: پمعنی دَ ترک: ده،چې مسکینانو له به هیڅ نه پریږدو .تول په ځان له اخلو

(۲)استثناء نه مراد ان شاءالله وئیل دی،یعنی دومره په غرور کښې ووُ ،چې ان شاءالله ئې هم او نه وې ، چې مونږ به صباخپل فصل شکوو.دې دویمې معنې مطابق عذاب سبب ان شاءالله نه وئیل، نه ووُ،بلکه اصل سبب تکبر اوغرور دَدوئ ووُ

(۳)"لایستثنون" دَ "لایثنون"په معنی کښې دې، او انثناء رجوع او واپس کیدلو ته وائي،یعني دوئ په خپلې ارادې ټینګ اولاړ ووُ، واپس کیدل ترینه نه .

﴿ فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ ﴾یعنی دوئ ځان سره داتدبیر ونه جوړکړل او اوده شول. خو بل طرف ته تقدیر الهی دا ووُ، چې مساکین محرمه پاتې کیږی نو دوئ به هم ترینه محرومیږی. نو دَ الله ﷻ عذاب په شپه کښې په باغ نازل شو اوباغ مکمل تباه شو ،

طواف: ګیر چاپیره تاویدلو ته وائی،یعنی دې عذاب دَ باغ مکمله احاطه کړې وه. "طائف" صفت دې د موصوف محذوف دَ پاره ،اې بلاء طائف . دَ عذاب نوعې تعین په روایاتو کښې نشته،صرف دومره دې چې عذاب پرې راغې اوباغ ئې تول تباه کړو

﴿ فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ ﴾مفسرینو متعددې معنې بیان کړیدی.

(۱) صریم: هغه باغ ته وائی چې هغې میوې بوتی هرڅه کټ شوی وی،مطلب داچې ودان او آباد باغ داسی وران وجاړ شو.

(۲)صریم: تورې ایرې ته وائی،یعنی باغ تورې ایرې په شان اوګرځیدو.

(۳)صریم په معنی د "لیل: شپې سره دې،یعنی باغ دَشپې په شان تک تورشو.

﴿ أَنِ اغْدُوا عَلَىٰ حَرْثِكُمْ ﴾ "ان"تفسیریه دې دَ ﴿فَتَنَادَوْا﴾ تفسیرکوی یعنی کچرته میوی شوکول غواړئ، نوسهاروختی راووځئ﴿ إِن كُنتُمْ صَارِمِينَ ﴾ای قاصدین للصرم وقطع الثمار .

﴿وَغَدَوْا عَلَىٰ حَرْدٍ ﴾ ((حرد)) درې معنو کښې استعمالیږی: (۱)سرعت (۲) منع (۳) غصه اودلته ترینه درې واړه معنې اغستلې شی،که اوله معنی مراد واخلو ، نو بیا ((علی)) پمعنی "باء" سره دې، او جار مجرور به متعلق کیږی(( غدوا)) سره، اې غدوا بسرعة ونشاط،یعنی څه په تیزئ اوچستئ سره سهار روان شول، اوګمان ئې داوو چې مونږ په کټ کولو باندې قادر یو. اوکه ((حرد)) پمعنی دَ"منع" سره واخلو، نوبیا به مطلب داشی چې دوئ سهار روان شول،

او حال داوؤ چې دوئ صرف په منع باندې قادر وؤ، په خير بلکل نه وؤ قادر ،اګر که دوئ غوختلې هم، څکه چې باغ ورله الله ﷻ هلاک کړې وؤ. يادا تهکم دې چې دوئ دا غته توره ګڼړله چې مونږ په منع باندې قادر يو،

اوکه «حرد» پمعنی غصې سره واخلو بيابه مطلب داشي چې دوئ سهار روان شول، او حال دا وؤ چې صرف يو بل ته په غصې قادر وؤ،نه په بل څه باندې ،کما في قوله تعالى: يتلاومون ، چې ولې مو داسې مشوره کوله . چې د مکمل باغ نه خو لاس اووينځلو،آخرى دوؤ معنو په صورت کښ دَ جار مجرور تعلق «قادرين» سره دې. او تقديم دَپاره دَحصر دې.

«ابو السعود،التحرير والتنوير»

| |
|---|
| فَلَمَّا رَاَوْهَا قَالُوْٓا اِنَّا لَضَآلُّوْنَ ﴿٢٦﴾ بَلْ نَحْنُ |
| پس هرکله چه وئ ليدلوداباغ نواوئی وئيل بيشکه مونږخامخالاره ورکه کړيده،بلکه دګناه پوجه مونږ |
| مَحْرُوْمُوْنَ ﴿٢٧﴾ قَالَ اَوْسَطُهُمْ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ ﴿٢٨﴾ |
| محرومه کړې شوی يو دَميوی نه،اووئيل مينځنی په هغوئ کښ آيانه وؤ ويلی ماتاسوته ولی پاکی نه بيانوئ دَالله ﷻ |
| قَالُوْا سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿٢٩﴾ فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ |
| اووئيل هغوئ پاکی ده رب زمونږلره بيشکه مونږوؤظلم کونکی پخپله‌پس مخ کړو(شروع شول)بعض دَهغوئ |
| عَلٰى بَعْضٍ يَّتَلَاوَمُوْنَ ﴿٣٠﴾ قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا طٰغِيْنَ ﴿٣١﴾ |
| په بعضوباندی چه يوبل ئی ملامته کول،اووئيل هغوئ هائې افسوس مونږلره بيشکه مونږتول وؤسرکشی کونکی |
| عَسٰى رَبُّنَآ اَنْ يُّبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَآ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا |
| قريبه ده داچه رب زمونږ به بدل راکړی مونږ ته (په برکت دَتوبی)غوره باغ دَ دی باغ نه،بيشکه مونږخپل رب ته |
| رٰغِبُوْنَ ﴿٣٢﴾ كَذٰلِكَ الْعَذَابُ ؕ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٣﴾ |
| رغبت کونکی يو.هم داسی وی عذاب دَدنيا،اوخامخاعذاب دَآخرة ډيرلوئ دی دَدې نه،کچرته وې دوئ چه پوهيدلې |

﴿فَلَمَّا رَأَوْهَا قَالُوٓا ﴾يعنى كله ئى چه باغ اوليدلو .چه هلته خو هيڅ هم نه وو .نو وى وىل لكه چه مونږ لاره غلطه كړيده.بل ځاى ته راغلى وو .ليكن چه سوچ ئى اوكړوچه لاره خو هغه ده. نو اوئي وئيل چې لار مو نه ده غلطه كړې. بلكه حقيقت دا دي چه مونږدخپل جرم په وجه محرومه شوى وو

﴿قَالَ أَوْسَطُهُمْ ﴾ ديكښې ورته يو دَيو ورو طرف ته تنبيه اوياددهانى ده په خطاء باندې. چې ګورئ داستاسو بدنيتى نتيجه ده. او دا كارمو غلط كړيدې.تاسو ته مامخكښې هم وئيلى وو چې داسې كارمه كوئ. «اوسطهم» يا پمعنى دَخير سره دې. يعنى هغه ورور چې دوئ كښې دَدين اوعقل په اعتبار سره بهتر وو .اويا په معنى مينځنى سره دې

﴿ لَوْلَا تُسَبِّحُونَ ﴾تسبيح نه مراد دلته نافرمانى اوګناه ترك كول دى . ځكه چې ديكښې تنزيه ده الله ﷻ دَدينه چې په معصيت سره ئى نافرمانى اوكړې شى.اودغه شان ترغيب دې پكښې توبى ته، ځكه چې تسبيح تمهيددې دَپاره دَتوبې كما في قوله تعالى:فسبح بحمد ربك واستغفره. ﴿قَالُوا سُبْحَٰنَ رَبِّنَآ ﴾ داپه اول وهلة كښې اعتراف د جرم دې ، چې واقعى مونږ ظلم كړيدې . او د عبديت تقاضه هم دا ده چې انسان حيلې ،بهانې تلاش كولو په ځاى فوراً د خپل خطا اعتراف اوكړې.

﴿ فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾اعتراف جرم نه بعد ملامتيا ذكر كيږى. چې هر يو په بل باندې خبره اوچوله چې ستادلاسه داسې اوشو .لكه څنګه چې عام عادت موافق څه كار ورانيدلو نه بعدخلق داسې كوى.

﴿ قَالُوا يَٰوَيْلَنَآ ﴾ملامتيا نه بعد اوس دَدې خبرې اعتراف دې چې مونږ ټول دې كښې برابر شريك يو،او ټولو له توبه اوباسل پكار ده، كيديشى چې الله ﷻ راباندې رحم اوكړى، مجاهد رحمه الله فرمائى چې دوئ توبه اوباسله نو الله ﷻ دوباره دَهغې نه غوره باغ وركړو بعض وائى چه دوئ دَدى په بدله كښې دآخرت ثواب اوغوښتلو(ابن كثير).

﴿ كَذَٰلِكَ ٱلْعَذَابُ﴾تنبيه ده خلقوته چه داخودَدُنيادَعذاب يوورکى نمونه وه،دَاخرت عذاب دَدى نه ډيرزيات دې،خوتاسونه پوهيږئ.

إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴿٣٤﴾ أَفَنَجْعَلُ ٱلْمُسْلِمِينَ

بېشکه لپاره د پرهېزګارانو به نیزد رب د دوئ جنتونه د عیش وعشرت دي نو ایا به ګرځوو مونږ مسلمانان

كَٱلْمُجْرِمِينَ ﴿٣٥﴾ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴿٣٦﴾ أَمْ لَكُمْ كِتَٰبٌ فِيهِ

په شان د مجرمانو (کافرانو) څه شویدي تاسو لره. څنګه فیصله کوئ تاسو آیا سته دي تاسو لره کتاب چه په هغې کښې

تَدْرُسُونَ ﴿٣٧﴾ إِنَّ لَكُمْ فِيهِ لَمَا تَخَيَّرُونَ ﴿٣٨﴾ أَمْ لَكُمْ

تاسو ئې لولئ. چه بېشکه وي تاسو لره په هغې کښې خامخا هغه څه چه تاسو ئې خوښوئ. آیا سته دي ستاسو لپاره

أَيْمَٰنٌ عَلَيْنَا بَٰلِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ إِنَّ

قسمونه چې لازم وي په مونږ باندې. چه رسیدونکي وي انتها ته (په تاکید کښې) هغه وي تر ورځ د قیامت پورې. چه بېشکه

لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ ﴿٣٩﴾ سَلْهُمْ أَيُّهُم بِذَٰلِكَ زَعِيمٌ ﴿٤٠﴾

وي به تاسو لپاره هغه څه چه تاسو ئې فیصله کوئ تپوس اوکړه د دوئ نه چه څوک په دوئ کښې په دغه خبره باندې ذمه وار دي.

أَمْ لَهُمْ شُرَكَآءُ فَلْيَأْتُوا۟ بِشُرَكَآئِهِمْ إِن كَانُوا۟ صَٰدِقِينَ ﴿٤١﴾

آیا سته دي دوئ لره شریکان پس را دې ولي شریکان خپل که چرته وي دوئ رښتني.

﴿إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ دا مؤمنانو ته بشارت اخرویه دي.

﴿أَفَنَجْعَلُ ٱلْمُسْلِمِينَ﴾ دې کښې زجر وتوبیخ دې مشرکینو ته. او د هغوئ په زعم رد دې، چې دوئ به وئیل چې اول خو به قیامت نه راځي. اوکه قیامت راغي . نو مونږ به هلته مال دار او معزز یو ،او د مسلمانانو نه به په غوره حالت کښې یو .استفهام انکاري دې، چې قیامت په ورځ چرته هم مؤمن او مجرم ستني برابر کیدي؟

﴿مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ﴾ ام دپاره دانتقال دې، اودیکښې انتقال دې زجر اوتوبیخ نه د دوئ مذکوره قول په دلیل سره ردکولو ته،چې دوئ کومه خبره کوی د دې څلور وجهې کیدې شي:

(۱) دوئ سره به کتب سماويه وى هغې کښې به ئې داخبره ليدلى وى
(۲) دوئ به مونږ سره دَ دې خبرې عهد ومعاهده کړې وې.
(۳) چاورله زمونږ طرف نه ددې ذمه دارى به اغستې وى.
(۴) يا به دَ دوئ خود ساخته معبوذان ورله دا مقام ورکړى وى

﴿ أَمْ لَكُمْ كِتَٰبٌ ﴾ديکښې دَاولې وجهې رد دې، يعنى دوئ سره په دې خبرې څه نقلى دليل نشته، ﴿ إِنَّ لَكُمْ فِيهِ لَمَا تَخَيَّرُونَ ﴾داجمله مفعول به ده دَپاره دَ ﴿تَدْرُسُونَ﴾، يعنى هغه کتاب کښې تاسودا لوستلى وى چې تاسو دَپاره به هغه څه وى چې څه ستاسو خوښه وى.او جمله چې کله مفعول به وي، نو دې په شروع کښې "اَنَّ" (بفتح الهمزه) وي ، "اِنَّ" ( بكسر الهمزه) نه وي ، او دلته "اِنَّ" بكسر الهمزه دي ، ځکه چې دا جمله دلته محكي بلفظها ده ، او مطلب دا دې چې آيا تاسو يو داسې کتاب لولئ چې په هغې کښې داعبارت ليکلې وي چې ((ان لكم فيه لما تخيرون)) ، ﴿فيه﴾کښې "هاء" ضمير مجرور((کتب)) طرف ته راجع دې، او دا دَ اول "فيه" دَ پاره تاکيد دې.(( تخيرون))پمعنى دَ "تختارون" سره دې.

﴿أَمْ لَكُمْ أَيْمَٰنٌ عَلَيْنَا﴾ دا دَ دويمې وجهې رد دې ، چې کيدې شى دوئ دا خبره دې وجهې نه کوى چې دوئ زمونږ سره عهد وپيمان کړې وى، چې قيامت په روځ به مونږ دوئ سره داسى معامله کوؤ،چې څنګه دوئ فيصله کول غوارى،ليکن دوئ خومونږ سره څه داسى عهد و پيمان نشته .

((لكم)) خبر مقدم دې، ((ايمان)) مبتدا موخر دې، ((علينا)) صفت اول دې دَ پاره دَ ((ايمان))، چې دا قسمونه پوره کول په مونږ لازم وى، ﴿ بَٰلِغَةٌ ﴾صفت ثانى دې دَ ((ايمان)) يعنى تاکيد او مضبوطې کښې دا قسمونه انتهاء ته رسيدلى وى، ﴿إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ﴾جار مجرور متعلق دې "ثابت" سره، چې "خبر" ورسره هم متعلق کيږى، مطلب دادې چې داقسمونه ترقيامته پورې قائم وى، ﴿إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ ﴾جمله جواب قسم دې، قسم اګرچې مذکورنه دې خوملحوظ دې، يعنى مونږ دا قسمونه خوړلى دى چې تاسوڅه فيصله خوښه وى زمونږ به په هغې عمل وى.

﴿سَلْهُمْ﴾ دي كښې دَ **دريمې وجهې رد** دې . چې كيدې شي چا ورله د دې ذمه دارې اغستې وى؟ الله ﷻ فرمائي چې كه چا ورله ذمه وارى اغستې وى . نو اودې خائي چې خوك دې؟

﴿ أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ ﴾ دې كښې دَ**خلورمې وجهې رد** دې، چې كيدې شي دوئ داخبره خكه كوئ چې دوئ بتان به ئې مدداوكړى اودامقام به ورله وركړى « لهم » كښې لام اجليه دې، او مضاف محذوف دې اي لاجل نصرهم ﴿فَلْيَأْتُوا ﴾ الله ﷻ ورله جواب وركوى چې دغې سختى ورځې كښې به ورله شركاء هيڅ نفع ورنكړى.

| |
|---|
| يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَيُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ۝ |
| په هغه ورځ چه كشف اوكړې شي دپنډئ نه اوراوبللې شي دوئ سجدې كولو نه نودوئ به بې طاقت اونه لرى |
| خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۖ وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ |
| نيتې به وى سترگى دَدوئ خور به وى په دوئ ذلت،اوبه تحقيق وؤبه دوئ چه رابللې به شول سجدې كولوته |
| وَهُمْ سَالِمُونَ ۝ فَذَرْنِي وَمَنْ يُكَذِّبُ بِهَٰذَا الْحَدِيثِ |
| او دوئ روغ رمټ وؤ «بيا ئې هم سجده نه كوله»پس پريږده مالره اوهغه خوک چه تكذيب كوى پدى قرآن |
| سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ۝ وَأُمْلِي لَهُمْ |
| زرده چه په رورو به ونيسومونږدوئ پداسې طريقه چه دوئ به نه پوهيږى،اومهلت وركوم دوئ ته، |
| إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ ۝ أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا فَهُمْ مِنْ مَغْرَمٍ مُثْقَلُونَ ۝ |
| بيشكه تدبيرځمامحكم دې آياغوارې ته دَدوئ نه مزدورى بدله،نوپه دوئ دتاوان دَوجې نه بوج دې |
| أَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ۝ |
| آيائنه دوئ سره علم دَغيب چه دوئ ئې ليكى. |

﴿يَوْمَ يُكْشَفُ عَن سَاقٍ﴾داتخويف اخروى دې،چې قيامت په ورځ چې كله سختى شي دوئ به سجدې ته رااوبللى شي، خودوئ به سجده نشى كولې.سترګې به ئى د شرمه ټيټې وى، ذلت اورسوائى به پرې خوره وى،

«يوم» ظرف متعلق دې ﴿فَلْيَأْتُوا﴾ پورې، يا "اذكر" محذوف پورې. ﴿ يكشف عن ساق ﴾ بعض مفسرين فرمائى چې دا د متشابهاتو نه دې، او دينه مراد كشف ساق دې كمايليق بشانه . او ځنو پكښې تاويل كړې دې، چې دا كنايه ده دَ معامله سختيدلو نه، او دا تاويل دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنه مجاهد رحمه الله ابراهيم نخعى رحمه الله اونورو متقدمينو اودَخير القرون اسلافو نه په صحيح سندونو سره مروى دې. تاويل ته بدعت وئيل او دې قائلينو باندې دَالحاد فتوې لګونكو حضراتو دَپاره لمحه فكريه ده چې داسې حضراتوپاره كښې به دوئ څه وائى!؟ او دكومو سلفو د اتباع دعويدارې كوى !؟

﴿وَيُدْعَوْنَ إِلَى ٱلسُّجُودِ﴾يعنى كله چه داتجلى اوشى نوخلق به فرشتى يا الله تعالى، سجدى كولو ته را اوغواړى، مسلمانان به سجده اوكړى، ليكن بعضې خلق به دَ سجدې طاقت نه لرى، ابن مسعود رضي الله عنه وائى چه ملاګانې به ئې تخته شى، يوهډوكى به شى،جوړ به پكښې نه وى، كوزسترګى به وى،ذليله به وى. دابه كوم خلق وى؟ دې باره كښې تفسيرونه مختلف راغلى دى:

(۱)ابن عباس رضي الله عنه اوابن جبير رضي الله عنه نه نقل كړې شويدى چه دابه هغه خلق وى چه اذان به ئې اوريدلو او جمع مونځ ته به نه تلل.

(۲)دَ ابو سعيدخدرى رضي الله عنه دَروايت مطابق هغه خلق په دنياكښې دَ ريا، او خودنې دپاره مونځ كولو.

(۳)بعض وائى چه دينه مراد كافران دى.

﴿وَقَدْ كَانُوا۟ يُدْعَوْنَ إِلَى ٱلسُّجُودِ﴾سجدونه مرادفرض مونځونه دى،دَدريم تفسيرمطابق ورنه مرادټول طاعات دى.

﴿ فَذَرْنِى وَمَن يُكَذِّبُ ﴾ دا تسلى ده نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته،چه دومره دلائلو،نصائحو او تخويفاتو باوجود، دوئ ايمان نه راوړى، نو ته ترينه بې غمه شه ،ما ته ئى پريګده، څه به

ورسره پوهه شم، ﴿ذرني﴾ داکنایه ده په طاقت لرلو د سزاورکولو .یعنی څوک چه تکذیب کوی نو ماته ئی پرېږده، ﴿بِهَٰذَا الْحَدِيثِ﴾ای بالقرآن، ﴿سَنَسْتَدْرِجُهُم﴾ استدراج رو رو درجه وار کوزولو ته وائی،یعنی مونږ به ئی مختلف اسبابو اواحوالو نه تیره وؤ. اوخپل عذاب او گرفت ته ئی را نیزدې کوؤ، «من حیث لایعلمون» یعنی مونږبه ئی په داسی طورسره رو رو نیسو ، چه دوئ به نه پوهیږی چه دا زمونږ نیول دی،بلکه گمان به کوی چه دا زمونږ ترقی ده، دَ دی آیت پوره تفصیل اعراف(۱۸۲)کښې تیرشویدې هلته ئی اوگورئ.

﴿أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا فَهُم﴾دې آیتونو کښې مشرکینوته زجر دې په ایمان نه راوړلو باندې . او دَ ایمان راوړلو په لار کښې چې کوم موانع دی دَهغی نفی هم کیږی،اودې آیت کښې داول مانع نفی ده،چې کله سړې دَپاره مالی تاوان مانع اوگرځی، لیکن ته خو دَ دوئ نه څه چنده او اجرت نه غواړې چې دوئ پرې تاوانی کیږی.

﴿أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ﴾دې کښې دویم مانع نفی ده ،چې کله سړې دې وجهی نه ایمان نه راوړی چې څه ته ضرورت ئی نه وی،هغه ته خپله دَالله ﷻ طرف نه وحی کیږی، دَ هغه نبی اورسول ته احتیاج نه وی ، لیکن دوئ سره څه وحی هم نشته ،غیب نه مراد وحی ده، فهم یکتبون یعنی دوئ هغه لیکی اوتاته ئی حاجت نشته.

| |
|---|
| فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادَىٰ وَهُوَ مَكْظُومٌ ﴿٤٨﴾ |
| پس صبرکوه ته دَحکم دَرب خپل اومه کیږه په شان دَمهی والا کله ئي چه اواز اوکړوالله ته اووؤدې ډک دَغم نه، |
| لَّوْلَا أَن تَدَارَكَهُ نِعْمَةٌ مِّن رَّبِّهِ لَنُبِذَ بِالْعَرَاءِ وَهُوَ |
| کچرته نه وې رسیدلې ده ته نعمت دَطرفه دَرب خپل نه نوخامخاغورځولې شوې به وې په صحراء،اووؤبه دې |
| مَذْمُومٌ ﴿٤٩﴾ فَاجْتَبَاهُ رَبُّهُ فَجَعَلَهُ مِنَ الصَّالِحِينَ ﴿٥٠﴾ |
| ملامته کړې شوې پس غوره کړوده لره رب دَ ده پس اوئی گرځولو دې دَ نیکانو نه |

﴿فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ﴾داتسلی ده اودَصبرحکم دې حضورﷺته،﴿وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ﴾ دینه مرادیونس علیه السلام دې،یعنی لکه څرنگه چه یونس علیه السلام عجلت اوکړو، دَالله ﷻ دَحکم

راتلونه بغیر دَ ښار نه اووتلو ، نو بطورتنبیه مونږه دَمهی په خیټه کښې قید کړو .نو ته دغه شان مکذبینو په معامله کښې تنګدلی مه کوه . (قصه دَیونس علیه السلام په سورة انبیاء وغیره کښې تیره شویده).

﴿إِذْ نَادَىٰ﴾ ندا نه مراد دعا خوښتل دی یعنی په خیټه دَمهی کښې نې دادعااوئیله لا اله الاانت سُبحٰنک انی کنتُ من الظالمین(انبیاء:۸۷) ﴿وَهُوَ مَكْظُومٌ﴾ ای مملوءٌ غمّا(جلالین)دغم نه ډک وو، یادَغصی نه ډک وو قوم ته چه دَ ده په دعوت سره ئې ایمان نه وو راوړې(روح).

﴿لَوْلَا أَن تَدَارَكَهُ نِعْمَةٌ﴾ مراددَ نعمةٌ نه دَتوبی کولوتوفیق ورکول دی (کبیر) ﴿لَنُبِذَ بِالْعَرَاءِ﴾ یعنی په یو خالی اوبی اب وګیاه ځائ کښې به ئې غورځولې وو .اودې به قابل مذمت وې، نه به موپرې یقطین (کدو)اونه راخیژولې وه اونه به ورله رسالت ورکړې وو لیکن الله تعالیٰ وربانديِ خپل رحمت اوکړو نوځکه دَدې ملامتیٔ نه بچ شو.

﴿فَاجْتَبَاهُ رَبُّهُ﴾ یعنی الله تعالیٰ ئې توبه قبوله کړه، اوغوره ئې کړو، یعنی دَوحی اعاده ئې ورته اوکړه ورستودَانقطاع نه. ﴿فَجَعَلَهُ مِنَ الصَّالِحِينَ﴾ ای من الکاملین فی الصّلاح،یعنی کامل اصلاح ئې ورله اوکړه،بعض وائی داتفسیردې دَ﴿فَاجْتَبَاهُ رَبُّهُ﴾.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِن | يَكَادُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | لَيُزْلِقُونَكَ | بِأَبْصَارِهِمْ | لَمَّا | |
| اوبه تحقیق سره شان دَخبری دادې چه قریب دی کافران خامخا او به خویه وی تاله په سترګوخپلوسره، هرکله چه | | | | | | | |
| سَمِعُوا | الذِّكْرَ | وَيَقُولُونَ | إِنَّهُ | لَمَجْنُونٌ ۝ | وَمَا | هُوَ | إِلَّا |
| دویٔ اوری | قرآن،اووائی | دویٔ | چه بیشکه | دانبی ﷺ خامخالیونې دې،اونه | دې | داقرآن | مګر |
| ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ ۝ | | | | | | | |
| نصیحت دې دپاره دَټولوخلقو. | | | | | | | |

﴿وَإِن يَكَادُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا دَمشرکانو دَقرآن او دَحضور ﷺ سره دَعداوت بیان دې. چه دوئ قرآن واؤری نو دومره په غصّی سره تاته گوری چه قریب وی چه تا پخپلو سترگو سره اونښویه وی. (۱) دا یا دَمحاوری مطابق وئیلی شویدی، لکه خلق وائی فلانې داسی گوری لکه چه خوری می، لکه نظراليّ نظراً یکاد یصرعني او یکاد یأکلني (۲) یامراد دینه نظربازان دی، یعنی دوئ دا کوشش کوی چه نظره دې کړی او هلاک دې کړی.

روایت دې چه په بنی اسد کښ نظر بازان وؤ، بعضو پکښ اراده اوکړه چه نبی کریم ﷺ نظره کړی نو دا آیت نازل شو (روح).

حسن بصری رحمه الله وائی څوک چه نظره شوې وی دا آیت لوستل دَهغه نه ضرر دفع کوی، دی آیت کښ دلیل دې په دې چه نظرلگیدل اودَهغی اثرحق دې، په دې باره کښ ډیرحدیثونه راغلی دی، په یوحدیث کښ دی: انّ العین حق(ابن کثیر)ابن عباس رضي الله عنه فرمائی حضور ﷺ به حضرات حسنین پدې دعاء سره دم کول: أُعیذکمابکلمات الله التامة من کلّ شیطانٍ وهامةٍ،ومن کلّ عینٍ لامةٍ، دی نه علاوه نور ډیر احادیث ابن کثیروغیره دی باره کښ ذکرکړیدی.

﴿ وَيَقُولُونَ إِنَّهُۥ لَمَجْنُونٌ ﴾ یعنی دَډیرعداوت په وجه تاته مجنون وائی، حالانکه مجنون داسی کلام نشی کولې چه ته ئی کوی، دا خو نه دې مگر ټولو خلقو دپاره نصیحت دې.

| ركوعاتها (۲) | سورة الحاقة مكيّة | آياتها (۵۲) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

ترتيبها حسب التسلسل (۶۹) وحسب النزول (۷۸)

نزلت بعد الملک وقبل المعارج

**ربط**: مخکې سورة کښې ووېچه دتوحيد په مسئله کښې نرمی مه کوئ ﴿وَدُّوا لَوۡ تُدۡهِنُ فَيُدۡهِنُونَ﴾ اوس دی سورة کښې ددی بيان دې چه کوم کسانو دامسئله نه منی حال دهغوئ به په شان دحال دثمود، عادوی.

**خلاصه**: دتخويف دنيوی پنځه نمونی، تخويف اخروی، بشارت اخرويه، دعوه دسورة چه ﴿فَسَبِّحۡ بِاسۡمِ رَبِّكَ الۡعَظِيۡمِ﴾.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَلۡحَآقَّةُ | مَا ① | الۡحَآقَّةُ | وَمَآ ② | اَدۡرٰىكَ | مَا | الۡحَآقَّةُ ③ |
| هغه خامخا راتلونکې | څه دې هغه خامخا راتلونکې، | اوڅه پته ده تاته چه څه دې هغه خامخاراتلونکې | | | | |

﴿ اَلۡحَآقَّةُ ① مَا الۡحَآقَّةُ ② ﴾ داتخويف دې توحيدنه منونکوته، چه قيامت يقينی راتلونکې دې چه هغه ډيرلوئ آفت دې، دهغی دراتلونه مخکښې توحيد منل پکاردی.

﴿ اَلۡحَآقَّةُ ﴾ دقيامت په نومو کښې يو نوم دې، د"حقّ يحقّ" نه اسم فاعل صيغه ده، يقينی امرته وائی، او قيامت ته هم "حاقة" په دی وجه وائی: (۱) چه قيامت هم يقينًا بلاشک واقع کيدونکې دې، (۲) امورحقّه لکه بعث حشرحساب کتاب ميزان پکښې واقع کيږی (۳) حقيقت د اعمالو پکښې معلوميږی (روح، ابن کثير).

﴿ ٱلْحَآقَّةُ ﴾مبتداء دې، «ما» استفهاميه مبتداء.ثاني دې﴿ ٱلْحَآقَّةُ ﴾خبردې.جمله خبردې د﴿ ٱلْحَآقَّةُ ﴾ مبتداء.جمله چه کله خبر وی نودعائد نه لابدی وی،نوپه اصل کښ ماهي دې،وضع د ظاهر په ځای دضمیرلپاره دتهویل اودعظمت شان شویده.

﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلْحَآقَّةُ ﴾ "ومااداراک كذا"داتعبير بطور ضرب المثل بيانيږي دیوشی عظمت اوتهویل دپاره، چې دادومره عظیم الشان یا هولناک شې دې چې ستا ذهن ددې عظمت یا هولناکئ ادراک نشی کولې،دې وجهې نه مخاطب که مذکروی اوکه مؤنث،واحد اوکه تشنیه یا جمع،صیغه دواحد مذکر ورله راوړلې کیږي. «ما» دواړو ځائیونو کښ استفهامیه ده، اوله «ما» مبتدا دې، «ادراک» "ادری" فعل درې مفعوله غواړي،"ک"ضمیر ورله مفعول اول دې. او«ماالحاقة» مبتدا خبر جمله ورله ددوؤ مفعولو قائم مقام ده.اوداپوره جمله بیا خبرواقع کیږي داولې «ما»نه.

| |
|---|
| كَذَّبَتْ ثَمُودُ وَعَادٌۢ بِٱلْقَارِعَةِ ۝٤ فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهْلِكُوا۟ بِٱلطَّاغِيَةِ ۝٥ |
| تکذیب اوکړو ثمودیانو او عادیانو په ټکوونکی (قیامت). هرچه ثمودیان وؤنوهلاک کړې شول په چغې تیزې سره، |
| وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا۟ بِرِيحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ۝٦ سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ |
| اوهرچه عادیان وؤنوهلاک کړې شول په داسې هوا تیزې سره چه د قابونه بهر وه ، مسلط شوې وه په دوئ وه(٧) |
| لَيَالٍ وَثَمَٰنِيَةَ أَيَّامٍ حُسُومًا فَتَرَى ٱلْقَوْمَ فِيهَا صَرْعَىٰ كَأَنَّهُمْ |
| شپې او اته (٨) ورځې ، پرله پسې مسلسل ، نو لیدلې به تاقوم عاد په هغې کښ مړه پراته په زمکه،لکه دوئ |
| أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ۝٧ فَهَلْ تَرَىٰ لَهُم مِّنۢ بَاقِيَةٍ ۝٨ |
| تنې وې د کهجورو غورځیدلو ، نو آیا وینې ته د هغوئ نه څوک پاتې؟ |

﴿ كَذَّبَتْ ثَمُودُ وَعَادٌ ﴾دادتخویف دنیوی اوله اودویمه نمونه ذکر کیږي، اوله نمونه ئی قوم ثمود ده او دویمه نمونه ئی قوم عاد ده، اوالله ﷻ مشرکینوته خودل غواړي چې دومره

دلائلونه ورستو هم كه تاسو ايمان نه راوړئ. نو دقوم ثمود او عادانجام خپل مخې ته کړئ. چې څه موهغوئ سره کړي وؤ تاسو سره به هم هغه شان اوکړم

﴿بِالْقَارِعَةِ﴾ القارعتهم دقيامت نوم دې،دَ قَرَعَ يقرع نه مشتق دې. ټكولوته وائى.اوقيامت ته قارعه ځكه وائى چې دا ورځ به آسمانونه ، نور اوسپوګمئ ټول اوټکوى اوريزه ريزه به ئې كړى.

﴿فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهْلِكُوا بِالطَّاغِيَةِ﴾دیکښې په قوم ثمود باندې دعذاب تفصيل بيانيږى، دا مخكښې په تفصيل سره تير شويدى چې قوم ثمود باندې درې قسمه عذاب نازل شوې وؤ (۱) زلزله (۲) تندر (۳) چغه، اودلته ذكر دَ «طاغية» شوې دې، داځه بل مستقل عذاب نه دې. بلكه صيغه اسم فاعل ده، پمعنى دحدنه شركشه اوتجاوز كونكې.اوصفت دې دپاره دموصوف محذوف ، بعضو ورله موصوف "الصيحة"محذوف رااوباسلې دې. يعنى داصيحه عام چغه نه وه، بلكه ډيره تيزه وه چې څه حدئى نه وؤ،او بعضو ورله"الرجفة" محذوف رااوباسلې دې. يعنى داڅه معمولى زلزله نه وه، بلكه ډيره تيزه زلزله وه ،اوځنو مفسرينو ليكلى دى چې «الطاغية» مصدر دې په وزن داسم فاعل، او"باء" سببيه ده، اي: فاهلكوا بسبب طغيانهم يعنى دَ خپل سركشئ په وجه هلاک شو.

﴿ وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ صَرْصَرٍ﴾دیکښې قوم عاد باندې دعذاب تفصيل ذكر كيږى، بريح صرصرتيز چليدونكى اوتيز آواز اوباسونكى يا ډيره يخه هوا ،تفصيل ئى مخكښې تير شويدې،﴿عَاتِيَةٍ﴾ دَ "عتو" نه دې، سر كشئ نافرمانى اوسخت تكبر ته وائى، اودلته ترينه مراد دَ حد نه تيزه هوا ده،ځكه چې داهم چا قابو كښې نه وى، اونه ترينه څوک بچ كيدى شى،بعض مفسرينو دلته حقيقى معنى مراد اغستې ده ،چې دا هوا نافرمانه وه، ځكه چې كومه فرشته په دې مامور ده، دا دهغې اجازت نه بغير بې اندازې راوتلې وه. كما اشاراليه البخاري تعليقا.

﴿سَخَّرَهَا﴾ "تسخير" زبردستئ په يوكارباندې لګولوته وائى ، چونكه هوا دَ معمول خلاف وه، ګويا داپه دې مجبوره كړې شوې وه، ځكه "سخرها" راوړلې شو.

﴿حُسُومًا﴾ حسوم په دوو معنو كښې استعماليږي: (١) مسلسل يعني داهوا اوه (٧) شپې اواته (٨) ورځې مسلسل په دوئ اوچليده، (٢) قطع كونكې: يعني داسې هوا چې دوئ نوم نشان ئې ختم كړو. (٣) بعضو ئې معنى سپيره والى سره هم كړې ده (روح)

﴿فَتَرَى ٱلْقَوْمَ فِيهَا﴾ فاء تفريعيه ده، يعني دې عذاب نتيجه دا شوه چې داټول هلاک شول، ﴿فيها﴾ ضمير مجرور "ايام" او "ليال" ته راجع دې، ﴿صرعى﴾ جمع د "صريع" ده، يعنى مړه پراته، ﴿اعجاز نخل﴾ يعنى داسې ښكاريدل لكه د كهجورو بيخونه چا رااوباسلي وي، اوپه زمكه ئې غورځولي وي، دې تشبيه تفصيل مخكښې په سورت القمر كښې تيردې، هلته ئې اوګورئ، ﴿خَاوِيَةٍ﴾ پمعنى د "خالية" سره ده، "دد" چې د ننه نه خالي وي. دا هوا په يوطرف نوته او بل طرف به ترينه راوتله، او ياپه پمعنى د "ساقطة" سره ده. يعنى دابيخونه چا راوباسلي وي اوبيا ئې په زمكه غورځولي وي.

﴿فَهَلْ تَرَىٰ لَهُم مِّنۢ بَاقِيَةٍ﴾ يااسم فاعل دې، موصوف ئې محذوف دې اى من نفسٍ باقية، يا مصدر دې، په وزن داسم فاعل، اى هل ترىٰ لهم من بقية، يعنى ته ددوئ څه نوم نشان ګورې.

| |
|---|
| وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَن قَبْلَهُۥ وَٱلْمُؤْتَفِكَٰتُ بِٱلْخَاطِئَةِ ٩ |
| او راغلې فرعون اوهغه څوک چه مخكښې وو د فرعون نه، اوكلى اولټه كړې شوى په ګناه سره، |
| فَعَصَوْا۟ رَسُولَ رَبِّهِمْ فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَّابِيَةً ١٠ إِنَّا |
| نو دوئ نافرمانى كړې وه د رسول د رب خپل، نو اونيول دوئ لره الله ﷻ په نيولوسختوسره، بيشكه مونږه |
| لَمَّا طَغَا ٱلْمَآءُ حَمَلْنَٰكُمْ فِى ٱلْجَارِيَةِ ١١ |
| كله چه سركشى اوكړه اوبو. سواره كړل مونږ (پلاران) ستاسو په كشتئ د نوح كښې. |
| لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَتَعِيَهَآ أُذُنٌ وَٰعِيَةٌ ١٢ |
| چه اوګرځو مونږ دغه قصه تاسولپاره نصيحت اوياديې اولرى غوږونه يادونكى. |

﴿وَجَآءَ فِرۡعَوۡنُ﴾ دا دریمه نمونه ده، دَتخویف دنیوی، چه دَرسول په نافرمانئ سره فرعون او نور قومونه مونږ هلاک کړل، نو تاسو هم دَ هغوئ نه عبرت واخلئ ﴿وَمَن قَبۡلَهُۥ﴾ قوم نوح، قوم عاد، قوم ثمود وغیره مراددی، نو پدی کښ تعمیم بعد التخصیص دې.

﴿وَٱلۡمُؤۡتَفِكَٰتُ﴾ دا څلورمه نمونه ده، مراد ورنه قوم لوط دې، یعنی لوط علیه السلام قوم په گناهونو اصرار او دَ پیغمبر تکذیب ئی اوکړو، نو الله ﷻ پرې روغ کلي الته کړو، نو که تاسو هم داسې کوئ نو دَدوئ به شان نه موالله ﷻ هلاک کړی.

﴿بِٱلۡخَاطِئَةِ﴾ مصدر دې په وزن دَاسم فاعل، متعلق دې دَ«جاء» سره. ﴿أَخۡذَةٗ رَّابِيَةً﴾ دَ ربوٰ نه مأخوذ دې، ای زائدةً فی الشدة، یعنی مخکې قومونو نه ئی عذاب سخت وؤ

﴿إِنَّا لَمَّا طَغَا ٱلۡمَآءُ﴾ دا پنځمه نمونه ده دَ تخویف دنیوی، چې قوم نوح دَ نوح علیه السلام نافرمانی اوکړه، نو اوبو سیلاب مو پرې راوستو، اومکذبین خو ټول هلاک کړو، او کومو خلقو پرې ایمان راوړې وو، هغه موبچ کړو، چې هغوئ نسل کښ تاسو یئ، نوکه اوس تاسو هم نافرمانی کوئ، نو الله ﷻ خوبه هلاک کړی.

﴿طَغَا ٱلۡمَآءُ﴾ یعنی حدمعتادنه ئی تجاوزاوکړو، حتّی چې دَغرونونه پنځلس پنځلس گزه اوچتې وی. ﴿حَمَلۡنَٰكُمۡ﴾ ای حملنا اباءکم، ﴿فِي ٱلۡجَارِيَةِ﴾ یعنی په کشتئ دَنوح علیه السلام کښ، ﴿لِنَجۡعَلَهَا﴾ ضمیریا کشتئ ته راجع دې، یا قصی ته راجع دې.

| |
|---|
| فَإِذَا نُفِخَ فِي ٱلصُّورِ نَفۡخَةٞ وَٰحِدَةٞ ۝ وَحُمِلَتِ ٱلۡأَرۡضُ وَٱلۡجِبَالُ |
| پس کله چه پوه کړې شی په شپیلئ کښ، صرف یو پوه ، او پورته کړې شی زمکه او غرونه |
| فَدُكَّتَا دَكَّةٗ وَٰحِدَةٗ ۝ فَيَوۡمَئِذٖ وَقَعَتِ ٱلۡوَاقِعَةُ ۝ وَٱنشَقَّتِ |
| بیا مات کړې شی په یو درز سره ، نو په دغه ورځ به واقع شی واقع کیدونکې قیامت اومات مات به شی |
| ٱلسَّمَآءُ فَهِيَ يَوۡمَئِذٖ وَاهِيَةٞ ۝ وَٱلۡمَلَكُ عَلَىٰٓ أَرۡجَآئِهَاۚ وَيَحۡمِلُ عَرۡشَ |
| آسمان نودې به په دغه ورځ کمزورې وی اوفرشتی به په طرفونودآسمان وی، او اوچت کړې به وی عرش |

| تُعْرَضُوْنَ | يَوْمَىِٕذٍ | ﴿۱۷﴾ | ثَمٰنِيَةٌ | يَوْمَىِٕذٍ | فَوْقَهُمْ | رَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دَرب ستا، دَ ځان د پاسه په دغه ورځ، اته فرشتو . په دغه ورځ به پیشي کیږی ستاسو (حضور دَالله ﷻته)، | | | | | | |

لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿۱۸﴾

نه به وی پټ ستاسو نه (په الله باندی) څه پټ شي

﴿ فَإِذَا نُفِخَ فِى ٱلصُّورِ ﴾ داتخویف اخروی دې، چې که دوئ ایمان نه راوړی، نو داسې هولناکه ورځ را روانه ده چې هغې کښې به دوئ دَالله ﷻ دَعذاب نه بچ نشی، په دیکښې دَ قیامت احوال بیانیږی، څه د وقوع احوال دی، څه دَوقوع نه بعد حساب کتاب اوحوال دی، او څه حساب کتاب نه بعد سزااوجزاء احوال دی.

﴿نَفْخَةٌ وَٰحِدَةٌ﴾ دا دَ قیامت **اول حالت** بیان دې ، چې پوشپیلۍ به اوهلې شی.

﴿ وَحُمِلَتِ ٱلْأَرْضُ ﴾ **دویم حالت** بیان دې چې زمکه اوغرونه به پورته کړې شی.

﴿فَدُكَّتَا دَكَّةً وَٰحِدَةً ﴾ **دریم حالت** بیان دې، چې فضا کښې به یوبل له راپریخودلې شی، او یو درز سره به زمکه او غورونه دړې وړې شی، "دک" یو شې بل له راپریخودلو ته وائی، نو زمکه او غروته به یوبل له راپریخودلې شی، او دواړه به ریزه ریزه شی، او دَ غر او زمکې فرق او تمیز به نه کیږی، ټول به برابر وی.

﴿ فَيَوْمَىِٕذٍ ﴾ دا **څلورم حالت** دې، چې دغه وخت به قیامت قائم شی "یوم" په معنی دَ "حین" سره دې، مطلق وخت ترینه مراد دې.

﴿وَٱنشَقَّتِ ٱلسَّمَآءُ ﴾ دا **پنځم او شپږم** حالت بیان دې، چې آسمانونه به مالوچو پشان بالکل پاسته اوکمزورې به وی، داسې به نه وی لکه نن چې څنګه مضبوط ښکاری، او بیا به دا آسمان هم دړې وړې شی، ﴿وَاهِيَةٌ ﴾ دَ "وهي" نه مشتق دې، "وَهيٌ" او "وهن" دواړه په یوې معنی کښې استعمالیږی، کمزورئ ، ضعف، فتور، وغیره معنې ئې راځی، خو "وهي" دَغیر ذوی العقول دَپاره استعمالیږی او "وهن" دَذوی العقول دَپاره.

﴿وَٱلْمَلَكُ عَلَىٰٓ أَرْجَآئِهَا﴾دا **اووم حالت** بيان دي . چې آسمان په ټکرې کيدو شروع شي. نو فرشتې به ئې اطرافو اواکنافو ته لاړې شي،«والملكُ» نه جنس فرشته مراد دي.﴿ أَرْجَآئِهَا ﴾ "ارجاء" جمع دَ "رجا"ده، اطراف اوجوانب ته وئيلې کيږي ،او"ها"ضميرآسمان ته راجع دي

**دا و(٧) حالات دَ قيامت وقوع وؤ، اوس دينه بعد دَ حساب کتاب حالات بيانيږي.**

﴿وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمَٰنِيَةٌ﴾دا **اول حالت** دي. دَ حساب کتاب شروع کيدلو دَ پاره به اته فرشتې به خپلوسرونو عرش الهی راغستې راوړي. اوفيصلې اوحساب کتاب دَ پاره به ئې اولګوی،

دَدې اته فرشتو په احاديثو کښې عجيب وغريب کيفيت بيان شوې دې، ابوداؤد شريف کښې راځي چې د غوږونونرمې حصې نه تر اوګو پورې دومره فاصله وی چې هغه په اووه سوه (٧٠٠) کالوکښې طې کيږي، اوبعضو رواياتو کښې داهم راغليدی چې دامسافت دَمرغئ الوتلو رفتار سره دې.

﴿يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ﴾**دويم حالت** دې، چې عرش الهی لګيدلونه بعد به حساب کتاب او خلقو پيشې به شروع شی،﴿لَا تَخْفَىٰ مِنكُمْ خَافِيَةٌ﴾دا**دريم حالت** دې، چې حساب کتاب نه به نه څوک خپل ځان پټولې شی، اونه خپله څه ګناه ياغلطی، "خافية"صيغه دَواحد مؤنث اسم فاعل ده،اوصفت دې دَپاره دَموصوف محذوف،چې هغه، "فعلة"يا "نفس" دې.

**فائده**: بعض ضعيف رواياتو کښې راغلي دي چې دَقيامت په ورځ به درې ځله پيشې کيږي:

(١)اول ځل چې پيشی اوشی، نودې کښې به بنده جدل اوجدال کوی چې مونږ ته انبياء نه وؤ راغلی، دَ خپلو ګناهونو نه به انکار کوی وغيره، په دې پيشئ کښې به دَدوئ فيصله اونشی.

(٢)دينه بعد به دويم ځل بيادَدوئ پيشی اوشی،ديکښې به دوئ دَخپلو ګناهونو اعتراف اوکړی، خو عذر او بهانی به هغې دَپاره کوی، چې په غلطئ سره مې کړی دی ګناهونه، يا را باندې زبردستی شوې وه وغيره،دې ځل به هم فيصله اونشی.

«۳» دینه بعد به دریم خل پیشی اوشی، اعمال نامې به ورته ورکړې شي، دَ دوئ هر قسم دلائلو او اعذارو جوابونه به ورکړې شي ، او دَ جنت جهنم فیصله به اوشي

| |
|---|
| فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ فَيَقُولُ |
| پس هرهغه څوک چه ورکړې شی هغه ته اعمال نامه دَهغه په ښي لاس دَهغه کښې. نوواثی به «دَ ډیرې خوشحالۍ نه» |
| هَآؤُمُ ٱقْرَءُوا۟ كِتَٰبِيَهْ ۞ إِنِّى ظَنَنتُ أَنِّى مُلَٰقٍ حِسَابِيَهْ ۞ فَهُوَ |
| واخلئ اُګولئ عملنامه ځما بیشکه ځمایقین وؤچه څه ملاقات کونکې یم دَ حساب خپل سره، پس وی به دې |
| فِى عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ۞ فِى جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ۞ قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ ۞ كُلُوا۟ |
| به ژوندخوشحاله کښې په جنت اُوچت کښې به وی میوی دَجنت به نیزدې وی دَه تهورته به اوونیل شی خورئ |
| وَٱشْرَبُوا۟ هَنِيٓـًٔۢا بِمَآ أَسْلَفْتُمْ فِى ٱلْأَيَّامِ ٱلْخَالِيَةِ ۞ |
| څکئ په خوندخوند سره په وجه دَهغه نیکوعملونوچه کړی وؤ تاسو په ورځو تیرو شوؤ کښې |

﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ﴾ دې ځائ نه ٬بعداز حساب وکتاب٬ دَ جنتیانو احوال بیانیږی، او دا ئې اول حالت دې، چه دوئ ته به دَقیامت په ورځ اعمال نامه په٬ښی لاس ورکولې کیږی چه دابه دَهغوئ دَفلاح اونجات علامه وی،دوئ به خوشحاله وی هرچاته به خپله اعمال نامه ښائی﴿هَآؤُمُ﴾ دَ ٬هاء٬ او٬میم مضمومه٬ نه مرکب دې،٬هاء٬ اسم فعل دې، بمعنی دَ ٬خذ٬ سره، او٬میم٬ ورسره علامت دَجمعی دې، ﴿ كِتَٰبِيَهْ ﴾مفعول به دې اوتنازع ده پکښې﴿ هَآؤُمُ﴾ او﴿ ٱقْرَءُوا۟﴾ دوارو فعلونو ،بصریانوپه نیز فعل ثانی له عمل ورکول مختار دی، او کوفیانوپه نیز فعل اول له،او٬یاء٬ په کتابیه کښې ضمیر مجرور دَ متکلم دې، او٬هاء٬ ضمیر نه دې بلکه ٬یاء سکته٬ ده، چې وقف په حالت کښې سکته کولې کیږی،دغه حکم دَ ٬حسابیه٬ ، مالیه٬، او ٬سلطانیه٬هم دې.

﴿ إِنِّى ظَنَنتُ ﴾٬ ظن٬ یا بمعنی دَعلم سره دې، یعنی څه دنیا کښې مؤمن اومسلمان وم، او ځما یقین اوعقیده وه چې قیامت به واقع کیږی اوحساب کتاب به کیږی،یا ٬ظن٬ خپلې

حقيقي معنى كېښ دي، اوحساب نه مراد حساب يسير دې چې ظن اوغالب گمان دا وؤ.چې الله ﷻ به ما رحم کوی اوآسان حساب کتاب به راسره کوی.

﴿فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ﴾دائی حساب کتاب نه بعد دويم حالت دې چې په ماقبل باندې متفرع دې، اعمال نامه ورته ښې لاس کښې ميلاؤيدلو په نتيجه کښې به دې الله ﷻ جنت داخل کړی،اوهلته به دَ راحت، اسائش اودَ مزو خوندونو ژوند به تيره وی

﴿راضية﴾ صيغه دَمؤنث راوړلې شويده اوضمير پکښې راجع دې «عيشة» ته، او دا مجاز في الاسناد دې، حقيقت داسې دې في عيشة راض صاحبها. (۲)بعضو «راضية» پمعنی دَمفعول مرضيٌ سره اغستې دې، خونده ورې زندگئ کښې به وی. (۳) خنوئيلی دی چې «راضية» فاعل ذي كذا دې، چې نسبت باندې دلالت کوی لکه لابن ،تامر،او راضية معنی ذات رضا ده. ﴿فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ﴾يعنی په أوچت جنت کښې به وي، ځکه چه جنت په آسمان کښې دې. ب مضاف محذوف دې، ای: عالية درجاتها، په حديث کښې دی: الجنة مائة درجة، كل درجة منها ما بين السماء والأرض...(ابن ماجه:۴۳۳۱) د جنت سل(۱۰۰) درجې دی، او هر دوؤ درجو په مَا بين کښې دومره فاصله ده لکه اسمان اوزمکه.

﴿قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ﴾يعنی ميوی دَجنت به دومره قريبی وی چه په ولاړه،په ناسته،په ملاسته به ئې شوکولې شی، اونو ته دَ ختلوضرورت به نه وی.

﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا﴾ دينه مخکښې يُقال لهم، مقدردې﴿هَنِيئًا﴾ صفت دې دَمفعول مطلق مقدر ای: اكلاًهنيئًا ، يا حال دې دَضمير دَ ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا﴾ نه، يعنی اوس په جنت کښې ښه بی غمه خوراک څکاک کوئ، نه بيماري شته، نه مرگ،نه شوگرنه بلډپريشر،په حديث کښې دی چې جنت کښې به ورته اعلان اوشي چې: إنَّ لَكُمْ أنْ تَصِحُّوا فَلَا تَسْقَمُوا أبَدًا، وَإنَّ لَكُمْ أنْ تَحيَوْا فَلَا تَمُوتُوا أبَدًا، وَإنَّ لَكُمْ أنْ تَشِبُّوا فَلَا تَهْرَمُوا أبَدًا، وَإنَّ لَكُمْ أنْ تَنْعَمُوا فَلَا تَبْأسُوا أبَدًا (مسلم).

﴿فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ﴾ مراد ترينه دنيا زندگی ده، "الخالية"يا په معنی "الماضية" سره دې، يعني تيرې شوې ورځې،او يا په خپلې معنې کښې دې، او مطلب داچې دَ شهواتو او لذائذو نه خالی ورځې،ددې وجهی نه مجاهد رحمه الله ئې تفسير په روژو سره کړيدې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَمَّا | مَنْ | أُوتِيَ | كِتٰبَهٗ | بِشِمَالِهٖ | فَيَقُوْلُ | يٰلَيْتَنِيْ |
| او هغه څوک چه ورکړې شي هغه ته عملنامه دهغه په چپ لاس دَ هغه کښ.نووائی به هاې کاش چې ما ته |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَمْ | أُوْتَ | كِتٰبِيَهْ ﴿٢٥﴾ | وَلَمْ | أَدْرِ | مَا | حِسَابِيَهْ ﴿٢٦﴾ | يٰلَيْتَهَا |
| نه وې راکړې شوې علمنامه ځما،او نه وې پته ما ته چه څه دې حساب ځما.هائ آفسوس |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَانَتِ الْقَاضِيَةَ ﴿٢٧﴾ | مَا | أَغْنٰى | عَنِّيْ | مَالِيَهْ ﴿٢٨﴾ | هَلَكَ عَنِّيْ | سُلْطٰنِيَهْ ﴿٢٩﴾ |
| چې دامرګ ختمونکې وې مالره،هیڅ فائده رانکړه ماته مال ځما بربادشوه ځمانه بادشاهی ځما |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خُذُوْهُ | فَغُلُّوْهُ ﴿٣٠﴾ | ثُمَّ | الْجَحِيْمَ | صَلُّوْهُ ﴿٣١﴾ | ثُمَّ | فِيْ سِلْسِلَةٍ |
| حکم به اوشی فرشتوته،اونیسئ دې بیا طوق واچوئ ورته،بیاپه جهنم کښ داخل کړئ دې،بیاپه زنځیرکښ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذَرْعُهَا | سَبْعُوْنَ | ذِرَاعًا | فَاسْلُكُوْهُ ﴿٣٢﴾ | |
| چه اوږدوالي | دهغې | اویاګزه | دې پس | تنباسئ دې |

﴿وَأَمَّا مَنْ أُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ﴾ دیکښ د **جهنمیانو احوال** بیانیږی **بعد از حساب و کتاب**، چې کله حساب کتاب اوشی، نودوئ ته به اعمال نامه په چپ لاس میلاو شی، نو دوئ به ډیر پریشانه اوخفه شی اوتمنا به کوی،چې هلوسره ماته میلاؤ شوې نه وې ، اوځه دَخپل انجام نه خبر نه وې،کاش چې مرګ سره هر څه ختم شوې وې.

﴿ وَلَمْ أَدْرِ﴾عطف دې په﴿لَمْ أُوْتَ ﴾ یعنی افسوس چه ماته دَخپل حساب پته هم نه وې، ځکه چه دا دَ غم خبردې او دَ غم خبرنه چه سرې بالکل خبرنشی نو دا ښه وی.

﴿ يٰلَيْتَهَا﴾ضمیرراجع دې مرګ ته،یعنی هائ افسوس چه دامرګ مالره ختم کونکې وې، او دوباره نه وې ژوندې شوې، مرګ اګرچه ماقبل کښ نه دې ذکرلیکن دَ وجې دَظهورنه کالمذکور دې (کبیر).

﴿ مَآ أَغْنَىٰ ﴾ 'ما' نافيه ده﴿مَالِيَهْ ﴾ 'ما' موصوله په محل د رفع كښې فاعل دې د 'اغنى' ۔ او 'ليه' جار مجرور سره د متعلق نه ئې صله ده ،او 'هاء' د پاره د سكتې ده ، يعنى هغه شئ ماته هيڅ فائده رانكړه چه په دنياكښې ماسره وؤ، لكه مال اتباع وغيره.يا 'مال' مضاف دې 'ى' متكلم طرف ته،يعنى څمامال ماته څه فائده رانه كړه(روح).

﴿هَلَكَ عَنِّى سُلْطَٰنِيَهْ ﴾ سلطان نه مراد ياحجت اودليل دې. يعنى كوم حجت چه په دنيا كښې ما نيولې وؤ، هغه حجت باطل شو. يا مطلب دادې چه څما د نجات څه دليل پاتې نه شو. يا ورنه مرادرُعب اودبدبه اوبادشاهى ده په خلقو.

﴿خُذُوهُ ﴾ديكښې دَجهنميانو دويم حالت بيان دې،چې كله ورته اعمال نامې په چپ لاس ميلاؤ شى، نو دې نه ورستو به الله ﷻ فرشتوته حكم اوكړى چې دوئ جهنم ته اوغورځوئ. فرشتې به ئې راونيسى، مرئ كښې به ورله طوقونه واچوى، بيابه ئې اوګدو اوګدو زنځيرونو كښې بند په بند اوترى، او جهنم ته به ئې اوغورځوى ﴿خُذُوه ﴾نه مخكښې يقول الله للزبانية مقدر دې. ﴿فَغُلُّوهُ﴾ دَ 'غل' نه دې، طوق ته وائى يعنى طوق ورته واچوئى.

﴿ثُمَّ ٱلْجَحِيمَ﴾ "ثم" دَ تراخى رتبى دَپاره دې يعنى طوق اچولونه غټ عذاب جهنم ته غورځول دى.

﴿ ثُمَّ فِى سِلْسِلَةٍ﴾ دلته هم 'ثم' دَ تراخى رتبى دپاره دې ، تراخى ذكرى لپاره نه دې ،او دامطلب نه دې چې اول به جهنم كښې اوغورځولې شى، او بيا په زنځيرونو اوتړلې شى، بلكه 'ثم' دَ تراخى رتبى دَپاره دې ،چې هسې بغير دَ زنځيرونو جهنم ته داخلولو نه، لوئ عذاب زنځيرونو كښې جهنم ته ننباسل دى. ﴿سِلْسِلَةٍ ﴾ زنځيرته وائى،تنوين پكښې تفخيم لپاره دې، دَابن عباس رضي الله عنه نه مروى ده چه كچرته دَ دى رنځيريوه حلقه (كړئ) په غره باندى كيخودلې شى نو غر به دَ تانبى په شان ويلى شى.﴿ذَرْعُهَا ﴾دَ 'ذرع' نه مراد اندازه اومقدار دې، او 'ذراع' نه گز مراد دې، يعنى اندازه اومقدارئى طولاً به اويا(٧٠)گزه وى،بعض وائى دلته عدد مقصود

نه دي، بلکه مراد ورنه مبالغه ده په طول کښې،کماقال تعالی ان تستغفرلهم سبعين مرة (التوبة ٨٠).

﴿فَاسْلُكُوهُ﴾ای فادخلوهُ(روح) په زنځيرکښې داخلولو مطلب دا دې چه زنځير دَ ده ، دَ ټول بدن نه تاؤ راتاؤ کړئ، او بند په بند ئې اوتړئ، نودې به ئې په مينځ کښې راشي ، او داسې به شي لکه چې دې پکښې ننوتلې وي.

| |
|---|
| إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ ۝ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ |
| بې شکه وؤدې چه ايمان ئې نه راوړوپه لوئ الله ﷻ باندې،اوتيزولي ترغيب ئې نه کول په طعام |
| الْمِسْكِينِ ۝ فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ ۝ وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ ۝ |
| دَمسکين باندې،پس نشته ده لره نن ورځ دلته قريبي دوست ،اونه طعام مګردوينوزوؤدجهنميانودزخمونونه |
| لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُونَ ۝ |
| چه نه خوري هغه مګر کافران |

﴿إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ﴾تعليل دې دَماقبل، ﴿وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ﴾يعني خپل مال خوئې خود نه خرچ کولو ،چې بل چاته ئې هم ترغيب نه ورکولو ،حضرت ابودردا رضی الله عنه به خپلې ښځې ته حکم کولوچه ترکارئ زياته پخه وه، اووئيل به ئې چه نيم زنځير دَ جهنم نه مونږ په ايمان سره خلاص شوي يو ، نو دَ نيم نه به ځان په دې خلاص کړو.

﴿ فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ ﴾يعني داسې ملګرې به ئ نه وي چه حمايت ئې اوکړي ياورنه عذاب دفع کړي،ځکه چه په دغه ورځ به هرملګرې دَبل نه تختي﴿ غِسْلِينٍ﴾هغه وينو زوو ته وائي چه دَاهل ناردَزخمونونه به بهيږي، ﴿ إِلَّا الْخَاطِئُونَ ﴾جمع دَ خاطئ ده،قصداً عمداً ګناه کونکو ته وائي، مرادورنه مشرکان دي،او مخطئ په غلطئ سره ګناه کونکي ته وائي.

| |
|---|
| فَلَا أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُونَ ۝ وَمَا لَا تُبْصِرُونَ ۝ إِنَّهُ لَقَوْلُ |
| بس قسم خورم څه په هغه څه چه تاسوئې وينئ،اوپه هغه څه چه تاسوئې نه وينئ،چه بيشکه داقرآن خامخاخبره |

رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ﴿٤٠﴾ وَّمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ قَلِيْلًا مَّا تُؤْمِنُوْنَ ﴿٤١﴾ وَلَا بِقَوْلِ
درسول عزت منددہ، اوندې داقرآن قول دشاعر، ډیرلږایمان راوړئ تاسو اوندې قرآن قول
كَاهِنٍ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٤٢﴾ تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٤٣﴾
دکاهن، ډیرلږنصیحت اخلئ تاسو دا(قرآن) نازل شویدې دطرفه درب العالمین نه

﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُوْنَ ﴾ نبی کریم ﷺ چې کله مشرکینو ته کلام الهی واورولو. او قیامت اودحشر نشر خبرې به نی ورته اوکړې، نو دوئ په قرآن اونبی پاک ﷺ باندې ایمان راوړلو په ځائ اعتراضات شروع کړل:

(۱) چابه وئیل دا قرآن شعر و شاعری مجموعه ده.

(۲) چابه وئیل چې دا دَ کاهنانو کلام دې.

(۳) چابه وئیل چې دانبی کریم ﷺ په خپله ځانه جوړکړې دې اوبیا قصداً په دروغه الله ﷻ ته منسوب کوی

الله ﷻ په دې آیتونو کښ اول دَ نبی کریم ﷺ او دَ قرآن حقانیت اثبات کوی، او بیا دوئ اعتراضات رد کوی، نو په دی آیاتونو کښ اثبات دَرسالت اوحقانیت دَقرآن ذکر دې. او الله ﷻ قسم خوری چې دا نبی قیامت متعلق کومې خبرې تاسوته کوی دا حق او ربنتیا خبرې دي، دې څه شاعر نه دې چې خیالاتو ته دَ الفاظو جامه اچوی، اونه کاهن دې چې اندازې اوتخمینې ولي، بلکه دَالله ﷻ معزز رسول دې، دَالله ﷻ طرف نه ورته دَ دې خبرو وحی کیږی، خوستاسو بدقسمتی ده چې تاسو ایمان نه راوړئ، اونصیحت نه قبلوئ

﴿ فَلَآ أُقْسِمُ ﴾ "فاء" تفریعیه ده ، دَ داسې قسم تحقیق په سورت الواقعه کښ تیر دې، ﴿ بِمَا تُبْصِرُوْنَ ۝ وَمَا لَا تُبْصِرُوْنَ ﴾ عام دې هر قسم مرئی اوغیر مرئی څیزونه ته، علوی دی که سفلی. مشاهدات دی که مغیبات، اجسام دی که ارواح، نعمتونو اوکه قدرتونه (ابو السعود)

﴿إِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ﴾ "انه" کښ ضمیر قرآن ته راجع دې، "رسول" نه مراد راجح قول مطابق نبی کریم ﷺ دې، او "رسول" راوړلو کښ اشاره ده دیته چې دَ ده حیثیت دَپیغام

رسولو دي، څه پيغام ورته الله ﷻ رالیږي، هغه خلقونه اوروي.خان نه څه نه جوړ وي «کريم» اي: على الله. په الله ﷻ باندې ډيرګران.

**قسم اوجواب قسم کښې مناسبت** دادې چې لکه څنګه دنيا کښې څه څيزونه تاسو ته ښکاري اومنئ ئې. او څه څيزونه تاسو ته ښکاري نه، اومنئ ئې او يقين برې لرئ. جناتو وجود شو. وغيره وغيره، دغه شان دانبي کريم چې کوم دغيب اودقيامت احوال تاسو ته بيانوي داحق دې، اګر چې تاسو ليدلی نه دی،داټول احکامات ده ته دَ الله ﷻ طرف نه وحی کيږی او فرشته ورته راځي، اګر چې تاسوته دانښکاري نه.

﴿ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ﴾ داد مشرکينو **اول اعتراض جواب** دې.الله ﷻ قسم خوري چې دا دَ شاعرانو قول نه دې، بلکه دَالله ﷻ کلام دې،ځکه چې شاعرانه کلام دپاره خپل بحور. اوزان وی، او خيالاتو مجموعه وی اودې کښې دابيوهم نشته.

﴿ وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ﴾دادَمشرکينو **دويم اعتراض جواب** دې.چې قسم مې دې وی چې دا قرآن دَ کاهن کلام هم نه دې، ځکه هغه مسجع اوپرتکلف قافيو نه جوړوی ، تخمينه او اندازه وی پکښې ، بې معنی الفاظ وی پکښې ، او قرآن دې ټولو نه منزه دې . او مزيد داچې دَ قرآن په شان کلام څوک نشی پيش کولې،کچرته دا دَشاعر اوکاهن کلام وې،نوبل شاعر اوکاهن به دَدې مثل پيش کړې وی.

﴿قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴾ **قليلا** په دواړوآيتونو کښې صفت دې دَمصدر محذوف، اي ايمانا قليلا، و تذکرا قليلا ، او مفعول مطلق واقع کيږی دَ مابعد فعل دپاره. او يا صفت دې دَ "زمانا" محذوف دپاره، او مفعول فيه جوړيږی دَ ما بعد دَ پاره . او "ما" زائده ده او جمله معترضه ده ، "**قليل**" يا خپل حقيقی معنی کښې استعمال دې،او **مفعول مطلق** په صورت کښې به ئې معنی داسې کيږی چې لګ غوندې ايمان اونصيحت قبولوئ،هغه داسې چې کوم احکامات ستاسو عاداتو او خواهشاتو سره برابر وی، بس هغه منئ،**او مفعول فيه** په صورت کښې به ئې معنیٰ دا وی چې لګ ساعت ايمان اونصيحت قبولوئ،اوداهغه وخت چې درنه تپوس اوکړې شی چې رازق ، خالق څوک دې، او يا **قليل** پمعنی دَ"عديم" سره دې،يعنی لګ غوندې ايمان ونصيحت

او لګ ساعت دپاره هم نه قبلوئ. ﴿تَنزِيلٌ﴾ خبر دې دَ مبتدا محذوف چې "هو" دې. او یا خبر دې د "انّ"، په "انه" کښې، او دا هم جواب قسم تحت داخل دې.

حضرت عمر فرمائی دَ اسلام نه قبل څه دَحضور ﷺ په تلاش کښې دَقتل په غرض ز اووتلم، حضور ﷺ مسجد حرام کښې مونځ کولو سورت الحاقه ئې شروع کړې وؤ. د قرآن حسن تالیف نه ماته ډېر تعجب اوشو. ما په زړه کښې اووئیل چه دا محمد ﷺ خو ډېر ښه شاعر دې په الله ﷻ مې دی قسم وی، نو حضور ﷺ دا آیت اولوستلو چه انه لقول رسول کریم، وما هو بقول شاعر، ما اووئیل چه دې خو ډېر ښه کاهن دې چه څما د تصوراتو علم ورته اوشو او رد ئې اوکړو، نو حضور ﷺ ورپسې دا آیت اولوستلو چه ولابقول کاهن، قلیلا ما تذکرون. حضرت عمر ﷺ فرمائی چه حقانیت دَ اسلام په دغه وخت کښې څما په ذهن کښې راغلې وؤ (ابن کثیر)

وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ ﴿٤٤﴾ لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِينِ ﴿٤٥﴾

او کچرته دَ خان نه جوړې کړې وې دی پیغمبر، په مونږ باندې څه خبرې، نو خامخا مونږ به نیولې وې دی په قوت سره،

ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ ﴿٤٦﴾ فَمَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِينَ ﴿٤٧﴾

بیا به خامخا پرې کړې وې مونږ دَ ده نه رګ دَزړه، پس نه به وؤ ستاسو نه ، هیڅ څوک ، ده لره منع کونکې څمانه،

وَإِنَّهُ لَتَذْكِرَةٌ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾ وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ

او بې شکه دا قرآن خامخا نصیحت دې پرهیزګارانو لره. او بې شکه خامخا مونږ پوهیږو په دې چه بې شکه

مِنْكُمْ مُكَذِّبِينَ ﴿٤٩﴾ وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٥٠﴾

بعض په تاسو کښې تکذیب کونکی دی، او بې شکه دا قرآن سبب دَارمان دې په کافرانو به قیامت کښې

وَإِنَّهُ لَحَقُّ الْيَقِينِ ﴿٥١﴾ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿٥٢﴾

او بې شکه دا قرآن خامخا حق یقینی دې، پس پاکی سره بیانه وه نوم دَرب خپل چه لوئ دې

﴿وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا﴾ دا دَ **دريم اعتراض جواب** دې. چې دا خبره خو مسلمه ده چې الله ﷻ په هر چا قادر دې او په هرڅه عليم دې. نو که دا نبي- نعوذبالله- دروغژن وې، نو مونږ نه به خامخا پته وې، او مونږ به رانيولې او هلاک کړې خو به وې. ليکن دې هلاک نه دې نو معلومه شوه چې دروغژن هم نه دې، او دا قرآن واقعتاً دَ الله ﷻ کلام دې

﴿ تَقَوَّلَ﴾ افترا ته وائی ﴿ ٱلْأَقَاوِيلِ ﴾ دروغو خبرو ته وائی، جمع ده دَ "قول" .او يا دَ "اقوال" او جمع الجمع ده ، او يا دَ "اقولة" جمع ده، لکه اضاحيک جمع ده اضحوکة ده

﴿ لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِٱلْيَمِينِ ﴾ يمين په معنى دَقوت سره دې او "من" زائد دې اى لاخذناه باليمين (قرطبي) يعني په قوت سره به مونيولې وې، نه به وې رانه خلاص شوې. يا دَ "يمين" نه مراد خې لاس دې، "باء" زائده ده، يعني دَخې لاس نه به مونيولې وې، بيابه موهلاک کړې وې. صاحب دَروح المعاني رحمه الله وائی دی تعبير کښې دَيورسوا کن حالت بيان دې. چه لکه ملوک باغی ته سزا ورکوی ، نو جلاد ترينه اول خې لاس قطع کړی، بيا ترينه څټ قطع کړی، دغه شان کچرته دا پيغمبر کاذب وې نو دا سې کاربه موورسره کړې وو. ﴿ٱلْوَتِينَ﴾ وتين دَزړه رګ دې چه قطع شی نو سړې ورنه مړکيږی، نو قطع دَ وتين نه مراد مړکول هلاکول دی

﴿فَمَا مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ﴾ "من" زائده دې لپاره دَتاکيد ﴿حَـٰجِزِينَ﴾ اى مانعين (روح) يعني کچرته دی پيغمبر په الله ﷻ باندی يوه خبره هم په دروغه تړلې وې. نو دغه حشر به نې ورسره کولو ، او تاسو کښې به هيڅ چاهم دَ الله ﷻ نه ، نه شو خلاصولې. ليکن چه دغه عذاب ورته نه دې ميلاؤ، نو معلومه شوه چه په حقه پيغمبر دې.

**فائده**: په ﴿ وَلَوْ تَقَوَّلَ ﴾ وغيره کښې ضمير حضور ﷺ ته راجع دې نو مذکوره استدلال خاص دې په حضور ﷺ پورې، هر يو مدعی نبوت باره کښې دا قانون نه دې. لهذا دَملعون قاديانی کاذب قول باطل دې چه کچرته څه کاذب وې نو ما ته به دا سزا راکړې شوې وه.

﴿وَإِنَّهُۥ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ﴾ يعني متقين ورنه فائده اخلی. ورنه قرآن خو ټولو خلقو لپاره نصيحت دې،

﴿وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ مِنكُم﴾ تخويف دي اوخطاب ټولوخلقوته دي.چه بعض په تاسوکښې به قرآن تکذيب کونکی، بعض پری تصديق کونکی دی،دَدواړومونږته علم دې.مکذبينو ته به سزا ورکوؤ، تصديق کونکو ته به ثواب ورکوؤ.

﴿وَإِنَّهُۥ لَحَسْرَةٌ﴾ضميرياتکذيب ته راجع دې يعنی داتکذيب بالقرآن به حسرة وی لپاره دَ کافرانو په ورځ دَقيامت،ياضميرقرآن ته راجع دې او﴿لَحَسْرَةٌ﴾نه مرادسبب دَحسرة دې.يعنی دا قرآن به سبب اوباعث دَحسرة وی په کافرانوکله چه دوئ ته عذاب ورکولې کيږی او مؤمنانوته ثواب(کشاف وغيره). ﴿وَإِنَّهُۥ لَحَقُّ ٱلْيَقِينِ﴾يعنی اخبارنی يقينی اومجرّب دی

﴿فَسَبِّحْ بِٱسْمِ رَبِّكَ ٱلْعَظِيمِ﴾داپه اخردَسورة کښې دَسورة دعوه ذکرده.چه خپل عظيم رب دَشريک نه منزه اوپاک اوکنړه،برکت ورکونکې صرف هغه اوکنړه

| ركوعاتها ۲ | سورة المعارج مكيّة | آياتها ۴۴ |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دی شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۷۰) وحسب النزول (۷۹)**

نزلت بعدالحاقة، وقبل الانبياء

**ربط**: ماقبل سورة الحاقه سره ئی ربط دادې چه ماقبل كښې تخويف وۇمشرک فی البركة ته، دې سورة كښې ورته زجر دې، او شكايت دې چه توحيدخو.خود نه منی بلكه التيه اعتراضونه كوی چه دا عذاب به كله راځی په مونږ؟

ع چه دلاوراست دُزدی كه بكف چراغ دارد (غل څومره زړه ور دې چه په لاس كښې ئې چراغ هم نيولې دې)

**خلاصه**: ابتداءانتهاء كښې زجرونه دی،برائ منكرين،درميان كښې تسلی ده حضورﷺ ته، مؤمنانوته بشارات دی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَاَلَ | سَآئِلٌ | بِعَذَابٍ | وَّاقِعٍ | لِّلْكٰفِرِيْنَ | لَيْسَ | لَهٗ | دَافِعٌ ② |
| اوغوښتلويوغوښتونكی داسې عذاب چه واقع كيدونكې دې.په كافرانوچه نشته دې هغې لره خوک دفع كونكې | | | | | | | |
| مِّنَ | اللّٰهِ | ذِی | الْمَعَارِجِ ③ | تَعْرُجُ | الْمَلٰٓئِكَةُ | وَالرُّوْحُ | اِلَيْهِ |
| د طرفه | د الله جل جلاله | چه | خاونددآسمانونودې،ورخيژي | | فرشتی | اوجبرئيل عليه السلام هغه | ته |
| فِیْ | يَوْمٍ | كَانَ | مِقْدَارُهٗ | خَمْسِيْنَ | اَلْفَ | سَنَةٍ ④ | |
| واقع كيږی به | داعذاب په | يو ورځ كښې | چه اندازه | دهغې | پنځوس | زره كاله | ده |

﴿ سَاَلَ سَآئِلٌ ﴾شكوه اوشكايت دې دمشركينونه، چه مسئله دتوحيدخوخود نه منی بلكه سركشی ئی دومره حد ته اورسيدله چې اوس د الله ﷻ عذاب طلب كوی

مفسرين فرمائی چې داسوال كونكې نضربن حارث وۇ چې ده ونيلی وو. اللهم ان كان هذا

هوالحق من عندک فامطرعلینا حجارة من السماء اوائتنا بعذاب الیم(الانفال ۳۴)

﴿سَآئِلٌ﴾ کښې تنوین دپاره دتحقیر دې﴿ بِعَذَابٍ ﴾کښې تنوین دپاره دتعظیم دې یعنی یوحقیر اوسپک سړي دلوئ عذاب تقاضه اوکړه. ﴿وَاقِعٍ﴾ صفت اول دې دعذاب . او تنوین د تهویل دپاره دي،یعنی داسې عذاب خامخا واقع کیدونکې دئ،اوواقعی عذاب دي

﴿لِّلۡكَـٰفِرِينَ﴾صفت ثاني دې، یعنی خاص دکافرانو دپاره جوړ دې،جارمجرور متعلق "کائن" محذوف دي، یا جارمجرور متعلق کیږی دَ واقع سره،او "لام"تعلیلیه دې. اي واقع لاجلهم، یعنی دې عذاب واقع کیدلو سبب هم دوئ دی، او یا"لام"په معنی دَ "علیٰ" سره دي.اي واقع علی الکافرین، یعنی په کافرانو باندې واقع کیدونکې عذاب.

﴿لَيۡسَ لَهُۥ دَافِعٌ﴾داصفت ثالث دې دیکښې دَسائل مزید تحقیر او دَعذاب مزید تهویل بیان دې ، یعنی دَده حیثیت ته اوګوره! او عذاب داسې غواړی چې یوځل راشی نوبیا څوک منع کونکې ورله هم نشته.

﴿مِّنَ ٱللَّهِ﴾جارمجرور « دافع » سره متعلق کیږی،یعنی دَالله ﷻ دَطرفه دَراتللو نه ورله څوک رکاوټ نشی جوړې دې،یا«واقع» سره دی،یعنی الله ﷻ طرف نه به خامخا واقع کیږی.

﴿ذِي ٱلۡمَعَارِجِ﴾دا صفت دې دَلفظ جلاله یعنی هغه الله ﷻ چې دَاسمانونو مالک دې، "معارج"جمع د "معرج" ده، پوړو ته وائی، او مراد ترینه آسمانونه دی چې داد فرشتو دپاره پوړو حیثیت لری،اوفرشې پکښې دَیو اسمان نه بل آسمان ته خیږی

﴿تَعۡرُجُ ٱلۡمَلَـٰٓئِكَةُ وَٱلرُّوحُ﴾کښې تفصیل دې،د "المعارج"، چې دآسمانونه "المعارج" داسې دی چې فرشتې پدیکښې الله ﷻ ته خیژی، "روح"نه مرا دجبرئیل علیه السلام دې. ﴿إِلَيۡهِ﴾کښې "ها" ضمیر راجع دې الله ﷻ ته،اوعروج نه معروفه معنی نه ده مراد ، بلکه کمایلیق بشانه ، او یا به تاویل کوو،چې الله ﷻ ته ختلو نه مراد عرش اوهغه ځائ ته ختل دی چې هلته نه فرشې دَالله ﷻ احکامات راخلی.

﴿فِي يَوْمٍ﴾ جارمجرور متعلق دی دَ یقع فعل محذوف سره. او نیوم نه مراد ورځ دقیامت ده، یعنی داعذاب به دَقیامت په ورځ واقع کیږی چې هغه دَستاسو پنځوس زروکالو برابر ده او یا ﴿في یوم﴾ متعلق دي په « تعرج» پورې، نو بیادَ آیت دوه مطلبه کیدیشی (۱) یودا چې «تعرج» په معنی دَ "تصیر" او "ترجع" شی، او نیوم نه مراد دَ قیامت ورځ شی، یعنی د فرشتو چې دومره لوئ نظام قائم دې، چې هغه دَ کائنات قیام دَپاره سبب ظاهری گرځیدلې دې، دا هرڅه به دَ قیامت ورځ ختم شی، اودَالله ﷻ ته به اوسپارلې شی (۲) او یا «تعرج» خپله حقیقی معنی کښې دې، "یوم" نه مراد دَ دنیا ورځ ده، مطلب دادې چې الله ﷻ خو هغه قدرتونه والا ذات دې چې فرشتې چې کله دَ هغه حکم نافذ کړی، او بیا دَهغه طرف ته خیږی نو یوه ورځ مقدار پرې اولگی، اوکه تاسو دَخپل رفتار اندازه واخلئ، نو دا پنځوس زره کاله جوړیږی

﴿كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ﴾ اشکال کیږی چې دلته دَپنځوس زروکالو ذکر دې. اوپه سورت الم سجده کښې دَ زرکالو ذکردې، نوداخو تعارض دې؟

یو جواب ترینه دا شوی دې، چې دلته څه عدد مخصوص نه دې مراد، بلکه محض کثرت مراد دې، نو کله ترینه تعبیر په «الف سنة» سره، اوکله ترینه په «خمسین الف سنة» سره شوې دې

(۲) دلته مراد "طول زمان" دې، او دا په مختلف اشخاصو اعتبارسره مختلف وي، نو په چا باندې به دا ورځ دَسختئ دَوجهې دومره اوگده شی لکه زر کاله، او په چاباندې به دومره اوگده شی لکه پنځوس زره کاله، لکه حدیث کښې راځی چې یوصحابی نبی کریم ﷺ ته اوئیل چې پنځوس زره کاله ورځ څومره اوگده به وی؟ نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل والذي نفسی بیده انه لیخفف علي المؤمن حتی یکون اخف علیه من صلاته مکتوبة یصلیها في الدنیا. په هغه ذات مې دې قسم وی چې هغه په قبضه کښې ځما ځان دې چې داورځ په مؤمن ډیره لنډه وی حتی چې فرض مونځ باندې چې دنیا کښې څومره وخت لگوی هغې نه به هم لنډه وی.

(۳) «الف سنة» یوموقف اعتبارسره ورته وئیلی شوی دی، او«خمسین الف سنة» ټول مواقفو اعتبار سره وته وئیلی شوی دې، ځکه چې ټول مواقف به پنځوس وی.

(۴) اوکه« في یوم» نه قیامت ورځ مراد نه شی، بلکه دنیا ورځ مرادشی، او د آسمان او زمکی فاصله مراد شی، نو بیا« الف سنة »نه مراد آسمان دنیا اودَزمکی فاصله ده، اودَ

‹‹خمسين الف سنة›› نه دَ کائناتو بالکل لاندې حصې نه تر آسمانونو نه برو بالکل انتهائی حصې پورې فاصله مراد ده.(والله تعالی اعلم)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاصْبِرْ | صَبْرًا | جَمِيلًا ۝ إِنَّهُمْ | يَرَوْنَهُ | بَعِيدًا | ۝٦ |

پس صبرکوه ته صبرښائسته بې شکه داکافران گمان کوي بدیعذاب یاقیامت چه لرې دی

وَنَرَاهُ قَرِيبًا ۝٧

اومونږئې وینو چه نزدې دې

﴿فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيلًا﴾ داتسلی ده حضور ﷺ ته،چه دَدوئ په اعتراضونوزړه مه تنګوه بلکه صبرکوه،دَدوئ لپاره ورځ دَعذاب مقرر ده،صبرجمیل هغی ته وائی چه جزع پکښې نه وی او دَ الله تعالی نه ماسوی بل چاته شکوی هم نه وی.

﴿إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ﴾ ضمیرياراجع دې ‹‹عذاب واقع›› ته، یاورځ دقیامت ته﴿بَعِيدًا﴾ یاپمعنی دَغیرکائن اودَغیرواقع سره دې یعنی دوئ داګمان کوي چه قیامت نه شی راتلې یاپمعنی دَبعید أعن القدرة والامکان دې،یعنی دَامکان نه بعیده ده.

﴿وَنَرَاهُ قَرِيبًا﴾ قریباً یا پمعنی دَ واقع کیدونکی دې،او یا قریباًمن الامکان اوتعبیر په ﴿وَنَرَاهُ﴾ سره مشاکلة اوشو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | تَكُونُ | السَّمَاءُ | كَالْمُهْلِ ۝٨ | وَتَكُونُ | الْجِبَالُ |

واقع به شی دغه عذاب په هغه ورځ چه وي به آسمان په شان دتامبې ویلې شوی.او وی به غرونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَالْعِهْنِ ۝٩ | وَلَا | يَسْأَلُ | حَمِيمٌ | حَمِيمًا ۝١٠ | يُبَصَّرُونَهُمْ |

په شان درنګینې وړئ،اودَحال پوښتنه به نه کوی یودوست دَبل دوست نه.خودلې کیږی به دوئ ته یوبل

يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِي مِنْ عَذَابِ يَوْمِئِذٍ بِبَنِيهِ ۝١١ وَصَاحِبَتِهِ

خواهش به کوی مجرم چه په فدیه بدله کښې ورکړی دَعذاب دَدغی ورځې نه خامن خپل اوښځه خپله

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَخِيهِ ⑫ | وَفَصِيلَتِهِ | الَّتِي | تُؤْوِيهِ ⑬ | وَمَنْ | فِي | الْأَرْضِ | | |
| اووروَرخيل، اوقبيله ددّه هغه چه ځای يې ورکولوده ته‌په وخت دمصيبت كښې ، وهغه خوک چه په زمکه کښې دي | | | | | | | | |
| جَمِيعًا | ثُمَّ | يُنْجِيهِ ⑭ | كَلَّا | إِنَّهَا | لَظَىٰ ⑮ | نَزَّاعَةً | | |
| ټول، بياخلاص کړی خپل ځان، هرګزداسی نه شی کيدلي، بيشکه دااوردجهنم خالص لمبی دی، وېستونکي دي | | | | | | | | |
| لِلشَّوَىٰ ⑯ | تَدْعُوا | مَنْ | أَدْبَرَ | وَتَوَلَّىٰ ⑰ | | | | |
| څرمنی دسرلره، راغواړی به ځان ته هغه څوک چه شاكړي و«ايمان ته» اومخ ئې ورته اړه ولي وو | | | | | | | | |
| وَجَمَعَ فَأَوْعَىٰ ⑱ | | | | | | | | |
| اومال ئې جمع کړي وو پس ذخيره کړي ئې وو. | | | | | | | | |

﴿يَوْمَ تَكُونُ السَّمَاءُ﴾ دا تخويف اخروي دې چې د يكښې دقيامت هولناک احوال بيانيږي.

« يوم » متعلق دې يادمحذوف سره چه "يقعُ" دې، اودا جواب دسوال دې چه: متى يقعُ ذلک العذاب، يا متعلق دي د﴿ قَرِيبًا ﴾ سره،

﴿ كَالْمُهْلِ ﴾ دا اول حالت دې، يعنی دقيامت په ورځ به اسمان دغه شان کلک نه وی، بلکه ضعيف اوبهيدونكي به وی په شان د ويلی کړې شوې تانبې، ابن عباس ﷺ "المهل" معنی دُردی "الزيت" کوی، يعنی دقيامت په ورځ به دآسمان رنګ داسی شې لکه دتيلوويخ اوخيرې، يعنی تور به وی، بل آيت کښې چه "كالدّهان" ونيلی شويدی، نودسرخئ په شدّت سره دتور رنګ سره مشابهت پيدا کيږی نو په دې وجه دواړه ونيل صحيح دی.

﴿ وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ ﴾ دا دويم حالت دې، « العهن » رنګينی وړئ اومالوچوته وائی، د وړئ سره تشبيه په خفّت، سپکوالی کښې ده، يعنی درانه به نه وی، بلکه د وړئ په شان به سپک وی، او رنګينی وړی سره ځکه تشبيه ورکړې شوې ده، چه غرونه مختلف رنګونو والا دی

﴿وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا﴾ دادریم حالت بیان دې. یعنی په دغه ورځ به دومره بدحال وی. چه یو قریبی دوست به د بل قریبی دوست د فائدې لپاره به دغه نه تپوس نه شی کولې. چه څه حال دې؟ څما لایق څه خدمت شته دې؟ ﴿يُبَصَّرُونَهُمْ﴾ یعنی بنه به یو بل وینی لیکن د ډیری سختئ پوجه د یو بل نه تپوس نه شی کولې.

﴿يَوَدُّ الْمُجْرِمُ﴾ داځلورم حالت بیان دې مجرم نه مراد کافر دې. یاهرګنهګار ﴿لَوْ يَفْتَدِي﴾ "لو" مصدریه پمعنی د "أن" دې(جلالین) یعنی قیامت په ورځ مجرم داغواړی چه څما په فدیه او عوض کښې څمابچی، بی بی، رونړه، خاندان او هر څه واغستلې شی. خو ما ته دې نجت میلاؤ شی. ﴿ثُمَّ يُنجِيهِ﴾ "ثم" د نجات د استبعاد لپاره دې، عطف دې په ﴿يَفْتَدِي﴾ ای یود لو یفتدی ثم ینجیه (روح، کشاف).

﴿كَلَّا﴾ حرف ردع دې، زجر دې مجرم ته، اوتصریح ده چه داسی بالکل نه شی کیدلې ﴿إِنَّهَا لَظَىٰ﴾ ضمیر نار ته راجع دې، ذکر د عذاب وربان‌دی دلالت کوی. «لَظَىٰ» یا پمعنی د اللهب سره دې، یعنی شعلی اولمبی وهونکې دې، یا نوم دې د جهنم.

﴿نَزَّاعَةً لِّلشَّوَىٰ﴾ جمع د "شواة" ده، د دې دوه معنې بیان شوې دی: (۱) اطراف د جسم لکه لاس اوخپې، (۲) د سر څرمن، یعنی دومره تیز او ګرم اور دې چه د کافرانو نه به د سر څرمن اوباسی، چونکه د دې رااوباسل مشکل وی، نوچه دا ورله را اوباسی. نود ټول بدن څرمن به ورله په اسانئ سره رااوباسی.

﴿تَدْعُوا﴾ ضمیر مستتر راجع دې جهنم ته ، یعنی داجهنم به کافرانو او منافقانو ته آوازونه کوی چه دلته راشئ. (۱) او دا اواز کول یاحقیقةً دی، الله تعالی به ورته دکلام قدرة ورکړی، ابن عباس رضی الله عنه فرمائی جهنم به د هر کافر او منافق نوم اخلی، او ورته به وائی الیّ یا مشرک، الیّ یامنافق، بیابه ټول د دانو په شان راټول کړی (قرطبی وغیره).

(۲) یا ﴿تَدْعُوا﴾ کنایه ده د جذب او حاضرولونه (۳) بعض وائی ﴿تَدْعُوا﴾ پمعنی د "تهلک" سره دې، لکه عرب وائی، دعاک الله، ای: اهلکک. یعنی کافران به هلاکوی (روح وغیره).

(۴) يادلته جانب د فاعل مضاف محذوف دي ای تدعو ربانيتها. يعنی دجهنم داروغی به آوازونه کوی، کافران به جهنم ته راغواړي.

﴿مَنْ أَدْبَرَ﴾ ديکښې اسبابو دَعذاب طرف ته اشاره ده او دا اول سبب دي چې حق ته نې شاکړي وه، ﴿وَتَوَلَّىٰ﴾ دويم سبب دي دَ عذاب چې حق نه اعراض کړې وؤ. "ادبار" او "تولي" کښې فرق دا دي، چې "ادبار" کښې اعراض دَ اول وهلې نه، يعنی حق ته بالکل نيز دې شوې نه وی، او "تولي" کښې اعراض وی ورستو دَ حق پيژندلو اوحق ته نيز دي کيدلو نه د مدبرينو حالت په قرآن کښې دا بيان شوې دې وقال الذين كفروا لاتسمعوا لهذا القرآن (فصلت ۲۲) او "متولينو" حالت دابيان شوې دې واذا تتلى عليهم آياتنا قالوا قدسمعنا لونشاء لقلنا مثل هذا، ان هذا الا اساطير الاولين (الانفال ۳۱) (التحرير والتنوير).

﴿وَجَمَعَ﴾ ديکښې دريم سبب ته اشاره ده چې هغه حرص دَ مال دې چې حلال وحرام نه کتل اوبس مال جمع کول ﴿فَأَوْعَىٰ﴾ ديکښې خلورم سبب ته اشاره ده چې هغه طول امل اوبخل دې،

| |
|---|
| إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا ⑲ إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوعًا ⑳ |
| بې شکه چه انسان پيداکړې شويدې په زړه کمزورې(بې صبره)کله چه ورسيږی ده ته تکليف نوفريادکونکې وی. |
| وَإِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوعًا ㉑ إِلَّا الْمُصَلِّينَ ㉒ الَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ |
| اوچه کله ورسيږی ورته خيرنومنع کونکې شي مګرمونځ کونکی هغه چه هغوئ په |
| صَلَاتِهِمْ دَائِمُونَ ㉓ وَالَّذِينَ فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ ㉔ لِّلسَّائِلِ |
| مونځونوخپلوهميشوالې کونکی وی. اوهغه چه په مالونودهغوئ کښې حق وی(حصّه وی)معلومه دپاره دَسوال ګری |
| وَالْمَحْرُومِ ㉕ وَالَّذِينَ يُصَدِّقُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ ㉖ وَالَّذِينَ هُم مِّنْ عَذَابِ |
| اومحروم(سوال نه کونکی)اوهغه چه تصديق کوی په ورځ دَقيامت اوهغه چه هغوئ دَعذاب |

رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۲۷﴾ اِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَاْمُوْنٍ ﴿۲۸﴾ وَالَّذِيْنَ

درب خپل نه یریدونکی وی بی شکه عذاب درب ددوئ نه دی دبی غمه کیدونکی اوهغه چه

هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ﴿۲۹﴾ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ

هغوئ دغورتونوخپلوحفاظت کونکی دی مگرپه ښخوخپلوباندی یاپه وینزوخپلوباندی

فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ﴿۳۰﴾ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ

پس بی شکه دوئ نه دی ملامته کړی شوی،پس چاچه طلب کړوماسوی ددغه خپلوښخوووینزونه نودا کسان

هُمُ الْعٰدُوْنَ ﴿۳۱﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ﴿۳۲﴾

هم دوئ تجاوزکونکی دی اوهغه کسان چه دوئ داماناتوخپلولره اوعدوخپلولره ساتونکی دی

وَالَّذِيْنَ هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ

اوهغه کسان چه دوئ په گواهئ خپلوپوره ولاړدی،اوهغه کسان چه دوئ په مونځونوخپلوباندی

يُحَافِظُوْنَ ﴿۳۴﴾ اُولٰٓئِكَ فِيْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۳۵﴾

ساتنه کونکی دی داکسان به په جنتونوکښی وی عزت مندبه وی

﴿ اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا ﴾دا دری آیتونه جمله معترضه دی په مابین د "تدعو من ادبر" او "الا المصلین" کښ، او دیکښ زجر دی په حرص اوطول امل باندی، چی انسان فطری طور باندی حریص اوبخیل دی، معمولی غوندی تکلیف ورته اورسی نوصبر کولو په ځائ جزع فزع شروع کړی،اوکه څه خیر ورته اورسی نو بیا هم دالله ﷻ شکرنه اداکوی،او د نورو . حق منع کوی، گویاچی دی به همیشه ژوندی وی، اودامال به ده له پکار راځی

"هلوع"وائی هغه چا ته چه دتکلیف په وخت کښ ډیر زرفریادونه شروع کړی، اوچه کله مالداره شی نو بیا ډیر زرمستی شروع کړی،حضرت شاه صاحب ئی ترجمه داسی کوی چی

انسان په زړه ډیر کمزورې دې. دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ځاڼ هلوع باره کښې تپوس اوکړو نو هغه ورته اوفرمائیل چه ﴿ إِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ جَزُوعًا ۝ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلْخَيْرُ مَنُوعًا ﴾ ئې تفسیر دې

﴿ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلْخَيْرُ ﴾ دخیر نه مراد مالداري، صحت دې.

﴿ إِلَّا ٱلْمُصَلِّينَ ﴾ استثنا منقطع ده د ماقبل وعید نه، چې ابتداء ئې د "یود المجرم" نه شوې وه، چونکه ماقبل کښې د کفارو هغه مذموم صفات مذکور وو چې هغه باعث دعذاب وو. نو اوس دهغې په مقابله کښې دمؤمنانو هغه صفات بیانیږي چې دافع د عذاب دی. نو **اول صفت** دې چې دمونځ پابندي کول دی، ﴿ دَآئِمُونَ ﴾ په معنی د مواظبون سره دې، یعنی مونځ ادائیگی اهتمام اوپابندی کوي. او بعضو د ﴿ دَآئِمُونَ ﴾ معنی په لایلتفتون سره کړیده، دائم په معنی د ساکن. لکه په یوروایت کښې دی: نهی عن البول فی الماء الدائم. نومطلب دآیت دادې چه په مونځ کښې یوطرف ته بل طرف ته التفات اوتوجه نه کوي بلکه همه تن مانځه کښې متوجه وي.

﴿ حَقٌّ مَّعْلُومٌ ﴾ دا **دویم صفت** دې چې ددوئ په مال کښې دغریبانو حصه وي، د حق معلوم نه مراد یازکوة نه علاوه مقرره حصه ده، او یا ورنه مراد زکوة دې. ځکه چه ددی مقدار مقرر او معلوم وي. ﴿ لِّلسَّآئِلِ وَٱلْمَحْرُومِ ﴾ یعنی غوښتونکی اونه غوښتونکی دواړه ته ورکوي.

﴿ وَٱلَّذِينَ يُصَدِّقُونَ بِيَوْمِ ٱلدِّينِ ﴾ **دریم صفت** دې ، چې په قیامت باندی ایمان راوړل دی، ﴿ والذين هم عذاب ربهم ﴾ **څلورم صفت** دې، چې خپل عباداتو باندې نازان نه وي، بلکه دالله ﷻ دعذاب نه په خوف کښې وي.

﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَـٰفِظُونَ ﴾ **پنځم صفت** دې ، چې باعفت اوپاک دامن وي، دې آیت مکمل تفصیل په سورت المؤمنون ابتدا کښې تیر شوې دې،

﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِأَمَـٰنَـٰتِهِمْ ﴾ **شپږم صفت** دې، چې امانت داره اووعده پوره کونکی وي، ﴿ وَٱلَّذِينَ هُم بِشَهَـٰدَٰتِهِمْ ﴾ **اووم صفت** دې، اوګواهی قائمولو مطلب دادې چې (۱) نه ګواهی

پتوی،(۲)اونه گواهی ورکولونه انکارکوی(۳)بلکه عدل وانصاف سره پوره پوره گواهی ورکوی.

﴿الَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ﴾دا داول صفت تکرار دې، اودیکښې دمانځه اهمیت ته اشاره ده، او په ابتداء او انتهاء کښې راوړلو کښې کیدیشی اشاره وی دېته چې که مونځ دچاصحیح شو نو داټول صفات به پکښې پیداشی.

﴿أُولَٰئِكَ﴾یعنی داموصوفین په صفاتو مذکورؤسره،دابشارت دې

| |
|---|
| فَمَالِ الَّذِينَ كَفَرُوا قِبَلَكَ مُهْطِعِينَ ۝ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ |
| پس څه شویدی کافرانولره چه ستاطرف ته منډې راوهونکی دی.دښی طرف نه اودګس طرف نه |
| عِزِينَ ۝ أَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٍ ۝ كَلَّا |
| ډلی ډلی. آیاطمع لری هریوسړی ددوئ نه داچه داخل به کړې شی جنت دعیش وعشرته،هرګزداسی نده |
| إِنَّا خَلَقْنَاهُم مِّمَّا يَعْلَمُونَ ۝ فَلَا أُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ |
| بی شکه پیداکړیدی مونږدوئ دهغی څیزنه چه دوئ ئی پیژنی،پس خمادی قسم وی په رب دمشرقونواومغربونو |
| إِنَّا لَقَادِرُونَ ۝ عَلَىٰ أَن نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ۝ |
| چه بی شکه مونږخامخاقادریوپدی چه بدل راوړو غوره ددوئ نه.اونه یومونږعاجزه کړې شوی |

﴿فَمَالِ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾اثبات درسالت دې اوزجردې کفاروته،روایت دې چه حضورﷺ په خانه کعبی سره مونځ کولو،قرآن به ئې لوستلو،مشرکان به ګیرچاپیره ډلی ډلی کیناستل، د حضورﷺ په کلام پوری به ئې استهزاءکوله،اوویل به ئې، چه کچرته داخوار غریبانان مؤمنان جنت ته ځی،مونږ به ددوئ نه مخکښې ورته ځو،نودا آیاتونه نازل شول(روح) او د دوئ د قول رداوشو، چه آیاهر یوپه دوئ کښې دجنت طمع لری،جنت ته تلل د هر چا کارندې، بلکه ایمان اوعمل صالح په وجه سړې جنت ته ځي،هغه ورسره نشته دې نوځنګه دوئ طمع کوی

﴿ فَمَالِ ﴾ لام جدا ليکل د قرآن مخصوص رسم الخط دي . عام کتابت کښي لام جاره د اسم موصول نه جدا نه ليکلې کيږي ﴿مُهْطِعِينَ ﴾اى مسرعين ﴿عِزِينَ ﴾جمع د عزة ده. ډلې اوجماعت ته وائى

﴿أَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ ﴾دا د مشرکانو د باطل قول ذکر دي

﴿ كَلَّا﴾ حرف ردع دي. او دقول مذکور رد دي ،يعنى داسى هرګزنه ده لکه چه دوئ طمع کوى د دخول د جنت ﴿إِنَّا خَلَقْنَاهُم مِّمَّا يَعْلَمُونَ ﴾تعليل دي د ما قبل. ﴿ مِّمَّا﴾ کښ من يا (١)اجليه دي،نو مطلب دادي چه مونږ دوئ دکوم مقصدلپاره پيدا کړيدى. هغه دوئ ته پته ده،چه هغه ايمان دي اوعمل صالح دي، نو چا چه دا مقصد پوره نه کړو. نو هغه به څنګه د مؤمنانو ځائ ته داخل شي.

(٢)يا من ابتدائيه دي،اومطلب دادي چه دوئ ته پته ده چه دوئ مونږ ګنده نطفى نه پيدا کړيدى،هغه جنت ته د داخليدلو سبب نه دي،ترڅو پورى چه په ايمان اوعمل صالح سره نى پاکى اونه کړې شي.

(٣)دريم دا چې کلا باندې مخکښ خبره پوره شوه،او اناخلقناهم نه جمله استئنافيه ده، ديکښ د الله ﷻ قدرت بيان دي، او دا د مابعد د پاره تمهيد دي. چه کوم الله چې په يوې بې جانې نطفې نه ، دوئ پيدا کولو باندې قادر دي ، هغه په دې هم قادر دي چې دا کافران د تکذيب او استهزا په وجه هلاک کړي او دوئ په ځائ نور خلق پيدا کړي ، چې هغه ايمان راوړونکي وي

﴿فَلَا أُقْسِمُ ﴾ فا فصيحيه ده او لا زائده دي﴿بِرَبِّ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ ﴾ مشارق مغارب جمع ذکر کولو وجه په سورت الصفات اوسورت الرحمن کښ تيره شوې ده ﴿إِنَّا لَقَادِرُونَ ﴾ جواب قسم دي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَذَرْهُمْ | يَخُوضُوا | وَيَلْعَبُوا | حَتَّىٰ | يُلَاقُوا | يَوْمَهُمُ | الَّذِي |

بس بريږده دوئ چه مشغوله وى په دنياکښ اولوبى کوى تردى چه ملاقات اوکړى د ورځى خپلى سره هغه ورځ

| |
|---|
| يُوعَدُونَ ﴿٤٢﴾ يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ سِرَاعًا كَأَنَّهُمْ |
| چه دوئ سره ئې وعده کیږي.هغه ورځ چه راواوځي به دوئ دقبرونونه.په منډه منډه لکه دوئ |
| إِلَىٰ نُصُبٍ يُوفِضُونَ ﴿٤٣﴾ خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۚ ذَٰلِكَ الْيَوْمُ |
| په طرف دبتانوچې منډې وهي.ذليله به وي سترګې ددوئ خوربه وي په دوئ ذلت.داورځ |
| الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ ﴿٤٤﴾ |
| هغه ورځ ده چه دوئ سره به ئې وعده کیدله |

﴿فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا﴾داتخويف أخروی اوتسلی ده نبی کریم ﷺ ته دکفارو په طرزعمل باندې، چې داکافران نن دنياکښ ايمان نه راوړی،اوتاپورې استهزاء کوی، ته دَدې پرواه مه کوه، دَمرګ نه ورستوبه سيده شی﴿يَوْمَهُمُ الَّذِي﴾مراد ورنه ورځ دَقيامت ده.

﴿يَوْمَ يَخْرُجُونَ﴾بدل دې دَ﴿يَوْمَهُمُ﴾نه.﴿مِنَ الْأَجْدَاثِ﴾ای من القبور﴿سِرَاعًا﴾جمع دَسريع ده، حال دې دَفاعل دَ﴿يَخْرُجُونَ﴾نه.

﴿كَأَنَّهُمْ إِلَىٰ نُصُبٍ﴾يعنی کله چه دوئ دَقبرونونه راواوځي اوفرشته ورته اوازاوکړی چه: هلموا الی عرض الرّحمن،نودوئ به داسی منډې وهی لکه دنياکښ چه بتانوطرف ته منډې وهی، دا عادت دَ مشرکانو وؤ، چه سهاروختی به دَ بتانو تقرب حاصلولولپاره هر يو منډه وهله، او دَيو بل نه به مخکښ کيدلو.

﴿نُصُبٍ﴾جمع دَنصاب ده(١)بتانوته وائی. (٢)بعضِ وائی نصب نشانی ته وائی،چې په لاره کښ لګيدلې وی اومنزل طرف ته راهنمائی کوی،نولکه څنګه په دنيا کښ تلونکی هغې پسی روان وی، اخوديخوا کيږی ترينه نه، نودغه شان به قيامت کښ دَداعی په آواز پسې روان وی، اخوديخوا کيدې به ترينه نشی. (٣)بعضِ وائی چې نصاب جال ته وائی، چه ښکار پکښ اونخلی، نوښکاری ورته تيزه منډه وهی چه خلاص نه شی(روح).

| ركوعاتها (۲) | سورة النوح مكيّة | آياتها (۲۸) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۷۱) وحسب النزول (۷۱)**

نزلت بعد النّحل وقبل ابراهيم

**ربط**: ماقبل سورة کښې زجرونو معاندينو ته چه توحيد نه مني بلکه الټه عذاب طلب کوي، دې سورة کښې په توحيد دليل نقلي دې، چه نوح عليه السلام دَدې مسئلې لپاره نهه نيم سوه (۹۵۰) کاله تبليغ کړې وو، ليکن هغوئ اونه منلو، اې اهلِ مکه، راشئ دامسئله اومنئ، ورنه په تاسو به هم عذاب راشي.

**خلاصه**

آيت ۱، تر ۴ پورې دليل نقلي دې، اودې نه بعد دَدعوت مختلف مراحل ذکر کيږي.

آيت ۵ نه تر ۷ پورې اوله مرحله ده، ديکښې عموم دَ عوت ذکر دې، اوقاتو لحاظ سره، او دَ قوم طرز عمل بيان دې.

آيت ۸، ۹ پورې دويمه مرحله ده، ديکښې عموم دَ دعوت ذکر دې، اساليبو لحاظ سره.

آيت ۱۰ نه تر ۲۰ پورې دريمه مرحله ده، ديکښې عموم دَدعوت ذکر دې انداز اومضمون اعتبار سره،

آيت ۲۱ نه تر ۲۴ پورې څلورمه مرحله ده، ديکښې دَقوم نه شکايت ذکر دې.

آيت ۲۴ نه تر آخر پورې پنځمه مرحله ده، ديکښې کافرانو ته دَبدعا اومؤمنانو ته دَدعا ذکر دې.

| |
|---|
| إِنَّآ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦٓ أَنْ أَنذِرْ قَوْمَكَ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَهُمْ |
| بيشکه مونږ ليږلې وو نوح عليه السلام قوم خپل ته چه اويره وه قوم خپل مخکې دَ دينه چه راشي دوئ ته |
| عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝١ قَالَ يَٰقَوْمِ إِنِّي لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ۝٢ أَنِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ |
| عذاب دردناک اووئيل نوح عليه السلام اې قومه څمابې شکه زه تاسو له يرونکې يم ښکاره، چه عبادت کوئ دَ ديوالله |

وَاتَّقُوْهُ وَاَطِيْعُوْنِ ۝ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُؤَخِّرْكُمْ

اودهغه نه اوبېرېږئ اواطاعت کوئ ځما، اوبه بخي تاسوته ګناهونه ستاسواوروستي به کړي تاسوبلاعذابه

اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَاۗءَ لَا يُؤَخَّرُ ۘ لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝

ترنيټې مقررې(مرګه پورې.بې شکه نيټه دعذاب دالله چه کله راشي نوبيانه ورسوکيږې کاش چه تاسو پوهيدلي.

﴿ إِنَّآ أَرْسَلْنَا نُوحًا ﴾دادليل نقلي دي،چې نوح عليه السلام مونږ خپل قوم ته ليږلي وو. اوهغه نهه نيم سوه(٩٥٠) سوه کاله خپل قوم ته صرف ددې خبرې دعوت ورکړې وؤ چې الله ﷻ يودې اوصرف هغه برکات ورکولو والا دې.﴿أَنْ أَنذِرْ﴾ مقصد د ارسال ذکر کيږي. چې د ارسال مقصد دا وؤ چې قوم ته توحيد دعوت ورکړي، اودتوحيد په نه منلوباندې دالله ﷻ عذاب نه ئې اويره وي، «ان» يا تفسيريه دې او «ارسلنا» د قول معني ته متضمن دې. او يا «ان» مصدريه ده، اودينه مخکښې لام حرف جرمقدردې، اي لان انذر قومک.او يا باء حرف جر مقدر دې،اي: فلنابان انذر﴿عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾دې نه مطلق عذاب الهي مراددې،دنيوی وی اوکه اخروي.

﴿قَالَ يَٰقَوْمِ إِنِّى لَكُمْ﴾ديکښې د نوح عليه السلام تعميل حکم اودعوت بيان دې،يعنی د الله ﷻ حکم تعميل ئې اوکړو،اوخپل قوم ته ئې ددې خبرو دعوت ورکړو. ﴿أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ﴾دا اوله خبره ده،چې غير الله عبادت پريګدئې اوصرف د الله ﷻ عبادت شروع کړئ. "ان"دلته هم تفسيريه ده ﴿وَاتَّقُوهُ﴾دادويمه خبره ده چې تقوی اختيار کړئ ﴿وَأَطِيعُونِ ﴾دا دريمه خبره ده چې ځما اطاعت اوکړئ څه درته کوم احکامات بيانوم هغه اومنئ اوعمل پرې اوکړئ.

﴿ يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ ﴾دا نعامات بيانيږي په دعوت منلوباندی.اول انعام دادې چې الله ﷻ به درله ګناهونه معاف کړي،﴿وَيُؤَخِّرْكُمْ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ديکښې د دويم انعام ذکر دې،چې دنيوی عذاب نه به په امن کښې شئ. او الله ﷻ به مو په عافيت سره تراجله پورې اورسوی

﴿إِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ إِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ﴾ پاتې شو مرګ، هغې نه خو هسې بچ کیدل نشته. هغه خو به خامخا راځي، ایمان راوړئ او که نه. ایمان راوړلو په صورت کښې به دربانديې دنیوی عذاب نه راځي، او نه راوړو په صورت کښې به دربانديې راځي دې تقدیر بانديې دَ «اجل مسمی» او «اجل الله» دواړو نه مراد موت طبیعي دې، اوجمله « ان اجل الله » کښې یا ترغیب دې ایمان زر راوړلو ته، چې ګورئ ایمان زر، زر راوړئ، دَ مرګ یو وخت مقرر دې. هغه چې کله راشي. نو بیا به مهلت بالکل نه میلاویږي، یا دتوهم ازاله ده چې ایمان سره خوبه دنیوی عذاب نه بچ شئ، خو مرګ بهرحال یقیني دې هغه به خامخا راځي.

ځنې مفسرینو دَ « اجل الله» نه مراد عذاب دنیوی اغستې دې. دوئ وائي چې الله ﷻ قوم نوح دپاره دوقسمه اجل مقرر کړي وو: (١) یو نیزدې اجل، چې داعذاب دنیوی نه عبارت دې، نو الله ﷻ ورته وائي چې « یؤخرکم الی اجل مسمی» کچرې ایمان مو راوړو. نو اجل قریب به درنه لرې کړو، او« اجل مسمی» چې طبیعي موت دې هغې ته به مو اورسو، لیکن کچرې ایمان مونه راوړو نو بیابه دې اجل قریب کښې تاخیر نشي کیدې. او ﴿إِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ﴾ کښې دَ دې بیان دې

﴿لَوْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ یعنې افسوس که تاسو په دې خبرو پوهیدلې. نو ایمان به مو راوړې وې، ځکه چې دیکښې دَ ستاسو دنیا او آخرت دواړو نفع ده

| |
|---|
| قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوْتُ قَوْمِي لَيْلًا وَنَهَارًا ٥ |
| لوونیل نوح علیه السلام اې ربه ځمابې شکه دعوت ورکړوماقوم خپل ته شپې اوورځې |
| فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَآءِيٓ إِلَّا فِرَارًا ٦ وَإِنِّي كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ |
| پس زیات نکړودوئ لره دعوت ځمامګر تیښته، اوبې شکه ما چه کله هم دعوت ورکړې دې دوئ ته چه ته بخنه اوکړې |
| لَهُمْ جَعَلُوٓا أَصَٰبِعَهُمْ فِيٓ ءَاذَانِهِمْ وَٱسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ |
| دوئ نو دوئ ورکړې دې ګوتې خپلې په غوږونو خپلو کښې او پټ کړي نې دې ځانونه په جامو خپلو کښې |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاَصَرُّوْا | وَاسْتَكْبَرُوا | اسْتِكْبَارًا ۝ | ثُمَّ | اِنِّیْ | دَعَوْتُهُمْ | | |
| اودوام نی کړي دي | په کفر او تکبر نی کړي دي | لوئ تکبر | بیا | ما | دعوت ورکړو ورته | | |
| جِهَارًا ۝ | ثُمَّ | اِنِّیْ | اَعْلَنْتُ | لَهُمْ | وَاَسْرَرْتُ | لَهُمْ | اِسْرَارًا ۝ |
| ښه په زوره | بیا | ما | ښکاره دعوت ورکړو ورته | | او پټ دعوت می ورکړو | ورته | په پټه. |

﴿ قَالَ رَبِّ اِنِّیْ دَعَوْتُ قَوْمِیْ ﴾ دی آیتونو کښ دَنوح علیه السلام دَدعوت تفصیلی کار گزاری اودَهغې مختلف مراحل بیانیږی، دا ئی **اوله مرحله ده**، چې دیکښ عموم د دعوت ذکر دې، په لحاظ د اوقاتو سره، یعنی اې الله! ماخپل قوم ته مسلسل دعوت ورکړو، دَورځې هم. دَ شپې هم، په ګرمئ کښ هم اویخنئ کښ هم، صحت کښ هم اوبیمارئ کښ هم،غرض هر حالت کښ مې دعوت ورکړو،خو دوئ ایمان رانه وړو.﴿لَيْلًا وَّنَهَارًا﴾کنایه ده دَ دوام نه.

**﴿فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَآءِیْٓ ﴾**دیکښ دَ **قوم طرزعمل او رد عمل** بیانوی.﴿ اِلَّا فِرَارًا﴾دا ئی **اول رد عمل** دې، چې اعراض دې ، یعنی دَ بلنې مقصد خو دَاوی چې خوک درله نیزدې راشی، خو دوئ ځما نه تختی.﴿جَعَلُوْٓا اَصَابِعَهُمْ فِیْٓ اٰذَانِهِمْ ﴾ **دویم رَدْ عمل** دې . چې نفرت دې د دعوت نه، یعنی دعوت سره انتهائی نفرت په وجه په غوږونو کښ ګوتې ورکړی.﴿وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ ﴾**دریم رد عمل** دې چې کراهت دې دَداعی نه، یعنی ځمانه ئی دومره کراهت شروع کړو، چې کله ورته پټه اولګی چې دې راغې، نوخان ټینګ په کپړو کښ بندکړی، چې نه دوئ ما اوګوری، اونه څه دوئ اوګورم، "استغشوا"کښ سین اوتاء دَ پاره دَمبالغې دی.﴿وَاَصَرُّوْا ﴾**څلورم ردعمل** دې، چې هغه اصراردې په ګناهونو،یعنی ایمان نه راوړل خوځه کوې چې مزید په ګناهونو کښ سختیږی، ﴿وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا﴾ډیرلوئ تکبر کوی،نه ما په څه کښ ګڼړی ، نه ځما اصحاب او نه ځمادعوت په څه کښ ګڼړی.

﴿ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا﴾ داد کارګزارۍ **دویمه مرحله** ده،چې اسلوب وطریقه کار اعتبار سره عموم دَ دعوت بیان دې پکښې،چې اې الله ! ما دوئ ته دا دعوت مختلف طریقو سره ورکړو، او په متنوع اسالیبو کښې مې ورته پیش کړو، خو دوئ بیا هم ایمان را نه وړ

«جهارا» دااوله طریقه ده چې اجتماعي دعوت مې ورته ورکړو،ټول مې راجمع کړو او تقریر مې ورته اوکړو."جهار"په زوره وینا ته وائي،نودینه معلومیږي چې دا اجتماعي او د جلسې صورت وو. ﴿ثُمَّ إِنِّي أَعْلَنْتُ لَهُمْ﴾دویمه طریقه ده دَ دعوت، چې انفرادي اوعلانیه دعوت دې، یعني یویو کس مې مخاطب کړو، اوهغه ته مې علانیتًا دعوت ورکړې دې،﴿وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا﴾ دریمه طریقه ده دَدعوت چې انفرادې اوسري ده، یعني یو یوپسې جداجدا تلې یم او دَنورخلقونه مې ورله په پټه دعوت ورکړې دې.

| |
|---|
| فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ |
| نوووئیل ماچه بخنه اوغواړئ دَرب خپل نه بې شکه هغه دې ډیربخونکې رالېږي به ورورې باران په تاسوپه |
| مِّدْرَارًا ۝ وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا ۝ |
| نسیوشیبو،اوزیات به کړي تاسو په مالونواوپه ځامنوسره اواوبه ګرځوي تاسولره باغونه اواوبه ګرځوي تاسولره نهرونه |
| مَّا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ وَقَارًا ۝ وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا ۝ |
| څه شویدي تاسولره چه عقیده نه ساتئ الله ﷻلره دَعظمت، حال داچه پیداکړي ئي تاسوپه مختلف حالتونو، |
| أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا ۝ وَجَعَلَ الْقَمَرَ |
| آیانه ګورئ تاسوچه څرنګه پیداکړیدي الله ﷻ وه اسمانونه لاندې باندې اوګرځولې ئي ده سپوږمئ |
| فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا ۝ وَاللَّهُ أَنبَتَكُم مِّنَ الْأَرْضِ |
| په دوئ کښې رڼااوګرځولې ئي دې نمرډیوه،اوالله ﷻپیداکړي يئ تاسودزمکې نه |

نَبَاتًا ﴿۱۷﴾ ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ﴿۱۸﴾

په پیداکولوسره، بیابه واپس کوی تاسو پدې زمکه کښې اوبیابه موراوباسې په راوبسلوسره

وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ بِسَاطًا ﴿۱۹﴾ لِتَسْلُكُوا مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا ﴿۲۰﴾

اوالله ﷻ گرځولې ده تاسولره زمکه فرش،په شان دپوخې،چه گرځئ ددینه په لاروارتو،فراخو کښې

﴿فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا﴾ دې کښې دکارگزارې **دریمه مرحله** شروع کیږي. چې دیکښې عموم دَدعوت ذکر کیږي،په اعتبار دَ طریقو،یعني په مختلف اندازونو سره مې دعوت ورکړو، چې کله ترغیب سره ، او کله دلائل اونعمتونو بیان سره، نو دې آیتونو کښې دعوت دې په ترغیب سره﴿إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا﴾دااول ترغیب دې،یعنی شرک وکفرنه توبه اوباسئ. اوالله ﷻ نه متوجه شئ، الله ﷻ به خو اوبښي،هغه دیربښونکې ذات دې ﴿يُرْسِلِ السَّمَاءَ﴾دویم ترغیب دې چې الله ﷻ به درنه قحطونه اوخشک سالی ختمه کړي،اوبارانونه به دربانديرا اوروي. "السماء" نه مرادباران دې. ﴿مِدْرَارًا﴾دَ دَرَّ يَدِرُّ،دُروراً، نه دَ مبالغی صیغه ده، ډیر زیات بهیدونکی ته وائی،حال واقع دې السماء نه.

﴿وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ﴾دریم ترغیب دې چې الله ﷻ به موپه مال اواولاد کښې اضافه اوبرکت واچوی،﴿وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ﴾څلورم ترغیب دې چې الله ﷻ به درله باغونه درکړي،﴿وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا﴾پنځم ترغیب دې،نهرونه به درله جاری کړی﴿مَا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ﴾دې کښې دَ دلائلو او نعمتونو په بیان سره دعوت دې،چې دومره لوئ الله ﷻ چې داکائنات اودې کښې چې څه دی هغه ئی تول پیداکړی دی، اوپه تاسو ئی گڼر شمیر انعامات کړی دی،خوتاسو بیاهم دَهغه عظمت خیال نه ساتئ اوایمان پرې نه راوړئ، ﴿لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ﴾یا پمعنی دَ "لاتعتقدون"سره دې، اویا "لاتخافون"سره دې، "وقارا"عظمت ته وائی.

﴿وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا﴾ دااول دليل عقلي دي اودليل انفسي دي.چې الله ﷻ تاسو مختلف مراحلو کښې پيدا کړي يئ «اطوارا» جمع دَ طور ده.او دينه مراد

(۱)ياهغه مراحل دی چې سورت المؤمنون ابتداء کښې تيردی،چې اول نطفه وی،بيا علقه، بيامضغه . الخ

(۲) يا مراد پيدائش نه بعد تر مرګ پورې دَماشوم توب،خوانئ او بداتوب مختلف مراحل دی.

(۳) يادَ دې نه زندګئ مختلف احوال بيمارئ وصحت وغيره مراد دی

(۴)رنګونو اختلاف ترينه مراد دې،راجح قول دادې چې داټول ترينه مراد دی.څکه چې دا ټول دَ الله ﷻ په عظمت باندې دلائل دی، اوجمله حال واقع ده،دضمير دَ ترجون نه

﴿أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ﴾ دا دويم دليل عقلي دې چې آفاقي اوعلوی دې.ګورئ.

(۱) چې الله ﷻ څنګه اووه آسمانونه لاندې باندې بې دَستون نه قائم کړی دی،داسې بل څوک کولې شی؟

(۲) بيائی پکښې سپوږمئ اېښيده چې په توره شپه کښې رڼا ورکوی،داسې بل څوک کولې شی؟

(۳) او پکښې نمر ايښې دې،چې دَهغې حيثيت دَډيوې دې،ټول جهان ئې روښانه کړې وی.

﴿فِيهِنَّ﴾ضمير مجرور مرجع 'سموات' دی، او سپوږمئ اګرچې په آسمان دنيا کښې ده، خو چونکه داآسمان ټولو آسمانونو باندې محيط دې،نودې کښې واقع کيدل داسې ده لکه ټولو کښې واقع وی نوځکه "فيهن"اووئيلی شو. ﴿نُورًا﴾ "منورا"﴿سِرَاجًا﴾ډيوه،سپوږمئ ته نور او نمر ته ډيوه اووئيلی شو ، څکه چې سپوږمئ خپله هم روښانه وی اوځمکه هم روښانه کوی،خودې رڼا دومره نه وی چې خلقوته پرې هر څه ښکاری،او کاروبار دَ زندګئ پرې روان وی،بخلاف دَ نمر نه.چې دَدې حيثيت ټولې دنيا دَپاره داسې دې لکه يوه کمرې دَپاره ډيوه اوبلب.چې هغې سره کمره مکمله روښانه وی او هر څه پرې ښکاری.

﴿وَاللَّهُ أَنبَتَكُم مِّنَ الْأَرْضِ نَبَاتًا﴾ديکښې دَسابقه دليل انفسي اعاده ده،چونکه دې کښې دَمعاد ذکر سره دَ الله ﷻ مزيد قدرت اظهار دې، نوځکه مکرر شو ، دليل خلاصه دا ده چې الله ﷻ

تاسو مخصوص انداز سره دَ زمکې نه پیدا کړی یئ، چې ابتداء دحضرت آدم علیه السلام به اوکړه، اوهغه ئی خالص دَختونه پیدا کړو، بیا دَ هغې نه بعد دَ انسانیت سلسله شروع شوه. نو دې دپاره اګرچه ظاهری سبب نطفه ده، خو دیکښې هم دَ زمکې دخل دې، چې نطفه دَزمکې عذاګانو نه جوړیږي. ﴿ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا﴾ یعنی بیا موهم دې زمکې ته لیږی اوقیامت په ورځ به مو را اوباسی، اوحساب کتاب به درنه اخلی، لهذا په داسی ذات باندې ایمان راوړئ ﴿وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ﴾ دا دلیل عقلی سفلی دې، اومطلب دادې چه الله تعالیٰ درته زمکه کښې ګرځیدل داسی آسان کړیدی لکه په بسترې باندې چه سړې اوړی رااوړی. ﴿بِسَاطًا﴾ درئ او پوځی ته وائی ﴿فِجَاجًا﴾ جمع دَ فج ده، فراخی لارې ته وائی.

قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا مَن لَّمْ يَزِدْهُ

اوویئیل نوح علیه السلام ای ربه خمابې شکه چه دوئ نافرمانی اوکړه خما او اتباع ئی وکړه دَهغه چاچه زیات نکړو هغوئ لره

مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا ﴿٢١﴾ وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا ﴿٢٢﴾

مال دَهغوئ او اولاد دَ هغوئ مګر تاوان (دَ آخرت) او مکر اوکړو هغوئ مکر لوئ

وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا

اواوئیل مشرانو کشرانو ته چه مه پریدئ هرګز عبادت دَمعبودانو خپلو اومه پریدئ هرګز عبادت دَوَد اونه دَسواع،

وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ﴿٢٣﴾ وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا ۖ وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ

اونه دَیغوث اویعوق اونسر. اوبه تحقیق ګمراه کړیدی دوئ ډیرخلق، اومه زیاتوه ظالمانو لره

إِلَّا ضَلَالًا ﴿٢٤﴾ مِّمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم مِّن

مګر عذاب، په سبب دګناهونو خپلو هغوئ غرق کړې شول نو داخل کړې شول اُور ته، پس اونئ نه موندل خپلو ځانونو لره

دُونِ اللَّهِ أَنصَارًا ﴿٢٥﴾ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ﴿٢٦﴾

ماسوئ دَالله تعالیٰ نه مددګاران اوویئیل نوح علیه السلام ای ربه خمامه پریږده په زمکه باندې دکافرانو نه دکوراُوسیدونکې

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴿٢٧﴾ | | | |
| بې شکه که ته پريږدې دوئ ژوندي، نوګمراه به کړي نوربندګان ستااونه پيداکېږي ددوئ نه مګر فاجر غټ کافر | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَّبِّ | اغْفِرْ | لِي | وَلِوَالِدَيَّ | وَلِمَن | دَخَلَ بَيْتِيَ | مُؤْمِنًا |
| اې ربه | خمابخنه اوکړه | ماته | اوموربلارخماته | اوهغه چاته | چه داخل شی کورخمانه | پدې حال کښ چه مؤمن وی، |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلِلْمُؤْمِنِينَ | وَالْمُؤْمِنَاتِ ۖ | وَلَا | تَزِدِ | الظَّالِمِينَ | إِلَّا | تَبَارًا ﴿٢٨﴾ |
| اومؤمنانوسړو | اومومنانوښځوته، | اومه | زياتوه | ظالمانولره | | مګرهلاکت |

﴿قَالَ نُوحٌ رَّبِّ﴾ دا دَنوح عليه السلام کارګزاری **خلورمه مرحله** ده، چې ديکښ دَخپل قوم شکايت کوئ،الله ﷻ ته، ﴿إِنَّهُمْ عَصَوْنِي﴾ يعنی دوئ دَنجات لارپريخوده چې هغه خما اتباع ده.﴿ وَاتَّبَعُوا مَن لَّمْ يَزِدْهُ﴾ او دَ هلاکت لار ئی اختيار کړۀ، اوپه مال اواولاد باندې مغروره رئيسانو او سردارانو اتباع ئی اوکړه. ﴿لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا﴾ يعنی دَ هغه خلقو اتباع اوکړه ، چې دَ هغوئ مال او اولاد دَهغوئ دَپاره خسارې سبب دې، خکه چې هم دوئ په وجه، ئې سرکشی او دَالله ﷻ احکاماتو نه بغاوت کړيدې،«يزده» او«ماله» کښ ضمير مفرد رؤساؤو ته راجع دې اومفردضمير راوړلو کښ دَ "من" لفظی حيثيت لحاظ ساتلې شوې دې.

﴿وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا﴾ دادَرؤساؤوبل صف مذموم دې، يعنی صرف ئی دَالله ﷻ احکاماتو نه بغاوت نه دۀ کړې ، بلکه دين په لارکښ رکاوټونه ئی هم اوچول.

﴿وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ﴾ داعطف دې په "ومکروا مکرا" باندې او دَ رؤساؤو دَ مکر يو نمونې بيان دې، يعنی متبوعينوخپلواتباعوته اووئيل، چه دَخپل معبودانوعبادت بالکل مه پريږدئ، او خاصکر دَ دی پنځه ؤمعبودانو،چه "وَدّ" دې، سواغ دې، يغوث دې،يعوق او نسر دې، چونکه داپکښ دَتولونه لوئ بتان وؤنوځکه ئی ورته ذکر اوکړو، دَبخاری شريف وغيره دَ دې آيت په تفسيرکښ دی چه داپنځه واړه دَنوح عليه السلام دَقوم صلحاء وؤ،کله چه وفات شول، نو شيطان دَ دوئ مريدانو ته اووئيل چه دَدوئ تصويرونه جوړکړئ. په کورونوکښ ئی کيږدئ، چه دَ دوئ ياد درته تازه وی، او د تصورشيخ په وجه به درته نيک عملونه اسان وی،کله چه دا

تصویرونو جوړولو والا وفات شول،نوشیطان ئی اولادته اووئیل چه ستاسوآباؤو د دې عبادت کولو ، نو هغوئ دَدې بُتانوعبادت شروع کړو ، دَ هر مطلب دپاره ئی بیل بیل بُت مقرر کړو .

**وُدّ** مشتق دې دَمودَة نه، دَ چابه چه عشق اودَمحبت حاجت وؤ .معشوقی به ورسره محبت نه کوؤ ، نوده ته به راتلو ،هندوان دیته برهما وائی.

﴿وَلَا سُوَاعًا ﴾ سواع حصارولوته وائی،دادَبقاء اودَنظام عالم چلولووالاوؤ .هندوان ورته بشنئ وائی. ﴿وَلَا يَغُوثَ ﴾دَ غوث نه دې، حاجت روائی لپاره وؤ .هندوان ورته.دیوتا وائی ﴿وَيَعُوقَ﴾ عوق نه مأخوذ دې، دَ دښمن رفع کولولپاره وؤ ،هندوان ورته شوجی وائی. ﴿وَنَسْرًا﴾ دادَطول العمرلپاره وؤ.

﴿وَقَدْ أَضَلُّوا ﴾ضمیرياراجع دې رؤساؤدَقوم ته یعنی دې مشرانودیرخلق پدی بتانوپه وجه گمراه کړل،یامذکوره پنځه بُتانوته،یعنی دَدوئ پوجه دیرخلق گمراه شول.

﴿وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا ﴾دادَنوح علیه السلام کارگزارئ **پنځمه او اخری مرحله** ده، چې قوم ایمان راوړلونه مایوسه کیدلونه ورستو دهغوئ دَپاره بدعاء او دَ مؤمنانو دَپاره دعاکوی «ضلال»(۱) یاپمعنی دَهلاک اوعذاب دې،یعنی نوح علیه السلام بددعااوکړه چه اې ربه:بس أوس صرف دوئ هلاک کړې دَایمان طمع ورنه نشته دې. (۲)یاورنه مرادناکامه کول دی پخپلومنصوبوکښې، یعنی یاالله دوئ چه څماخلاف اودَدین خلاف کومی منصوبی کوی هغه ناکامه کړې. (۳) یاضلال پخپله ظاهری معنی دې،نوذابعینه دَموسی علیه السلام په شان بد دعاء ده، **ربنااطمس علی اموالهم واشددعلی قلوبهم...** (یونس:۸۸)

﴿مِّمَّا خَطِيئَاتِهِمْ ﴾داجمله معترضه ده ماقبل اومابعد په منيځ کښې، او دَ عذاب علت اوسبب بیان دې پکښې، "مِن"تعلیلیه دې او "ما"زائده دې ای من اجل **خطیئاتهم**(روح)یعنی دَ خپلو گناهونوپه وجه ورباندی طوفان راغې اوپکښې غرق کړې شول﴿فَأُدْخِلُوا نَارًا ﴾ناردَبرزخ ورنه مراد دې،"فاء"دَتعقیب لپاره ده، نو دینه عذاب دَ قبر ثابت شو.

﴿فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم ﴾زجراوپیغوردي مشرکانوته.چه دَدوئ خودساخته معبودانوبیادَوئ نصرت نشوکولي

﴿وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ﴾ دا دَ بد دعاء تسلسل دي، چي ربه دوئ کښې یو کس هم ژوندې پرې نګدې ﴿ دَيَّارًا ﴾په اصل کښې دیوارٌدي،په وزن دَ فيعالٌ. واؤ په یاء بدل شو، او ادغام اوشو،نو دیارٌ شو، ساکن الدار،یعنی دَ کوراوسیدونکی ته وائی.یا دَ دورٌ نه ماخوذ دي، ګرځیدلو ته وائی(روح) یعنی هیڅ ګرځیدونکي اوحرکت کونکې دَ کافرانونه په مخ دَزمکی مه پریږده.

﴿يُضِلُّوا عِبَادَكَ ﴾یعنی چه کوموپه ماایمان راوړیدي، هغه به هم ګمراه کړی،پخپله خو خود ایمان نه راوړی،یادَ عبادَکَ نه مرادنابالغه هلکان دَدوئ یا دَمؤمنانودی.﴿وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴾یعنی نهم نیم سوه کاله تجربه شمااوشوه، چه دینه ورستودَدوئ خامن هم ایمان نه راوړی،بعض وائی داعلم ورته په وحی سره اوشو.لکه په سورة هود(۳۲)کښې دی:واُوحی الی نوحٍ انّه لن یؤمنَ من قومکَ....

﴿رَّبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ ﴾کافرانوته بددعاء نه ورستوخپل خان،مورپلار،اومؤمنانوته ئی دعا اوکړه، دینه معلومیږی چه مور پلار دَ نوح عليه السلام مؤمنان وو.خکه کافرته دَمغفرت دعانه ده جائز، بعضِ وائی دَمورپلارنه مرادئی ادم عليه السلام اوحواء وو.

﴿وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِيَ ﴾یاورنه حقیقةً کورمراد دي،یاورنه کشتئ مراددہ،﴿مُؤْمِنًا ﴾احتراز دي بدی سره دَخوی نه اودَښځې نه،﴿وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ﴾تعمیم بعد التخصیص دئ،یعنی تر قیامته پوری دَهراُمت مؤمن اومؤمنه ته مغفرت اوکړی.

صاحب دَروح المعانی وائی چه نوح عليه السلام کافرانوته بددعااوکړه،مؤمنانوته ئی دُعا اوکړه،بددعاء ئی قبوله شوه،بعیده نده چه دُعائی هم قبوله شی.

| آياتها (۲۸) | سورة الجنّ مكيّة | ركوعاتها (۲) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۷۲) وحسب النزول (۴۰)**

نزلت بعد الاعراف وقبل يٰسين

**ربط**: ماقبل سورة کښې دعوې د تبارک باندی د حضرت نوح علیه السلام دليلِ نقلی تفصیلی ذکرشوې وؤ، اوس دی سورة کښې د جناتونه دليلِ نقلی تفصیلی دې چه جناتو دا مسئله تسلیم کړه اوخپل قوم ته ئې تبلیغ اوکړو حالانکه هغه قوی اوناری مخلوق دې.

**خلاصه**: دې سورت کښې درې دليل وحی ذکر کیږی.

(۱) اول دليل وحی د آیت (۱) تر ۱۰ پورې دې او د جناتو نه نقل دې، او دا دليل وحې په درې حصو باندې تقسیم دې:

(۱) اولو اووه (۷) آيتونو کښې د جناتو ایمان راوړلو، او دشرک نه برات ذکر دې،

(۲) ۸ تر ۱۰ پورې د آسمانی حالاتو بیان دې،

(۳) ۱۱ نه تر ۱۵ پورې تقسیم د جناتو دې قبل از اسلام اوبعد از اسلام.

(۲) دویم دليل وحی وان المساجد لله آيت ۱۸ دې.

(۳) دریم دليل وحی انه لما قام دې او دا په خلورو اعلاناتو مشتمل دې، دینه نه علاوه څه بشارات وتخويفات پکښې هم دی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | اُوْحِيَ | اِلَيَّ | اَنَّهُ | اسْتَمَعَ | نَفَرٌ | مِّنَ | الْجِنِّ |

ته اووایه اې پیغمبره چه وحی کړې شویده ماته چه غوږ کیخودلو (قرآن ته) یوجماعت د جناتونه،

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالُوْا | اِنَّا | سَمِعْنَا | قُرْاٰنًا | عَجَبًا | ﴿۱﴾ يَّهْدِيْٓ | اِلَى | الرُّشْدِ |

نو اووئیل دوی خپل قوم ته چه کله لاړل بی شکه مونږه واورېدلو قرآن عجیبه، چه ښائي د کامیابۍ لاره ته

| |
|---|
| فَاٰمَنَّا بِهٖ ؕ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ اَحَدًا ۝ وَّاَنَّهٗ تَعٰلٰى جَدُّ رَبِّنَا |
| پس مونږ ايمان راوړو په هغه.اوهرگزبه شريک نکړو درب خپل سره هيڅوک.اوبې سکه هغه چه لوئ دې شان درب زمونږ |
| مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا ۝ وَّاَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا ۝ |
| نه ئې ده نيولې ښځه اونه اولاد.اوبې شكه ونيل به زمونږ كم عقلو. په الله باندې خبرې لرې دحق نه |
| وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۝ وَّاَنَّهٗ كَانَ |
| اوبې شكه زمونږگمان وڅه هرگزنه به وائې انسان اوپيريان په الله ﷻ باندې دروغ.اوبې شكه وؤبه |
| رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا ۝ |
| ډېرسړې دانسانانونه چه پناه به ئې غوښتله په کسانودپيريانونه، نوزياته کړه انسانانوپيريانولره سرکشې |
| وَّاَنَّهُمْ ظَنُّوْا كَمَا ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ اَحَدًا ۝ |
| اوبې شكه دوی گمان کولولکه چه گمان کوئ تاسوداچه هرگزبه به ژوندئ نکړی الله هيڅوک |

﴿ قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ ﴾ دا دليل نقلي دې دجناتو نه، چې په درې حصو تقسيم دې، او دا ئې اوله حصه ده ، چې ديکښې د جناتو د ايمان راوړو ذکر دې.

بخاری شريف کښې دی چې نبی کريم ﷺ دخپلو اصحابو يو جماعت سره سوق عکاظ طرف ته اووتلو،داهغه زمانه وه چې ښياطينوباندې دآسمانونوخبرې بندې شوې وې اوپه انگاربه ويشتلې کيدل،شياطينو يوبل نه تپوس اوکړو چې څه وجه ده چې مونږ دآسمان خبرونه منع کړی شوی يو ، اوشهاب ثاقب راباندې ويشتلې کيږې،ضرورڅه چل شوې دې، لهذا مشرق نه تر مغرب پورې ټول زمکه چاڼ کړئ،شياطين په تلاش کښې اووتل، يوجماعت د تهامه په طرف تشکيل شو ،نبی کريم ﷺ هلته وادی نخله په مقام کښې صحابه کراموته سهر مونځ ورکولو ،هغوئ چې کله قرآن واوريدلو نو اوئې وئيل هم داستاسوپاره دآسمان خبرونه رکاوټ گرځيدلې دې،اوقوم ته واپس شولواودائې اوونيل،﴿اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ﴾ «بخاری باختصار».

مسلم شریف کښ ورسره داهم دي چې دي موقع باندې نبی کریم ﷺ نه دوئ باندې قرآن لوستلې وؤ، اونه ئې دوئ لیدلی وؤ، نودې آیت کښ یوخوا مشرکینو ته او زجر پیغور دی چه جناتوقرآن یو ځل آوریدلو سره ایمان راوړو، تاسو عرب یئ. هروخت قرآن آورئ. اوبیاهم ایمان نه راوړئ. بل ددې نه داهم ثابته شوه چې نبی کریم ﷺ عالم الغیب نه دې. ځکه چې نبی کریم ﷺ جناتوپه راتګ اوپه دې واقعې نه وؤ پوهه شوې، بلکه الله ﷻ ورله خبر ورکړو. او دغه شان داهم ثابته شوه چې جنات هم عالم الغیب نه دی. ځکه دوئ ته دَ رکاوټ سبب معلوم نه وؤ.

﴿أَنَّهُ﴾ضمیر شان دې ﴿فَقَالُوٓاْ﴾یعنی قوم طرف ته واپس کیدلو نه بعد ئې هغوئ ته اوئیل

﴿عَجَبًا﴾صفت اول دې دَقرآن، عجب: ناآشنا ته وائی، نو قرآن هم فصاحت وبلاغت اواسلوب بیان اعتبارسره دَمخلوق نه بالکل جدا اومعجز دې، نوځکه ئې ورته عجب اوئیلو، یائې ورته عجب دَمضامینو اواحکاماتو اعتبارسره اوئیلو. ځکه چې دوئ مشرکان وؤ. اودَدې مضامین دَعقیده شرکیه خلاف دی، ﴿يَهْدِىٓ إِلَى ٱلرُّشْدِ﴾داصفت ثانی دې دَقرآن، الرشد: خیراوحق ته وائی، یعنی حق اوخیر طرف ته راهنمائی کوی﴿فَـَٔامَنَّا﴾دائی د ایمان بالقرآن اعلان دې، ((به)) کښ ضمیر مجرور قرآن راجع دې﴿وَلَن نُّشْرِكَ﴾شرک نه برات دې

﴿وَأَنَّهُۥ تَعَٰلَىٰ جَدُّ رَبِّنَا﴾دیکښ دَالله ﷻ تنزیه بیانوی چې الله ﷻ دیر عظیم الشان ذات دې، هغه د عجز: سماتو: نه پاک دې، دهغه نه بی بی شته اونه اولاد. ﴿تَعَٰلَىٰ جَدُّ رَبِّنَا﴾جد: په معنی دَعظمت، شان، اوقدرت سره دې، اوداجمله معترضه ده په مابین دَ ((انه)) او ((ما اتخذ)) کښ.

ان: کښ دلته اودینه ورستو چې یولس (۱۱) ځل ذکر دې، دوه قرات متواتره دی، بالفتح او بالکسر: انّ: بالکسر په صورت کښ هیڅ اشکال نشته، ځکه چې داعطف دې په: انا سمعنا: باندې، البته: أنّ: بالفتح په صورت اشکال جوړیږی، چې دا په چا عطف کیږی، متعدد اقوال منقول دی، بې تکلفه قول دادې چې داعطف دې په ((فامنا به)) کښې ضمیر مجرور باندې چې

نه کښې دي ، او عطف په ضمير مجرور باندې بلا اعاده د جار نه . د کوفيانو په نيز جائز دي .او د دې ګڼو شمير شواهد دی

﴿وَأَنَّهُۥ كَانَ يَقُولُ﴾ دې کښې د خپل مشرک مشرانونه براءت اعلان دې.چې دوئ الله ﷻ ته کومې خبرې منسوب کولې چې الله ﷻ لره بی بی ده او فرشتې د هغه لونړه دی. وغيره، دا ډيرې غلطې خبرې دی،اوبې وقوف توب باندې مبنی دی ﴿سَفِيهُنَا﴾ سفيه نه مراد خپل مشران مشرکان دی، چې سردارئی ابليس عليه اللعنة دې. «شَطَطًا» شطط حد نه تجاوز اوبې انصافی ته وئيلی کيږی،يعنی دوئ خبرې د حق نه لرې وی.جلال محلی ئی معنی غلو في الکذب سره کړيده ،يعنی ډيرغټ دروغ ئی په الله ﷻ باندې وئيل

﴿وَأَنَّا ظَنَنَّآ أَن لَّن تَقُولَ ٱلْإِنسُ﴾ دا د وعظ کونکو جناتو معذرت دې،چه تراوسه پورې خو مونږ په دی سوء ظن کښې پراته وؤ، چه هيڅ څوک د جن وانس نه په الله ﷻ باندی دروغ نه وائی، په دی وجه مونږ دا ګڼړله چه زمونږمشران چه «نعوذبالله» الله ﷻ لره شريک اونائب ثابتوی، دوئ په حقه دی،ليکن اوس د قرآن اوريدلوسره راباندی داحقيقت ښکاره شوچه دوئ بی وقوفه دی، کاذبان دی.

﴿وَأَنَّهُۥ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ ٱلْإِنسِ﴾ دیکښې د جناتوسرکشئ اسباب بيانوی،چې دا انسانو ډير سرکشه کړيدی، څکه چې کله به د دوئ په لاره په سفرکښې په ځنګل يابيابان کښې شپه راغله، بريدل به نوپه زوره به ئې اوازاوکړو :ياعزيزهذاالوادی اعوذبک من السفهاءالذين في طاعتک، يعنی ستانه د دی ځنګل د سرکشونه پناه غواړم،جناتوبه چه داواوريدل ، نو نور به هم په غرور کښې راغلل، چه مونږ د جناتو او انسانانومشران يو ،او هم دا مقصد دې د «يعوذون برجال من الجن» ﴿فَزَادُوهُمْ رَهَقًا﴾ ضمير د فاعل انسانانوته راجع دې اوضمير د مفعول جناتوته، "رهقا" بمعنی د سرکشئ سره دې انسانانو د جناتوپه تکبرکښې اوطغيانئ کښې زياتوالې اوکړوپه قول مذکور سره،بعض وائی د ﴿رَهَقًا﴾ معنی "اثماً" ده،نوضميرونه بالعکس دی،نومعنی داده چه جناتود انسانانوپه ګناه کښې زياتوالې اوکړو«روح». عبدالماجد دريا آبادی صاحب دی ايت په

ذيل کښې ليکلی دی. چې نن صبا ګوم مسلمان عاملان خپلو تعويذونو او عملياتو کښې جناتو او مؤکلينو نه مدد طلب کوی، هغوئ له پکار ده چې دغه نسان آياتونه لګ په غور سره اولوی.

﴿وَأَنَّهُمْ ظَنُّوا﴾ داهم کلام دَجناتو دي، ديکښې په بعث الموت باندې ايمان راوړلو ذکر او دعوت دي ، يعنی دانسانانو هم داعقيده وه چې کله يو ځل مړه شونو بيا دوباره پورته کيدل نشته، لکه څنګه چې ستاسو عقيده ده، هغوئ هم په غلطه عقيده وو . تاسوهم په غلطه يئ. نو کله چې داقرآن نازل شو نوهغوئ دا عقيده پريخودله اوپه بعث بعدالموت باندې ايمان راوړلو ، لهذاتاسو هم ايمان راوړئ ﴿ كَمَا ظَنَنتُمْ ﴾ کښې خطاب خپلو جناتو ته دي

يا داجمله معترضه ده او ظنوا کښې ضمير جناتو ته اوپه ظننتم کښې خطاب کفارونه دي، يعنی اي کفارمکه ؛ دَجناتو هم عقيده دا وه، خوکله چې قرآن ئې واوريدلو، نو ايمان ئې راوړلو ، لهذاتاسو ايمان راوړئ (تفسير مظهری) ﴿أَن لَّن يَبْعَثَ ٱللَّهُ أَحَدًا ﴾ مطلب دادې چه لکه څنګه ستاسو داګمان وو چه دَمرګ نه ورستوبياژوندې نشته دغه شان دَبعض انسانانوهم دغه ګمان وو ،نودَ بعث نه مرادبعث بعدالموت دي.

وَأَنَّا لَمَسْنَا ٱلسَّمَآءَ فَوَجَدْنَٰهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيدًا وَشُهُبًا ﴿٨﴾

اوبې شکه مونږ مسه کړوآسمان پس بيامونودمونږهغه چه ډک کړې شوې دې دَخوکيدارانوسختونه اودلمبودَاورنه

وَأَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَٰعِدَ لِلسَّمْعِ ۖ فَمَن

اوبې شکه وومونږچه کيناستلوبه پدې آسمان کښې په ځايونودکيناستلوکښې دَپاره دَاوريدلو.پس هغه څوک

يَسْتَمِعِ ٱلْـَٔانَ يَجِدْ لَهُۥ شِهَابًا رَّصَدًا ﴿٩﴾ وَأَنَّا لَا نَدْرِىٓ أَشَرٌّ أُرِيدَ

چه غوږکيدې اوس نوبيامومی ځان لره لمبه تياره،اوبې شکه مونږنه پوهيږوچه آيا د څه شراراده شويده

بِمَن فِى ٱلْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا ﴿١٠﴾

په هغه چاچه په زمکه کښې دی اوکه اراده کړيده پدوئ رب دَدوئ کاميابی

﴿وَأَنَّا لَمَسۡنَا ٱلسَّمَآءَ﴾ دا دَ دليل نقلي دويمه حصه ده. چې دی کښې جنات داسمانونو حالات بيانوی، چه دينه قبل به مونږ اسمانونو ته ختلو اوس نه شو ختلې. دينه قبل به مودملأ اعلی خبری اوريدلی، ليکن اوس نه شو اوريدلی، نو دينه معلوميږی چې الله ﷻ خپل رسول مبعوث کړيدی لهذا ايمان پری راوړئ.

«لمسنا» پمعنی دَ "طلبنا" سره دې، يعني مونږ دَ فرشتوخبرواوريدلودپاره آسمان ته ځان رسول طلب کړل، ليکن سخته چوکيداری ئې شروع وه، نومونږپوهه شوچه څه نوې واقعه شويده دنيا کښې، اوهغه بعثت دَ دې رسول اکرمﷺدې، ځکه چه دده دبعثت نه قبل به مونږ خبرو اوريدلو دپاره کيناستلو. ليکن اوس خولاناست نه يو، چه شغله راته تياره رارسيدلی وی

﴿وَأَنَّا لَا نَدۡرِيٓ﴾دَدې آيت دوه مطلبه بيان کړې شوې دی.

«۱»يوداچې مونږ ته تر اوسه پورې پته نوه چې دآسمان کوم دَحراست انتظام شوې دې، نودينه څه مقصود دی؟آياپه خلقوباندې څه عذاب راروان دې اوکه نه،څه دَخيراراده شوی ده، خو اوس چې کله قرآن واريدلو، نومعلومه شوه راته چې دَخلقو خيراوهدايت مقصود دې، چې جنات کاهنانوله خبررانه وړی اوخلق پرې ګمراه نشی.

«۲» دويم طلب دابيان شوې دې چې دې رسول بعثت خو حق دې،خو ليکن مونږته داپته نشته چې دې سره دَخلقو خير اراده شوې ده اوکه شر،ځکه چې داپته نشته چې داخلق به پرې ايمان راوړی او که نه؟نو که ايمان ئې راوړلو نو دَدوئ خير اراده شوې ده، دنيوی اواخروی انعامات به ورته ميلاويږی،اوکه ايمان ئې رانوړو ، نو بيا دَ دوئ شراراده کړې شوې ده ، او دَ دوئ هلاکت وخت قريب دې«مظهری روح المعانی،جواهر».

| |
|---|
| وَأَنَّا مِنَّا ٱلصَّٰلِحُونَ وَمِنَّا دُونَ ذَٰلِكَۖ كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدٗا ⑪ |
| اوبې شکه بعضی زمونږنه نيکان دی اوبعض زمونږنه غيردی له دوئ نه وؤمونږمختلفی فرقی. |
| وَأَنَّا ظَنَنَّآ أَن لَّن نُّعۡجِزَ ٱللَّهَ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَن نُّعۡجِزَهُۥ |
| اوبې شکه مونږيقين کوؤداچه هرګزنشوعاجزه کولې مونږالله ﷻ لره په زمکه کښې اوهرګزنشوعاجزه کولې هغه لره |

هَرَبًا ﴿١٢﴾ وَّاَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدٰٓى اٰمَنَّا بِهٖ ؕ فَمَنْ يُّؤْمِنْۢ

په تیختې سره اوبې شکه مونږ هرکله چه واوریدلو دا قرآن نو ایمان مو راوړو پدې. بس څوک چه ایمان راوړي

بِرَبِّهٖ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا ﴿١٣﴾ وَّاَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُوْنَ

په رب خپل نو نه به یريږي دکمولو دنیکئ نه او نه زیاتولو دبدئ نه او بې شکه بعضې زمونږنه مسلمانان دي

وَمِنَّا الْقٰسِطُوْنَ ؕ فَمَنْ اَسْلَمَ فَاُولٰٓئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا ﴿١٤﴾

او بعضې زمونږنه ظالمان دي پس هغه چاچه اسلام راوړونو دغه کسانو قصداوکړود کامیابئ

وَاَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ﴿١٥﴾

او هرچه ظالمان دي نو دي دوئ دجهنم ختاک

﴿وَأَنَّا مِنَّا ٱلصَّٰلِحُونَ﴾ دا دلیل نقلي دریمه حصه ده چې دې کښې دا جنات نورو جناتو ته قبل از اسلام خپل حالات ذکرکوي، چې قبل از اسلام مونږ کښې مختلف مذاهب وؤ، څوک مؤمنان او څوک کافران، او کوم چې مؤمنان وو، نو هغوئ هم درجاتو اعتبار سره مختلف وو، ځنې کامل مؤمنان وؤ، او ځنې ناقص، او زمونږ حالت دا وو چې مونږ مؤمنان نه وؤ، کافران وؤ، خواوس موچې کله قرآن واریدلو، نو دَ الله ﷻ په عظمت اوقدرت په هدایت حقانیت خویقین راغې نو ایمان مو راوړو

﴿وَمِنَّا دُونَ ذَٰلِكَ﴾ "دون" په دوؤ معنو کښې استعمالیږي (۱) تحت او "اقل". (۲) غیر، که اوله معنی واخلو نو مطلب به داوي چې ځنې مونږ کښې کامل مؤمنان وؤ او ځنې دَ هغوئ نه کم درجې والا، او که "غیر" په معنی کښې نې واخلو نو مطلب به داوي چې ځنې مونږ کښې صالحان مؤمنان وؤ او ځنې نه وؤ، ﴿كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا﴾ تفسیر دې دَ ماقبل، طرائق جمع دَ طریق ده او مراد ترینه مذاهب دي، او مضاف محذوف دې اې ذي طرائق "قددا" جمع "قِد" ده، متفرق او مختلف په معنی کښې راځي.

﴿وَأَنَّا ظَنَنَّآ﴾ اي علمنا الآن بعد نزول القرآن﴿أَن لَّن نُّعْجِزَ ٱللَّهَ فِي ٱلْأَرْضِ﴾يعنى زمكه كښې ترينه نشوبچ كيدلي ﴿وَلَن نُّعْجِزَهُۥ هَرَبًا﴾اوآسمان ته ترينه هم نشو تختيدلي،هلته به هم په شهاب ثاقب ويشتلي كيږو،ياد "لن نعجز الله في الارض"معنى داده چې مقابله ئې هم نشو كولي،اونه ئې مغلوبه ولي شو او "ولن نعجزه هربا"اوپه تخته ترينه هم ځان نشو بچ كولي.

﴿وانا لما سمعنا الهدى﴾ "هدئ" نه مراد قرآن دې ، چې قرآن مو واوريدلو ،نو ايمان مو پرې راوړو . ﴿فَمَن يُؤْمِنۢ﴾ داترغيب دې ايمان ته﴿فَلَا يَخَافُ بَخْسًا﴾اى نقصاًفي الجزاء(روح)﴿وَلَا رَهَقًا﴾ اى لازيادة في سيئاتِهِ،يعنى مؤمن به په ثواب اوبدله كښې دكموالى خوف نكوى اونه به زياتوالى دګناه خوف كوى،بعضو دَ﴿ رَهَقًا ﴾معنى ذلة كړيده، يعنى دَ ذلة اورسوايئ خوف به ورسره نوى(روح)

.﴿وَأَنَّا مِنَّا ٱلْمُسْلِمُونَ﴾داتقسيم دې دَدوئ بعدازاسلام، يعنى څنګه د اسلام نه مخكښې مونږ كښې فرقې وې، نو اسلام نه بعد هم په طبقوكښې تقسيم شو،چا ايمان راوړو او چا را نوړو، اوپه ځان ئې ظلم اوكړو.﴿وَمِنَّا ٱلْقَٰسِطُونَ﴾يعنى دَحق لارى نه ګمراه،"قاسط" دَ ثلاثى مجرد نه پمعنى دَظالم اوبى انصافه دې،اوثلاثى مزيدفيه نه يعنى مقسط ، پمعنى دَانصاف او مُنصف سره دې. ﴿فَمَنْ أَسْلَمَ﴾بشارت دې چه اسلام راوړونكو دكاميابئ لاره اوموندله.

﴿ وَأَمَّا ٱلْقَٰسِطُونَ﴾ دا تخويف دې چه ظالمانواومشركانو دَناكامئ لاره اوموندله چه دوئ به دَجهنم خس خشاک وى.

| |
|---|
| وَأَن لَّوِ ٱسْتَقَٰمُوا۟ عَلَى ٱلطَّرِيقَةِ لَأَسْقَيْنَٰهُم مَّآءً غَدَقًا ﴿١٦﴾ لِّنَفْتِنَهُمْ |
| او دا هم ماته وحى شويده چه كچرته داخلق روان شوپه لارى سمى دَاسلام نوخامخا اوبه څكَوو مونږ دوئ اوبه ډيرى دَپاره دَدى چه مونږ ازميښت |
| فِيهِ ۚ وَمَن يُعْرِضْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِۦ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ﴿١٧﴾ |
| اوكړودوئ پدغه نعمت كښې اوڅوک چه اعراض اوكړى دَعبادت دَرب خپل نه نوداخل به ئې كړى الله تعالى عذاب سخت ته |

﴿وَأَلَّوِ ٱسْتَقَـٰمُواْ﴾ دَجناتو بيان ختم شو ،اوس دبګنې النفات دي اهل مکوٙوته او داعطف دې په﴿أَنَّهُ ٱسْتَمَعَ نَفَرٌ﴾باندې اى قل اُوحي اليّ ان لّواستقاموا ضميرپه﴿ ٱسْتَقَـٰمُواْ ﴾کښې راجع دې اهلِ مکه وٙته﴿عَلَى ٱلطَّرِيقَةِ ﴾دَ الطّريقة نه مراددين اسلام ايمان اواطاعت دې.روايت دې چه داآيت کريمه په هغې وخت کښې نازل دې چه اهل مکه په سخت قحط کښې مبتلاوو.نو الله ﷻ ورته اوفرمائيل کچرته دوئ ايمان راوړی په لاري داطاعت باندې مستقيم شی نومونږبه بارانونه راولو ،قحط به ختم شی،﴿مَّآءً غَدَقًا ﴾ اى كثيراً،مراددډيروالي دأوبونه وسعت اوډيروالي دَرزق دې،ځکه چه په کثرت دَاوبوسره کثرت درزق راځي(روح وغيره)

﴿لِّنَفْتِنَهُمْ فِيهِ ﴾يعني مونږپرې امتحان کوٙچه شکرکوی که ناشکری.بعض وائی دَ الطّريقة نه مرادلاردګمراهئ اودکفرده،نوبيامطلب دادې کچرته دوئ پخپل کفرباندې دغه شان پاتې شی ايمان نه راوړی نوبطوراستدراج به ورله مونږپه دنيوی نعمتونوکښې وسعت اوکړوبيابه ورله عذاب ورکړو،کقوله تعالى:فلمّانسواماذکرّوابه فتحناعليهم ابوابَ کلّ شيءٍ(انعام:۴۴).

﴿وَمَن يُعْرِضْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِۦ﴾داتخويف دې کفرکونکوته،دَذکردَرب نه مرادعبادة دَالله تعالى دې،يعنی چاچه دَالله ﷻ دَعبادة نه اعراض اوکړونوسخت عذاب کښې بهٔ ورداخل کړو ،بعض وائی نصيحت ورنه مراددې،بعض وائی وحی يعنی قرآن ورنه مراددې

| |
|---|
| وَأَنَّ ٱلْمَسَـٰجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُواْ مَعَ ٱللَّهِ أَحَدًا ⑱ وَأَنَّهُۥ لَمَّا |
| داهم ماته وحی شویده چه بيشکه جماتونه صرف دَالله ﷻ عبادت لپاره دی نومه بلئ دَالله سره بل هيڅوک اوبی شکه هرکله |
| قَامَ عَبْدُ ٱللَّهِ يَدْعُوهُ كَادُواْ يَكُونُونَ عَلَيْهِ لِبَدًا ⑲ |
| چه به اودريدلوبنده دَالله حضور ﷺ چه عبادت به ئی کولو دهغه نونيژدی وٙدوئ چه شی پده باندی راپنډ. |
| قُلْ إِنَّمَآ أَدْعُواْ رَبِّى وَلَآ أُشْرِكُ بِهِۦٓ أَحَدًا ⑳ |
| ته ورته اووايه ای پغمبره چه بی شکه ځه خوعبادت کوم صرف دَرب خپل اونه شريکوم دَهغه سره هيڅوک |

قُلْ إِنِّي لَا أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا رَشَدًا ۝٢١ قُلْ إِنِّي لَنْ يُجِيرَنِي

نه اوايه بيشكه څه نه يم مالک تاسولره دضرردفع کولواونه دنفع رسولو نه اوايه بې شکه مابه هرګزخلاص نکړی

مِنَ اللَّهِ أَحَدٌ ۙ وَلَنْ أَجِدَ مِنْ دُونِهِ مُلْتَحَدًا ۝٢٢ إِلَّا بَلَاغًا مِنَ اللَّهِ

دالله ﷻ دعذاب نه هيڅوک اوهرګزبه پيدانکړم دهغه نه ماسوی ځای دننوتلو لیکن رسول دطرفه دالله نه

وَرِسَالَاتِهِ ۚ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ لَهُ

اوپيغامونه دهغه دراخماکاردي اوهغه څوک چه نافرماني اوکړی دالله ﷻ اودرسول دهغه نوبې شکه هغه لره دي

نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۝٢٣ حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ

اوردجهنم چه هميشه به وي په هغې کښې هميشه تردې چه اووينې هغه عذاب چه وعده ئې ورسره کولې شی

فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ أَضْعَفُ نَاصِرًا وَأَقَلُّ عَدَدًا ۝٢٤

پس زرده چه پوهه به شی کافران چه څوک دي ډيرکمزوري دجهته دمددګاراوډيرلږدي په شمارکښې

﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ﴾ دويم دليل وحی دي ، او داهم په ابتداء دسورة يعنی﴿ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ﴾ باندی عطف دي، يعنی ماته داهم وحی شويده چه جماعتونه صرف دالله ﷻ دعبادت لپاره دی،ديکښې دبل چاعبادت، تجارت، دنياوی خبری مکوئ.

بعض وائی:المساجد نه مراددسجدی اعضاء دی،اومطلب دادي چه اعضاء دسجدی الله ﷻ پيدا کړيدی ، نو د الله ﷻ نه بغيرپری بل چاته عبادت اوسجدی مکوئ،بعضِ وائی :المساجد جمع دمسجد ده،مصدرميمی دي،پمعنی دسجدی،نومطلب دادي چه سجدی صرف الله تعالی ته کوئ بل چاته مه کوئ.روح،قرطبی وغيره.

﴿وَأَنَّهُ لَمَّا قَامَ ﴾دادريم دليل وحی دي، او دا هم په﴿ اسْتَمَعَ نَفَرٌ ﴾باندی عطف دي،﴿عَبْدُ اللَّهِ﴾ نه مراد حضور ﷺ دي،يعنی کله چې ته عبادت کوی، نو دا خلق تول راپنډ شی، او ډير په تعجب درته ګورئ، چه ته دا څه کوي؟ څکه چې دوئ بتانو ته سرتيتی نه علاوه بل څه ليدلی

نه دی،نو اې ځما پيغمبره ،ته ورته څه صفا اوايه چې ځما معبود صرف الله ﷻ دې.هغه د هر څه مالک دې، او زه دَهغه رسول يم،اوتاسوته دَهغه پيغام دررسوم ﴿ يَدْعُوهُ﴾نه مراد عبادت دَ الله ﷻ دې . ﴿ كَادُوا يَكُونُونَ﴾ ضمير مرفوع کښې مفسرينو متعدد احتمالات ذکر کړيدی

(۱) ضمير راجع دې کفاروته ،يعنی نبی کريم ﷺ چې عبادت دَپاره اودريږي، نودوئ په هغه باندې راپنډ شی ، يادَ تعجب دَوجهی نه ،يا تکليف د رسولو په غرض،اويا په عبات کښې خلل راوستلو دَپاره.

(۲)ضمير جناتو ته راجع دې، يعنی کله چې نبی کريم ﷺ بطن نخله کښې سهر مونځ دَپاره اودريدلو . نو دوئ دَقرآن اوريدلو په غرض پرې راپنډ شو.

(۳)ضمير مؤمنانوصحابوته راجع دې، يعنی کله چې نبی کريم ﷺ دَعبادت دَپاره اودريږی، نو دوئ پرې راپنډ يږی او اقتدا ئې کوی.

چونکې دې ټولو احتمالاتو جمع ممکنه ده ، لهذا راجحه خبره داده چې دا ټول مراد دی.

﴿قُلْ إِنَّمَآ أَدْعُوا رَبِّي وَلَآ أُشْرِكُ ﴾ دا اعلانات دی او دااول اعلان دې،يعنی کله چې دوئ راپنډ شی، نو ته ورته اوايه چې صرف دَالله ﷻ عبادت کوم اوهغه سره څوک نه شريکوم.

﴿قُلْ إِنِّي لَآ أَمْلِكُ لَكُمْ﴾دويم اعلان دې . چې نفع نقصان ورکول اوهدايت ورکول اوګمراه کول دَالله ﷻ په اختيار کښې دی،ځما سره داهيڅ نشته

﴿قُلْ إِنِّي لَن يُجِيرَنِي ﴾دريم اعلانٔ دې، چې تاسوماته دا وايئ چې دَخپل رب عبادت او دَهغه طرف ته دعوت ورکول پريګدم، داهرګزنشی کيدی،ځکه داخوځما فرض منصبی دې، که دا مې پريخودلو نو بيا مې څوک دَالله ﷻ دَعذابه نشی بچ کولې.﴿مُلْتَحَدًا ﴾نه مراد پناه ګاه او محفوظ مقام دې.

﴿ إِلَّا بَلَٰغًا مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ استثناده يادَ "ضرا و لارشدا" نه ده،يعنی څه دَ هيڅ مالک نه يم سوا دَ تبليغ نه ، او يا استثناه ده دَ "ملتحدا" نه، يعنی هيڅ جائی پناه نه مونده‌م، سوائ دَ دعوت الی الله نه. ﴿وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ ﴾تخويف دې.

﴿حَتّٰٓى اِذَا رَاَوۡا مَا یُوۡعَدُوۡنَ﴾ داد ماقبل تخويف «ومن يعص الله» سره متعلق دي.يعني دا تخويفات په دوئ هيڅ اثر نه کوي .او دوئ ايمان نه راوړي . د دوئ دا ګمان دې چې مسلمانان به هميش دغه شان کمزوري اوبې ياره او مددګاره وي.تردې چې دوئ دالله ﷻ عذاب دنيوي يا اخروي مشاهده اوکړي.نوبيا به ورته پته اولګي. حتیٰ ابتدائيه ده اوغايه ده دپاره دمحذوف،چې لايزالون يعصون ويستضعفون دي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلۡ | اِنۡ | اَدۡرِیۡۤ | اَقَرِیۡبٌ | مَّا | تُوۡعَدُوۡنَ | اَمۡ | یَجۡعَلُ لَهٗ رَبِّیۡۤ |
| نه اووايه نه پوهيږم څه چه آيانيژدې دي هغه عذاب چه تاسوسره ئې وعده کيږي اوکه مقررکړيدى هغى لره رب ځما | | | | | | | |
| اَمَدًا ۞ | عٰلِمُ الۡغَیۡبِ | فَلَا | یُظۡهِرُ | عَلٰی غَیۡبِهٖۤ | اَحَدًا ۞ | اِلَّا | مَنِ ارۡتَضٰی |
| لرى نيټه الله عالم دې دغيب پس نه خبروى په مغيبانوخپلوهيڅوک ليکن هغه چه غوره ئې کړى | | | | | | | |
| مِنۡ رَّسُوۡلٍ | فَاِنَّهٗ | یَسۡلُكُ | مِنۡۢ بَیۡنِ | یَدَیۡهِ | وَمِنۡ خَلۡفِهٖ | رَصَدًا ۞ | |
| کوم رسول پس بى شکه الله روان کړى دمخکى دهغه نه اودورستودهغه.نه څوکئ دفرشتو | | | | | | | |
| لِّیَعۡلَمَ | اَنۡ | قَدۡ | اَبۡلَغُوۡا | رِسٰلٰتِ | رَبِّهِمۡ | وَاَحَاطَ | |
| دپاره ددى چه ښکاره کړى الله داخبره چه بى شکه دى فرشتو ورسول پيغامات درب خپل اواحاطه کړيده الله | | | | | | | |
| بِمَا | لَدَیۡهِمۡ | وَاَحۡصٰی | كُلَّ | شَیۡءٍ | عَدَدًا ۞ | | |
| پوره عالم دې په هغى احکاماتوچه پيغمبرانوسره دى،اوشمارلې ئې دې هرڅيزپه پوره شمارلوسره | | | | | | | |

﴿قُلۡ اِنۡ اَدۡرِیۡۤ﴾ څلورم اعلان دې، چې دامشرکين ستانه تپوس کوى چې کوم دنيوى اواخروى عذاب نه مونږ يروې داېه کله وى؟ او ستا نه دهغې تعيين په باره کښې تپوس کوى، نو نه ورته اوايه ماته هيڅ پته نشته،ځمامنصب تقاضه صرف انذار وؤ دعذاب نه، چې هغې راتلل يقيني دي، باقي دهغې وخت تعيين دا امورتکوينيه دى،دې ځمامنصب سره څه تعلق نشته. «ان» نافيه دې،﴿ اَمَدًا ﴾ نيټې نه مرادلرى نيټه ده،يعني داماته علم نشته چه قريب دې که لرى دې.

﴿عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ﴾ای هوعالم الغيب، تعليل دي دماقبل چه ماته علم خکه نشته چه دقيامت علم د مغيباتونه دي، او علم د غيب صرف الله ته دي، اوالله ﷻ دخپلو مغيباتو اطلاع هرچاته نه وركوي. ﴿فَلَا يُظْهِرُ﴾داظهار دلته دوه معنى كيدې شي (١)اطلاع وركول، يعنى الله ﷻ اطلاع چاله نه ده وركړى، (٢)غلبه وركول، يعنى چاله ئى په غيب باندې غلبه نه ده دركړې چې څه وخت اوځه ئى خوښه شى راواخلى ترينه. ﴿عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ﴾دينه مراد تكوينى مغيبات دى، چې دهغې كلى علم الله ﷻ چاله هم نه دې وركړې.

﴿إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ﴾مستثنى منقطع دە، ﴿مِن رَّسُولٍ﴾نه معلوميږى چې ددې قسم مغيبتو تعلق صرف دامور رسالت او تشريعاتو سره دې، نومطلب داشو چې سوائى دداسى مغيباتونه چې دهغې تعلق رسالت سره اوتشريعى احكاماتو سره دې، نو هغې باندې الله ﷻ خپل رسولان مطلع كوى. نودينه معلومه شوه چه مرادورنه هغه بعض علم غيب دې چه دنبوت سره متعلق وى.

تفسيرابوالسعود كښې دى چه حاصل ئى دادې چه غيب په درى(٣)قسمه دې.

(١)يوهغه دې چه تعلق ئى دمبادى درسالت سره وى لكه معجزات شول.

(٢)بل هغه چه اركان درسالت نه وى، لكه تكاليف شرعيه شول.

(٣)دريم هغه دې چه دواړوسره ئى تعلق نه وى . نودې قسم باره كښې اوونيل شوچه﴿فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا﴾ نو علم د قيامت هم ددى قسم نه دې، يعنى نه ئى مباديوسره تعلق شته اونه ئى اركانوسره، لهذاكافرانوته اوونيل شوچه دده نه داسوال مه كوئ چه كله به قيامت وى.

﴿فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ﴾دې كښې داطلاع كيفيت ذكر كيږى، چې الله ﷻ كله خپل نبى ته يوحكم اطلاع وركوى، نو الله ﷻ ورته فرشتى اوليږى چې هغه فرشتې دپيغمبر نه چارچاپيره شى، چې داپيغام بالكل حقيقى صورت اوپه حفاظت سره ورته اورسى اودشياطينو هر قسم دخل، وساوسو او اثراتو نه محفوظ شى.

﴿لِّيَعْلَمَ أَن قَدْ أَبْلَغُوا﴾ دا متعلق دي په يسلک پورې او دهغې علت بيان دي، يعنى الله ﷻ دا فرشتى څکه راليږی چې پيغمبرانو ته دايقين اوشى چې دوئ دالله ﷻ پيغام صحيح سلامت رارسولې دي. ﴿لِّيَعْلَمَ﴾ کښې ضمير رسول ته راجع دي. او په ﴿أَبْلَغُوا﴾ کښې ضمير رصدا محافظوفرشتو ته راجع دي، ديکښې دويم احتمال داهم دي چې ليعلم کښې ضميرالله ﷻ ته راجع وی، او ابلغو کښې ضمير رسولانو ته راجع وی، يعنى دافرشتى الله ﷻ څکه ليږی چې معلوم کړی چې دده رسولانو خپله فريضه کماحقه اداکړه. اودالله ﷻ پيغام ئې پوره پوره اورسولو

﴿ وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ ﴾ ديکښې دالله ﷻ کمال علم بيان دي، يعنى الله ﷻ دافرشتى راليږی . خوحال دادې چې دې فرشتو اوپيغمبرانو کوم کوم احکامات اوشرائع دی هغه هم دالله ﷻ په احاطه علم کښې دی اودينه نه علاوه هرهر څيز تعداد الله ﷻ معلوم دې.

| | | |
|---|---|---|
| رکوعاتها (۲) | سورة المزّمل مكيّة | اٰياتها (۲۰) |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۷۳) وحسب النزول (۳)**

نزلت بعد القلم وقبل المدثر

**ربط**: ددې ربط ماقبل سره په څو وجوه دې:

(۱) ماقبل سورتونو کښې نفی دشرک في البرکت بنه په تفصيل سره اوشوه. اوس دې کښې دقرآن تلاوت حکم دې چې دامسئله بنه زړه ته کوزه شی.

(۲) ماقبل سورت کښې دجناتو قرآن نه متاثره کيدلو تذکره وه. اوس دې کښې دقرآن تلاوت حکم دې چې انسانان ئې واوری اودوئ ترينه هم متاثره شی.

**خلاصه**

دا ابتدانه ترآيت ۱۰ پورې شپږ اوامر دی.

آيت نمبر ۱۱ نه تر ۱۹ پورې مختلف تخويفات دی.څه دنيوی اوڅه اخروی،

آيت نمبر ۱۹ کښې ترغيب دې ايمان ته.

آيت ۲۰ متعلق دې ابتدادسورت سره.

يٰۤاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ﴿۱﴾ قُمِ الَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۲﴾ نِّصْفَهٗۤ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا ﴿۳﴾

اې نغښتونکيه دخان په جامه کښې،قيام کوه دشپې سوا دلګ ساعت نه چې هغه نيمه شپه ده. ياکمه کړه دنيمې شپې نه لږشانتې

اَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ﴿۴﴾

اويازياته کړه په نيمې باندې او ورو رووايه قرآن بنه په ورو لوستلو سره،

اِنَّا سَنُلْقِيْ عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا ﴿۵﴾ اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ

بې شکه مونږه زردې چه نازل کړوبه تاباندې قول دروند(قرآن)بې شکه چه پاسيدل دشپې

هِيَ أَشَدُّ وَطْأً وَأَقْوَمُ قِيلًا ۝ إِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيلًا ۝

دا ډیر سخت دي په پائمال کولو دنفس کښې او ډیر فائده مند دي په ویناکښې. بې شکه ستا لره په ورځې کښې شغل دي اوږد.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُزَّمِّلُ ﴾ دې آيتونو كښې امردې حضور ﷺ ته دقيام الليل، "المزمل" په اصل كښې متزمّل وؤ، "تاء" په "زاء" بدل شوه، او بيا زا په زا كښې مدغم شوه. «المزمل» هغه چاته ونيلې كيږي چې په كپړه يا څادر كښې ئې ځان رانغښتي وي . او ديكښې اشاره ده واقعې دَ غار حرا ته، چې كله جبرئيل ؑ په نبى كريم ﷺ باندې نازل شو، او وحى او هم كلامى ئې ورسره اوكړه. نو نبى ؑ كورته راغې، اوخپلې بى بى حضرت خديجه ؓ ته ئې اونيل چې زملوني، زملوني ماپټ كړئ، ماپټ كړئ. او د ندا نه مقصود بې تكلفي پيدا كول ،دشرم حجاب لرې كول او انس مقصود دې.

بعضودَ "المزّمل" معنى المتحمّل، كړيده، يعنى اې پورته كونكيه دَ ذمه وارئ دَنبوت «قرطبى» .

﴿قُمِ ٱلَّيْلَ ﴾ دَصحيح قول مطابق مونځ فرضيت نه مخكښې قيام الليل فرض وؤ، خو ديكښې اختلاف دې چې دا صرف نبى كريم ﷺ باندې فرض وؤ، اوكه په امت باندې هم ،بعض علماء فرمائى چې داصرف په نبى كريم ﷺ باندې فرض وؤ، او دوئ استدلال په آيت دَسورت الاسراء "ومن الليل فتهجد به نافلة لک" سره كړيدې،چې "نافلة لك" معنى داده چې داپه تاباندې اضافې فرض دې.

ليكن اكثر علماءوائى چې داپه امت باندې هم فرض وؤ ، ځكه چې

«۱» دسورت په آخر كښې د امت په حق كښې دَدې نسخ ذكردې، "علم ان لن تحصوه فتاب عليكم"

«۲»متعددو احاديثونه هم معلوميږى چې دا په تولو باندې فرض وؤ ، لكه تفسير ابن ابى حاتم كښې دَحضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې چې صحابؤو به قيام الليل كښې داسې قيام كولو لكه څنګه چې رمضان كښې دَتراويحو قيام دې،او دغه شان په مسند احمد «۲۴۲۲۹» او تفسير طبرى روايت كښې راځى چې كله داحكم راغې، نو صحابوؤ دَنبى كريم ﷺ سره قيام شروع كړو،او دومره به ادريدلو چې خپې به ئې اوپړسيدلې،البته داحكم تقريباً تر يو كاله

پورې وؤ ،دینه ورستو بیامنسوخ شو ،لیکن دې کښې هم اختلاف دې چې نسخه صرف امت په
حق کښې راغلیده اوکه نبی کریم ﷺ په حق کښې هم؟ دواړه قوله ستنه دې. خوخنی علماؤو دې
له ترجیح ورکړې ده چې نسخه صرف دامت په حق کښې ده،نبی ﷺ په حق کښې نسنه.لکه
تهجد به نافلة نه معلومیږی،چې داپه نزول کښې ددې سورت نه مؤخر دې.اودغه شان په دې
باندې مواظبت د نبي ﷺ ، هم د دې دلیل دې.(والله تعالی اعلم)

﴿إِلَّا قَلِيلًا﴾استثناء ده د﴿ٱلَّيۡلَ﴾ نه،یعنی دشپې قیام کوه خوسوادلګ ساعت نه.ځکه
چې ټول شپه علی الدوام قیام کول غیرممکن دی،نودراحة دجسدلپاره ورنه قلیل وخت
مستثنٰی کړې شو،﴿نِّصۡفَهُۥٓ﴾بدل الکل دې د "قلیلا" نه ،البته په دې دااشکال کیږی.چې
نصف ته قلیل څنګه اوئیلی شو،کلام عرب کښې خوپه نصف باندې دقلت اطلاق نه کیږی؟
جواب دا دې چې دلته په نصف باندې دقلت اطلاق یونکتې دوجهې نه شوې دې.اوهغه نکته
داده چې دلته اګرچې د شپې دواړه حصې حالت نوم اوحالت قیام کمیت اعتبارسره برابری
دی، خوکیفیت اعتبارسره هر ګزنه دی برابرې ،کومه حصه کښې چې قیام اوعبادت کیږی هغه
په کیفیت کښې دبلې حصې نه ډیره او دابله ترینه قلیله ده.

حضرت شاه ولی الله رحمه الله د قم اللیل الا قلیلامعنی داکړې ده چې هرې هرې شپې پاسه
خو سوا د څه شپونه، چې هغه دعذراوبیماریٔ اودسفر شپې دې. او﴿نِّصۡفَهُۥٓ﴾ د"اللیل" تفسیر
دې، چې کومو شپوکښې پاسی نوهغی کښې نیمه شپه قیام کوه،یا نیمی شپې نه کم اویادینه
زیات.

﴿وَرَتِّلِ ٱلۡقُرۡءَانَ تَرۡتِيلًا﴾دیکښې دویم حکم یعنی تلاوت دقرآن ذکر دې، یعنی په
تهجدکښې قرآن بنه په ارام او وضاحت سره لوله، چه حرف حرف ئې صحیح معلومیږی،ځکه
چه په داسې لوستلوسره فهم اوتدبر بنه حاصلیږی، اوپه زړه بنه اثر کوی.

ترتیل په اصل کښې ترتیب اوحسن نظام ته وائی،علامه بیضاوی رحمه الله ددې په تفسیر
کښې فرمائی :ای جوّد القرآن تجویداً،یعنی قرآن تجوید سره وایه،حضرت علی رضی الله عنه فرمائی
الترتیل هوتجویدالحروف ومعرفة الوقوف(الاتقان)یعنی ترتیل سره قرآن وئیلو مطلب دادې چه
حروف تجوید سره اداکړې شی، یعنی هرحرف دخپل مخرج نه اداشی، او د وقف محل او

طريقه او پيژندل شی دَامّ سلمهﷺ نه چادَحضورﷺدتلاوت حال سوس اوکړونو اوئی وئيل چه دَحضورﷺ تلاوت به حرفاحرفاوو.

﴿إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ ﴾ای سنوحی اليک(روح) قولاً ثقيلاً نه مرادقرآن مجيددي، اوداجمله معترضه ده په مابين د "قم الليل" او "ان ناشئة الليل" کښ. چونکه قيام الليل بالعموم ګران دی، نو پدی وجه پدې آيت کښ بطور ترغيب فرمائيلې کيږی چه مونږدَدی نه زيات ثقيل او مشکل کارتاباندی نازلوُو ، نوپدی مشقت باندی پرواه مه کوه(روح)

قرآن ته قول ثقيل ياپه دی وجه وئيلی دی چه داثقيل دې په مشرکانو اومنافقانو ،ځکه چه دوئ ته پکښ تخويفات وی، ياداچه ثقيل دې په ميزان دَعملونوکښ. يعنی کنايه ده دکثرت ثواب نه، يا دا چه ثقيل دې په اعتباردَاحکامو ،يا داچه نزول ئی ثقيل دې،چه په کوم وخت کښ به وحی کيدله نودَحضورﷺدتندی نه به په سخت ژمی کښ هم خولې بهيدلې،لکه په کتاب بدء الوحی کښ چه راغلی دی،بعض وائی ثقيل پمعنی دَ کريم دې،ياپمعنی دَعظيم دې ای کلامًا عظيمًا (کبير).

﴿إِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ ﴾دا داعی دې دَقيام الليل،يعنی دَشپې قيام ځکه کوه،چې دې سره نفس پائماله کيږی، او دَخواهشاتو تقاضه ئی کمزورې کيږی،چې په دې سره انسان ته په نورو طاعاتو او عباداتو باندې عمل اواستقامت آسان شی.

"ناشئة الليل"دَدې څو معنې بيان شوی دی:

(۱) ناشئة صيغه دَاسم فاعل ده،دَنشأنه پمعنی دَحدوث اووقوع سره،اوموصوف محذوف دې،چې الصلاة دې. اي الصلاة الواقعة في الليل يعنی هغه مونځ چې په شپه کښ اداکيږی.

(۲) ناشئة صيغه داسم فاعل ده پمعنی دَ ناهضة او قائمة سره، اوموصوف ئی "نفس" دې، اي النفس الناهضة في الليل يعنی هغه نفس چې شپې راپاسی.

(۳)"ناشئة" مصدر دې په معنی دَقيام سره، لکه کاذبة،خاطئة اي قيام الليل.

﴿وَطْئًا ﴾وطئًا پائمالواودباولو ته وائی.﴿وَأَقْوَمُ قِيلًا ﴾ "اقوم"نيغ ته وائی اودلته ترينه مراد انفع دې (التحرير والتنوير)، او "قيلا" پمعنی قولاً سره دې،اومراد ترينه تلاوت ، ذکر، دعا

گانی، وغیره دي او مطلب دآیت دادي چې داوخت دذکر واذکار تلاوت او دعاګانو کښ زیات معاون دي، ځکه چې خاموشه خاموشي وي، ذهن تازه وي او هیڅ قسم اضطراب نه وي

**فائده:** دقیام اللیل اوناشئة اللیل وخت باره کښ دوقوله دي

(۱) حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چې داخوب نه ورستو مونځ دپاره پاسیدلو وخت دي

(۲) حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چې شپې هرې حصې کښ مونځ نه دافضیلت حاصل دي

﴿إِنَّ لَكَ فِي ٱلنَّهَارِ سَبْحًا طَوِيلًا﴾ دادویم داعی دقیام اللیل ذکر کیږي. یعني شپې قیام ځکه کوه چې ستاتوله ورځ په دعوت کښ مشغوله وي، یکسوئي درته نه میلاویږي، "سبح" اوبو کښ لامبو وهلو ته وائي، او دلته ترینه حوائجو او کارونو کښ مصروفیت دي. اوداکارونه د اشغال دعوت الی الله وؤ، بعض وائي "سبح" فراغت ته وائي، نو مطلب دادي چه دورځې تاسره دخوب اوراحت دپاره ډیر فراغت وي، نو دشپې څه حصه دعبادت دپاره اوګرځوه (قرطبي)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاذْكُرِ | | اسْمَ | رَبِّكَ | | وَتَبَتَّلْ | | إِلَيْهِ | تَبْتِيلًا | ⑧ |
| اوذکرکوه | د | نوم | درب | خپل | اوجداکړه | خان | هغه | ته په | جداکونوسره |
| رَبُّ | الْمَشْرِقِ | وَالْمَغْرِبِ | لَا | إِلَٰهَ | إِلَّا | هُوَ | فَاتَّخِذْهُ | وَكِيلًا | ⑨ |
| الله رب دي | دمشرق | اومغرب | نشته | بل معبود | مګرهغه | دي | پس اونیسه هغه | لره کارساز | |
| وَاصْبِرْ | عَلَىٰ | مَا | يَقُولُونَ | | وَاهْجُرْهُمْ | | هَجْرًا | جَمِيلًا | ⑩ |
| اوصبرکوه | په | هغه | خبروچه | دوئ | تاته کوي | اوپریږده | دوئ | په | پریښودونائسته‌سره |

﴿وَٱذْكُرِ ٱسْمَ رَبِّكَ﴾ دریم حکم دي یعني دالله ﷻ په ذکر باندې مداومت کوه، ورځې، شپې هر وخت دالله ﷻ تذکرې په ژبه کوه دبل چا تذکرې مه کوه.

﴿وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ﴾ څلورم حکم دي، دي تعلق باطن سره دي، یعني زړه هم دغیر الله نه کټ کړه، او صرف الله ﷻ طرف ته متوجه شه، اوصرف اوصرف هغه سره خپل زړه اولګوه،

﴿رَّبُّ ٱلْمَشْرِقِ﴾ پنځم حکم دي چې صرف الله ﷻ خپل کارساز اوحاجت روا، اوګرځوه، ځکه چې هغه دټول کائناتو رب دي او هغه نه سوابل څوک معبود نشته.

﴿وَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾دا شپږم حكم دې او داتسلى ده حضور ﷺ ته، چه داكفارتاته ساحر، مجنون، كاهن وائى نو پدى صبر كوه﴿وَٱهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا﴾ هجرجميل داچه كينه ورسره مه ساته، ليكن تعلق ورسره هم مه ساته، اود انتقام او ايذاء رسولو قصدهم مه كوه، ځكه چه پدى سره ستاد دعوت لاره بنديږي.

| |
|---|
| وَذَرْنِي وَالْمُكَذِّبِينَ أُولِي النَّعْمَةِ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا ⑪ إِنَّ لَدَيْنَا أَنكَالًا |
| اوپريږده ما او تكذيب كونكي چه خاوندان دنعمت دي او مهلت وركړه دوئ ته لږه زمانه بې شكه مونږسره زنځيرونه دي |
| وَجَحِيمًا ⑫ وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا ⑬ يَوْمَ تَرْجُفُ |
| اودوزخ دې اوطعام دې انختونكې په مرئ كښې اوعذاب دې دردناک واقع به شي داعذاب په هغه ورځ چه اوبه لړزيږي |
| الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيبًا مَّهِيلًا ⑭ |
| زمكه اوغرونه او وي به غرونه په شان دَذيرئ دَشگو بهيدونكو |

﴿وَذَرْنِي وَٱلْمُكَذِّبِينَ﴾دا تخويف دې، چه تكذيب كونكي اودَدنيا په تماشو كښې مست خلق ماته پريږده، ته ورته مهلت وركړه، ماورته قسم قسم عذابونه سزاگانې تياري كړيدى ﴿ٱلنَّعْمَةِ﴾بفتح النون مالدارى اوبې غمى ته وائى.﴿وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا﴾اى زمانًا قليلاً(روح) دَلږې زمانى نه مراد ژوند دَ دنيا دې، بعض وائى ترورځې دَبدرپورى زمانه ورنه مراد ده.

﴿إِنَّ لَدَيْنَآ﴾دا جمله بمنزله دَعلت ده، دَذرنى دَپاره ،يعنى ته دوئ ته څه ماوايه، مونږ سره ئى بندوبست شته، چې هغه دَدوئ دنيوى احوالو موافق عذابونه دى.﴿أَنكَالًا﴾دا اول عذاب دې، چې دنيا كښې خودوئ آزاد گرځى، اوهيڅ پرواه دَالله ﷻ احكاماتو نه كوى، خو آخرت كښې به ورته درانه درانه زنځيرونه واچولې شى، اوبالكل به ترينه نشى خوځيدلې. انكال جمع دَ نكل ده، درنوزنځيرونو ته وائى.﴿وَجَحِيمًا﴾ دويم عذاب دې چې دامست خلق په دنيا كښې دَيخو يخوسورو اويخو اوبو اومشروباتو نه خه خوندونه اخلى، خو چې دَالله ﷻ احكامات نه

منى نوآخرت کښې به نې الله ﷺ سخت گرم اورته واچوی.﴿وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ ﴾دريم عذاب دې، چې نن خو ډيرلذيذ اواعلى خوراکونه کوی خوآخرت کښې به ورته داسې خوراک ورکولې کيږی چې هغه به ئې مرئ کښې خخيږی،او ازغن به وی،لکه زقوم وغيره شو.﴿وَعَذَابًا أَلِيمًا ﴾ څلورم عذاب دې ، چې دنيا کښې دوئ ډيره بې غمه فارغ البال اوخوشحالئ زندگی تيروی. تکليفونه، پريشانئ اومرضونه پرې ډير نه راځی ، خوآخرت کښې به دوئ دردناک عذابونو کښې مبتلاوی(التحرير والتنوير)

﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ ﴾يوم ظرف دې،متعلق کيږی د"لدينا"ظرف متعلق سره،يعنی دا عذابونه به په ورځ دقيامت وی،"ترجف"درجف نه دې زلزلې اوخوځيدلوته وائی.﴿كَثِيبًا ﴾ دشگوډيری ته وائی،﴿مَّهِيلًا﴾ اې منشورايعنی ډيری ډيری به خواره واره روان وی،يا پمعنی د "رِخوًا لِيّنا" سره دې،يعنی خويه ډيری په شان به شی، يا پمعنی دبهيدونکی سره دې،يعنی د شگو هغه ډيرې په شان به وی چې هغه هوا يا اوبوسره دوريږی او بهيږی روان په ختميدو وی

| |
|---|
| إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَاهِدًا عَلَيْكُمْ |
| بې شکه مونږه راليږلې دې تاسوته(اې ټولوخلقو)رسول،گواهی کونکې دې ستاسوپه عملونو(په قيامت کښې) |
| كَمَا أَرْسَلْنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴿١٥﴾ فَعَصَىٰ فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ |
| لکه چه مونږليږلې وو فرعون ته رسول(موسی عليه السلام)،نونافرمانی اوکړه فرعون درسول(موسی) |
| فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلًا ﴿١٦﴾ فَكَيْفَ تَتَّقُونَ إِنْ كَفَرْتُمْ يَوْمًا |
| نواونيولومونږه نيولوسختوسره.پس څنگه به بچ شئ تاسوکه کفرمواوکړو د داسې ورځې عذاب نه |
| يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبًا ﴿١٧﴾ السَّمَاءُ مُنْفَطِرٌ بِهِ كَانَ وَعْدُهُ مَفْعُولًا ﴿١٨﴾ |
| چه اوبه گرځوی هلکانو لره بوډاگان.آسمان به چودې وی په دغه ورځ کښې وعده دالله خامخاکيدونکې ده |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | هٰذِهٖ | تَذْكِرَةٌ | فَمَنْ | شَآءَ | اتَّخَذَ | إِلٰى | رَبِّهٖ | سَبِيلًا ﴿۱۹﴾ |
| بې شکه | دا | نصيحت | دې،پس | دچاچه خوښه | وي | اودې | نيسي | رب خپل ته لاره |

﴿إِنَّآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْكُمْ ﴾داتخويف دنيوي دې اهل مکه ؤته.چه لکه څرنګه موفرعون ته موسى عليه السلام ليږلې ووهغه ئې تکذيب کړې وونوهلاک شو،دغه شان چه تاسوتکذيب کوئ نوتاسوبه هم هلاک شئ﴿شَٰهِدًا عَلَيْكُمْ﴾يعنې دقيامت په ورځ به ستاسودکفراوعصيان ګواهي کوي﴿إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴾مرادورنه موسىٰ دې﴿ٱلرَّسُولَ ﴾کښ الف لام عهدي دې. معهودموسى عليه السلام دې﴿وَبِيلًا﴾صيغه دصفت مشبه دهٔ دٔوبل المكانٔ نه،فضاء خرابيدلو ته وائي، او دلته ترينه مراد بدترين اوسخت عذاب دې چې هغه په بحيره قلزم کښ غرقول وؤ ،

﴿فَكَيْفَ تَتَّقُونَ ﴾يعنې که دنياکښ دنبي الرحمة ﷺ پوجه ددنياوي عذاب نه خلاص شئ،ليکن په آخرت کښ به څرنګه خلاصيږئ، چه هغه دومره اوږده اوسخته ورځ ده چه واړه هلکان به پکښ بوډاګان شي.﴿ يَوْمًا﴾مفعول به دې﴿تَتَّقُونَ ﴾دپاره،﴿ يَجْعَلُ ﴾کښ ضمير دَ فاعل يا ﴿ يَوْمًا﴾ ته راجع دې ، يعنې دا ورځ به هلکان بوډاګان کړي، او اسناد مجازي دې، يا ضمير راجع دې الله تعالى ته،او اسنادحقيقي دې ، بوډاګان کيدل دابه ياحقيقتاًوي څکه چې بو طرف ته به داورځ اوګده وي اوبل طرف ته به سخته اوهولناکه وي، نو ددې وجهې نه به ماشومانو ويخته سپين او بوډاګان به شي.(۲)اوياتمثيلا وئيلي شوي دي،حقيقت کښ به نه بوډاګان کيږي،بلکه مقصودترينه سختي ده.

﴿ٱلسَّمَآءُ مُنفَطِرٌۢ بِهِۦ﴾ بهٔکښ باء سببيه ده،اى بسبب ذلک اليوم،يعنې اسمان به دغې ورځې دهيبت په سبب اوچوي،يا بهٔ پمعنى دفيه سره دې،يعنې پدغه ورځ به اسمان اوچوي، ﴿إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذْكِرَةٌ ﴾ترغيب دې ايمان ته اواتباع دقرآن تهٔهذهٔکښ اشاره تيرشوي آياتونه ده چه پکښ وعيدات ذکرشول.

إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ مِن ثُلُثَيِ اللَّيْلِ وَنِصْفَهُ وَثُلُثَهُ

بې شکه رب ستاپوهيږي پدې چه بې شکه ته قيام کوې کم ددووحصودشپې.اوکله نيمه شپه اوکله دريمه حصه

وَطَائِفَةٌ مِّنَ الَّذِينَ مَعَكَ ۚ وَاللَّهُ يُقَدِّرُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۚ عَلِمَ

اويوه ډله دمؤمنانوهم قيام کوي تاسره.اوالله ﷻ اندازه کوي دشپې اوددورځې.عالم دې الله پدې چه

أَن لَّن تُحْصُوهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۖ فَاقْرَءُوا مَا

هرگزتاسونه لرئ طاقت د ضبط د وختونودشپې نو معافي ئې اوکړه تاسو نه . پس اوس لولئ هغه مقدار

تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ۚ عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ ۙ

چه آسان وي درته دقرآن نه،عالم دې الله پدې چې وي به بعض په تاسوکښې مريضان.

وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ ۙ وَآخَرُونَ

اووي به نورکسان چه سفرېه کوي په زمکه کښې تالاش کوي به دفضل دالله نه رزقِ حلال، اونورکسان به وي

يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ۚ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ

چه جنگ به کوي په لاره دالله کښې،پس لولئ هغه مقدارچه آسان وي دقرآن نه،اوقائموئ مونځ

وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ۚ وَمَا تُقَدِّمُوا

اوورکوئ زکوة اوقرض ورکوئ الله ﷻ ته قرض ښائسته اوهغه عمل چه مخکښې وليږئ تاسو

لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ هُوَ خَيْرًا وَأَعْظَمَ أَجْرًا ۚ

دځانونوخپلودپاره دنيک عمل نه،اوبه مومئ هغه عمل الله ﷻ سره ډيرغوره اوډيرلوئ د اجر په اعتبار سره،

وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٠﴾

اوبخنه غواړئ دالله ﷻ نه، بې شکه الله ﷻ بخښونکې دې مهربانه دې

﴿إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ ﴾دادابتداء دسورة سره متعلق دي. د هغی ناسخ دي.ابتداءکښ دقیام اللیل یعنی دتهجد دمونځ فرضیت بیان شوې وؤ، چه نصف اللیل قیام کوه،یا کم.یعنی ثلث اللیل یا زیات،یعنی دوه ثلثه،نوحضورﷺاوصحابۀ کرامو به قیام کولو.لیکن په هغه وخت کښ گهړئ اونوراسباب دوخت دمعلومولونه وؤ، نودوخت اندازه به نه وه،نوپدی خوف چه نصف یاثلث رانه فوت نشی، صحابۀ کرامو به دشپی ابتداء نه ترسهاره پوری قیام کولو. نو د بعض صحابه کراموخپی اوپړسیدلې،دبعضوچاودی شوی.بعض به په سفر وؤ ، نو دا حکم ورته پوره کول مشکل وؤ.نو اللهﷻدی آیت سره ماقبل حکم منسوخ کړو،اودشپی قیام نی مستحب اوگرځولو.«ادنی من ثلثي اللیل» ادنی په معنی د "اقل" سره دي او مراد ترینه د دوه ثلثو نه کم او نیم شپې نه زیات قیام کول دي.

﴿وَٱللَّهُ يُقَدِّرُ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ ﴾ یعنی مقادیر د شپی او ورځی صرف الله تعالی ته معلوم دی چه دانصف دې،داثلث دې. ﴿عَلِمَ أَن لَّن تُحۡصُوهُ﴾ دااول علت دې دناسخ والی،«تحصو» د "حصاة" نه ماخوذ دې ، او دا وړو کانړو ته وائي ،او چونکه عربو به ډیر شمار په وړو وړو کانړو سره کولو نو ځکه بیاد شمار د پاره د دې فعل استعمالیدل شروع شول،او دشمار نه علاوه مختلفو معنو کښې استعمالیږي خو هغې ټولو کښې د شمار معنی څه نه څه درجه کښې ملحوظ ده:(۱) حفظ په معنی کښې استعمالیږي، لکه په حدیث کښې دي ، ان لله تسعا وتسعین اسما ، من احصاها دخل الجنة ، (۲)احاطه په معنی کښې ، لکه واحاط بما لدیهم و احصی کل شیء عددا، (۳)طاقت او قدرت لرلو په معنی کښې ، لکه یو حدیث کښې دي ، استقیموا و لن تحصوا، او دلته هم دا آخري معنی مراد ده ،اوضمیرغائب په﴿لَّن تُحۡصُوهُ﴾ کښې یا قیام ته راجع دې ، چې د « تقوم » په ضمن کښې موجود دې، یعني اللهﷻ ته پته ده چې تاسو دَ دې قیام طاقت او قدرت نه لرئ، او یا ضمیر غائب راجع دې تقدیر ته، یعنی اندازه کولو ته ، یعني اللهﷻ عالم دې په دې چې تاسو دَ شپې اوقاتو او ساعاتو صحیح صحیح ضبط وس او طاقت نه لرئ نوځکه ئی درنه فرضیت منسوخ کړو.

﴿فَتَابَ عَلَيۡكُمۡ﴾توبې نه مراد عدم مؤاخذه ده، چونکه دې معامله کښې تقصیر یقیني امر وو، نو ځکه دلته رفع حکم د پاره مجازا توبه فعل راوړلې شو.

﴿فَٱقۡرَءُواْ مَا تَيَسَّرَ مِنَ ٱلۡقُرۡءَانِ﴾مراد دَقرآن ونیلونه په تهجد کښې قرآن ونیل دی یعنی چه څومره درته اسانه وی نو هغه اومره تهجد کوئ.ای فصلوا ماتیسر لکم من صلاة اللیل(روح)امام ابوحنیفه رحمه الله دی آیت نه استدلال کوی چه فاتحه لوستل په مونځ کښې فرض ندی. بلکه مطلق قرائت فرض دې،البته فاتحه لوستل واجب دی، دَ خبر واحد په وجه. تفصیل په کتابونو دَ فقهی او اصول فقهی کښې دې.

﴿عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم﴾دا دویم علت دې دَحکم مذکور "ان"مخففه عن المثقله دې.

﴿وَءَاخَرُونَ يَضۡرِبُونَ﴾دا دریم علت دې﴿فَضۡلِ ٱللَّهِ﴾نه مراد تجارت دې. ﴿فَٱقۡرَءُواْ﴾تکرار د پاره دَ تاکید دې. ﴿وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ﴾مراد ورنه صلوٰت خمسه دی،چه عند البعض ناسخ دی دَقیام اللیل. ﴿وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ﴾مراد ورنه یازکوٰة مفروضه دې نو بیا دا آیت مدنی دې،بعض وائی دَزکوٰة فرضیت په مکه کښې راغلې دې البته نصاب ئې مدینه کښې مقرر دې،یا ورنه مراد تزکیه دَ عقائدو او استقامت دې په لااله الاالله(جواهر).

﴿وَأَقۡرِضُواْ ٱللَّهَ قَرۡضًا حَسَنًا﴾مراد ورنه په نیک ځایونو کښې نفقه کول دی،تعبیر ترینه په قرض سره ځکه اوشو چه بدله اوثواب به ئې خامخا ورکولې کیږی،اوقرض حسن نه مراد په اخلاص او په طریقی دَسنت سره خرچ کول دی.

﴿وَمَا تُقَدِّمُواْ لِأَنفُسِكُم﴾حکمت دې دَورکولو،خرچ کولو دَمال یعنی هرنیکی که مال خرچ کول وی یابله نیکی هغه نه ضائع کیږی دَهغی بدله به ډیربنه صورت کښې دَالله تعالیٰ سره او مومئ﴿هُوَ خَيۡرًا﴾"خیرا"مفعول ثانی دې دَ﴿تَجِدُوهُ﴾او"ه"مفعول اول دې،او"هو"ضمیر فصل دې.

﴿وَٱسۡتَغۡفِرُواْ ٱللَّهَ ﴾هرحال كښې د الله تعالی نه بخنه غواړئ، ځکه چه انسان اګرکه ډیرمحتاط وی خو بیاهم بعضِ عمل داسی وی چه دهغه په نسبت تقصیروی ﴿إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾نوځوک چه ورنه بخنه اوغواړی بخنه ورته کوی.

اللهم اغفر لنا و لاباءنا و لابنائنا و لجميع المؤمنين والمؤمنات

| رکوعاتها (۲) | سورة المُدثر مكيّة | آیاتها (۵۶) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۷۴) وحسب النزول (۴)**

نزلت بعدالمزّمل وقبل الفاتحة

بعض وائی سورة المدثر دَسورة المزمل نه مخکښې نازل دي. ابو سلمه ﷺ دَحضرت جابر بن عبدالله ﷺ نه تپوس اوکړو چه اول کوم سورة نازل دي؟ نو هغه ورته اووئیل سورة المدثر. نو ابوسلمه ﷺ ورته اووئیل: چه خلق خو وائی چه سورة المزمل اول نازل دي. نو جابر ﷺ ورته اووئیل: چه څه تاته هغه خبره کوم کومه چه ما دَحضور ﷺ نه اوریدله، چه حضور ﷺ فرمائی: چه څه دَغارِحراء نه راکوزیدم ، نوماته اوازاوکړې شو. ښی طرف ته می اوکتل. څوڅه مې اونه لیدل، ګس طرف ته هم څوک نه وو، ورستوهم څوک نه وو، نوماسراوچت کړو، نوهغه فرشته چه په غارحراء کښی ماته راغلې وه، په کرسئ ناسته وه په مابين دَاسمان اوزمکی کښې، څه مرعوبه شوم، کور ته راغلم، ما اووئيل: دَثَرونِي دَثَرونِي، يعنى ماباندې کمبل واچوئ ، نو په مائی کمبل واچولونوالله ﷻ دا نازل کړل چه﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُدَّثِّرُ ﴾ تر﴿وَٱلرُّجْزَ فَٱهْجُرْ ﴾(بخاری وغیره مفهوماً).

ظاهردَدی روایت نه داهم معلومیږی چه سورة المدثردَسورة العلق نه هم قبل نازل دي، حالانکه په صحیحینو وغیره کښی دَعائشه ﷺ نه نقل دی چه سورة العلق اول نازل دي، اوداقول دَ جمهورو هم دي، (۱) نوجواب دادي چه دَجابر ﷺ نه سوال دَپوره کامل سورة باره کښی شوې وؤ، نوځکه هغه ورته اووئیل چه سورة المدثراول نازل دي، ځکه چه دَسورة العلق صرف ابتدائی آیاتونه اول نازل دی. (۲) دویم داچه مراد دَجابر ﷺ دَاولیة نه اولیة مخصوصه دي، چه هغه دَ فترة نه ورستودي، اولیة مطلقه ئی نه دي مراد، یعنی علی الاطلاق چه اول نازل دي، نو هغه سورة العلق اودَفترة الوحی نه ورستو چه اول نازل دي نوهغه سورة المدثر دي (روح المعانی).

**ربط**: دَمضمون په لحاظ سره سورة مزمّل اوداسورة یودی، ماقبل سورة مزمل کښی داؤ

چه قرآن تلاوت کوه چه مسئله دتوحید دی زړه ته کوزه شي.اوس دی سورة کښې داحکم دې چه تلاوت سره سره دقرآن تبلیغ هم کوه.یعنی مسئلې دتوحید اونورو احکامو تبلیغ هم کوه

**خلاصه**: آیت ۱ نه تر ۷ پورې،شپږ حکمونه دی او دیکښې دعوې دسورت بیان دې.

آیت۸ نه تر ۱۰ پورې،تخویف اخروی دې

آیت ۱۱ نه ۲۵ زجردې

آیت ۲۲ نه تر ۳۰ پورې تخویف اخروی دې.

آیت ۳۱ نه تر ۳۷ پورې زجر دې،

آیت ۳۸ نه تر ۴۰ پورې بشارت دې

۴۱ نه تر ۴۸ پورې تخویف اخروی دې.

۴۹ نه تر ۵۲ پورې زجر دې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا | ٱلْمُدَّثِّرُ ① | قُمْ | فَأَنذِرْ ② | وَرَبَّكَ | فَكَبِّرْ ③ | | |
| اې ځان نغښتونکیه په کمبل کښې،پاسه نو اویره وه خلق دالله ﷻ نه.اود خپل رب لوئي بیان کړه | | | | | | | |
| وَثِيَابَكَ | فَطَهِّرْ ④ | وَٱلرُّجْزَ | فَٱهْجُرْ ⑤ | وَلَا | تَمْنُن | تَسْتَكْثِرُ ⑥ | |
| اوجامې خپلې پاکې کړه ته،اوپلیتئ نه لرې اوسیږه،اواحسان مه کوه پدې نیت چه زیات به غواړې. | | | | | | | |
| وَلِرَبِّكَ فَٱصْبِرْ ⑦ | | | | | | | |
| اورب خپل لره صبر کوه. | | | | | | | |

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُدَّثِّرُ ﴾په اصل کښې مُتدثّر دې،تاپه دال بدل شوه،اوادغام اوشو،دَدثار نه مأخوذ دې،کمبل یاڅادراغستوته وائی دَقمیص دپاسه،اوقمیص نه لاندې ته شعار وائی، حضور ﷺ قول دې:الانصارُ شعار و الناسُ دثار،حضورﷺ پدې وصف سره مخاطب کول دَ ملاطفت په وجه دې.

﴿قُمْ فَأَنذِرْ﴾ دا اول حکم دې ؛ او دعوه دَسورة ده، چه دَنبوت میلاویدلونه ورستودَتولونه اول دَتبلیغ حکم اوشو،چه پاسه اودَوحی دَبوج اوفرشتې دَهیبت نه مه مرعوبه کیږه،بلکه دَنبوت منصب سنبال کړه ، راحت ارام پریده،خلق دَالله دَعذاب نه اویره وه،چونکه ابتداء

دَنبوت وه، نوځکه ورته صرف امردَانذار اوشو.دَ تبشیر اونشو. اومراد دَ قیام نه دلته قیام دی لپاره دَتبلیغ.

﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾دویم حکم دی چې تعظیم دَالله ﷻ دی یعنی خلقوته دَخپل رب لوئی بیان کړه، ځکه چه دَالله ﷻ لوئی بیانولوسره دَهغه عظمت او یره په زړونو کښې پیدا کیږی. ((ربک)) مفعول به دی دَپاره((فکبر)) فعل، او تقدیم دَ وجهې دَ تخصیص نه شوې دې، او فَ جزائیه ده، اوجمله جزا ده د شرط محذوف، چې مهما یکن شئ دی یعنی چې څه حالات هم وی ته دَخپل رب تعظیم بیانوه.

﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾دریم حکم دی چې هغه تطهیر دَ ثیابو دی (۱) تطهیردَثیابویاکنایه ده د تطهیر دَ نفس دَ اعمالِ ذمیمه ؤ نه،ای وعملک فاصلح(روح) یعنی خپل عمل صالح کړه ځکه چه غیرصالح وی نودعوت په کارکښې روکاوټ وی.

(۲)بعض محمول کوی په معنیٰ حقیقی باندی،یعنی خپل کپړی دَنجاست نه پاکې ساته. داٰ امرحضور ﷺ ته لپاره دَمخالفت دَمشرکانواوشو،ځکه چه هغوئ به خپلې کپړی دَنجاست نه،نه بچ کولې.

(۳)بعض وائی تطهیرنه مراددَنجاست معنوی نه تطهیردی چه گناه دی،یعنی خپلې کپړی دَ گناه نه پاکې ساته. (روح).

﴿وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾څلورم حکم دی ، چې هغه هر گنده عمل اوعادت نه ځان ساتل دی. .رُجز. قبیح اوگنده څیزته وائی،یعنی هرقبیح عمل مکوه دَمشرکانو دَاخلاقونه ځان ساته، دَ رجز معنی اوثان یعنی بتان هم کړې شویده یعنی دَبتانودَعبادت نه لری اوسیږه،یامضاف مقدر دی:ای واهل الرجزفاهجر،مرادمشرکان دی،یعنی دَمشرکانونه لری اوسیږه کقوله تعالی: ولاتکونن من المشرکین(جواهر) او دا امر دَ دوام لپاره دی، یعنی په توحید او په نېه اخلاقو دائم اوسیږه لکه چه څنگه دَنبوت نه قبل وې.

﴿وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ﴾ پنځم حکم دی، چې هغه ممانعت دی دَ بدلې په نیت دَچاسره احسان کولو نه،یعنی په دې نیت دَچاسره احسان مه کوه چه تاسره به زیات احسان اوکړی،دانهی حضور ﷺ دپاره خاص ده، عاموخلقودپاره جواز شته چه پدغه نیت دَ چا سره احسان اوکړی.

مگر بیا هم مذموم دي . او یا ئي مطلب دا دي چې چا سره څه احسان اوکړي .نو خپل احسان او خیگړه بیا ډیره او لویه مه ګڼره ، ځکه چې دیکښې یو طرف ته عجب دې او طرف ته بخل «تستکثر» جمله حال واقع ده دَ ضمیر مستتر دَ «لاتمنن» نه.

﴿وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ﴾شپږم حکم دې چې هغه حکم دصبر دې او تسلی ده نبی پاک ﷺ ته،چه دَمشرکانوپه اذیتونو صبرکوه، یا په اداء دَ فرائضو او دَ تبلیغ به وجه چه کوم تکلیفونه تاته رسی په هغی صبرکوه.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِذَا | نُقِرَ | فِي | النَّاقُورِ ⑧ | فَذَٰلِكَ | يَوْمَئِذٍ | يَوْمٌ | عَسِيرٌ ⑨ | |
| پس کله | چې | پوکړې شي | په | شپیلئ کښ | نو دغه | ورځ به | سخته ورځ | وی |

| |
|---|
| عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ ⑩ |
| په کافرانو نه به وی آسانه |

﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ﴾ داتخویف اخروی دې، ناقور به وزن فاعول شپیلئ ته وائی. یعنی چه کله په شپیلئ کښ پو کړیشی،قیامت قائم شی نوداورځ به په کافرانوباندی ډیرسخته وی، څه قسمه آسانی به ورته نوی ﴿فَذَٰلِكَ﴾یعنی داورځ دَشپیلئ پوکلو،مرادورنه نفخ ثانی ده، ﴿فَذَٰلِكَ﴾ مبتداء ده او﴿يَوْمَئِذٍ﴾ورنه بدل دې، ﴿يَوْمٌ عَسِيرٌ﴾خبردې،یعنی داورځ دَشپیلئ وهلوورځ سخته ده.﴿عَلَى الْكَافِرِينَ﴾متعلق دې دَ﴿عَسِيرٌ﴾سره او﴿غَيْرُ يَسِيرٍ﴾تاکیددې، دینه معلومیږی چه په مؤمنانوبه داورځ سخته نه وی.«روح المعانی»

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ذَرْنِي | وَمَنْ | خَلَقْتُ | وَحِيدًا ⑪ | وَجَعَلْتُ | لَهُ | مَالًا | مَمْدُودًا ⑫ | وَبَنِينَ |
| پریږده | مااوهغه | چه پیداکړې | می دې | یواځې،اوګرځولې | می دې | ده | لره | مال ډیراوځامن |
| شُهُودًا ⑬ | وَمَهَّدْتُ | لَهُ | تَمْهِيدًا ⑭ | ثُمَّ | يَطْمَعُ | أَنْ | أَزِيدَ ⑮ | كَلَّا |
| حاضرورسره | په هرځائ کښ،اوفراخی | می ورکړیده | ده ته | ښه فراخی،بیاطمع | کوی | داچه | نورزیات | به ورکړمه |

كَلَّا ۖ إِنَّهُ كَانَ لِآيَاتِنَا عَنِيدًا ﴿١٦﴾ سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا ﴿١٧﴾

هرگزداسی نده،بی شکه دی دآیاتونوزمونږ سره عنادکونکې دی.زرده جه اوبه نی خیروم په صعودغرباندی

﴿ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا﴾ دا زجر دې اومتعلق دې ولربک فاصبر سره.مفسرين فرمائي چې داآيتونه دَ وليد بن مغيره په باره کښې نازل شوي دي، چې کله ئې قرآن واوريدلو اوترېنه متاثره شو،نو يوڅو تعريفي کلمات ئې دَقرآن په باره کښې اوئيل.خلقو مشهوره کړه چې وليد مسلمان شو،قريش مکه پريشانه شولو، چې کچرته دې واقعي مسلمان شو، نو ټول خلق به بيا مسلمانان شي،ابوجهل ورپسې لاړو چې خلق ستاپه باره کښې داسې وائي.لهذا اوس ته څه داسې خبره اوکړه چې هغې سره دَقرآن مذمت اوشي، او خلقو ته هم پته اولګي چې ته مسلمان شوې نه ئې،نوده ورته اوئيل چې صبرکوه څه سوچ کوم چې څه اووايم. دَسوچ وفکر نه بعد ئې دااوئيل چې محمد نه مجنون دې، نه کاهن دې، نه شاعر دې. بلکه نعوذبالله ساحر دې، او دې سحر نقل کوي اوخلقو په مينځ کښې تفريق راولي.نو الله ﷻ به طور د زجر دا آيتونه نازل کړو،چې ماپه ده څومره احسانات کړي دي،اودې دهغې څه بدله ورکوي.

﴿وَحِيدًا﴾دا(١)حال دې دَمفعول به محذوف نه اي:خلقته وحيدا . او ديکښې تهکم دې په وليد بن مغيره باندې،وليد بن مغيره په مال دولت،اولاد اوحسن رائي اوداسې نور اوصافو داجتماع دَ وجهې نه په عربو کښې په"وحيد"باندې مشهور وؤ.خکه چې دې صفاتو کښې دې يکتا وو، بل څوک ورسره برابرنه وؤ، نو الله ﷻ ورته دې آيت کښې فرمائي چې دې خپل دې حالت مغروره کړيدې،اودهوکه کښې ئې اچولې دې، ده ته خپل حالت ياد نه دې چې دې مونږ تن تنها او خړ لغړ پيدا کړې وؤ،او يا(٢)حال دې دَمفعول دَ﴿ذَرْنِي﴾نه،اى ذرنى وحدى معه.يعنى ماورته يواځې پريده، څه به ورنه ستا انتقام واخلم. يا(٣)حال دې دَفاعل دَ﴿خَلَقْتُ﴾نه اى خلقته وحدى لم يشركنى فى خلقه احد،يعنى تنهاماپيداکړې دې،څه به ئې تنهاهلاکوم ، دَده په هلاکت کښې مې بل چاته احتياج نشته.

﴿وَجَعَلْتُ لَهُ مَالًا مَّمْدُودًا﴾اى كثيراً،داپه په وليد باندې نعمتونو اواحساناتو تذکره ده او اول انعام اواحسان دې، ،يعنى ډيرمال مې ورته ورکړو.ابن عباس ﷺ وائي چه مکې نه تر

طائف پورې دَده باغونه،څاروی،غلامان وو،بعض وائی دده په طائف کښ داسی باغ ؤ چه په ژمی اوګرمئ دواړوموسمونوکښ به ئی میوه کوله،نورنقدی هم ورسره ډیرزیات وو

﴿وَبَنِينَ شُهُودًا ﴾دویم انعام دې چې نارینه اولاد می ورکړی دې چې هروخت ده سره وی،

(۱) د«شهودا» مطلب دادې چې هروخت ده سره حاضر وی،تجارت یا کاروبار دپاره ترینه بل چرته سفر نه کوی،دینه معلومه شوه چې اولاد ته په وطن کښ درزق اسباب مهیاکیدل دالله ﷻ غټ احسان دې. (۲)یاد «شهودا» مطلب دادې چې داذی وجاهت دې، چې دشان وشوکت په وجه هر محفل اومجلس کښ دوئ حاضروی(۳) یامطلب دادې چې ګواهی اوخبرې اعتبار به ئی کیدلو.

﴿وَمَهَّدتُّ لَهُ تَمْهِيدًا ﴾ دریم انعام دې،یعنی دنیوئی جاه او وقارکښ ورته ښه فراخی ورکړې وه،قریش به هرمشکل کارکښ ده ته ورتلل،ریحانة القریش به ورته وئیل کیدل.

﴿ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ ﴾یعنی دَ دومره ناشکری اودَ عناد باوجود دا امید هم لری چه ماته به په مال اولادکښ نورهم زیاتوالې کیږی،ده به وئیل کچرته محمد ﷺ پخپل بیان کښ صادق وی ، نوخمایقین دې چه دجنت نعمتونه به هم ماته میلاویږی.

﴿كَلَّا ﴾ردع اوزجردې دده دطمع﴿إِنَّهُ كَانَ لِآيَاتِنَا عَنِيدًا ﴾تعلیل دې دماقبل،یعنی دې دَ دلائلو دَ توحیداودَقرآن دآیاتونونه معانداوانکارکونکې دې،پدی وجه دده په مال اولادکښ به نورزیاتوالې نه کیږی،روایت دې چه ددی آیاتونودنزول نه ورستودده په مال اولادکښ پرله پسی نقصان راتلو ، تردې چه ذلیله مړشو.

﴿سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا ﴾داجمله معترضه ده په مابین د« انه كان لآياتنا عنيدا» او« انه فكر و قدر» کښ ، اَو دیکښ دَ ولید ذلت اورسوائی طرف ته اشاره ده.یعنی اضافه به ورله نه کوم بلکه رسوا کوم به ئی،او ارهاق ستړې کولو اومجبوره کولوته وائی، صعودا دَ غر پیچمې ته وائی، چې ختل پرې مشکل وی، او دا کنایه ده دَ رسوائی او دسخت عذاب نه،یا صعود په جهنم کښ یوغردې،په یوروایت کښ دی چه دادَ اُورغردې چه کافربه ورباندی اویا(۷۰)کاله برخیژی،اوبیابه اویاکاله کښ ورنه لاندی راغورځولې کیږی،همیشه به ئي دغه سزا وی.

إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴿١٨﴾ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿١٩﴾ ثُمَّ قُتِلَ

بې شکه ده فکراوکړواواندازه ئې وکړه،پس هلاک دې شي دې څنګه اندازه ئې وکړه.بیادې هلاک شي

كَيْفَ قَدَّرَ ﴿٢٠﴾ ثُمَّ نَظَرَ ﴿٢١﴾ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ﴿٢٢﴾ ثُمَّ أَدْبَرَ

څنګه اندازه ئې اوکړه،بیائې فکراوکړو،بیائې مخ تریوکړو،اوتندې ئې ګونجې کړو،بیائې شاکړه

وَاسْتَكْبَرَ ﴿٢٣﴾ فَقَالَ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ ﴿٢٤﴾ إِنْ هَٰذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ ﴿٢٥﴾

اوتکبرئې اوکړوپس وې وئیل نده دا قرآن مګرسحردې چه نقل کولې شي،نده دا قرآن مګرقول دانسان دې.

سَأُصْلِيهِ سَقَرَ ﴿٢٦﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا سَقَرُ ﴿٢٧﴾ لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ ﴿٢٨﴾

زرده چه داخل به ئې کړودوزخ ته اوتاته څه پته ده چه څه دې سقر،نه به ئې پرېږدي ژوندې،او نه به ئې پرېږدي مړ.

لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ﴿٢٩﴾ عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ﴿٣٠﴾

سیزونکې دې دڅرمنې،مقرردې په هغې باندې نولس(۱۹) فرښتې

﴿إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ﴾ دیکښې تفصیل دې دعناد د ولید،چې دهغې ذکر په ﴿عَنِيدًا﴾ کښې اجمالا اوشو، چې کله ورته ابوجهل راغې، او ده ته ئې اوئیل چې قرآن په باره کښې څه مذمتی کلمات اوایه، چې قوم ته پته اولګی چې تاایمان نه دې راوړې. نو دې په سوچ کښې شو چې قرآن په باره کښې څه اوایم،خان سره ئې مختلف اندازې لګول شروع کړې،﴿إِنَّهُ فَكَّرَ﴾ یعنی سوچ ئې شروع کړو چې دقرآن په باره کښې څه اوایم،﴿قَدَّرَ﴾ یعنی مختلفې اندازې ئې خان سره اولګولې چې قرآن ته دمجنون کلام اوایم،دکاهن کلام اوایم،که دشاعر شعری مجموعه ورته اوایم، اوکه سحر ورته اوایم،﴿فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ﴾ دا تعجب دې چې دې دی هلاک شي دقرآن په باره کښې دې داڅنګه اندازې لګوی،یاداتهکم دې چې څومره بهادر دې چې قرآن په باره کښې داسې خیالات لری.﴿ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ﴾ داد ماقبل تاکید دې.

﴿ثُمَّ نَظَرَ﴾ يعنى لګ ساعت ئى بيا سوچ اوفكر اوكړوچي څه اووايم ﴿ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ﴾ يعنى ډير سوچ وفكر نه بعد ورته هم څه دَاعتراض اوطعن ځائ مېلاؤ نشو ، نو ډير بوج نه ئى تندي تريو كړو ، اومخ ئى تورشو ،عبس، تندى تريوالى ته وائى. بسر،هم دَ تندي تريوالى ته وائى، خودي كښ مبالغه ده چي ډير تريووالى نه ورسره مخ هم تور شى. اوياد «ثم نظر» مطلب دا دي چي خلقو ته ئى اوكتل اوتندي ئى تريو كړو ، او دا تاثر ئى وركړو چي ځمادَقرآن نه ډير نفرت دي. اويائى مطلب دادي چي نبى ﷺ ئي ته اوكتل اودَنفرت په وجه ئى تندي تريو كړو

﴿ثُمَّ أَدْبَرَ وَٱسْتَكْبَرَ﴾ يعنى ډير سوچ اوفكر نه بعد چي هم ده په قرآن كښ څه نقص يا طعن اونه مندلو ، نوپكاروه چي حق ئى قبول كړي وي، اوايمان ئى راوړى وي خوده اعراض اوتكبر اوكړو ، اودائى اوئيل چي قرآن سحر دي.

﴿إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ﴾ اى يُروىٰ ويُنقل، يعنى دَبابل وغيره ساحرانونه نقل شويدي، يا دا چه غوره اوراجح دي په نوروسحرونوباندي.

﴿سَأُصْلِيهِ سَقَرَ﴾ تخويف اخروى دي اودآخرت سزابيان دي. سقر دَجهنم دَيوى طبقى نوم دي. ﴿لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ﴾ «لا تبقي» مطلب دا دي چي دا جهنم به جهنمي ژوندي نه پريګدي ، بلكه هلاک به ئي كړي، او «لاتذر» چي بيا به ئي مر هم نه پريګدي ، بلكه بيا به ژوندي كيږي او عذاب به ورله وركولي كيږي، كقوله تعالى: ثم لايموتُ فيها و لا يحيىٰ (الاعلى: ١٢) .او يا د «لا تبقي » مطلب دا دي چي په جهنميانو به هيڅ نه پريګدي، غوښه او څرمن هر څه به ورله او سوزه وي، او «لا تذر» كښي نفي د حالت ده ، چي په يو حال به ئي هم نه پريګدي ، بلكه عذاب پسې عذاب او هر عذاب به د بل عذاب نه سخت وي، او دا هم كيدي شي چي «لا تبقي » خپلې معروفه معنى كښي نه وي ، بلكه د "رحم" په معني كښي وي ، لكه عرب وائي : ابقيت على فلان، اذا ارعيت عليه ورحمته ، او چا ته چي بد دعا كوي نو وائي : لا ابقى الله عليک ، يعني الله ﷻ دي په تا رحمت او نكړي ، (لسان العرب)، نو دي صورت كښي به معني داسې شي ، چي نه به پرې رحم كوي چي څه عذاب ترينه كم كړي ، او نه به ئي څه وخت د پاره بي د عذابه

پریګدي ، یعني نه به پکښې تخفیف وي او نه چهټي ﴿لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ﴾یعنی دکافرانوسکلوه بدلونکې دي، مخونه اوڅرمنی به ورته تورې کړی.بعض وائی لوّاحة پمعنی د محرقة یعنی سوځونکې دي .﴿عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ﴾یعنی(۱۹) فرښتی وربانذی مقرر دی

وَمَا جَعَلْنَآ اَصْحٰبَ النَّارِ اِلَّا مَلٰٓئِكَةً ۙ وَّمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ اِلَّا

اوندی ګرځولی مونږه خاوندان(مؤکلین)دجهنم داورمګرملائکی اونه دی ګرځولي مونږ(شمار)دهغوئ مګر

فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۙ لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَيَزْدَادَ

امتحان دپاره دکافرانو،چه یقین راشي داهل کتابو(یهودنصاری)اوزیات کړي

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِيْمَانًا وَّلَا يَرْتَابَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۙ

مؤمنانولره ایمان اوشک اونکړی هغه کسان چه ورکړې شویدي هغوئ ته کتاب(اهل کتاب)اومؤمنان

وَلِيَقُوْلَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْكٰفِرُوْنَ مَاذَآ اَرَادَ

اوچه اووائی هغه کسان چه په زړونودهغوکښې مرض دنفاق دي اوکافران چه څه غواړي

اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ۭ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَاۗءُ

الله ﷻ پدی سره مثال ورکولو نه . هم داسی ګمراه کوی الله ﷻ هر هغه څوک چه خوښه نی شی

وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ ۭ

اولاره ښائی هغه چاته چه نی خوښه شي،اونه دي معلوم هیڅ چاته لښکردرب ستامګرالله تعالی نه

وَمَا هِيَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْبَشَرِ ۝۳۱

اوندي سقرمګرلپاره دنصیحت دي انسان ته،

﴿ وَمَا جَعَلْنَآ أَصْحَـٰبَ ٱلنَّارِ ﴾کله چې مخکښې آیت "علیها تسعة عشر"نازل شو ، نو کفارو استهزاء شروع کړه،ابوجهل خپل ملګروته اوئیل چې تاسو دومره ډیر یئ،دومره هم نشئ

کولې چې لس(۱۰) لس کسان يوه يوه فرشته رااونيسي،ابوالاشد دَعرب يو مشهور پهلوان وؤ، هغه ورته اوئيل چې اوولس(۱۷)فرشتى ماته پريګدئ،اودوه(۲)تاسو سنبهالې کړئ، نوالله ﷻ داآيت نازل کړو چې دافرشتې دى انسانان نه دى،چې دوئ ئى مقابله اوکړى،يوې يوې فرشتې روغ کلى اوقومونه هلاک کړى دى،نهه لس(۱۹) خو ډير غټ شې دې،اوبل داچې دَ الله ﷻ فرشتې صرف نهه لس نه دى،بلکه بې حسابه دى. خودې عدد ذکر کښ يوځو حکمتونه وؤ، ﴿إِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا﴾دااول حکمت دې چې داعدد دَ کفارو د پاره ابتلاء او امتحان دې، اوفتنې کښ واقع کيدلو سبب دې، ځکه چې دوئ به دغه اعتراضونه کوى چې نولس ولې دى،دې نه زيات اوکم ولې نه دى؟ مونږ دومره ډير يو،دا لګ تعداد به مونږ له څنګه عذاب راکړى؟

﴿لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾دويم حکمت بيان دې چې اهل کتابو يقين راشى چې داواقعى دَالله ﷻ کتاب دې ځکه چې سابقه کتب سماويه کښ هم ددې عدد ذکروؤ ،

﴿وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا﴾دريم حکمت بيان دې چې اهل ايمان ،ايمان کښ زيادتى راشى کيفاً هم،او دا داسې چې اهل کتاب ئې تصديق اوکړي ، نو دې سره به مسلمانانو ته مزيد طمانيت ميلاو شي، اوکماً هم، چې ايمانياتو کښې يو زيات شو ، چې هغې په تصديق سره ايمان کښې اضافه اوشي.

﴿وَلَا يَرْتَابَ الَّذِينَ﴾څلورم حکمت دې چې دَ يقين اثبات نه بعد دريب اوتردد نفى ده،

﴿وَلِيَقُولَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾پنځم حکمت دې چې منافقينو اودَزړه بيمارانو اضطراب او تردد کښ مزيده اضافه اوشى،"مرض"نه مرض دَنفاق مراددې،اوداپيشن ګوئى ده، ځکه چې داسورت مکې دې، او مکې کښ منافقين نه وؤ.«بهذا» کښې اشاره ده عدد دَ فرشتو ته ، او اسم اشاره قريب راوړلو کښې دَ عدد قلت طرف ته اشاره ده ،«مثلاً» يا په معنى دا "مثال" سره دې ، يعنى دوئ استهزا کوى چې مثال بيانولو نه الله ﷻ څه غواړي ؟آيا مونږ پرول غواړي ؟ نو څنګه به نولس کسان د دومره لوئي ډلې مقابله اوکړي!! خو دا د دوئ جهالت او غباوت دې، ځکه چې غلبې دار ومدار په کثرت نه وي بلکه په قدرت وي ، لکه لس ماشومان په يو

سري غالبه نشي راتلي او دا خو بيا فر شتي دي، يا ((مثلا))بمعني د عجيب و غريب څيز دي.
چې داسې قابل تعجب تعداد بيانولو نه الله ﷻ څه غواړي،(نظم الدرر)

﴿كَذَٰلِكَ﴾مشار اليه ماقبل اضلال اوهدايت دي،يعنى څنګه چه الله ﷻ دغه کافران ګمراه کړل اومؤمنانوته ئې هدايت ورکړو، نو دغه شان الله ﷻ چاته چه خوښه شي ګمراه کوي ئې اوچاته چه ئې خوښه شي هدايت ورته کوي.

﴿وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ﴾دارددي دَاستهزاءدکافرانو ﴿وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ﴾ ضمير راجع دي سقر ته،يعنى دادَانسان دَنصيحت دپاره دي.

| |
|---|
| كَلَّا وَالْقَمَرِ ﴿٣٢﴾ وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ﴿٣٣﴾ وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ ﴿٣٤﴾ |
| هرګزداسې نده،قسم دي په سپوږمۍ اوپه شپې کله چه په شاشي(لاړه شي)اوپه سهارباندې کله چه روښانه شي. |
| إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ﴿٣٥﴾ نَذِيرًا لِلْبَشَرِ ﴿٣٦﴾ لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ |
| بې شکه داقيامت خامخايودلويوڅيزونونه دي يرونکي دَانسان دي،هغه انسان لره چه غواړي دَستاسونه |
| أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ ﴿٣٧﴾ |
| داچې وړاندې شي خيرته ياورنه ورستوشي، |

﴿كَلَّا وَالْقَمَرِ﴾ددي آيتونو دوه تفسيره شويدي:(۱)حضرت حسين علي رحمه الله فرمائي چې داتسلي ده مسلمانانو ته ،دَکفارو په استهزاباندي،((کلا))په معنى دَ "حقاً" سره تاکيددي دَ ما بعد قسمونو دَ پاره،جواب دَقسم محذوف دي،چې "لترکبن طبقاعن طبق"دي، او قسم او جواب قسم کښې مناسبت دادي چې لکه څنګه په سپوږمۍ باندې په مياشت کښې مختلف احوال راځي،شپې کښې مختلف حالات وي ،شپې ابتداء وي ،بياتکه توره شي بيا ورو ورو ختميږي،آخر رونړ سهر راوخيژي، نو دغه شان تاسو باندې به هم مختلف حالات راځي، او مختلف دَ ازمائش او امتحان مراحلو نه تيريدلونه پس به موکاميابۍ اوکامراني سهر روښانه راخيژي، دي تفسير مطابق (( انها لاحدى الكبر)) جمله مستانفه ده .(جواهر القرآن)

(۲)دویم تفسیر دَجمهور علماؤدي،چې دا کفاروته زجر دي په استهزا اوانکار باندي، دَ سقر نه، چې سقر نه انکار مه کوئ.لکه څنګه چې سپوګمئ ،شپه اوسهر حقیقت دي، دغه شان دا هم حقیقت دي، او دَ لویو عذابونو نه دي،دي تفسیر مطابق «کلا» ردع دَپاره دي او « انها لاحدی الکبر» جواب قسم دي. قسم او جواب قسم کښې مناسبت داسې بیان شوي دي چې لکه څنګه چې په سپوګمئ مختلف احوال راځی،ابتداء کښې هلال وی،بیا بدرکامل شی، بیا ورو ورو، وړه کیږی،حتی چې آخر کښې بالکل ختمه شی،نودغه شان دادنیا هم ده ختمه به شی ، قیامت به راشی، اوتاسو به عذاب وینئ،اوتاسو چې نن دامستبعد ګنړئ،اوپه حقیقت ئی نه رسئ نوداپه دي وجه چې تاسو دَدنیا په تیاره کښې پراته ئی.کله چې داپه انتهاء شی او قیامت ظهور اوشی(نوڅنګه چې شپه په ختمیدو اوسهرپه روښانه کیدوسره سرې دَډیر هغه څیزونه مشاهده اوکړي چې هغه دَشپې په څادر کښې پټ وی) نودغه شان داهر څه به تاسو مشاهده کښې راشی اویقین به پري اوکړئ(بیان القرآن)

﴿ إِنَّهَا لَإِحۡدَى ٱلۡكُبَرِ ﴾ انها کښې ضمیر سقر ته راجع دي، الکبر جمع دَ کبری ده،یعنی دا جهنم خامخا یو دَ لویو څایونو نه دي اولویوحادثوکښې لویه حادثه ده. ﴿نَذِيرٗا لِّلۡبَشَرِ﴾ تذیراً یا تمیز دي دَ﴿ لَإِحۡدَى ٱلۡكُبَرِ ﴾مصدردي پمعنی دَ انذار یعنی په اعتبار دَ تخویف او انذار جهنم په سختوڅایونوکښې یودي،یاحال دي دَضمیردَ انها ته پمعنی دَ منذرة یعنی حال داچه دي خلقولره یره ونکي دي﴿لِمَن شَآءَ مِنكُمۡ ﴾بدل دي دَ﴿لِّلۡبَشَرِ﴾ نه، یعنی جهنم یرونکي دي هغه چا لره چه هغه غواړی چه مخکښې شی خیرته یا ورنه ورستو شی، یا ان یتقدم الی النار او یتاخر عنها یاداچه ایمان ته مخکی شی،یعنی ایمان راوړی او﴿أَوۡ يَتَأَخَّرَ﴾ یعنی کفر اوکړی، کقوله تعالی:فمن شاء فلیؤمن ومن شاءفلیکفر(کهف:۲۹).

| |
|---|
| كُلُّ نَفۡسِۭ بِمَا كَسَبَتۡ رَهِينَةٌ ۝ إِلَّآ أَصۡحَٰبَ ٱلۡيَمِينِ ۝ فِي جَنَّٰتٖ |
| هرنفس به په خپل عمل کښې ګانړه(ګرفتار)وی لیکن خاوندان دښی لاس په جنتونوکښې به وی، |

| |
|---|
| يَتَسَآءَلُوْنَ ۝ عَنِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝ مَا سَلَكَكُمْ فِيْ سَقَرَ ۝ قَالُوْا |
| تپوس به کوی، دمجرمانونه چه څه خیزداخل کړئ تاسو په دوزخ کښ، اوبه وائی هغوئ |
| لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّيْنَ ۝ وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِيْنَ ۝ وَكُنَّا |
| چه نه وؤمونږ دمونځ کونکونداونه وؤمونږچه طعام مورکړې وې مسکینانوته، اووؤمونږ |
| نَخُوْضُ مَعَ الْخَآئِضِيْنَ ۝ وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ۝ حَتّٰى |
| استهزاءموکوله «دین پورې» داستهزاءکونکوسره اووؤمونږتکذیب موکولوپه ورځ دقیامت تردې چه |
| اَتٰىنَا الْيَقِيْنُ ۝ فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشّٰفِعِيْنَ ۝ |
| راغې مونږته مرګ پس نفع به ونه رسوی دوئ ته شفاعت دشفاعت کونکو |

﴿ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ ﴾دیکښ دَ سابقه اختیار "لمن شاء" انجام بیانیږی،چې قیامت کښ به هر سړی ته دخپل عمل جزا میلاویږی، که بد وی ، نو ټهکانه ئې جهنم ده، اوکه نیک وی نوټهکانه ئې جنت ده.

﴿اِلَّآ اَصْحٰبَ الْيَمِيْنِ ﴾دابشارت دې، یعنی هغه خلق چه اعمال نامې ورته په خې لاس کښ میلاوَشی، هغوئ به په جنتونوکښ وی﴿يَتَسَآءَلُوْنَ﴾باب تفاعل دمجردپمعنی یعنی پمعنی دَ "یسئلون" دې، یعنی دمجرمانونه به دهغوئ داحوالو باره کښ، تپوس کوی چه تاسو دَ کومو بد عملونو په وجه جهنم ته لاړئې

﴿قَالُوْا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّيْنَ ﴾مجرمین به ورته دخپل عذاب اوسقر ته دَ تللو څلور اسباب بیان کړی،﴿لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّيْنَ﴾ دا اول سبب دې چې مونځ مو نه کولو چې دا دتقرب الی الله ذریعه ده .﴿وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِيْنَ﴾دویم سبب دې، غریبانواومساکینو ته مو دَ هغوئ حصه نه ورکوله.﴿وَكُنَّا نَخُوْضُ ﴾دریم سبب دې چې اسلام اومسلمانانو په لار کښ خو

ركاوټونه جوړول، هغوئ ته موايذاء رسوله . او وړپورې خو ټوقې مسخرې کولې ﴿وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ﴾ څلورم سبب دې چې انکار دآخرت اوقيامت دې

**فائده**: کفاردشريعت فرعي احکاماتو مخاطب دی اوکنه؟دايوه اختلافي مسئله ده. احنافو په نيز نه دی، او شوافعو په نيز مخاطب دی،اوهغوئ دې آيت او دغه شان نور آياتونو نه استدلال کوی،خودې آيتونو نه استدلال صحيح نه دې:

(۱)يوخو دې وجهی نه چې داڅلور اسباب کنايه دی دعدم ايمان نه،نوعذاب په ايمان نه راوړلو باندې مرتب شو ، نه په فروعاتو پرېخودلو باندې

(۲)دويم داچې مجموعه دڅلوروامورو سبب دعذاب ده اوداخوصريح کفر دې.(التحرير والتنوير)

(۳)دريم داچې سقر کښ دوه څيزونه دی(۱)يونفس عذاب(۲)اوبل زيادت د عذاب،نو نفس عذاب دپاره سبب ايمان نه راوړل دی، او زيادت دعذاب دپاره سبب فروع نه منل دی. نو فروعو مخاطب اومکلف نه ګرځيدلومطلب دادې چې نفس عذاب به دې د وجهی نه .نه وی، چونکه داصولو په ضمن کښ داهم راځی، نوزيادت دعذاب دپاره په سبب ګرځی(بيان القرآن)

﴿حَتَّىٰٓ أَتَىٰنَا ٱلْيَقِينُ﴾ داغايت ده دمذکو څلور واړو امورو د پاره،او يقين نه مراد مرګ اومقدمات دمرګ دی،يعنی دغه کارونه موکول چې مرګ راباندې راغې.

﴿فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَٰعَةُ ٱلشَّٰفِعِينَ﴾ کلام علی سبيل الفرض دې،يعنی که بالفرض څوک دوئ باره کښ شفاعت اوکړی هم نوهم به ورته څه نفع نه ورکوی.

| |
|---|
| فَمَا لَهُمْ عَنِ ٱلتَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ ﴿٤٩﴾ كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ ﴿٥٠﴾ |
| پس څه شويدی دوئ لره چه دنصيحت نه اعراض کونکی دی،لکه دوئ چه خرونه دی تختيدونکی. |
| فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ ﴿٥١﴾ بَلْ يُرِيدُ كُلُّ ٱمْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُؤْتَىٰ صُحُفًا |
| چه تختيدلی وی دزمری نه،بلکه غواړی هريوسړې ددوئ نه داچه ورکړې شی ورته پاڼړې |

مُّنَشَّرَةً ۝ كَلَّا ۖ بَل لَّا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ ۝ كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ ۝ فَمَن

كولاوي، هرگزوربه نكريشي،بلكه نه يريږي دوئ دآخرت نه يقيناداقرآن نصيحت دي.پس څوک چه

شَاءَ ذَكَرَهُ ۝ وَمَا يَذْكُرُونَ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ ۚ هُوَ أَهْلُ

غواړي نو نصيحت دې واخلي ورنه‌اونه اخلي نصيحت دوئ مګرداچه خوښه شي دالله ﷻ،الله لائق دې

التَّقْوَىٰ وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ۝

چه يره تري اوكړې‌شي اولائق دَمغفرت دي.

﴿فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ﴾زجردې مشركانوته ، او"فاء" دپاره دَتفريع ده، يعنى چې دَكفر اوشرک انجام دادې، نو بيا ولې دوئ دَنصيحت نه تختي اوقرآن نه داسې اغراض كوي. لكه حمارِوحشي چه زمرې اووينى!!

﴿فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ﴾"قسورة"زمرې ته وائى ، ياغشي ويشتونكى ته وائى. دَكافرانو دَقرآن نه اعراض تشبيه دهغه حمار سره وركړې شويده چې زمرى او وينى اوتختى، دې تشبيه كښې درې امور ملحوظ ساتلې شوى دي:

(۱)خرسره تشبيه وركولو كښې دَدوئ حماقت اوبلادت طرف ته اشاره ده چې دوئ دومره بې وقوفان دى چې خپل نفع اونقصان نه پيژنى.

(۲)مراد دلته دَحمار نه حمار وحشى دې چې هغه اكثر بلاسبب تيخته كوى،نودغه شان دوئ هم دى چې قرآن نه تختيدل نه دي پكار،اودوئ ترينه تختي.

(۳)"من قسورة"اضافى سره انتهائى تيزى منډې اواعراض طرف ته اشاره ده(بيان القرآن)

﴿بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ﴾بل دَپاره دَاضراب انتقالې دې، او ديكښې دَدوئ عناد اواعراض بله نمونه ذكر كيږي. مشركينو به نبى كريم ﷺ ته وئيل چې مونږ به تا تر هغه پورې ايمان نه راوړو، تر څو چې دَالله ﷻ طرف نه زمونږ هر يوكس په نوم خط نه وى راغلې، چې هغې كښې ستا دَ اتباع حكم وى.

﴿ كَلَّا ﴾زجر دي چې دوئ له داسې مطالبې نه دي کول پکار ﴿بَل لَّا يَخَافُونَ ٱلْآخِرَةَ﴾ اضراب ابطالی دي چې اصل معامله دَايمان نه راوړلو "ايتاء د صحف" نه ده ، بلکه خوف آخرت فقدان دی، چې دوئ سره دآخرت فکراوخوف نشته.

﴿كَلَّآ إِنَّهُۥ تَذْكِرَةٌ ﴾دلته هم «كلا»ردع دي، چی دوئ دَخطوطو مطالبی څه دَپاره کوی. دَنصيحت اغوستلو لپاره خو قرآن کافی دی، خطونو ته حاجت نشته، څوک چه نصيحت قبولول غواړی نودَقرآن نه دی نصيحت واخلی،ليکن داهم دَالله ﷻ په توفيق اوخوښه سره کيږی.

﴿هُوَ أَهْلُ ٱلتَّقْوَىٰ وَأَهْلُ ٱلْمَغْفِرَةِ ﴾يعنی الله ﷻ دَدی لائق دي چه دَعذاب نه ئی يره اوکړې شی، ايمان پری راوړې شی،اوهغه لائق دي چه ايمان راوړونکواوتوبه ايستونکوته مغفرت اوکړی.

| رکوعاتها (۲) | سورة القيامة مكيّة | آياتها (۴۰) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۷۵) وحسب النزول (۳۱)**

نَزَلَتْ بَعْدَ سُوْرَةِ الْقَارِعَةِ وَقَبْلَ سُوْرَةِ الْهُمَزَةِ

**ربط**: ماقبل سورتونو كښې مسئله دَتوحيدوه، اوس دې سورة نه ترسورة الاعلى پورې مسئله دَثبوت دَقيامت ذكركيږي هريوسورة كښې على سبيل الترقي، څكه چه مشركان لكه څنګه دَتوحيدنه منكروؤ دغه شان دَقيامت نه هم منكروؤ، اوچونكه توحيد اصل الاصول دې نودَتوحيدذكربه ورسره هم كيږي يوسورة كښې به توحيدذكروي بل كښې به نه وي.

**خلاصه**: آيت ۱. ۲ كښې پورې ثبوت قيامت باندې دوه مشاهدې پيش كيږي.

آيت ۳ نه تر ۲ پورې، زجر اودعوه دسورت ده.

آيت ۷ نه تر ۱۵ پورې تخويف اخروي دې.

آيت ۱۶ نه تر ۱۹ پورې جمله معترضه ده لپاره دَحفاظت قرآن.

آيت ۲۰ او ۲۱ كښې دَماقبل تخويف تتمه ده.

آيت ۲۲، ۲۳ كښې بشارت اخروي دې.

آيت ۲۲ نه ترآخر پورې درې زجرونه ذكر كيږي.

| |
| --- |
| لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ ﴿۱﴾ وَلَآ اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ﴿۲﴾ اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ |
| قسم دې وي خماپه ورځ دَقيامت اوقسم دې وي خماپه نفس ملامته كونكي باندې، آياګمان كوي انسان داچه |
| اَلَّنْ نَّجْمَعَ عِظَامَهٗ ﴿۳﴾ بَلٰى قٰدِرِيْنَ عَلٰٓى اَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ ﴿۴﴾ |
| چرې به هم جمع نكړومونږهډوكي دَده. خامخابه ئې جمع كړو، حال داچه قادريومونږپدې چه برابر كړوبندونه دګوتودده |
| بَلْ يُرِيْدُ الْاِنْسَانُ لِيَفْجُرَ اَمَامَهٗ ﴿۵﴾ يَسْئَلُ اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ ﴿۶﴾ |
| بلكه اراده لري انسان دَدې چه تكذيب اوكړي دَهغه څه چه دَده مخې ته دي، تپوس كوي چه كله به وي ورځ دَقيامت |

﴿ لَآ أُقۡسِمُ بِيَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ ﴾دادوه شاهده پیش کیږی په قیامت باندې.(۱)اول شاهد خپله قیامت دې ،یعنی داقیامت خپله د خپل حقیقت گواهی ورکوی.آفتاب آمد دلیل آفتاب، دَ قیامت خومره احوال اواهوال بیان شوی دی داټول دَدې گواهی ورکوی چې قیامت شته دې (۲)دویم شاهد نفس لوامه دې،یعنی کله چې هم انسان دَدې نه انکار کوی، نو د هغه ضمیر او نفس دې په انکار باندې ملامته کوی.

﴿ وَلَآ أُقۡسِمُ بِٱلنَّفۡسِ ٱللَّوَّامَةِ ﴾داهغه نفس دې چی انسان په خلاف شرع اوناجائز باندې ملامته کوی،نفس درې قسمه دی(۱)نفس مطمئنه(۲)لوامه(۳)اماره ،نوپه دې قسم سره قسم خوړلونه معلومیږی چې دَدی عندالله لوئ قدر دی،دَنفس اقساموتفصیلات دیارلسمی سپاری ابتدا کښې تیردی،اوجواب دَقسم محذوف دې چې هغه لَتُبۡعَثُنَّ دې.

﴿أَيَحۡسَبُ ٱلۡإِنسَٰنُ ﴾دازجر دې منکرینو دَقیامت ته، دلیل دې دَ جواب قسم. او دعوه دَ سورت ده . ﴿ٱلۡإِنسَٰنُ﴾نه مراد کافراومنکر دَقیامت دې، چې آیا دَ ده گمان دادې چې مونږ دَده هډوکی رایوځی کولې نشو.

﴿بَلَىٰ قَٰدِرِينَ عَلَىٰٓ ﴾داابطال دې دَدوئ گمان،چه دوئ باکل غلطه خبره کوی ،قیامت به خامخا راځی،باقی داخبره چې زمونږ هډوکی به څنگه رایوځی کولې شی نوداالله ﷻ ته څه گرانه ده، الله ﷻ خو دَ دوئ دَ گوتو څوکو او بندونو په دوباره جوړولو باندې هم قادر دې، (قَٰدِرِينَ)حال دې دَ"نجمع" فعل محذوف دَپاره، اي نجمع قادرين﴿نُّسَوِّيَ﴾ "تسوية" تخليق په احسن اومضبوط اندازسره "اتمام" ته رسولو ته وائی، ﴿بَنَانَهُۥ﴾ "بنان" دگوتو څوکوته وائی او دلته ترینه مراد یا پوره جسم دې څکه چې دادَجسم انسانی اطرافو(خپې لاسونو)انتهاده،نو چې کله چې دَ دې تخلیق اوشی نو جسم تخلیق ورسره انتهاء ته اورسی، یا "بنان" نه مراد حقیقتاً د گوتو څوکې دی، اومقصد دادې چې ستاسو وجود خوغټ اوښکاره شې دې،داخو آسان کار دې الله ﷻ خوستاسو دگوتو څوکې هم دوباره پیدا کولوباندې قادردې، حالانکه (۱)دا خویو دَجسم مرکزی حصه نه ده(۲)بل ورکې غوندې جزدې(۳)بیادگوتو یویوبند کښې کنږ شمیر ورې ورې لکیری دی هغه هم جوړول دی(۴)اوبیادَهرسړی دگوتو لکیری دَبل نه جداهم دی.

﴿بَلْ يُرِيدُ ٱلْإِنسَٰنُ لِيَفْجُرَ﴾اضراب دي اوترقي دہ.دماقبل نه چې صرف داګمان نه دي بلکه دہ خو دقيامت او راتلونکي حالاتو تکذيب خه کلکه اراده کړی دہ ﴿ لِيَفْجُرَ ﴾ای ليکفر ويکذب﴿أَمَامَهُۥ ﴾ضميرراجع دي انسان مکذب ته.ای ماامامه.يعني چه کوم حالات دہ ته مخی ته راروان دی چه قبردي،بعث بعدالموت دې په هغی دي کفرکوی.

﴿ يَسْـَٔلُ أَيَّانَ ﴾ داد فجور تفصيل دي يعني بطوراستهزاءتپوس کوی چه قيامت به کله راځی

| |
|---|
| فَإِذَا بَرِقَ ٱلْبَصَرُ ٧ وَخَسَفَ ٱلْقَمَرُ ٨ وَجُمِعَ ٱلشَّمْسُ |
| پس کله چه اوبريخي نظر اوتوره شي سپوږمۍ اوجمع کړې شي نور |
| وَٱلْقَمَرُ ٩ يَقُولُ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍ أَيْنَ ٱلْمَفَرُّ ١٠ كَلَّا لَا وَزَرَ ١١ إِلَىٰ رَبِّكَ |
| اوسپوږمۍ وائی به انسان پدغه ورځ چه چرته دي ځائ دتيختي هرګزداسی نده نشته دي ځائ دخلاصۍ په طرف درب ستا |
| يَوْمَئِذٍ ٱلْمُسْتَقَرُّ ١٢ يُنَبَّؤُا۟ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍۭ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ ١٣ |
| پدغه ورځ ځائ دقرارئ دي خبربه کړې شی انسان پدغه ورځ په هغه عملونو چه ئی مخکښې ليږلي ذي او ورستو ئي پريخې دي |
| بَلِ ٱلْإِنسَٰنُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ بَصِيرَةٌ ١٤ وَلَوْ أَلْقَىٰ مَعَاذِيرَهُۥ ١٥ |
| بلکه انسان به پخپل ځان ښه ليدونکي وي،ګواهی کونکې به وي اګرکه پيش به کړی ډيرعذرونه خپل |

﴿فَإِذَا بَرِقَ ٱلْبَصَرُ﴾ داتخويف اخروی دي اوجواب دي دالله ﷻ طرف نه، اوجواب کښ ورته دَ قيامت اهوال بيانيږی،چې نن خودوئ استهزاء کوی قيامت پورې، خوچې کله دوئ اهوال اوګوری نو بيا به د تيختې ځائ تلاش کوی اوتختې دې به نشی،برق البصر ته مراد دَسخت خوف اوهيبت ناک منظر نه سترګوبريخيدل دی.

﴿وَخَسَفَ ٱلْقَمَرُ ﴾دويم هولناکی بيانيږی ،چې سپوګمۍ نه به الله ﷻ نور اورڼرا سلب کړی. 'خسف' نه دلته مراد بې نوره کول دی،معروفه معنی تندرنيول نه دی.

﴿ وَجُمِعَ ٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ ﴾دريم هولناک حالت بیان دی يعنی کله چې نوراو سپوږمۍ جمع کړی شی، (۱) نوراوسپوږمۍ جمع نه مرادیا دادې چې دواړه یوبل سره ټکراوخوری او کائنات نظام درهم برهم شی،(۲) یاداچې دواړه الله ﷻ دمغرب نه طلوع کړی،(۳)یادادواړه الله ﷻ بې نوره کړی الی غیر ذلک من الاقوال.

﴿ يَقُولُ ٱلْإِنسَـٰنُ يَوْمَئِذٍ ﴾ای یوم اذ تقع هذه الامور(روح)یعنی کومه ورځ چه دا امور واقع شی،چه هغه ورځ دقیامت ده،﴿كَلَّا﴾ردع دې،چه دفرارلاره بالکل نشته﴿ لَا وَزَرَ ﴾وزر پناه ګاه ته وائی یعنی هیڅ پناه ګاه نشته.﴿إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ ﴾یعنی تختیدل تختیدل نشته نن ورځ صرف دالله ﷻ په حضور اودرباز کښې حاضری اودخپلو سزاوجزا دپاره استقراردې.

﴿ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ ﴾(۱) قدّم نه مراد فعل دې،یعنی کوم عمل ئې چه کړې وی که خیروی او که شر، نو په خیر به ورته ثواب ورکولې کیږی،په شربه ورته عذاب، او د﴿وَأَخَّرَ ﴾ معنی ترک ده،یعنی ترک خیرئې کړې وی که ترکِ شر،نوپه اول به ورته عذاب ورکولې کیږی اوپه دویم به ورته ثواب.

(۲)یا﴿ قَدَّمَ﴾نه مرادهغه عمل دې چه پخپله ئې کړې وی که نیک وی که بد ، اود﴿ وَأَخَّرَ ﴾ نه مرادهغه عمل دې چه دې ئې ذریعه جوړه شوی وی نیک وی که بد ،لکه په حدیث کښې دی: مَن سنّ فی الأسلام سنّةً حسنةً کانَ له اجرهاواجرمن عمل بهابعده من غیران ینقصَ من اجورهم شیئ، و مَن سنّ فی الاسلام سنةً سیئةً کان علیه وزرهاووزرُمن عمل بهابعدهُ،من غیران ینقصَ من اوزارهم شیئ(مسلم وغیره).

(۳)یاد﴿قَدَّمَ ﴾نه مرادهغه مال دې چې خپل ژوندکښې ئې صدقه کړې وی او﴿وَأَخَّرَ ﴾نه مراد هغه مال دې وارث ته ئې پریښې وی،یا ئې وقف کړې وی.

﴿ بَلِ ٱلْإِنسَـٰنُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ ﴾ماقبل نه ترقی ده.چه انسان دعمل نه خبره ول خوصرف د اعزاز یا توهین لپاره وي، ورنه هرانسان پخپلو عملونو به پخپله ګواه او ښه خبر به وی.اګرچه ځان باندی به بیا ډیرې پردی اچوی،عذرونه به پیش کوی.لکه کافران به وائی واللّٰه ربّنا ما کنّا مشرکین ﴿بَصِيرَةٌ ﴾په معنی دَ بینة او واضحة سره دې،اوصفت دې دَموصوف محذوف دَ پاره، اي حجة بينة او « علی نفسه » جار مجرور "بصيرة" سره متعلق دی. او دا خبر دې دَ "الانسان" د پاره ﴿ مَعَاذِيرَهُۥ﴾جمع دَ"معذرة" پمعنی دَعذر

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تُحَرِّكْ | بِهِۦ | لِسَانَكَ | لِتَعْجَلَ | بِهِۦٓ ⑯ | إِنَّ | عَلَيْنَا | جَمْعَهُۥ |
| مه خوزه وه ته پدی قرآن ژبه خپله چه ته جلتی اوکړی په دی.بی شکه زمونږ په ذمه دی جمع کول ئیےپه سینه ستاکښی | | | | | | | | |
| وَقُرْءَانَهُۥ ⑰ | فَإِذَا | قَرَأْنَـٰهُ | فَٱتَّبِعْ | قُرْءَانَهُۥ ⑱ | | | | |
| اولوستل ئی په ژبه ستا،پس کله چه مونږاولولوقرآن په لسان جبرئیل نوته اتباع کوه دَهغه دلوستلو. | | | | | | | | |
| ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُۥ ⑲ | | | | | | | | |
| بیازمونږپه ذمه دی بیان دَمعانیوْدَدی قرآن | | | | | | | | |

﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهِۦ لِسَانَكَ ﴾ داجمله معترضه ده،پدیکښی دَقرآن مجید دَحفاظت بیان دې،په بخاری وغیره کښی دَحضرت ابن عباس رضی اللّٰه عنه نه روایت دې چه ابتداء کښی به کله حضور ﷺ باندی وحی نازلیده، نوحضور ﷺ به اوریدله هم، اوورسره به ئې په خولې وئیله هم، دَ دې خوف نه چه هیره رانه نشی، نو دا امرمشکل وؤ، نو اللّٰه ﷻ داآیاتونه نازل کړل، چه داخوف مه کوه چه قرآن به رانه هیر شی، ضائع به شی، دا زمونږ ذمه واری ده چه مونږ به ئی ستاپه سینه کښی محفوظه کوؤ، نو دَ وحی ختمیدلو نه مخکښی ئی مه وایه،کقوله تعالی: ولاتعجل بالقرآن من قبل ان یُقضیٰ الیک وحیهٗ. (طٰه).

﴿إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُۥ ﴾ یعنی دَدې قرآن جمع کول اومحفوظه کول ستاپه سینې کښی زمونږ ذمه واری ده،﴿وَقُرْءَانَهُۥ﴾قرآن دلته مصدردې پمعنی دَقراءة.یعنی ستاپه ژبه باندی لوستل هم

زمونږ ذمه واری ده، داسی به ئی درته اسان کړو چه کله هم ستاخوښه وی قرأت بې کولې شی﴿فَإِذَا قَرَأْنَٰهُ﴾یعنی چه کله په لسان دجبرئیل زمونږوحی تمامه شی نوبیائی لوله په ذهن کښ به دی راسخه شی، بعض وائی داتباع نه مراددَاوامراونواهی ؤاتباع ده

﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾یعنی دقرآن دمشکلومقاماتوتشریح. داحکاماتو وضاحت، داهم زمونږذمه واری ده، که تاته دیوآیت په معنی اومطلب ځان پوهول مشکل وی، نوسوال کولو کښ جلدی مه کوه، مونږ به ئې درته بیان کوؤ. گویاچه حضور ﷺ ته په حفظ اوپه مطلب باندی پوهیدلو دواړوکښ عجلت وؤ. دینه معلومه شوه چه حدیث دحضور ﷺ هم دالله ﷻ دطرفه الهام دې، پدی وجه دقرآن په شان ئې منل ضروری دی.

**دَ دې اياتونو دَ ماقبل سره ربط باره کښ دَ مفسرينو ډير اقوال دي:**

(۱)امام رازی رحمه الله فرمائی چه دادجملی معترضی په شان ده. او دَ قبیلی دتنبیه دمدرس نه ده، لکه په دوران دَ درس کښ یوطالب علم لیکل کوی، یا یوخوا بل خواگوری، نو مدرس ورته تنبیه ورکړی، چه اې طالبه اوس لیکل مه کوه، بلکه ماته متوجه شه، چه سبق ختم شی بیا به ئې اولیکی ، بیا دې نه پس مدرس خپل درس بیاشروع کړی، نو درس دَ مدرس مربوط وی، دغه شان احتمال دې چه حضور ﷺ په وخت دَ نزول دَ دې آیاتونوکښ دَ یادولو په نیت وحی لوستله نوپه عین وخت کښ ورنه منع کړې شو، او بیا دوباره دَ قیامت ذکر شروع شو چه ﴿كَلَّا بَلْ تُحِبُّونَ ٱلْعَاجِلَةَ﴾.

(۲)علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه دادَ﴿يُنَبَّؤُا۟ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍۭ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ یو وړه نمونه ده په دنیاکښ، یعنی څنگه چه الله ﷻ په دی قادردې چه خپله وحی دفرشتی دَ تگ نه ورستو په پوره ترتیب سره، متفردمتفردحرف، سره دمعانیؤمعارفودخپل پیغمبر علیه السلام په سینه کښ جمع کوی، نوهغه په دی هم قادردې چه دَ انسان نوی زاړه ټول عملونه راجمع کړی، انسان پری په قیامت کښ خبرکړی، اودغه شان دبدن خورې ورې ذرې په قیامت کښ را جمع کړی، انسان ترینه دوباره پیدا کړی(تفسیرعثمانی).

(۳)حضرت حسین علی الوانی رحمه الله فرمائی چې ماقبل سره مناسبت دادې چې دیکښ تسلی ده نبی کریم ﷺ ته، چې کله الله ﷻ په دې قادر دې چې انسان ته دمخکښ او ورستو

تول اعمالو خبروركړی، نوهغه پدې هم قادر دی چې دا قرآن ستا په سينه کښې جمع کړی، لهذا ته غم مه كوه (جواهر)

كَلَّا بَلْ تُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ ۝٢٠ وَتَذَرُونَ الْآخِرَةَ ۝٢١ وُجُوهٌ

چرته هم نه ده داسې، بلکه محبت ساتئ تاسو ددنیاسره، اوپرېږدئ يعنې ساتئ نه کوئ د آخرت، ځينې مخونه به

يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ ۝٢٢ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ۝٢٣

پدغه ورځ تازه وي خپل رب ته به کتونکي وي

وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ ۝٢٤ تَظُنُّ أَنْ يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ۝٢٥

او ځنې مخونه به پدغه ورځ تراوه وي يقين به کوي داچه اوبه کړې شي ددوی سره معامله ملاماتونکې سخته.

﴿ كَلَّا ﴾د پاره دَابطال دی (التحرير والتنوير) اودې تعلق د "ولو القى معاذيره" سره دی، يعنې که ډير معذرتونه اوکړی خو دا معذرتونه به ئې نه قبليږی.

﴿بَلْ تُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ ﴾ دا دَ ﴿ كَلَّا ﴾اجمال تفصيل دی، يعنې عذرونه به ئې ځکه نه قبلیږی چې دوئ دنيا پسې لګيدلی وؤ، او آخرت ئې پريخودلې وو.

﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ ﴾دابشارت اخروی دی، چه دَمؤمنانو مخلصانه مخونه به دقيامت په سخته ورځ کښې دَډيرې خوشحالئ په وجه تروتازه وی ﴿إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾يعنې دخپل رب ديداركونكی به وی، په ترمذی وغيره کښې دَابن عمر ؓنه روايت دی چه رسول اللهﷺ فرمائی: انّ ادنیٰ اهلَ الجنة منزلة لمن ينظرالی جنانه وازواجه ونعيمه وخدمه وسُررِه مسيرة الف سَنة، واكرمهم على اللهِ من ينظرالی وجهه غدوة وعشيةً، اهل جنت کښې به ادنی ترینه درجه د هغه کس وی چې هغه به ديو كال په مسافت خپل باغات، بيبيانې، خادمان، اوتختونه وينی، او تولو نه ګران به دَالله ﷻ هغه کس وی چې سحر ماښام دَهغه ديدار کوی، بيا حضور ﷺ دا آيت تلاوت كړو.

اهل السنت والجماعت دی ايت اودغه شان نوروآياتونه اواحاديثونه استدلال كوی چه مؤمنان به په جنت کښې دَالله ﷻديداركوی، معتزله وغيره ګمراه فرقې ورنه انکارکوی، ددی

تفصيل دَدی تفسیرپه دویم جلدصفحه نمبر(۴۵۱)کښ تیرشویدې هلته دی اوکتلې شی ﴿وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ ﴾تخویف اخروی دې چه دکافرانومخونه به دقیامت دَسختئ پوجه بی رونقه، بدشکله به وی.﴿ تَظُنُّ أَن يُفْعَلَ بِهَا ﴾ضمیر په "تظن" کښ راجع دې وجوهو دَ کافرانو ته، "ظن" پمعنی دَیقین دې،﴿فَاقِرَةٌ ﴾دَ "فقر" نه دې ملاهډوکی ته وائی اومراد ترینه لوئ عذابونه دی، یعنی دایقین به کوی چه اوس به ماسره داسی معامله کیږی چه ملابه می ماته وی، دَ ملاهډوکي دَټول بدن بادشاه دې چه دې مات شی نوټول بدن کارپریدی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَلَّا | إِذَا | بَلَغَتِ | التَّرَاقِيَ ﴿٢٦﴾ | وَقِيلَ | مَنْ | رَاقٍ ﴿٢٧﴾ |
| هرګزدنیاسره محبت مکوئ،کله چه اورسیږی روح مرئ ته اواوئیلې شی څوک دی.دم اچونکې،علاج کونکې | | | | | | |
| وَظَنَّ | أَنَّهُ | الْفِرَاقُ ﴿٢٨﴾ | وَالْتَفَّتِ | السَّاقُ | بِالسَّاقِ ﴿٢٩﴾ | إِلَىٰ رَبِّكَ |
| اویقین اوکړی مرکیدونکې چه داوخت دَفراق دې،اوتاؤشی یوه پنډئ دَبلی پنډئ سره،په طرف دَرب ستا | | | | | | |
| يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ ﴿٣٠﴾ | | | | | | |
| پدغه ورځ ورتلل دی. | | | | | | |

﴿ كَلَّا ﴾دیکښ ردع اوزجر دې دَدنیا په محبت یعنی دنیا محبت پریګدئ،مرګ درته راروان دې دهغې فکر اوغم اوکړی،﴿إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ﴾ضمیر دَ"بلغت"روح انسانی راجع دې چې حکماً مذکور دې "التراقی" جمع دَ "ترقوة"ده، دَمرئ هډوکی ته وائی،یعنی کله چې انسان خنکدن شروع شی اوروح ئې مرئ ته را اورسی او حالت ئې خرا ب شی.

﴿ وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ ﴾یعنی دی حالت کښ ده نه ګیر چاپیره ناست کسان چغې کړی، هلئ دم ګرې راولئ، زر کړئ طبیب راولئ ، «قیل» فعل مجهول څکه راوړلې شوې دې چې دې وخت کښ هائ هوئ وې دَ قائل پته نه لګی، «من راق»استفهام خپلې حقیقې معنی باندې محمول دې ، یعنی دم ګری څوک دې،چې راشی اودې دم کړې. یا استفهام دَ استبعاد او انکار دَ پاره دې، یعنی اوس به څوک دَ ده علاج اوکړی؟دې نشی بچ کیدلې.

﴿رَاقٍ﴾ دَ "رقیة" نه مأخوذ دي، دم کری ته وائی، دلته ورنه مراد مطلقاًمعالج دي، برابره خبره ده چې هغه دم کړي وي او که طبیب وی ، چونکه عربو کښې دمونو رواج ډیر وؤ، نوځکه "راق" ذکر اوشو. بعض وائی ﴿رَاقٍ﴾ دَ "الرُقی" نه مأخوذ دي ، "عروج" یعنی بره ختلو ته وائی، نو دا کلام دَ ملائکو دَ موت دي ، یعنی ملائک دَ موت به دَ موت په وخت کښې وائی،دَده روح اچتونکي څوک دي، دَ رحمة ملائکی به ئې پورته کوی او که دَ عذاب؟
په "من" باندی سکته ده، ځکه دغه وخت خلقو باندې هم رعب په وجه سکته وی، ساه ئې لنډیږی.

بهر حال جمهور مفسرینوپه نیز دَ "من راق" قائلین یو نوع کسان دي،چې هغه دَقریب المرگ خپل خپلوان دی اویا ملائک دی، البته دَحضرت شیخ غلام الله خان صاحب ﷫ په نیز دَ"من" قائل جدا دي اودَ"راق"قائل جدا دي، دَ"من"قائل خپل خپلوان دی چی دَانسان ځنکدن شروع شی، نو دوئ "من،من" شروع کړی،چې چاپسی ئې بوځو ،چرته ئې بوځو ،وغیره او "راق" قریب المرگ په خپله دي، یعنی دي به ورته اوائی چې څوک دم کړي را اوغواړئ، چونکه قائلین جدا جدا دی دي وجهې نه مینځ کښې سکته راغلې ده.

﴿وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ﴾ "ظن"پمعنی دَیقین دي،یعنی دامړي دغه وخت کښې یقین اوکړی چه بس اوس دی څوک بچ کولو والانشته،محبوبی دنیا،دَ دی دَخوندونواو د بال بچ اوبی بی، دوستانو نه دَ فراق وخت راغې،تعبیر دَ یقین نه په ظن سره ځکه اوشوچه ترڅودَانسان روح دَده په بدن کښې وی دې ترهغه وخته طمع کوی دَژوند ،دَوجی دَډیرمحبت نه،نویقین ئې نه راځی چه زه مرکیږم(روح).

﴿ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ﴾یامحمول دي په ظاهرباندی،چه دَمړی دَبدن نه روح اوځی، نو ځنې وخت دَډیری سختئ وجهې نه یوه پنډئ دَبلی پنډئ نه تاؤشی ،یوه دَبلی نه بیلول دَده په واک کښې نه وی،یاساق کنایه ده دَسختئ نه،یعنی یوه سختی دَبلی سره ضم شی،پرله پسیورباندی سختیانی راشی،دنیانه فراق یوه سختی،مرگ بله سختی، قبر بله سختی،بعث بله سختی،حساب کتاب بله سختی.﴿إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ﴾داد الله ﷻ طرف ته راونکی ورځ ده ،"مساق"مصدر میمی دي په معنی دَ"سوق"سره

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ۝ وَلَٰكِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ۝ ثُمَّ ذَهَبَ | | | | | | | | | | |
| پس نه ئى تصديق ،اوكړو اونه ئى مونځ اوكړو،بلكه تكذيب ئى اوكړواواعراض ئى اوكړو،بيالاړو | | | | | | | | | | |
| إِلَىٰ أَهْلِهِۦ يَتَمَطَّىٰٓ ۝ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ۝ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰٓ ۝ | | | | | | | | | | |
| خپل اهل ته تكبر كوى‌هلاكت دى وى تاله بيادى هلاكت وى بياهلاكت دې تاله بياهلاكت دې | | | | | | | | | | |

﴿فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ﴾دازجردې منكرينو دَحشرنشرته،ضميرپه دواړوخايونوكښې انسان ته راجع دې چه مذكوردې په﴿أَيَحْسَبُ ٱلْإِنسَٰنُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُۥ﴾كښې،چه مرادورنه مطلق كافرمكذب دې،يعنى دومره دلائلو ،وعظ ونصيحت اوتخويف وبشاراتو باوجود ده نه ايمان راوړلو او نه ئى شريعت احكامات اومنل.﴿ صَدَّقَ ﴾دَتصديق نه دې،يعنى تصديق ئى اونكړو په الله ﷻ،اوپه رسول الله ﷺ،اوپه قرآن ،اوپه قيامت،چه دااصول دَدين دى،﴿وَلَا صَلَّىٰ﴾ اونه ئى فروع اوكړل چه مونځ وغيره دى، بلكه ښه په ښكاره ئى ترينه انكاراواعراض اوكړو.

﴿ ثُمَّ ذَهَبَ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ ﴾يعنى كفراوعصيان باندى فخراوغروراوتكبرسره دَخپلو متعلقينو اوخپلوانوپه لورى ځى،اهل نه مراداهل مجلس دى﴿يَتَمَطَّىٰٓ ﴾مأخوذدې دَ"المط"نه په اصل كښې"يتمطط"دې،اى يتمدّد،تكبر په وجه اوږدو اوږدو قدمونو اغستلوته وائى،يادَ"مطا"نه دې، شا ته وائى،متكبر هم دَ تكبر په وجه شا كرخوى.

﴿ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴾"اولى"مقلوب دَ"ويل"دې، پمعنى دَهلاكت"اولى"مبتدادې"لک"ئى خبردې،يا"اولى"اسم تفضيل دې پمعنى دَاحسن،او،احرىٰ نو خبردې دَمبتدامحذوف اى النّاراولى لک،يعنى اوردَجهنم تادپاره ښه لائق اوښه دې(روح المعانى).

﴿ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰٓ ﴾تكراردَتاكيددپاره دې،ياپكښې څلورقسمه عذابونوته اشاره ده، اول عذاب دَمرګ،بياعذاب دَ برزخ،بياعذاب دَبعث،بياعذاب دَجهنم(قرطبى).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَنْ يُّتْرَكَ سُدًى ﴿٣٦﴾ اَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّنْ مَّنِيٍّ | | | | | | | |
| آیاگمان کوی انسان دَدی خبری چه پرې به خودلې شی بیکاره آیانه وو دا انسان یو څاڅکې پلیت دمنی | | | | | | | |
| يُّمْنٰى ﴿٣٧﴾ ثُمَّ | كَانَ | عَلَقَةً | فَخَلَقَ | فَسَوّٰى ﴿٣٨﴾ | فَجَعَلَ | | |
| چه غورځولې شو په رحم کښې بیا وو دې تکره دوینی نو الله ﷻ پیدا کړو بیائی برابر کړل اندامونه دده بیائی اوګرځولو | | | | | | | |
| مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى ﴿٣٩﴾ اَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يُّحْيِۦَ الْمَوْتٰى ﴿٤٠﴾ | | | | | | | |
| دَده نه دوه جوړې نارینه او ښځه، آیا ندې دغه ذات قادر پدې چه ژوندی کړی مړی ورستو د مرګ نه | | | | | | | |

﴿ اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَنْ يُّتْرَكَ سُدًى ﴾ دا هم زجر دې چې آیا دې داګمان کوی چې څه بې کار پیدا شوی یم، نه ورته دنیا کښې څه ذمه داری حواله شوې ده، او نه دَځه احکاماتو مکلف کړې شوې دې، او نه به ورسره آخرت کښې حساب کتاب کیږی، او دوباره به نه ژوندې کیږی.

﴿ اَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّنْ مَّنِيٍّ ﴾ دا په ثبوت دَقیامت او بعث بعد الموت باندی دلیلِ عقلی دې، او رد دې دَ مذکوره ګمان، چه آیا هغه ذات چه انسان ئې دَمرداری نطفی دَمنی پیدا کړیدې او برابر اندامونه ئې ورله ورکړیدی، او ښځه ئې نر او ښځه ئې پیدا کړې ده ، نو آیا دا دومره عظیم الشان نظام بې غرضه او بې مقصده پیدا دې؟ هرګز نه . بلکه د انسان تخلیق په دې ګواه دې چې دې بې مقصده نه دې پیدا کړې شوې ، د ده نه ضرور څه مطالبات شته دې ،او دمرګ نه بعد به ورنه د دې حساب کتاب کیږي ، او دې به دوباره ژوندې کیږي ، او کوم ذات چې اول ځل دې پیدا کړې دې هغه به ئې دوباره پیدا کوي، او هغه په دوباره پیدا کولو قادر دې ، «الیس ذلک بقادر » په حدیث کښې دی چه کله به حضور ﷺ دا آیت اولوستلو ، نو اووئیل به ئې «سبحانک اللّهم وبلیٰ» په یوروایت کښې دی چه څوک دا آیت الولی نو «بلیٰ» دی ورپسی اووائی.

| ركوعاتها (٢) | سورة الدّهر مدنية | آياتها (٣١) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دى سروع كوم | |

## ترتيبها حسب التسلسل (٧٦) وحسب النزول (٩٨)

نزلت بعدالرّعدوقبل الرّحمٰن، دى سورة ته سورة الانسان هم وائى

**ربط**: ماقبل سورة كښې مسئله دقيامت اوبعث بعدالموت باندى شواهدذكرشول، دى سورة كښې دامسئله علىٰ سبيل الترقى ذكركيږى چه دانسان وجودپخپله يوه نمونه ده دبعث بعدالموت چه انسان مودعدم نه دنطفى په ذريعه وجودته راوستلو، آلات داوريدلو، ليدلو موورته وركړل نو دانمونه ده چه الله ﷻ دى انسان په دوباره پيدا كولوباندى هم قادردې.

**خلاصه دسورة**: داول آيت نه ترآيت (٣) پورى دالله ﷻ قدرت يوه نمونه ذكركيږى، آيت (٤) تخويف اخروى دې، بيا ترآيت (٢٢) پورى بشارت اخروى دې، آيت (٢٣) ترغيب الى القرآن دې، آيت (٢٤) تسلى ده حضور ﷺ ته، آيت (٢٥، ٢٦) بيان دتوحيددې، او ذكر الهى دې، آيت ٢٧. ٢٨ كښې زجردې، او آيت ٢٩ نه ٣١ كښې دسورت لب لباب اوخلاصې بيان دې.

| |
|---|
| هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُنْ شَيْـًٔا |
| بيشكه راغلې دې په انسان باندى يووخت دزمانى نه داسې چه نه ووډې څه شئ |
| مَّذْكُوْرًا ﴿١﴾ اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ ۖ نَّبْتَلِيْهِ |
| قابل دذكر بې شكه مونږ پيداكړيدې انسان دنطفى مخلوطى دموراوپلارنه. چې ازمېښت اوكړو مونږ دده |
| فَجَعَلْنٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿٢﴾ اِنَّا هَدَيْنٰهُ السَّبِيْلَ اِمَّا شَاكِرًا |
| نواوګرځولومونږ دې اوريدونكې ليدونكې، بې شكه اوښودله مونږ ده ته سمه لاره، يابه دې شكركونكې شي |
| وَّاِمَّا كَفُوْرًا ﴿٣﴾ اِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَلٰسِلَا۠ وَاَغْلٰلًا وَّسَعِيْرًا ﴿٤﴾ |
| اويابه كفركونكې شي، بې شكه مونږتياركړيدى لپاره دكافرانوزنځيرونه اوطوقونه اواوردجهنم |

﴿ هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ ﴾دادَقدرت الهی یو ء نمونه ده په امکان دَبعث بعد الموت یعنی انسان دې خپل تخلیق باندې غوراوکړی ده باندې یوه زما نه داسې تیره شویده چې دَده پکښې هیڅ وجود نه وؤ،بیا الله ﷻ وجود ته راوستلو نوکله چې مړشی نوبیابه ئی هم دغه الله ژوندې کوی،ٔهلٔ دَپاره دَتحقیق پمعنی دَ قد سره دې،ٔالانسانٔ نه مراد جنس انسان دې.

﴿حِينٌ﴾ محدودزمانې ته وائی لګه وی اوکه ډیره،اودلته ترینه دنیاته راتلو نه مخکښې زمانه مراده ده،﴿الدَّهْرِ﴾غیر محدود زمانې ته وائی،یعنی دَ دهر یو زمانه پرې تیره ده.

﴿لَمْ يَكُن شَيْئًا مَّذْكُورًا ﴾جمله صفت ده ٔحینٔ اونفی دَقید ٔمذکوراٌ ده او ٔمذکوراٌنه مراد قابل ذکر او خاص شې دې،یعنی یقینا په انسان دَ دَهر یو داسې وخت هم تیر دې چې دیکښې څه خاص اوقابل ذکر شې نه وؤ، او دانسانیت په لقب نه یادیدلو ،بلکه چرته دَ عناصرو اربعؤو په صورت کښې، چرته دَ میوؤ او غذاګانو په ضمن کښې، او چرته دَنطفې په شکل کښې وؤ.

﴿خَلَقْنَا﴾دیکښې ئی دَتخلیق کیفیت ذکر کیږی﴿أَمْشَاجٍ ﴾صفت دې دَ ٔنطفةٔ جمع ده دَمَشج اختلاط په معنی کښې استعمالیږی،یعنی دَموراوپلار مخلوطی نطفې نه مودې پیداکړو.

**سوال**:امشاج جمع ده،اونطفه مفرد دې، اوموصوف صفت مطابقت ضروری دې په وحدت. تثنیه اوجمع کښې؟

**جواب**:(۱)یوجواب داورکړې شوې دې چې چونکه نطفه مختلفواجزا ومجموعه ده ، اوبیا دلته مراد دَبنځې اوخاوند دواړو نطفه ده، نوځکه ورله صفت جمع راوړلې شو.

(۲)دویم جواب داورکړی شوې دې چې ٔامشاجٔ جمع نه دې، بلکه ٔافعالٔپه وزن مفرددې لکه اعشار.

﴿نَّبْتَلِيهِ﴾ دې کښې مقصد دَتخلیق بیانیږی،یعنی عبث موندې پیداکړې،بلکه دَ خپلو احکاماتو مکلف خوګرځولې دې اودنیاکښې ئی آزمیښت کوؤ چې عمل کوی اوکه نه.

﴿ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴾ یعنی چو نکه مقصود دَ انسان تخلیق نه ،د ده ابتلاء ده، نو ځکه ورله سمع اوبصر قوت ورکړو، چې دَالله ﷻ وحدانیت دلائل پرې واوری او اوګوری، او دَ حق اخذ او فهم استعداد پکښې پیدا شی.

﴿إِنَّا هَدَيْنَهُ﴾ اوصرف په دی مو هم اکتفاء اونکړه ، بلکه ده نه مو سمه لاره هم اوښودله په ذريعې دَانبياؤو ، او آسمانی کتابونو ، اوس دَ ده مرضی ده چه شکرکونکې ګرځی يعنی ايمان راوړی اوکه ناشکره يعنی کفرکوی.﴿ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ﴾دواړه ياحال دی دَمفعول دَ ﴿هَدَيْنَهُ﴾ نه يا خبر دي ''کان''مقدر د پاره، تقدير دا رنګه دي، سواء کان شاکراً او کان کفوراً.

﴿إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ ﴾انسان ته تخويف دې چه کفورمه جوړيږه، ځکه چه مونږ په آخرت کښې دکافرانو لپاره ډيرسخت سخت عذابونه تيارکړيدی.

| |
|---|
| إِنَّ الْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا ۝ عَيْنًا |
| بې شکه نيکان څکی به دَشرابودکاسی نه چه وی به خلط دَهغی سره کافور،دابه يوه چينه وی |
| يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللَّهِ يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا ۝ يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ |
| چه څکی به دينه بندګان دَالله ﷻ،بيوی به ئی به بيولوسره،پوره کولودوی‌نيکان‌نذراوويريدل به |
| يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا ۝ وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا |
| دَهغی ورځی نه چه عذاب دَهغی خوردې او ورکوؤ به ئي خوراک په محبت دَالله تعالی کښې مسکين ته |
| وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا ۝ إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لَا نُرِيدُ |
| اويتيم ته اوقيدی ته،وائی دوئ بی شکه مونږخوراک درکوؤتاسوته لپاره دَرضادَالله ﷻ نه لرومونږاراده |
| مِنكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا ۝ إِنَّا نَخَافُ مِن رَّبِّنَا يَوْمًا |
| ستاسونه دَبدلی اونه دَصفت کولوبې شکه مونږ يريږودَخپل رب نه دَداسی ورځی |
| عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا ۝ |
| چې دَغم دکه اواوګده ده |

﴿إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ﴾ دې کښې بشارت دې شاکرينوته.چې دوئ به جنتونو کښې مزې د عيش وعشرت کوی، او داسې شراب به وربانديې څکولې کيږی چې هغې کښې به د کافوروچينې اوبه ميلاوې شوې وی،﴿مِن كَأْسٍ﴾دَشرابوډکې پيالې ته وائی . اوکله نې اطلاق په شرابوباندې هم کيږی،دلته دواړو معنی اغستلې کيدې شی او`من`دَپاره دَتبعيض دې اې بعض کاس، دې کښې اهل جنت عيش وعشرت طرف ته اشاره ده چې داشراب دَ خوند لو مستئ نه څکی،تندې دَوجهې به نه څکی،لکه دنيا کښې دَ مستو اومالداره خلقو عادت وی﴿مِزَاجُهَا كَافُورًا﴾دَدې جملې متعدد تفسيره شوی دې:

(۱)`کافور`چينه ده په جنت کښې، چې دَ هغې اوبه په رنګ اوخوشبو کښې دکافوروپه شان دې نودهغې اوبه به دې شرابو کښې ميلاوولې کيږی،دې صورت کښې ورستونې آيت کښې را روان `عينا`بدل دې دَ کافوراً نه.

(۲)کافور نه حقيقتاً کافور مراد دې الله ﷻ به په دې شرابو کښې کافور ميلاو کړی (او دا جنت کافور دې چې دَ هرقسم نقصان اوضرر به پاک نه وی)، اوبيا پرې دَ مشکو مهر اولګوی، اوجنتياتو ته به پيش کولې کيږی.

(۳) حقيقتاً به دَ کافورآميزش هډو سره وی نه،خو چونکه داشراب به په صفائی ، رنګت، او خوشبوئی کښې دکافور په شان وی، نودې اوصافو سره اتصاف دَوجهې نه وربانديې اطلاق دَ آميزش اوشو،دې دواړو صورتونو کښې`عينا`بدل دې،دَ`من کاس`محل نه.

﴿يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ ٱللَّهِ﴾`شرب` فعل بلاواسطه حرف جر متعدی کيږی، خودلته چونکه تلذذ اومزج معنی ته متضمن دې، نو ځکه ورنه ورستو `باء` ذکر شويده،اې يشرب متلذذا بها وممزوجاً بها،يعنی نيکان به دا شراب چې دکافورو اميزش پکښې وی په خوند اومستئ سره څکی، جمله صفت ده دَعيناًدَپاره.

﴿يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا﴾دابل صفت دې دَ﴿عَيْنًا﴾يعنی چه مؤمنان ئې کوم طرف ته غواړی بوځی به ئې،بطوراکرام په دغه چينه دَدوئ تابع وی.

﴿يُوفُونَ بِٱلنَّذْرِ﴾ علت دې دَماقبل چه دوئ ته دانعمتونه ولې ملاويږي.او دَ ابرارو اوصاف ذکر کيږي چې هغه دَدې نعمتونو ميلاويدلو سبب ګرځيدلى دې. وفائ نذر دائى اول صفت دې، او دا کنايه ده دَ ادا کولو دَ ټولو واجباتونه.بعض وائى نذر نه مراد عهد دې. يعنى وعدى پوره کوى،عام ده که خلقو سره وى اوکه الله ﷻ سره وى، چه هغه دَشريعت احکام پوره کول دى،په ازل کښ چه ورنه کومه وعده اخستې شوې وه

﴿وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُۥ﴾ دويم صفت دې دَعباد الله ، چې هغه خوف آخرت دې، شر نه مراد عذاب دې، ﴿مُسْتَطِيرًا﴾ خور وور ، دَ استطار نه دې ،اوسين اوتادَپاره مبالغې دى.

﴿وَيُطْعِمُونَ ٱلطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِۦ﴾ دائى دريم صفت دې چې ايثار دې، ضمير يا طعام ته راجع دې، نومطلب دادې چه خپل محبوب طعام مسکين ته يتيم او اسير ته ورکوى، ګويا چه لن تنالوا البرّحتّى تنفقوا مما تحبّون باندې عمل کوى، ياضمير الله ﷻ ته راجع دې يعنى دَ الله ﷻ دَ محبت ،رضا د پاره طعام ورکوى،رياء اوشهرت ئې مقصد نوى ﴿أَسِيرًا﴾ نه مراد قيدى هم کيدې شى اوغلام هم، دَ صحابه کراموطرزعمل دَدوئ سره دَچانه مخفى نه دې،نبى کريم ﷺ چې کله دَبدر اسيرانو صحابؤو ته سپارل نودَهغوئ سره دَښه سلوک وصيت به ئې ورته هم کولو،خپله دَبدراسيرانو بيان دې چې صحابؤو سر به غنمو روټئ نه وه،خوکه چاچرته نه پيداکړه نوهغه به خپله نه خوره،مونږ له به ئې راکوله،اودغه شان جال بلکه دَدينه هم ښه سلوک دَغلامانو سره وؤ،دَعهد اول لوئ علماء اوګوره، نواکثر پکښ موالى«غلامان»دى، صحابؤو به لباس وخوراک کښ خان سره برابر ساتل، اوخپل خدمت به خائ ئې دينى تعليم ته فارغه کړى وؤ.

﴿إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ ٱللَّهِ﴾ جمله حال دې دَفاعل دَ﴿وَيُطْعِمُونَ﴾نه قائلين پکښ مقدر دې، يعنى دَدوئ دَاخلاص دَعلاماتونه داظاهرېږي چه دوئ به لسان حال سره وائى چه مونږتاسو ته صرف دَالله ﷻ دَرضادپاره خوراک درکوؤ،نه درنه بدله غواړونه شکريه،چه زمونږصفت اوکړئ، بلکه زمونږخيرات صرف دَقيامت دَورځې دَسختئ نه بچ کولودپاره دې ، مونږ دَ هغې ورځې دَسختئ نه يريږو ،حضرت عائشه صديقه ﷺ به چه چاته صدقه ورکړه نوکه هغه به ورته

څه دعااوکړه، نودې به ورته هم هغه شان دعا اوکړه، په دې نيت چه دُعابه دُعاپه بدله کښې شي اوثواب دَصدقې به الله ﷻ سره باقي پاتې وي.

﴿ يَوْمًا عَبُوسًا ﴾ عبوسا شوندې تریولوته وائي ،اواسنادئې یوم ته مجازي دې یعني داسې ورځ چې پدیکښې به ډیرې سختې پریشانئ وجهې نه کافر سرې به شونډې تریو اووران نیولې وي ﴿قَمْطَرِيرًا ﴾ابن عباس ﷺ ئې معنې طويلا سره کړیده ،اوبعضوئې معنې تریوتندې سره کړیده.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَوَقٰىهُمُ | اللّٰهُ | شَرَّ | ذٰلِكَ | الْيَوْمِ | وَلَقّٰىهُمْ | نَضْرَةً | وَّسُرُوْرًا | ⑪ |
| پس وبه ساتي | دوئ | لره الله | دَعذاب | دَدغې ورځې | اووربه کړي | دوئ ته | تازګي | اوخوشحالي. |
| وَجَزٰىهُمْ | بِمَا | صَبَرُوْا | جَنَّةً | وَّحَرِيْرًا | ⑫ | مُّتَّكِـِٕيْنَ | فِيْهَا | |
| اوبدله کښې به ورکړي دوئ ته | په سبب | دَصبردَدوئ | جنت | اوریښمي لباس. | | تکیه وهونکي به وي | په جنت کښې | |
| عَلَى الْاَرَآىِٕكِ | لَا يَرَوْنَ | فِيْهَا | شَمْسًا | وَّلَا | زَمْهَرِيْرًا | ⑬ | وَدَانِيَةً | عَلَيْهِمْ |
| په تختونوباندې | نه به وینې | پکښې | نور | اونه | یخنې | | اونږدې به وي | په دوئ |
| ظِلٰلُهَا | وَذُلِّلَتْ | قُطُوْفُهَا | تَذْلِيْلًا | ⑭ | | | | |
| سورې دَهغې | اوتابع شوي به وي | میوې دَهغې | په تابع کیدلوسره | | | | | |

﴿فَوَقٰىهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ﴾دابشارت دې چې متفرع دې په ماقابل صفاتوباندې،یعني دَدوئ دَخوف دَوجهې نه به الله ﷻ دوئ دَدې ورځې عذاب نه محفوظ کړي﴿وَلَقّٰىهُمْ نَضْرَةً وَّسُرُوْرًا ﴾ دَدې ورځې پریشاني اوغم جنئ په بدله کښې به ورله الله ﷻ تازګي اوخوشحالي ورکړي.﴿وَجَزٰىهُم بِمَا صَبَرُوا ﴾یعني دَطاعاتوپه تکلیفونودَنفس خواهشاتوپریښودلو اودَ محرماتو نه اجتناب کولوباندې صبرپوجه به ورته الله ﷻ جنت ورکړي،ریښمي لباس به ئې اچولې وي،دَجنت په پالنګونوبئ تکیه ګاني لره ولې وي،نه به ئې ګرمي کیږي نه ساړه.

﴿لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا﴾نه مراد اثرلازم حرارت دي او﴿ زَمْهَرِيرًا ﴾يخني ته وائي يعنى جنت موسم به متعدل وى نه به پكښې گرمي وي اونه يخني،بعض مفسرين وائي چې شمسا نه مراد پخپله نور دي، او زمهرير نه مراد سپوږمئ ده لکه قبيله طئ په لغت كښې ورته وئيلى كيږي. او مطلب دادې چې جنت به په خپله روښانه وي نه به سپوږمئ ته محتاج دى او نه نور ته او بعض مفسرينو دُ شمسا نه نور اوزمهرير نه يخني مراد اغستې ده، او وائي چې كلام كښې صنعت احتباک دې اي لايرون فيها شمسا و لا قمرا،ولا حرًا و لا زمهريرا

﴿وَدَانِيَةً ﴾عطف دې په «متكئين» باندى اوحال دې، يعنى دَدوئ په مجلس باندې به دَ ونو څانگې راټيټې شوې وى،چې هغې سره به ئې دَمجلس حسن اوسرور دوبالا وى، ظلال سورى ته وائى، او دَ سورى نيزديكت اوټيټدل نه دې مراد ،بلكه كنايه ده دَ څانگو ټيټيدلو نه، نو څانگو باندې ظلال اطلاق شويدې،يا دانية صفت دې دموصوف محذوف "جنة"اي وجنة دانية اوداعطف دې په جنة باندې په «وجزاهم بما صبروا جنة» كښې، يعنى الله ﷻ به ورله يوبل جنت وركړى چې دهغې به داكيفيت وى،كماقال الله تعالى: ولمن خاف مقام ربه جنتان(الرحمن)

﴿ وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا﴾اوداڅانگې به دومره راټيټې وى چې دَدې نه دَميوې راشكول به بالكل آسان وى، هيڅ مشكل اوتعب به پكښې نه وى.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيُطَافُ | عَلَيْهِمْ | بِآنِيَةٍ | مِّنْ | فِضَّةٍ | وَّأَكْوَابٍ | كَانَتْ | قَوَارِيرَا ۞ | قَوَارِيرَا | |
| اوگرځولي | به | شى | پدوئ | لوخى | دَسپينوزرو | اوگلاسونه | چه | هغه | به شيشى وى شيشى |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | فِضَّةٍ | قَدَّرُوهَا | تَقْدِيرًا | ۞وَيُسْقَوْنَ | فِيهَا |
| دَسپينوزرو به وى په اندازه كړى به ئې وى هغه جامونه په پوره اندازه كولوسره،اوڅكولې به شى پدوئ په جنت كښې | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَأْسًا | كَانَ | مِزَاجُهَا | زَنْجَبِيلًا ۞ | عَيْنًا | فِيهَا | تُسَمَّى | سَلْسَبِيلًا ۞ |
| پياله دَشرابوچه وى به خلط هغى سره عرق سونټه،داپوه چينه ده په جنت كښې نوم ورته وئيلى شى سلسبيل. | | | | | | | |

﴿وَيُطَافُ عَلَيۡهِم بِـَٔانِيَةٖ مِّن فِضَّةٖ﴾يعنى په دوئ باندى دَسپينو زرو په لوخوكښ طعـ
شراب پيش كولې كيږى، اوداسى گلاسونوبه وى چه شيشه به ئې دسپينو زرو نه جوړه وى، نو
دَ سپينو زروپشان به چمک داراوسپين هم وى اودَشيشى په شان به پكښ دبهرنه باطن هـ
ښكارى، دَ دنيايوه كارخانه هم داسى نشى كولې چه دَسپينو زرو نه داسى گلاس جوړكړى چه
دَشيشى په شان پكښ بهرنه څيزښكارى.
دَدى آيت اودَسورة زخرف(۷۱)وَيُطافُ عليهم بصحافٍ من ذهبٍ په مابين كښ منافاة نشته.
ځكه چه كله به ورته دَسروزرو په لوخوكښ اوكله به ورته دَسپينوزروپه لوخوكښ شراب
وركولې كيږى.

﴿قَدَّرُوهَا تَقۡدِيرٗا﴾ضميرمرفوع ياساقيانو دَجنت ته راجع دې، نومطلب دادې چه دوئ به
داگلاسونه په هغه اندازه ډک كړى وى چه جنتيان پرى سيرابه كيږى، نه به لږ وى چه تږى پاتى
شى، نه به زيات وى چه زړه ئې ترينه موړشى،بلكه چه څومره ئې زړه غواړى په هغه اندازه به
پكښ شراب وى ، يا ضميرجنتيانوته راجع دې،نومطلب دادې چه دوئ پخپلوزړونوكښ
كومه اندازمقرركړې وه اودَ كوم مقداراشتهائى وه په هغه اندازه به ورته پيش كولې شى،نه
زيات نه كم (كبير،روح).

﴿وَيُسۡقَوۡنَ فِيهَا كَأۡسٗا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا﴾دابل قسم شراب به ورباندى څكولې كيږى، چه
ديكښ به زنجبيل خلط شوى وى. "زنجبيل"سونټه(ادرک)ته وائى،داگرم وى،دَدى په خلط سره
يو مزيدار تريخ والې پيداكيږى، دغه شان دَعربودامرعوب څيزوو،نومطلب دادې چه
جنتيانو باندى به يوقسم يخ شراب څكولې كيږى چه كافوربه پكښ ملاؤوى،بل قسمه گرم
شراب چه زنجبيل به پكښ وى، بعضِ وائى زنجبيل په جنت كښ يوه چينه ده،مقربين به ورنه
څكل كوى نودى قول په بناء﴿عَيۡنٗا فِيهَا تُسَمَّىٰ سَلۡسَبِيلٗا﴾بدل دې دَ﴿زَنجَبِيلًا﴾نه،يعنى دازنجبيل په
جنت كښ يوچينه ده چه سلسبيل نوم ئې دې،ديته ځكه سلسبيل وائى چه سلسبيل معنى ده،
صافى بهيدونكى، اوپه حلق كښ اسانئ سره تيريدونكى ،دابه هم په حلق كښ په آسانئ سره
تيريږى،اول قول په بناء﴿عَيۡنٗا﴾بدل دې دَ﴿كَأۡسٗا﴾نه،نومطلب دادې چه جنتيانوباندى به
دَچينى دَشرابونه شراب څكولې كيږى چه هغى چينى ته سلسبيل وائى.

| |
|---|
| وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ ۚ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ |
| اوګرځي به چاپیره پدوئ هلکان همیشه به وي هلکوالي دهغوئ کله چه ووینې ته هغوئ نوګمان به کوې يرې |
| لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا ﴿١٩﴾ وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ﴿٢٠﴾ |
| دملغروخوروکړي شوو اوکله چه ته ووینې هغه ځائ نواوبه وینې ته نعمت اوبادشاهي لويه |
| عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ ۖ وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ |
| وي به په دَدوئ جامې دباريکوريښمو شنې اودغټوريښمو اواغوستولې به شي دوئ ته بنګرې دسپينوزرو، |
| وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا ﴿٢١﴾ إِنَّ هَٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَاءً وَكَانَ |
| اواوبه څکوي به دوئ رب دَدوئ شراب پاکيزه‌بې شکه داده ستاسوبدله اووز |
| سَعْيُكُم مَّشْكُورًا ﴿٢٢﴾ |
| عمل ستاسومقبول(الله ته). |

﴿وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ ﴾يعنې دَدوئ دَخدمت دپاره به داسې هلکان پدوئ ګرځي چه په صفت دَولدانيت به همیشه وي، يعنې همیشه به هلکان وي. او داسې ښکلي به وي چه جنتي ته به دَخوروملغروپشان ښکاري، دَملغروسره ئې مشابهت په حسن اوجمال کښې دے، او خورو ملغرو سره پدې وجه چه دوئ به يوطرف بل طرف ته دَخدمت دپاره خواره وي، نوداسې به ښکاري لکه خورې ملغرې.

﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ ﴾ ثَمَّ ظرف دې پمعنی دَهناک، مفعول فيه دې دَ رأيتَ مرادورنه جنت دې، يعنې چه کله ته دغه ځائ ووینې يعنې جنت﴿رَأَيْتَ نَعِيمًا ﴾ئې جزاءده، نواوبه وینې ته بې شماره نعمتونه چه صفت ئې نشي کيدې، ﴿وَمُلْكًا كَبِيرًا ﴾يعنې ډيره لويه بادشاهي، د رقبې لحاظ سره هم، چه دَ يوادنې مرتبې والاجنتي به پخپلې بادشاهئ کښې زرکاله مسافت کوي، دَ هيبت او وقار لحاظ سره هم ،چې فرشتې به هم دَده اجازت بغير جنت ته نشي داخليدې، دَ قدرت اعتبار سره هم، چې څه غواړي فوراًبه هغه اوشي.

﴿وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ﴾ په سورة كهف(۳۱) كښې مِن اساورمن ذهب دى. دواړو مابين كښې منافاة نشته ځكه ممكنه ده چه دواړه قسمه كالى به ورته ورا چولې كيږى په يو ځل. يا به يو قسم اوباسى بل قسم به واچوى، دغه شان چاته به دسروكالى چاته به دسپينو كالى وراچولې كيږى، رغبت په لحاظ سره يامرتبى په لحاظ سره. چونكه په جنت كښې به كالى اچول عيب نه وى بلكه زينت به وى، نو ځكه به سړوته هم اچولې كيږى. لكه دامشاهده چه دنيا كښې هم بعض بادشاهان كالى اچوى دسروزرو تاجونه په سره وى.

﴿وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا﴾ دابل قسم شراب دى چه دمخكښې دوؤ قسمه شرابونه اعلى دى. طهوراً يامبالغه ده د طاهر يعنى ډيرپاك شراب به وربا ندى الله ﷻ اڅكوى چه نه به پكښې چكر وى نه دردسر (كمافى الصفت، والواقعه) يا طهوراً پمعنى د مطهر دې، يعنى پاكونكى شراب، چه جنتيان ئى دخوراك نه ورستو اوڅكى نو ګيډى به ورله صفاكړى. دبدن نه به ئي خوله رااوځى چه خوشبوبه ئي د مشكو په شان وى، هرڅه به ئى هضم شى، مقاتل رحمه الله وائى چه دې شرابوڅكلوسره په زړه دخيانت، حسد، دهوكى وغيره ګناهونونه صفا شى، او زړه به دبل خيزدمحبت نه صفاشى(روح، كبير).

﴿إِنَّ هَٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَاءً﴾ يعنى دالوئ لوئ نعمتونه ستاسو داعمالِ صالحه بدله ده، او ستاسو كوشش عندالله مقبول دې، الله ﷻ ترې راضى دې، داخطاب د الله ﷻ د طرفه به جنتيانو ته وى، يعنى دخول جنت نه بعدبه ورته دغه اوويلى شى، نوپدى سره به ئى په سروركښې نوره هم اضافه اوشى، روايت دې چه حضور ﷺ داسورة تلاوت كولو يوحبشى ناست وؤ، حضور ﷺ چه تردې ځايه رااورسيدلونوهغه كس اورپيدلواوساه ئى اووتله مړ شو، نو حضورﷺ او فرمائيل: چه ستاسو ملګرې دجنت دشوق نه مړشو.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّا | نَحْنُ | نَزَّلْنَا | عَلَيْكَ | الْقُرْآنَ | تَنزِيلًا ﴿۲۳﴾ | فَاصْبِرْ | لِحُكْمِ | رَبِّكَ |
| بې شكه | مونږه | نازل | كړيدې په | تاباندې | قرآن په | نازولوسره، | نوصبركوه حكم | درب خپل |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تُطِعْ | مِنْهُمْ | آثِمًا | أَوْ | كَفُورًا ﴿۲۴﴾ | |
| اوتابعدارى | مكوه | ددوئ | نه | دګنهګار | اوناشكره | |

﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ ٱلْقُرْءَانَ ﴾داترغيب دي اتباع دقرآن ته.چه بى شكه مونږنازل كړيدي په تاباندي اې پغمبره داقرآن،نه قول دساحردي نه دكاهن.نه شعردي،بلكه حق كلام دي،وعدي دده اووعيدونه ئى حق دى،اتباع كونكى به ئى دآخرت نعمتونه اوكاميابى حاصله كړى،مخالفت كونكى به ئى جهنم ته ځى.

﴿ فَٱصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ ﴾داتسلى ده حضورﷺته،چه داكافران دقرآن اتباع نه كوى اوتاته تكليفونه دركوى،نوته صبركوه اودالله ﷻ دفيصلى انتظاركوه.هغه چې ستاپه نصرت كښ څه تاخيركوى،نوپه هغى كښ ئى حكمت دي.﴿وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ ءَاثِمًا أَوْ كَفُورًا ﴾ آثم گنهګارته وائى او كفور كفركونكى ته،يعنى ددى دواړه قسمه خلقوكښ دچاهم اطاعت مكوه،

| |
|---|
| وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٢٥﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهُ وَسَبِّحْهُ |
| اوياده وه نوم درب خپل سهاراومابنام اوځه حصى دشپى كښ نوسجده كوه الله ﷻ ته اوپاكى بيانوه دالله |
| لَيْلًا طَوِيلًا ﴿٢٦﴾ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ يُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُونَ وَرَاءَهُمْ يَوْمًا |
| په شپه اوږده كښ.بى شكه داخلق محبت كوى دنياسره اوپريږدى ورستودخپل ځان نه ورځ |
| ثَقِيلًا ﴿٢٧﴾ نَحْنُ خَلَقْنَاهُمْ وَشَدَدْنَا أَسْرَهُمْ وَإِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَا |
| درنه(قيامت).مونږپيداكړيدى دوئ اوكلك كړيدى مونږبندونه ددوئ اوكله چه اوغواړومونږبدل به راوړو |
| أَمْثَالَهُمْ تَبْدِيلًا ﴿٢٨﴾ |
| ددوئ په شان په بدل راوړلوسره. |

﴿وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ ﴾صبر نه بعد ذكر الهى حكم دي، چې دا صبر د پاره معاون اوممددي كمالي قوله تعالى،ولقدنعلم انك يضيق صدرك بما يقولون فسبح بحمدربك وكن من السّٰجدين (الحجر،٩٧، ٩٨) يعنى د مسلسل تكذيب،ركاوټونواواستهزادوجهى نه انسان خامخا پريشانه اوبې حوصله كيږى.لهذادي علاج دادي چې ذكر الهى كښ مستغرق اوسه، او هر

وخت الله ﷻ یادوه ﴿بُکۡرَةً﴾سهارته وائی،﴿ وَأَصِیلاً ﴾مابنام ته. اوداکنایه ده ددوام نه . و بعض مفسرین فرمائی چې دَ بکرةً نه مراددَفجرمونځ دې اودَ اصیلاً نه مراد ـ ظهر ـ عصردې. او دَ﴿وَمِنَ ٱلَّيۡلِ فَٱسۡجُدۡ لَهُۥ ﴾نه دَمغرب اوعشاء مونځ مراددې﴿وَسَبِّحۡهُ لَيۡلًا طَوِيلًا ﴾نه مرادتهجددې

﴿إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّونَ ٱلۡعَاجِلَةَ ﴾دازجردې منکرینودَقیامت ته اودنیاسره محبت کونکو ته، آخرت نه غفلت کونکوته،چه دوئ خودنیاخوښه وی لیکن دوئ پسې خوورسته سخته درنه ورځ راروانه ده.

﴿نَّحۡنُ خَلَقۡنَٰهُمۡ وَشَدَدۡنَآ أَسۡرَهُمۡ ﴾اسر په اصل کښ ترړلو ته وائی،اطلاق ئې په ترړلی شوی څیزباندی کیږی،مرادورنه دلته بندونه دَاعضاؤدی، چه په اعصابو او رګونو سره مضبوط اوکلک ترړلی شویدی(روح). ﴿وَإِذَا شِئۡنَا بَدَّلۡنَآ أَمۡثَٰلَهُمۡ ﴾یعنی که مونږاوغواړونودوئ به هلاک کړونورخلق به پیداکړودَدوئ په بدل کښ،چه دَالله ﷻ اطاعت کونکی به وی،یادَ﴿ أَمۡثَٰلَهُمۡ﴾ معنیٰ(اشکالهم) ده،یعنی دَدوئ شکلونه به مسخ کړو ،بدل به ئې کړو.

| |
|---|
| إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذۡكِرَةٌ ۖ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ۝٢٩ وَمَا تَشَآءُونَ |
| بې شکه داقرآن نصیحت دې،نودَچاچه خوښه وی اودی نیسی خپل رب طرف ته لاره.اونشئ خوښولې تاسو |
| إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ۝٣٠ يُدۡخِلُ |
| مګرچه اوئې غواړی الله ﷻ بې شکه الله ﷻ ښه پوهه اوښه حکمت والا دې داخلوی |
| مَن يَشَآءُ فِي رَحۡمَتِهِۦۚ وَٱلظَّٰلِمِينَ أَعَدَّ لَهُمۡ عَذَابًا أَلِيمَۢا ۝٣١ |
| هغه څوک چه ئې اوغواړی په رحمت خپل کښ،اوظالمان چه دی تیارکړیدې الله ﷻ دوئ لره عذاب دردناک |

﴿إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذۡكِرَةٌ﴾دې آیاتونو کښ دَسورت غرض اولب لباب ذکر کیږی. یعنی داقرآن نصیحت دې،نودَچاچه خوښه وی دادی خپل رب ته دَرسیدلولاره اوګرځوی،البته

داالله ﷻ په خوښه او توفيق سره کيږي، الله ﷻ د خپل علم او حکمت په بنا چه چاته ئې خوښه شي د نصيحت اخستلو د پاره ورته توفيق ورکړي.

﴿يُدۡخِلُ مَن يَشَآءُ﴾ دا بشارت دي مؤمنانو ته چه کوم خلق الله ﷻ ته انابت کوي الله ﷻ ئې خپل رحمت کښې داخلوي يعنې د قبول حق او د ثابت قدمۍ توفيق ورکوي ﴿وَٱلظَّٰلِمِينَ﴾ تخويف دي کافرانو ته، منصوب دي على شريطة التفسير، اى: اعد الظالمين اعدلهم عذابا اليما، يعنى الله ﷻ کافرانو د رناک عذاب تيار کړيدي.

| ركوعاتها (٢) | سورة المرسلات مكيّة | اٰياتها (٥٠) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٧٧) وحسب النزول (٣٣)**

نزلت بعد سورة الهمزة و قبل سورة ق

**ربط**: ماقبل سورة کښې په بعث بعد الموت باندې دَانسان وجود به طورِنمونه ذکرشو، دې سورة کښې به طورِ ترقي دَثواب عقاب نمونه بيانيږي چه په دنياکښې عذاب ورکول په قيامت کښې دَعذاب ورکولو نمونه ده ﴿أَلَمْ نُهْلِكِ الْأَوَّلِينَ ۝ ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْآخِرِينَ﴾.

**خلاصه**: ابتداء کښې شواهد دي برائ دعوه، يعني په اثبات دَقيامت، بيا پرې دوه (٢) دلائل عقليه دي درميان کښې تخويف اخروي او بشارت دې آخر کښې زجر دې (تمت).

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْمُرْسَلٰتِ | عُرْفًا | ۝١ فَالْعٰصِفٰتِ | عَصْفًا | ۝٢ |
| قسم دې په هغه هواګانو چې الوتونکی دي په نرمئ سره، بيا قسم دې په هغه هواګانو چې الوتونکی دي په تيزئ سره | | | | |
| وَّالنّٰشِرٰتِ | نَشْرًا | ۝٣ فَالْفٰرِقٰتِ | فَرْقًا | ۝٤ |
| قسم دې په هغه هواګانو چه خوره ونکی دي په خوره ولو سره، بيا قسم دې په هغه هواګانو چې جدا کونکی دي په جدا کولو سره | | | | |
| فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا | ۝٥ عُذْرًا | اَوْ نُذْرًا | ۝٦ اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ | ۝٧ |
| بيا قسم په هغه هواګانو چه القاکونکی دي دَنصيحت لپاره دَعذر يا دَ ډيريدلو بې شکه هغه چه تاسو سره ئې وعده کولېشې خامخا واقع کيدونکي دي | | | | |

﴿وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا﴾ دا شاهد ذکر کيږي په دعوى دَسورت، چې هغه دَ هواګانو نظام او د هغې مختلف اصناف دي.

«المرسلٰت» دا اول قسم دې، موصوف ئې محذوف دې اي الرياح المرسلٰت ، «عرفا» حال دې به معنی دَ متتابعة سره، يعني قسم دې په هغه هواګانو چې مسلسل چليږي، يا په معنی دا لينة سره دې، يعني نرمئ سره چليدونکې،

﴿فَٱلْعَٰصِفَٰتِ عَصْفًا ﴾دویم قسم دی، دینه مراد طوفانی هواګانی دی چې تباهی خوروی.

﴿وَٱلنَّٰشِرَٰتِ نَشْرًا ﴾دریم قسم دی،دینه مراد هغه هواګانی دی چې وریځی خوره وی.یاپه نرمۍ سره چلیږی.

﴿فَٱلْفَٰرِقَٰتِ فَرْقًا ﴾څلورم قسم دی ،اودینه مراد هغه هواګانی دی چې وریځی جداکوی،لکه عموما دباران کیدلونه ورستو چې کومې هواګانې وی.

﴿فَٱلْمُلْقِيَٰتِ ذِكْرًا ﴾پنځم قسم دی، اودینه مراد هغه هواګانی دی چې انسان ته نصیحت ورکوی، اوالله ﷻ طرف ته ئی متوجه کوی.﴿عُذْرًا ﴾مفعول له دی. یعنی کله انسان ته دخپلو تقصیراتو اوکوتاهیانو یاددهانی کوی اوعذر اومعافی ته ئی متوجه کوی،﴿نُذْرًا﴾اوکله انسان په زړه کښې دالله ﷻ خوف پیدا کوی،لکه چې کله تیزی وی.

﴿إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَٰقِعٌ ﴾داجواب قسم دی، اودعوه دسورت ده،قسم اوجواب قسم کښې مناسبت دادې چې لکه څنګه چې هواګانو مختلف قسمونه دي . ځنې هواګاني نرمې دي، او د کائنات د نظام قیام سبب دې، او ځنې هواګاني طوفاني دي . او د کائنات خرابئ ذریعه ده، چې دا راشي نو نظام درهم برهم کړی،اونې اوغورځوی،دیوالونه کورونه ورسره وران شی، مواصلاتی نظام برباد شی،نو دغه شان د جهان هم دوه قسمه دي . یو دنیا او بل آخرت ،دنیا چې څومره عمر الله ﷻ لیکلې دي ، چې هغه پوره کړي ، نو بیا به قیامت برپا کیږی اوداټول نظام به تس نس کیږی.اولکه څنګه چې ځنې هواګانی نرمې اوفائده مندې وی، کله چې راشی نو وریځی خورې کړی، باران اوشی ، او مړه ځمکه ورسره ژوندئ شی،دغه شان به الله ﷻ تاسو هم قیامت په ورځ ژوندی کوی.

بعض مفسرین فرمائی چې مرسلت،عاصفات وغیر صفات دی دفرشتو ،اومرسلت نه مراد هغه فرشتې دی، چه په انبیاؤکرامو باندی پی درپی لیږلې کیږی،یا﴿عُرْفًا﴾معنی نیکی اواحسان ده،یعنی هغه فرشتی چه دانتظام ددنیااومصالحودینه ؤدپاره لیږلې کیږی په هغو قسم، نو﴿عُرْفًا﴾پدی معنی سره مفعول له دی،ای اُرسلت للاحسان والمعروف(کبیر)اول معنی په اعتبارسره حال دی.

﴿ فَالْعٰصِفٰتِ ﴾ يعني قسم په هغه فرشتو چه کله د الله ﷻ اوامر راوخلي نو بيا ئې تعميل دپاره دهواګانو په شان تيزي چليږي، ياهغه فرشتي چه هلاکونکي دي کافرانولره

﴿ وَالنّٰشِرٰتِ ﴾ يعني قسم په هغه فرشتو چه خورونکي دي وزرونوخپلولره په هواکښ ياخورونکي دي شرائعولره، يانشردرحمت اوعذاب کوي ﴿ فَالْفٰرِقٰتِ ﴾ يعني قسم په هغه فرشتو چه حق اوباطل مينځ کښ فرق کونکي يعني جدائي راوستونکي دي

﴿ فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا ﴾ ذکرنه مراديا وحي ده يعني انبياؤته وحي راوړونکي. ياورنه مراد صرف قرآن دي، يانصيحت، يعني دخلقو په زړونوکښ نصيحت اچونکي ﴿ عُذْرًا اَوْ نُذْرًا ﴾ دواړه مفعول له دي، يعني وحي دي دپاره راوړي چه دخلقو عذر دفع کوي چه عندالله ئې حجت باقي پاتي نشي په کفرباندي، اوخلق يره وي دالله دعذاب نه دينه علاوه هم متعدد اقوال شته

| |
|---|
| فَاِذَا النُّجُوْمُ طُمِسَتْ ۝٨ وَاِذَا السَّمَآءُ فُرِجَتْ ۝٩ |
| پس هرکله چه ستوري بې نوره کړي شي اوکله چه اسمان اچوی |
| وَاِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ ۝١٠ وَاِذَا الرُّسُلُ اُقِّتَتْ ۝١١ |
| اوکله چه غرونه والوزولې شي اوکله چه رسولان جمع کړي شي په وخت مقررکښ |
| لِاَيِّ يَوْمٍ اُجِّلَتْ ۝١٢ لِيَوْمِ الْفَصْلِ ۝١٣ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ۝١٤ |
| دکومې ورځ دپاره ورستوکړې شويدي، دپاره دورځې دفيصلې اوڅاپوهه کړې ئې ته چه څه ده ورځ دفيصلې |
| وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝١٥ |
| تباهي ده په دغه ورځ دپاره دتکذيب کونکو |

﴿ فَاِذَا النُّجُوْمُ طُمِسَتْ ﴾ دې آيتونو کښ تخويف اخروي دې، تفصيل اوتعيين دې د "انما توعدون لواقع"، يعني قيامت به په هغه ورځ وي چې کله دا څلور احوال واقع شي، اوداول حالت بيان دې چې ستوري بې نوره اوبالکل به ختم شي.

﴿وَإِذَا ٱلسَّمَآءُ فُرِجَتۡ﴾دویم حالت دي چي اسمان به اوچوی اودروازو په شان درزونه پکښ پیداشی. ﴿وَإِذَا ٱلۡجِبَالُ نُسِفَتۡ﴾دریم حالت دي چي غرونه ایره ایره والوځ

﴿وَإِذَا ٱلرُّسُلُ أُقِّتَتۡ﴾څلورم حالت دي چي قیامت به هله واقع کیږی چی کوم ورځ انبیاء او رسول دَالله ﷻ په دربار کښ پیښی اوکړی دَهغوئ نه خپلو ذمه داریانو اودَامت احوالو تپوس اوکړې شی.

«اقتت» دَتوقیت نه دي اصل کښ "وُقتت" وؤ،تخفیفاً واؤ په همزه سره بدل کړي شوي دي،توقیت په دوه معنو کښ استعمالیږی: (۱)وخت متعین کول دي تقدیر باندی به ئی معنی داسې شی، چی کله رسولانوته دَالله ﷻ په دربار کښ دَپیښی وخت تعیین اوکړې شی چې دیکښ به دوئ خپله مکمله کارگزاری الله ﷻ بیانوی،(۲)مقرره وخت ته رسیدل اوحاضریدل: یعنی کله چې رسولان خپل مقرره وخت ته اورسی اوحاضر شی. چې داورځ دَقیامت ده، هم دي معنې پیش نظر حضرت ابن عباس ﷺ دَدې آیت معنی "جمعت" کړیده، "اذا" په څلورو وارو آیاتونو کښ شرطیه ده اوجوب شرط محذوف دي چې هغه تقع الساعة دي.

﴿لِأَيِّ يَوۡمٍ أُجِّلَتۡ﴾جمله مستانفه ده اواستفهام دَپاره دَ تعجب اوهیبت دي، اوضمیر مؤنث په «اجلت»کښ هغه حوادثو اواحوالو ته راجع دي چې قیامت په ورځ به واقع کیږی، یعنی دا حالات دَ کومې هیبت ناکې ورځې د پاره مؤخر کړي شوی دي، او یا ضمیر مونث "الرسل" ته راجع دي، خومراد ترینه هغه احوال دی چی دَ"رسولانو" په تصدیق اوتکذیب باندې مرتب کیږی.

﴿لِيَوۡمِ ٱلۡفَصۡلِ﴾داجواب استفهام دي چې د حق اوباطل اومؤمن او کافر په مینځ کښ فیصلی ورځی لپاره مؤخر کړې شوی دی.

ابن عاشور رحمه الله فرمائی چې "لاي يوم"کښ "اي"کمالیه ده.اوصفت دي دَپاره دَ موصوف محذوف اي ليوم اي يوم ، اوجار مجرور د «اقتت» په معنی دَ جمعت سره متعلق کیږی، اولام تعلیلیه دي ، او« اجلت» جمله صفت ده دَ«یوم» دَپاره اي اجلت اليه. معنی په داشی :کله چې

رسولان حاضر کړې شي هغه عظیم الشان ورځی دوجهی نه. چې هغې ته دا امور مؤخر کړې شوی دی او «لیوم الفصل» بدل دې «لاي یوم» نه

﴿وَمَآ أَدۡرَىٰكَ﴾ دلته استفهام دمزید تهویل اودعظمت دپاره دې یعنی د فیصلې ورځ څه ده؟اوڅنګه ده؟دابیانول دوس نه بهر خبره ده داسی څوک نشته چې تاته د دې خبر درکړی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمۡ | نُهۡلِكِ | ٱلۡأَوَّلِينَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ | نُتۡبِعُهُمُ | ٱلۡأٓخِرِينَ ﴿١٧﴾ | كَذَٰلِكَ | نَفۡعَلُ |
| آیاندی هلاک کړی | مونږاولنی | خلق بیابه | وریسی کړیدی | ورستنی خلق دغه | شان | کوومونږ |
| بِٱلۡمُجۡرِمِينَ ﴿١٨﴾ | وَيۡلٞ | يَوۡمَئِذٖ | لِّلۡمُكَذِّبِينَ ﴿١٩﴾ | | | |
| دمجرمانوسره | تباهی ده | پدغه ورځ | دپاره دتکذیب کونکو | | | |

﴿أَلَمۡ نُهۡلِكِ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ دانمونه ده داخروی عذاب چه لکه څرنګه مودنیاکښې مکذبین هلاک کړل دغه شان به ورته آخرت کښې هم عذاب ورکړو﴿ٱلۡأَوَّلِينَ﴾نه مرادقوم دنوح اوعاد،ثمود دی او﴿ٱلۡأٓخِرِينَ﴾نه مراد لوط علیه السلام قوم،قوم شعیب،قوم موسی یعنی فرعون وغیره دی.

﴿كَذَٰلِكَ نَفۡعَلُ﴾دغه سزادهر جرم ده دې کښې اهل مکوۨ ته تهدید دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمۡ نَخۡلُقكُّم | مِّن مَّآءٖ مَّهِينٖ ﴿٢٠﴾ | فَجَعَلۡنَٰهُ | فِي قَرَارٖ مَّكِينٍ ﴿٢١﴾ | إِلَىٰ قَدَرٖ | |
| آیانه یئ پیداکړی مونږتاسوداوبوحقیرو نه‌منی‌بیا اوګرځولی مونږدغه اوبه په ځائ دقرارئ مضبوط کښې تروخت | | | | | |
| مَّعۡلُومٖ ﴿٢٢﴾ | فَقَدَرۡنَا | فَنِعۡمَ ٱلۡقَٰدِرُونَ ﴿٢٣﴾ | وَيۡلٞ يَوۡمَئِذٖ | لِّلۡمُكَذِّبِينَ ﴿٢٤﴾ | |
| معلوم پوری‌پس قادریومونږ‌پس ښه قدرت لرونکی یومونږ‌تباهی ده پدغه ورځ دپاره دمکذبینو | | | | | |

﴿أَلَمۡ نَخۡلُقكُّم مِّن مَّآءٖ مَّهِينٖ﴾داپه حشرنشرباندی اول دلیل عقلی دې،چه لکه څرنګه مونږانسان پخپل قدرت سره دحقیری نطفی نه پیداکړیدې دغه شان پدی هم ښه قادریوچه دوباره ئې پیداکړو.

﴿فَجَعَلْنٰهُ فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ﴾ محکم جایٔ قرارنه مراد دمور رحم دې چه ماشوم بچې پکښې ښه په حفاظت سره پروت وی ﴿إِلٰى قَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ یعنی ترمقدارِ معلوم عند الله پورې چه ترولادت پورې ئې مقرر کړیدې، چه کثیر الوقوع نهه (۹) میاشتې دی.

﴿فَقَدَرْنَا﴾ یعنی مونږ پدغه کارونو قادر یو، اومونږ ځومره ښه قدرت لرونکی یو. هیڅ څیز زمونږ دَ قدرت نه بهرندې، نو دوباره ژوندی کول مونږته آسان دی. اوبعضو په معنی دَتقدیر سره اغستې دې، پمعنی دَاندازه کولو، یعنی مونږپه رحم دَمور کښې دَانسان د اعضاؤ جوړولو اندازه اوکړه، نو ځومره ښه اندازه کونکی یو مونږه. چه تمام اعضاء مو ورله برابر جوړ کړل. یو اوږ او بل لنډ نه دې.

| |
|---|
| أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا ﴿٢٥﴾ أَحْيَاءً وَأَمْوَاتًا ﴿٢٦﴾ وَجَعَلْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ |
| آیانده کړخولی مونږځمکه جمع کونکی، ژوندولره اومړولره، اوپیداکړیدی مونږپدی کښې غرونه |
| شَامِخَاتٍ وَأَسْقَيْنَاكُمْ مَاءً فُرَاتًا ﴿٢٧﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٨﴾ |
| دنګ دنګ اوڅکولی مودی په تاسواوبه خوږی تنده ماتونکی. تباهی ده پدغه ورځ دپاره دَتکذیب کونکو |

﴿أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا﴾ دویم دلیل عقلی دې اودیکښې الله ﷻ خپل درې عظیم نعمتونه ذکر کوی، چې هغه یو طرف ته په بنده باندې امتنان دې او بل طرف ته دَالله ﷻ عظیم قدرت طرف ته اشاره کوی، اودا پیغام ورکوی چې کله الله ﷻ دا امور پیدا کولې شی نو اعاده هغه دَپاره څه مشکل ده؟ مزید دا چې بنده ته د داسې مهربان رب ناشکری نه ده پکار.

«کفاتا» دا اول نعمت دې، "کفات" دَکفت نه دې، په معنی دَجمع اوضم سره راځی، لوخی ته هم "کفات" وئیلی کیږی، ځکه چې دا هم شې په ځان کښې جمع کوی اوراغونډه وی، اوځمکې ته کفات ځکه وئیلی کیږی چې دې هم انسانیت په ځان کښې جمع کړې دې مړی دی اوکه ژوندې، ژوندې په سر باندې اوسیږی، اومړی پکښې ننه دی. ﴿أَحْيَاءً وَأَمْوَاتًا﴾ مفعول به دې دَپاره دکفاتا.

﴿ وَجَعَلْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ ﴾دويم نعمت بيان دې چې زمکه خود او سيد لو قابله نه وه. الله ﷻ پکښ مضبوط مضبوط اورنګ رنګ غرونه دَميخونو پشان اولګول ،نوکوم ذات چې داکار کولې شي نو آيا هغه دوباره پيدا کول نشي کولې.

﴿وَأَسْقَيْنَاكُم﴾دريم نعمت بيان دې چې خوړې اوبه دی.

| |
|---|
| اِنْطَلِقُوٓا اِلٰى مَا كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ۝ اِنْطَلِقُوٓا اِلٰى ظِلٍّ |
| ورته به اووئيل شي) ځئ لاړشئ هغه عذاب ته چه تاسود هغې تکذيب کولو ځئ لاړشئ هغه ګرم لوږې ته |
| ذِيْ ثَلٰثِ شُعَبٍ ۝ لَا ظَلِيْلٍ وَّلَا يُغْنِيْ مِنَ اللَّهَبِ ۝ اِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ |
| چه خاوندِدرې حصودې نه به وی يخ اونه به دفع کوی دګرمولمبونه بې شکه دا ولې به بسرکي |
| كَالْقَصْرِ ۝ كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ ۝ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ |
| په شان دَبنګلو.لکه چې دااوښان وی زيړ تباهی ده پدغه ورځ لپاره دَتکذيب کونکو |

﴿ اَنطَلِقُوا إِلَىٰ مَا كُنتُم﴾ديکښ تخويف اخروی دې په انکار دَبعث الموت چې نن خودوئ ډير په تکبر سره دَدوباره پيدا کيدلو ،دَقيامت اوسزاجزا تکذيب کوی خو دقيامت په ورځ به ډير ذلت سره عذاب ته واچولې شي، "انطلقوا"ديکښ دوئ تذليل طرف ته اشاره.

﴿انطَلِقُوا إِلَىٰ ظِلٍّ ﴾دابدل دې دَمخکښ "انطلقوا" نه ، اوداجمال تفصيل دې، "ظل" په اصل کښ سورې ته وائی ، اودلته مراد ترينه"دخان"(لوګی)دې،لوګی باندې اطلاق د "ظل" تهکما شوې دې،ځکه چې دوئ به دَقيامت په سخته ګرمئ کښ به دَسورې ډير محتاج او په طلب کښ به وی، نوورته به اوئيلې شی،دې لوګی پسې لاړ شئ داستاسو دَپاره سورې دې.

﴿ذِي ثَلَاثِ﴾ صفت اول دې د"ظل"، يعنی هغه به سورې چرته وی هغه به لوئ مقدار کښ لوګې وی، چې دکثرت دَوجهی نه په درې حصو کښ تقسيم شوې وی،يوحصه به دَدې جهنمی سر دَپاسه وی،اودوه حصې به ئی ښی اوچپ طرف ته وی.

﴿ لَا ظَلِيلٍ وَلَا يُغْنِي مِنَ اللَّهَبِ ﴾ دويم اودريم صفت دي د ظل. چې داځه حقيقت کښې خوبه سورې نه وي چې څه سکون اوراحت ورته ميلاؤ شي. نه به يخ وي اونه به دجهنم داور شغلو ګرمي کموي

﴿إِنَّهَا تَرْمِي بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ ﴾انها کښې ضمير مؤنث دَجهنم اورته راجع دي. يعنى دابه دومره لوئ اور وي چې دَدې يويو بسرکې به دَلوئ لوئ محلاتو هومره وي قصر بنګلي اومحل سره تشبيه په ذات او لوئ والي کښې ده،﴿كَأَنَّهُ جِمَالَتٌ صُفْرٌ ﴾دادويمه تشبيه ده چې زيړ اوښانو سره ده، اودا تشبيه دَ اوصافو اعتبار سره ده،زيړ اوښانوسره تشبيه څوجهو نه ورکړې شوې ده: (۱)په رنګ کښې(۲)کثرت کښې(۳)تتابع کښې(۴)سرعت کښې کانه کښې ضمير شرر ته راجع دي جمالة جمع دَجمل ده

| |
|---|
| هٰذَا يَوْمُ لَا يَنْطِقُونَ ﴿٣٥﴾ وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُونَ ﴿٣٦﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ |
| دافعه ورځ ده چه خبرى به نشى کولې کفار.اونه به اجازت ورکولې شى دوئ چه عذراوکړى.تباهى ده پدغه ورځ |
| لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٣٧﴾ هٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ جَمَعْنٰكُمْ وَالْأَوَّلِينَ ﴿٣٨﴾ فَإِنْ كَانَ |
| دپاره دَتکذيب کونکو،داورځ دَفيصلى ده.جمع کړى يئ مونږ تاسواواولنى خلق.پس که وى |
| لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيدُونِ ﴿٣٩﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٠﴾ |
| تاسولره څه منصوبه دَخلاصئ نه نو اوئى کړئ ماسره.تباهى ده پدغه ورځ دَپاره تکذيب کونکو |

﴿هٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ ﴾دادَسابقه تخويف تتمه ده، نفى يادَنطقِ مفيدده يعنى ګوياکه حجت اودليل به ورسره نوى چه دَجهنم نه خلاص شى،لکه خلق وائى فلانې زماپه مخکښې خبرى هم نشى کولې،ياپه بعضو مواطنو کښې نفى مراده څکه چه دَقيامت ورځ طويله ورځ ده، نوپدې وجه دَنوروآياتونوسره دَدى آيت تعارض نشته،دغه شان نفى دَعذرهم ده.

﴿فَإِن كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ ﴾داسخت وعيددې جهنم والؤته،کچرته نن تاسو څمادګرفت نه دَځان دَخلاصو څه تدبيراومنصوبه جوړولې شئ نوجوړه کړئ،ځان خلاص کړئ.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ وَعُيُونٍ ﴿٤١﴾ وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ ﴿٤٢﴾

بی شکه متقیان به په سوروکښ وی اوچینوکښ به وی اومیوؤکښ به وی دهغی نه چه زړه ئی ورته کیږی

كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٤٣﴾ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي

ورته به اوونیل شی خورئ اوڅکئ په مزې سره په سبب دنیکوعملونوستاسو بی شکه مونږدغه شان بدله ورکوؤ

الْمُحْسِنِينَ ﴿٤٤﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٥﴾ كُلُوا وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا إِنَّكُم

نیکانوته تباهی ده پدغه ورځ لپاره دتکذیب کونکو خورئ اوفائده واخلئ لږوخت بی شکه تاسو

مُّجْرِمُونَ ﴿٤٦﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٧﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا

مجرمان یئ تباهی ده پدغه ورځ لپاره دتکذیب کونکو.اوکله چه اوونیلی شی دوئ ته چه رکوع اوکړئ

لَا يَرْكَعُونَ ﴿٤٨﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٩﴾ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٠﴾

نورکوع نکوی تباهی ده پدغه ورځ لپاره دتکذیب کونکو.پس په کومه خبره ورسته دقرآن نه،ایمان به راوړی دوئ

﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ﴾ دابشارت دې مؤمنانوته،کفارومشرکینوپه مقابل کښ به مؤمنان اومتقیان دجنت په یخ سوروکښ مزې اخلی،هرقسمه میوی به ورته ورکولې کیږی

﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا﴾ یُقال لهم ورنه مخکښ محذوف دې،یعنی دوئ ته به اوونیلې شی چه دنیک عملونوپه بدله کښ نن بښه بی غمه خوراک څکاک کوئ،هم داسی بدله وی دنیکوکارانو.

﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ دمکذبینودپاره هلاکت دې چه دوئ دخپل تکذیب پوجه دجنت دلویولویونعمتونونه محرومه شول.

﴿كُلُوا وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا﴾ دادهمکی اوخطاب دې مکذبینوته په دنیاکښ چه خورئی څکئ اویوڅوورځی مزې واخلئ،اخربه زمونږخواته راځئ،مونږدرته عذابونه تیارکړیدی.

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱرْكَعُوا﴾ دانی دَجرم تفصیل دي او رکوع نه احکامات الهیه ته غاړه ایخول او هغي نه اعراض نه کول دی یعنی دوئ دومره سرکشه دی چه دنیاکښ دوئ ته اوئیلي شي چه دَالله ﷻ اطاعت کوئ . د هغه دَدین اتباع کوئ . نودوئ دَ تکبر او سرکشئ په وجه دا خبره نه مني،بعض وائی دَرکوع کولونه مرادمونځ کول دی،یعنی دَمونځ کولونه انکار کوي.بعض وائی دابه ورته په قیامت کښ اوئیل شی،په هغه وخت کښ چه کله کشف دساق اوشی لکه سورة القلم آیت«۴۲»کښ تیردی.او دي صورت کښي معنی د «لایرکعون» دا وي ، چي دوئ به الله ﷻ ته سجده نشي کولي.

﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ﴾ضمیرراجع دي قرآن ته،یعنی چه دوئ دَقرآن په شان معجز، فصیح بلیغ،مدلل،مفصل کتاب باندی ایمان نه راوړی نوبیابه په کوم کتاب ایمان راوړی.

| ركوعاتها (٢) | سورة النباء مكيّة | اياتها (٤٠) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٧٨) وحسب النزول (٨٠)**

نزلت بعد المعارج و قبل النازعات

**ربط**:ماقبل سورة مرسلات کښ دَقیامت په ثواب عقاب باندی دنیوی عذاب نمونه وه.دی سورة کښ دنیوی انعامات،عقوبات او دَقیامت دَانعاماتو عقوباتونمونه ده نولکه څرنګه چه دنیاکښ انعامات او مصائب دی دغه شان به آخرت کښ هم بعضِ خلق په انعاماتو کښ وی بعض په مصائبو کښ،دغه شان ماقبل سورة کښ دَقیامت دَورځی باره کښ استفهام وؤچه وماادراک مايوم الفصل،دی سورة کښ دَیوم الفصل تشریح ده چهران یوم الفصل کان میقاتا،

**خلاصه دَسورة**:

آیت ۱نه تر ۵ پورې ابتدائیه دَسورت ده،چې دیکښ دَمشرکینو دَقیامت په باره کښ اختلاف ذکردی.

آیت ۲نه تر ۱۲:یولس(۱۱)انعامات به طور دلیل دَبعث الموت ذکر کیږی.

آیت،۱۷نه تر ۲۰ پوری دَ فیصلی ورځ (قیامت)واقع کیدلو احوال بیانیږی.

آیت ۲۱نه تر ۳۷پوری دَ فیصلې تفصیلات بیانیږی.

آیت ۳۷،او۳۸کښ دَ فیصلی ساعت اهوال بیانیږی.

آیت ۳۹، ۴۰خاتمه دَسورت ده چې پکښ دَقیامت ورځې دَپاره تیاریٔ ترغیب دی.

| |
| --- |
| عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ① عَنِ النَّبَاِ الْعَظِيْمِ ② الَّذِيْ هُمْ فِيْهِ |
| دَڅه څیزباره کښ دوئ تپوس کوی دَیوبل نه،تپوس کوی دَهغی واقعی لویٔ په باره کښ، چه دوئ په هغی کښ |
| مُخْتَلِفُوْنَ ③ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ④ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ⑤ |
| اختلاف کونکی دی،هرګزدی نکوی تپوسونه زرده چه پوهه به شی دوئ،بیاهرګزندی کوی زربه پوهه شی |

﴿عَمَّ يَتَسَآءَلُونَ ﴾دازجر دې مشركينو ته په انكار دَبعث بعدالموت،چې دومره عظيم الشان واقعى نه انكار كوى اوهغې پورې استهزا اوخانداګانى كوى،چى كله به راځى،څنګه به واقع كيږى،مونږ به دوباره څنګه ژوندې كيږو .الله ﷻ فرمائى چې تپوس كولو ضرورت نشته چې كله راشى بيابه درته پته اولګى.

﴿عَمَّ ﴾اصل كښې "عن، ما "وؤ، "نون" په "ميم" سره بدل كړې شو، او بيا ميم په ميم مدغم كړې شو، نو "عما" شو، "ما" استفهاميه ده، دې باندې چې كله حرف جر داخل كړې شى نو اكثر ورنه الف حذف كړې شى دَ پاره دَ دى چې "ما" موصوله سره ئى فرق راشى، نو "عم" ترينه جوړ شو.

﴿يَتَسَآءَلُونَ ﴾ضمير مشركين مكه ته راجع دې،چونكه سياق كلام نه د مرجع پته لګى نو دَ تحقير واهانت دَپاره ئى صراحتاًذكر اونشو(روح). "تساؤل" د سوال نه دې، معنى ئې تپوس ده، او تپوس په دو قسمه باندې وى: (١)كله تپوس دَحق پيژندلو او دَجهالت ازالى دَپاره وى،(٢)اوكله تپوس انكار، عناد او استهزاء دَپاره وى،دلته دويم قسم تپوس مراد دې،اوهم دې باندې زجر دې. باب تفاعل دلته خپلى حقيقى معنى"مشاركت" كښې استعمال دې، يعنى يوبل نه تپوس كول، اومطلب دادې چې دوئ مسئله دَبعث دَ خپل مجلس موضوع ګرځولى ده، اودَ خپل ناقص عقل او آراؤو دخل اندازى پكښې كوى، يا تفاعل مشاركت په ځائ تكرار په معنى دلالت كوى،يعنى دوئ څه به باره كښې باربار دَنبى ﷺ اومؤمنانو نه سوال كوى.

﴿عَنِ ٱلنَّبَإِ ٱلْعَظِيمِ ﴾جارمجرور متعلق دې محذوف"يتساؤلون"سره، اويا بدل واقع كيږى دَ "عم" نه، د" النبأ العظيم " په باره كښې مفسرينو مختلف اقوال دى:

(١)بعضو ترينه توحيد مراد اغستې دې.

(٢)بعضو ترينه قرآن اودَنبى ﷺ نبوت مراد اغستې دې.

(٣)راجح قول دادې چې دينه مراد قيامت او بعث بعدالموت دې.

دې تعبيركښې په درې وجوهو سره دَقيامت تعظيم بيان كړې شوې دې:

(١)"النبأ" لفظ راوړلو سره، چې دا هغه خبرته وئيلى كيږى چې دَهغې څه شان وى ،عام خبرته نه وئيلى كيږى.

(٢)الف لام سره معرفه ګرځولو سره.

(۳) العظيم صفت راوړلو سره.

﴿الَّذِي هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ﴾ اختلاف دَ دوئ داوؤ چې بعضو بالکل محال ګڼړلو چې ان هي الا حياتنا الدنيا نموت ونحيا.بعضو پکښې شک کولو چې ماندري ماالساعة ان نظن الاظنا وما نحن بمستيقنين.بغضو صرف دَروحانی معادقائل وؤ .وغيره

﴿كَلَّا سَيَعْلَمُونَ﴾ کلا دپاره دَردع دي دَقيامت تپوسونه اوديکښې اختلاف مه کوئ.تاسوته به خپله پته اولګی،﴿ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ﴾دادَماقبل دپاره تاکيددي.

| |
|---|
| أَ لَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ مِهٰدًا ۙ﴿۶﴾ وَّالْجِبَالَ أَوْتَادًا ۙ﴿۷﴾ وَّخَلَقْنٰكُمْ أَزْوَاجًا ۙ﴿۸﴾ |
| آیاموږنه ده ګرځولې زمکه غوړيدلې.اوغرونه ميخونه دَزمکې.اوپيداکړی يئ موږتاسوجوړې جوړې. |
| وَّجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ۙ﴿۹﴾ وَّجَعَلْنَا الَّيْلَ لِبَاسًا ۙ﴿۱۰﴾ وَّجَعَلْنَا النَّهَارَ |
| اوګرځولې مودې خوب ستاسوسبب دَارام.اوګرځولی موده شپه پرده.اوګرځولې موده ورځ |
| مَعَاشًا ۙ﴿۱۱﴾ وَّبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا ۙ﴿۱۲﴾ وَّجَعَلْنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا ۙ﴿۱۳﴾ |
| وخت دګټلو. اوجوړکړی مودی دَپاسه دَستاسووه اسمانونه سخت.اوپيداکړې مودې نمرروښانه |
| وَّأَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا ۙ﴿۱۴﴾ لِّنُخْرِجَ بِهٖ حَبًّا وَّنَبَاتًا ۙ﴿۱۵﴾ وَّجَنّٰتٍ أَلْفَافًا ۙ﴿۱۶﴾ |
| اونازلې کړې مودی دَوريځونه اوبه راوريدونکی باران چه رااوباسوپه هغې سره دانې اوګياه اوباغونه ګڼړ |

﴿أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ مِهٰدًا﴾دا يولس (۱۱) انعامات دَالله ﷻ بطورنمونه اودليل ذکر کوی په بعث بعد الموت ،چې کوم ذات په دنيا کښې دومره لويولويو قدرتونو والاد دې هغه ته بعث څه ګران دي؟ کوم ذات چې په دې دنيا کښې نعمتونوورکولوباندې قادردې،اودغه شان تکليف اومصيبت رسولو باندې قادر دې هغه ته جزاورځ راوستلو کښې څه مشکل دی؟ ځکه چې هغه ورځ هم دَثواب اوعقاب نعمت اونقمت نه عبارت ده،

﴿مِهَٰدٗا﴾ دا اول انعام دې. "مهادا" يا پمعنى د "فراشا" سره دې. چې الله ﷻ تاسو له ځمکه بستره ګرځولې ده ، يا پمعنى دَ "مَهْدا" سره دې. نوبيا په دې آيت کښې تشبيه ده يعنى په شان دځانګوئى ګرځولې ده.

﴿ وَٱلۡجِبَالَ أَوۡتَادٗا ﴾ دا دويم انعام دې. "اوتاد" جمع دَ "وتد" ده. ميخ ته وائى، دې کښې هم تشبيه ده اي كالاوتاد، مراد داچې الله ﷻ ځمکه غرونو سره کلکه کړې ده. لکه ميخ سره چې يوشى کلک شى، يوبل آيت کښې راغليدى دې والقى في الارض رواسي ان تميدبكم(لقمان) دغه شان يوحديث کښې هم راغليدى چې الله ﷻ کله ځمکه پيدا کړه نو هغه خوځيده .نوبيائى غرونه پيدا کړل اوهغه ئى پرې کيخودل نوپه قرار شوه.

﴿وَخَلَقۡنَٰكُمۡ أَزۡوَٰجٗا ﴾ دا دريم انعام دې، "ازواجا" نه مراد(۱)جوړه ده يعنى بعض مذکر اوبعض مؤنث لپاره دَدې چې توالد اوتناسل جارى وى،(۲)يادورنه مراد اصناف دى .يعنى تاسومختلف رنګونو ، صورتونو او ژبو والا پيدا کړي يئ.

﴿ وَجَعَلۡنَا نَوۡمَكُمۡ سُبَاتٗا﴾ دا څلورم انعام دې، "سباتا" دَ "سبت" نه ماخوذ دې (۱) پمعنى دَ "قطع" . او مراد ورنه مرګ دې، ځکه چې دا هم دا بيداري زندګئ نه سړې کټ کوي ، نو په آيت کښې تشبيه ده اي كالسبات لکه بل آيت کښې راغليدى: وهو الذي يتوفاكم بالليل.(۲)بعض وائى"سباتا"په معنى دَنوم خفيف سره دې،يعنى خوب مى درله خفيف ګرځولې دې ،ډير درونډ نه دې، چې دنيا او معاش کښې مو خلل واقع شى.(۳) بعضو په معنى دَ "راحة"سره اغستې دې، يعنى خوب مو درله دَ راحت ذريعه ګرځولې ده.

﴿ وَجَعَلۡنَا ٱلَّيۡلَ لِبَاسٗا﴾ پنځم انعام دې، دې آيت کښې هم تشبيه ده اي كاللباس يعنى شپه الله ﷻ بمنزله دَلباس ګرځولې ده، يو په سترکښې چې څنګه لباس سره انسان ځان پټوى، دغه شان ډير کارونه چې انسان ئى بل په مخ کښې نه کول غواړى دَ شپې په پرده کښې ئى اوکړى،اوبل په راحت کښې، چې څنګه لباس کښې انسان ته راحت ميلاويږى، دغه شان شپه کښې ورته هم راحت او اطمينان نصيب شى.

﴿وَجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا﴾ شپږم انعام دې، "معاشا" مصدر میمي دې عيش او ژوند ته وائي او ورځ "معاش" گرځولونه مراد "سبب دَ معاش" دې يعنې زندگۍ ضروريات ټول په ديکښې پوره کيږي. او يا ورنه مراد وخت دَمعاش دې، اومعاش نه مراد ما يعيش به الانسان دې يعنې رزق

﴿وَبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا﴾ اووم انعام دې، دَ "سبعا" نه مراد اووه آسمانونه دی، "شدادا" ئې صفت دې، معنى ئې مضبوط اوكلک ده، يعني هيڅ چاود اوكمزوري پكښې نشته.

﴿وَجَعَلْنَا سِرَاجًا﴾ دا اتم انعام دې، "جعلنا" په معنى دَ "انشأنا" سره دې. يعني مونږ په اسمان كښې رونبانه نمر پيدا كړيدې. "سراج" ډيوې ته وائي اودلته ترينه مراد نمردې. ﴿وَهَّاجًا﴾ نه مراد پړ قيدونکې

﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرَاتِ﴾ دا نهم انعام دې، "المعصرات" جمع دَ "معصرة" ده، دَ "اعصر" نه مأخوذ دې، همزه پكښې دَحينونت دَپاره ده، اى آن لها ان تعصر، يعني هغه وريځې چه دَاوبونه ډكې وی. وريدلوته قريب وى، ليكن لا وريدلې نه وى. ﴿ثَجَّاجًا﴾ په زور سره بهيدونکی.

﴿لِّنُخْرِجَ بِهِ حَبًّا وَنَبَاتًا﴾ دا لسم انعام دې، يعني دَباران په ذريعه غنم، جوار، سبزی، واخه رااوباسو. ﴿وَجَنَّاتٍ أَلْفَافًا﴾ يولسم انعام دې، چې دَباران په ذريعه گڼ گڼ باغونه را اوباسو، دَ ډير گڼ والى په وجه يوبل پورې انختى وى.

| |
|---|
| إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيقَاتًا ۝ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ فَتَأْتُونَ |
| بى شكه دَ ورځى دَفيصلى(قيامت)، وخت مقرردې په هغه ورځ چه پوبه كړې شى په شپيلۍ كښې نوراځئ به تاسو |
| أَفْوَاجًا ۝ وَفُتِحَتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ أَبْوَابًا ۝ وَسُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا ۝ |
| ډلې ډلې، اوخيرى به شى اسمان نوشى به دروازې دروازې، اوروان به كړيشى غرونه نوشى به سراب |

﴿إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيقَاتًا﴾ دا تخويف أخروى دې، دَفيصلى ورځ (قيامت) واقع كيدلو احوال بيان دې، چه ورځ دَفيصلى يعنى دَقيامت وخت مقرردې، چه كله په شپيلۍ كښې پوكړې شى نوټول

خلق به دقبرونونه موقف دحساب ته ډلې ډلې راروانې شي.هرانسان سره به دخپل عمل باره کښې فیصله کیږي.

﴿يَوْمَ ٱلْفَصْلِ﴾نه مرادورځ دقیامت ده ځکه چه پدغه ورځ به الله ﷻ دخلقو مینځ کښې فیصله کوي

﴿مِيقَٰتًا﴾ مقرره وخت او حد ته وئیلې کیږي ، یعني قیامت ورځ د دنیا نظام حد او انتهاء ده ، یا وخت دې د هغه امورو چه الله ﷻ ئې وعده کړیده، او وخت دې د اولینو او اخرینو د جمع کولو.

﴿يَوْمَ يُنفَخُ فِي ٱلصُّورِ﴾بدل دې د﴿يَوْمَ ٱلْفَصْلِ﴾نه مرادورنه نفخه ثانیه ده،چه ټول خلق به ورسره راژوندي شي، ﴿ أَفْوَاجًا﴾اى أُمَمًا. یعنی امتونه امتونه به جداجدا راځی هریوامت سره به خپل پیغمبر وی، کماقال تعالی: «يومَ ندعواكلُ الناسِ بامامِهم» ، یا ورنه ډلې ډلې مراد دی په اعتبار د اختلافو د اعمالو ، د نیکو خلقو به جدا ډلې وی، گنهگارانو به جدا ډلې وی.

په سورت مریم کښې دیو اځی راتلو تذکره ده چې « وكلهم آتيه يوم القيامة فردا» . نو تطبیق پکښې داسې شوې دې چې جماعت او ډلې ډلې راتلل به د قبرونو نه پورته کیدلو وخت کښې وی، او تنها او یو اځې به هغه کښې وی چې کله الله ﷻ ته حساب کتاب اوسوال وجواب ورکولو دپاره ځی.

﴿وَفُتِحَتِ ٱلسَّمَآءُ﴾دلته نه د دروازو کهلاویدلو ذکر دې،اوځنې آیاتونو کښې دشق اوانفطار ذکر دې، دې تطبیق ځنې علماؤو داسې کړیدی چې "فتح" نه مراد هم "شق" دې، یعنی اسمان به اچوی، لکه بل ځائ دی: اذاالسمّاء انشقت، خو تعبیر ترینه په فتح سره کولو اشاره ده کمال قدرت د الله تعالی ته، چه د دومره لوئ اسمان شق به الله ﷻ ته د دروازی د کولاولو په شان آسان وی «روح» او بعضو مفسرینو ئې تطبیق داسې کړې دې چې اول په کښې چاود اوشق اوشی،اوهغې نه بعد به دروازې دروازې کهلاوشی.﴿فَكَانَتْ أَبْوَٰبًا﴾آیت مبنی دې په تشبیه باندې،مطلب دادې چه دومره به اُچوی لکه ډیری دروازی چه کولاوی شی، نو داشبه نشی کیدلې چه دروازی داسمان خواوس هم شته دې.

﴿وَسُيِّرَتِ ٱلْجِبَالُ﴾یعنی غرونه به والوځی،ریزه ریزه به شی،خوره وره دوره به ترینه جوړه شی،اوسراب به ترینه جوړشی،چه په هواکښې به دلرې نه داسې ښکاری لکه غر،لیکن غربه نوی بلکه هسې یو غبار به وی،زمکه به ټوله یوشان همواره شی،کمافی سورة طه(۱۰۵، ۱۰۶).

| |
|---|
| إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ﴿٢١﴾ لِّلطَّاغِينَ مَآبًا ﴿٢٢﴾ لَّابِثِينَ فِيهَا أَحْقَابًا ﴿٢٣﴾ |
| بې شکه جهنم ځای دانتظار دی ،دپاره دسرکشوتکانه دهاوسېری به پکښ ډېره زمانه |
| لَا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرْدًا وَلَا شَرَابًا ﴿٢٤﴾ إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا ﴿٢٥﴾ جَزَاءً |
| نه به څکی دوئ په هغې کښ څه یخ اونه څه دڅکلو څیزمګرګرمی اوبه دجهنم اووینې زوی بدله به ورکولې شی |
| وِفَاقًا ﴿٢٦﴾ إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ حِسَابًا ﴿٢٧﴾ وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كِذَّابًا ﴿٢٨﴾ |
| بدله پوره،څکه بې شکه دوئ وو چه اعتقادئ نه لرلو دحساب اوتکذیب ئې کولوزمونږدآیاتونو به تکذیب کولو سره |
| وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ كِتَابًا ﴿٢٩﴾ فَذُوقُوا فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ﴿٣٠﴾ |
| اوهرڅیزمحفوظ کړیدې مونږهغه په لیکلوسره پس اوڅکئ نوهرګزنه زیاته وؤمونږتاسولره مګرعذاب |

﴿إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ﴾دفیصلې ورځ احوالونه بعد اوس دفیصلې تفصیلات اوکیفیت بیانیږی.
دې آیتونو کښ دکافرانو فیصلی بیان دې،چې دوئ به همیشه همیشه جهنم کښ وی اومختلف عذابونه به ورته میلاویږی.

﴿مِرْصَادًا﴾دمرصاد دلته مختلفې معنی بیان کړې شوې دی:

(۱)بعض مفسرین وائی چې دا صیغه د اسم آله ده، یعنی د انتظار گاه ،څکه چې دې سره فرشتې انتظار کوی، قیامت په ورځ کله چې فیصله اوشی اوخلق روان شی نوکه کافران وی اوکه مؤمنان، لار به ئې په جهنم وی، نو د جنت فرشتې به دې سره ولاړې وی او د جنتیانو انتظار او استقبال به کوی، او دوئ به دجهنم د لمبو نه بچ ساتی، او د جهنم فرشتې به ورسره هم ولاړې د جهنمایانو انتظار کوی.

(۲)بعض مفسرینو دا صیغه د مبالغې اغستې ده: یعنی ډېر انتظار اوتلاش کونکې، یعنی کافرانو پسې به په تلاش کښ به ګرځی.

(۳)څنو ئې معنی په "الطریق" سره کړې ده، یعنی دا به لار وی، مؤمنان به پرې په خیرسره تیر شی، او کافران به پکښې اوغورځیږی.

﴿لِلطَّٰغِينَ مَـَٔابًا﴾جار مجرور دَ مابا سره متعلق دي، مآب مرجع اوتهکانې ته وائی، يعنی د سرکشانو تهکانه ده.

﴿لَّٰبِثِينَ فِيهَآ أَحْقَابًا﴾ لابثين حال دي د " الطاغين " ضمير نه. "احقابا" جمع د "حقب" ده، حقب مطلق مدت دَ زمانی ته وائی لکه په سورت کهف کښې دي: «او امضی حقبا»، او دلته ترينه څومره زمانه مراد ده؟ دې باره کښې مفسرينو مختلف اقوال ذکر کړی دی:

«۱» حضرت ابن مسعود ، ابن عباس اوابن عمر رضي الله عنهم نه مروی دی چې دې نه مراد څه دَ پاسه اتيا«۸۰» کاله دی، اوځنی علماؤو دې قول په تفسير کښې داهم ليکلی دي چې يوه يوه ورځ به ئی دَ دنيا زرکالو برابر وی.

«۲» بعضو اويازره کاله ترينه مراد اغستی دي.

«۳» بعضو درې سو کاله.

«۴» خوراجع قول دادي چې دلته ترينه مراد لامتناهی زمانه ده، کمارواه الطبري عن قتادة.

﴿لَّا يَذُوقُونَ فِيهَا﴾ ذوق اصل معنی څکَل ده ، دَ احساس په معنی کښې هم راځی، لکه وائی ذاق الالم تکليف ئی محسوس کړو، مونږ پښتو کښې هم وايو خوند ئی درکړو، اودغه شان دَ نفس وجدان باندې ئې هم اطلاق کيږی، نودلته اولنۍ دوه معنې مراد دې ، برد: اعتبارسره دويمه معنی مراد ده، او شراب لحاظ سره اوله معنی مراده ده . ﴿بَرْدًا﴾ نه داسې يخ شی مراد دې چې انسان ظاهری بدن دَ حرارت او اور نه بچ کړی. ﴿شَرَابًا﴾ نه مشروب مراد دې چې باطن دَحرارت نه بچ کړی، ﴿حَمِيمًا﴾ انتهائی گرمې اوبه، ﴿وَغَسَّاقًا﴾ د جهنميانو وينی زوی، ﴿جَزَآءً﴾ مفعول مطلق دې دَفعل محذوف، ای: يجزون جزاء ﴿وِفَاقًا﴾ يعنی دَاعمالو موافق بدله،

﴿إِنَّهُمْ كَانُوا۟ لَا يَرْجُونَ حِسَابًا﴾ تعليل دي، دَاستحقاق دَعذاب، رجاء يا پمعنی دَ اعتقاد دې يا پمعنی دَخوف دې، يعنی دوئ دَدينه نه يريدل چه مو ږ سره به حساب کيږی، او زمونږ دَ آياتونو تکذيب ئی کولو.

﴿ وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ كِتَابًا ﴾ داجمله معترضه ده. ﴿كِتَابًا﴾ يا حال دي دمفعول نه، يامفعول مطلق دي، يعني مونږدهرڅيز احاطه کړيده په ليکلو کښې، نولهذا پوره پوره بدله به ورته ورکوو. ﴿فَذُوقُوا﴾ لمقال لهم، ورنه مخکښې مقدر دي.

| |
|---|
| إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ۝ حَدَآئِقَ وَأَعْنَابًا ۝ وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا ۝ وَكَأْسًا دِهَاقًا ۝ |
| بې شکه متقيانو د پاره ده کاميابي چه باغونه دي او انګور دي، او حوري خوانې همزولې او کاسې ډکې دشرابو |
| لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا كِذَّٰبًا ۝ جَزَآءً مِّن رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا ۝ |
| ، نه به اوري دوئ په جنت کښې فضول خبرې اونه دروغ بدله به ورکولې شي بدله دطرفه درب ستا نه عطا پوره پوره |

﴿إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا﴾ دې آيتونو کښې دجنتيانو فيصلې بيان دي، او بشارت دي متقيانوته، چه دوئ د پاره په آخرت کښې کاميابي ده، اوهغه انعامات به ورته ورکولې کيږي کوم چه په ورستو آيتونوکښې مذکوردي﴿ مَفَازًا ﴾يامصدرميمي دي په معنی د"فوز"يااسم مکان دي، يعني ځائ د کاميابي.

﴿حَدَآئِقَ﴾دادکاميابئ تفصيل دي، بدل دي د﴿ مَفَازًا ﴾نه، جمع دحديقة ده يعني متقيانوته به داسې باغونه ورکولې کيږي چه په هغې کښې به قسمه قسم ميوه دارې اونې وي، اوانګوربه وي.

﴿وَكَوَاعِبَ﴾يعني متقيانو دپاره په جنت کښې خائسته پيغلې حوري هم وي. "کواعب" جمع د "کاعب" ده، هغې پيغلې ته وائي چې سينې ئې غونډې راوتلې وي، چپړې نه وي.﴿أَتْرَابًا﴾داحورې به تولې همزولې وي. ﴿ وَكَأْسًا دِهَاقًا ﴾"کاس"داشرابو پيالې ته وائي، "دهاقا" يا په معنی د "ممتلئة" سره دي، يعني ډکې پيالې به دشرابو ورله ورکولې کيږي ، ياپمعنی د "متابعة" سره دي، يعني پرله پسې به ورله پيالې ورکولې کيږي، يا په معنی د "صافية" سره دي، يعني عمده خالص شراب چې ګندګيو نه پاک وي.

﴿ لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا ﴾ ضمير په « فيها » كښې يا جنت ته راجع دې . يعنى جنت كښې به پرسكون او اطمينان بخش ماحول وى، خلاف مزاج اوګډې وډې خبرې به نه وى، او يا ضمير مجرور راجع دې﴿ وَكَأْسًا ﴾ته، نو "في" سببيه دې، يعنى دَ دې دَځكلو په سبب به لغو اودروغ نه وى.

﴿ جَزَآءً ﴾مفعول مطلق دې فعل محذوف دَپاره، اي يجزون جزاء. ﴿عَطَآءً ﴾ورنه بدل دې يعنى دا بدله عطاء ربانى اوفضل الهى دې، د چا ذاتى كمال اواستحقاق نه دې. ﴿حِسَابًا ﴾صفت دې دَ "عطاءً" پمعنى دَ "كافيًا" ، يعنى پوره اوكافى بدله به ورته وركړى، يا معنى داده چه دَدوئ دَاعمالوپه حساب به ورته وركړى،څومره اعمال وى هومره عطاء ربّانى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَّبِّ | السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ | وَمَا | بَيْنَهُمَا | الرَّحْمٰنِ |
| چې رب دَاسمانونودې اودَزمكى دې اودهغه څه چه په مينځ دَدوئ كښ دى،چه ډيرمهربانه دې، | | | | | |
| لَا يَمْلِكُونَ | مِنْهُ | خِطَابًا ۝ | يَوْمَ يَقُومُ | الرُّوحُ | وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا ۖ |
| اختيارنه لرى دَالله ﷻ سره هيڅوک دَخبرو. په هغه ورځ اوبه دريږى جبرئيل اوملائكى صفونه صفونه | | | | | |
| لَّا يَتَكَلَّمُونَ | إِلَّا | مَنْ أَذِنَ | لَهُ | الرَّحْمٰنُ | وَقَالَ صَوَابًا ۝ |
| خبرې به نشى كولې هيڅوک مګرهغه څوک چه اجازت ورته اوكړى مهربانه الله ﷻ اوواى به سمه خبره. | | | | | |

﴿رَّبِّ السَّمٰوٰتِ﴾بدل دې دَ﴿رَبِّكَ﴾نه﴿ الرَّحْمٰنِ ﴾ئې صفت دې.

﴿لَا يَمْلِكُونَ ﴾دا دَ فيصلې كيفيت بيان دې چې هر انسان دَپاره به دهغه عمل دَلارې مل وى، جاه او منصب به په كار نه رازى، هلته به نه څوک ځان په باره كښ دَالله ﷻ سره خبره كولى شى اونه به دَبل چابه باره كښ . « لا يملكون » كښې ضمير تولو خلقو ته راجع دې. ﴿مِنْهُ ﴾جار مجرور كښ دوه احتماله دى: (۱)يادا حال مقدمْ دې د دَ﴿خِطَابًا ﴾ نه، يعنى دوئ به دَځان نه دَالله ﷻ سره خبرې كولو قدرت نه لرى بغير دَ اجازت نه. (۲) ياجارمجرور متعلق دې دَ«لايملكون» سره، يعنى دوئ ته

به داسی خبری قدرت او طاقت دَالله ﷻ طرف نه ، نه ورکولې کیږی چې دوئ پرې خان بچ کړی. په خپلې مرتبې اوچتې کړی. (روح).

﴿يَوْمَ يَقُومُ ٱلرُّوحُ﴾ دیکښ دَفیصلې ساعت مزید هیبت بیانیږی چې دابه دومره هیبت ناک ساعت وی چې روح اوفرشتې بلکه ټول مخلوقات به الله ﷻ په تواضع سره لاس په نامه صف د ر صف ولاړ وی، څوک به الله ﷻ دَاجازت نه بغیر خبره هم نشی کولې، اوچاته چې الله ﷻ اجازت ورکړی هغه به هم خبره اخوادیخوانشی کولې، بلکه مکمل آدابو سره اوشرعی حدودوکښ به خبره کوی.

روح نه دلته په آیت کښ څوک مراد دی؟ دې باره کښ مختلف اقوال دی:

(۱) اکثر مفسرینو په نیز دې نه مراد جبرئیل علیه السلام دې.

(۲) بعض وائی دینه ارواح دَبنی آدم مراد دی.

(۳) بعض وائی چې بنی آدم ترینه مراد دې . دینه علاوه نوراقوال یکښ هم شته، خواول قول ارجح دې.

﴿لَّا يَتَكَلَّمُونَ﴾ ضمیرټولوخلقوته راجع دې، اوداتاکید دې دَ لایملکون منه خطابا ﴿إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ﴾ مراد ورنه شفاعت کونکې دې یعنی شفاعت اوخبرې به چاپه اختیار کښ نه وی، صرف به هغه کس کوی چې هغه ته الله ﷻ اجازت ورکړی وی، ﴿وَقَالَ صَوَابًا﴾ یعنی چاته چې اختیار د خبرو او شفاعت میلاو شو، نو دې مطلب دانه دې چې هغه څه ونیل غواړی او چا سفارش کول غواړی، کوی به، بلکه دَ الله ﷻ مرضیاتو په حدود کښ به سفارش کوی، دَکوم کس سفارش کولو اجازت چې ورله الله ﷻ ورکړی نو دهغه سفارش به قاعدې اوقانون مطابق کوی، تزکیه کښ به ئې مبالغه نشی کولې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ذَٰلِكَ | ٱلْيَوْمُ | ٱلْحَقُّ | فَمَن | شَآءَ | ٱتَّخَذَ |
| داورځ | حقه | ده،نودَچاچه | خوښه | وی | اودی نیسی |

| |
|---|
| إِلَىٰ رَبِّهِۦ مَـَٔابًا ۞ إِنَّآ أَنذَرْنَٰكُمْ عَذَابًا قَرِيبًا يَوْمَ يَنظُرُ ٱلْمَرْءُ |
| خپل رب ته ځائ دَورتللو،بې شکه مونږه یره ورتاسودَعذاب نیزدی نه،هغه ورځ چه اوبه وینی انسان |

مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ وَيَقُوْلُ الْكٰفِرُ يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا ﴿۴۰﴾

هغه عملونه چه مخکښ راليږلى دى دواړولاسونودهغهاوودائى به کافرآفسوس مالره چه وې خه خاوره

﴿ذٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ﴾ دادسورت خاتمه ده، دَ وعد او وعيد ،بشارات اوقيامت ورځ هولناکيو بيان نه ورستو الله ﷻ ترغيب ورکوى د دې ورځ دَ تيارئ ، چى دَدې ورځى حساب کتاب، دَ دې نعمتونو اودَدې عذابونه يقينى اوبرحق دى، که څوک دا نعمتونه حاصلول اودَدې عذابونه به بچ کيدل غواړي، نو اوس نه دې الله ﷻ طرف ته رجوع اوکړى، ورنه په هغه ورځ په ئى هيڅ په لاس نه راځى.

﴿إِنَّا أَنذَرْنَاكُمْ عَذَابًا قَرِيبًا﴾ عذاب قريب نه مراد دآخرت عذاب دې، اهل عرب دَچې کوم څيز وجود يقينى وى هغې باندې دَ قرب اطلاق کوى، او بل داچې مرګ خو د هر کس قريب دې، اوڅوک چې مړشى دَهغه قيامت قائم شى، نو دې اعتبار سره وربانديې هم دَقريب اطلاق شوې دې، مطلب داچې کوم عذاب نه خوخه يروم هغه بالکل يقينى او نيزدې دې.

﴿يَوْمَ يَنظُرُ الْمَرْءُ﴾ په هغهٔ ورځ به هرا نسان ته خپله اعمال نامه مخکښ پرته وى﴿وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَا لَيْتَنِي كُنتُ تُرَابًا﴾ کافر به بيا ډير تمناګانى کوى خو هيڅ فائده به نه ورکوى، اودَدې جملې متعدد تفسيره شوى دى:

(۱) کاش چې څه خاورې وې هډوسره پيدا شوې نه وې.

(۲) کا ش چې په قبر کښ خاورې خاورې شوې وې، اوبيا پورته کړې شوې نه وې.

(۳) څنى رواياتو کښ راځى قيامت په ورځ الله ﷻ حيوانات دوباره پيدا کړى، هغوئ کښ چې چاپه يوبل باندې ظلم کړى وى هغې بدله به ترينه واغستې شى اوبيابه ورته الله ﷻ اوائى چې خاورې شئ نو هغه به ټول خاورى شى نو کافر چې دااوګورى نودې به هم دَدې تمنا اوکړى.

| رکوعاتها (۲) | سورة النازعات مكيّة | اٰياتها (۴۶) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکې دی شروع کوم | | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۷۹) وحسب النزول (۸۱)**

نزلت بعد النّبأ و قبل الانفطار

**ربط**: ماقبل سورة کښې دنيوی انعامات نمونه وه په بعث بعد الموت باندی، دی سورة کښې ترقی ده چه لکه څرنګه دنياکښې روح قبض کولوخت کښې فرشتې دمؤمنانوسره نرمی کوی کافرانوسره سختی کوی نودانمونه ده چه آخرة کښې به مؤمنانوسره نرمی کيږی. کافرانوسره سختی.

**خلاصه**: آيت ۱ نه تر ۵ پورې پنځه قسمونه بطور شاهد ذکر کيږی، په اخروی ثواب اوعقاب.

آيت ۲ نه تر ۹ پوری تخويف اخروی دې.

آيت ۱۰ نه تر ۱۴ شکوه اوجوب شکوه ده.

آيت ۱۱ نه تر ۲۲ تخويف دنيوی نمونه ده.

آيت ۲۷ نه تر ۳۳ دليل عقلی دې په اثبات دقيامت.

آيت ۳۴ نه تر ۴۱ تخويف اخروی اوفيصلې تفصيل دې.

آيت ۴۲ نه تر ۴۶ شکوی اوجواب ذکر کيږی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالنّٰزِعٰتِ | غَرْقًا | ۝ | وَّ | النّٰشِطٰتِ |

قسم دې په هغه فرشتوچه رااوباسی روح دکافرپه سختئ سره.اوقسم په هغه فرشتوچه اوباسی روح دمومن

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نَشْطًا | ۝ | وَّ | السّٰبِحٰتِ | سَبْحًا | ۝ |

په نرمئ سره.اوقسم دې په هغه فرشتوچه لامبووهی په په تيزئ سره

| أَمْرًا | فَالْمُدَبِّرٰتِ | سَبْقًا | فَالسّٰبِقٰتِ |
| --- | --- | --- | --- |

بیاقسم په هغه فرشتو چه مخکښ کیدونکی دی په مخکښ کیدلو سره. بیاقسم په هغه ملائکو چه تدبیر کونکی دی دامر

﴿وَالنّٰزِعٰتِ غَرْقًا﴾جمهور مفسرینو په نیز النزعات،النشطت،السبحت،السبقت،المدبرت پنځه واړه صفات دی دَفرشتو،اودَهغه فرشتو چې دروح اوباسلو اوبیادَهغې نه ورستو دَهغې نورانتظامات کولو باندې مامور دی.

﴿وَالنّٰزِعٰتِ﴾ "نزع" الجذب بشدة ته وائی(روح)یعنی سختئ سره راخکل،او دا ورته د کافرانو او بدعمله انسانانو اعتبار سره وئیلی شوی دی ، چې دَ هغوئ ارواح دا فرشتې په ډیرې سختئ سره قبض کوی،﴿غَرْقًا ﴾مفعول مطلق من غیر لفظه دې دَ"النزاعت"دَپاره اوداهم په شدت اوسختئ سره رابنکلو په معنی کښ استعمالیږی.

﴿وَالنّٰشِطٰتِ نَشْطًا ﴾"النشط" الاخراج بسهولة و رفق ته وائی. یعنی نرمئ اوپه آسانتیا سره رااوباسل ،اودا ورته دَمؤمنانو اونیک عمله انسانانو روح اوباسلو اعتبار سره وئیلی شوی دی،چې دوئ ارواح فرشتې په نرمئ اوسهولت سره قبض کوی.

دمؤمن روح په نرمئ او دَ کافر روح په سختئ سره قبض کولو وجه حدیث (مسند احمد، ابوداؤد، رقم الحدیث۴۷۵۳) کښ دا راغلې ده چې بنده مؤمن ته دَمرګ په وخت کښ کومې فرشتې راځی، نوهغه ډیر خه شان سره راځی،ځان سره دَجنت خوشبوئی راوړی، ډیر خه انداز کښ ورسره مکالمه کوی،او دَ جنت او دَ هغې نعمتونو بشارت ورکوی، نو دَ ده روح ډیر په خوشحالئ سره اوځی، او بنده کافر روح قبض کولو دَ پاره چې راشی نو ډیر بدهیئت اوحالت کښ راشی، ډیر بد انداز کښ ورسره مخاطبت اوکړی، چې اې خبیث نفسه! راوخه دالله ﷻ عذاب اوقهر ته، نوهغه روح دَخوف دَوجهی نه راوتل نه غواړی. نو دوئ ئې داسې په زور سره ئې راخکی لکه دَغوښې ریتو لو والا سیخ پورې چې انختې وړئ دهغې نه لرې کولې شی.

﴿وَالسّٰبِحٰتِ سَبْحًا﴾دادریم قسم اوصفت دې دَدې فرشتو .بعض مفسرین فرمائی چې فرشتی کله انسان نه روح قبض کوی ، نو جسم کښ داخلې شی. نو دَ فرشتو دَده جسم ته

داخلیدل او دَهغی نه روح راوباسل داسې وی لکه یو لامبوزن په اوبو کښې لامبو اووهی او دننه شی، او هلته نه څه راواخلی اوراوځی.

خو اکثر مفسرین فرمائی چې داسرعت سیر نه کنایه ده، یعنی دَروح اوباسلو نه ورستو په ډیر تیزئ سره ئې د رب طرف ته وړی لکه حدیث کښې هم دَدې ذکر راغلې دې

﴿فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا﴾ داځلورم قسم او صفت دې دَفرشتو ، 'سبقت' نه مراد انقیاد اوتبادر دې حکم الهی ته، او'سبقت' ماده راوړلو کښې دې وصف کښې مبالغې طرف ته اشاره ده، ګویاچې انقیاد او اطاعت کښې یو بل نه مخکښې کیږی، اومقصود دلته دَروح په باره کښې حکم الهی ته انقیاددې، چې روح په باره کښې الله ﷻ کوم احکامات ورته ورکړی ډیر په تیزئ سره دَهغې تعمیل کوی او ځائ ته ئې رسوی.

﴿فَالْمُدَبِّرٰتِ أَمْرًا﴾ داپنځم قسم او صفت دې، یعنی روح خپل مقام ته وړلونه ورستو کوم احکامات ورته دَثواب اوعقاب دَالله ﷻ طرف نه میلاو شوی وی، دَ هغې انتظام اوتدبیر کوی.

بهرحال داپنځه قسمونو وؤ، اوجواب قسم محذوف دې، چې ((لتبعثن)) دې، اوقسم او جواب قسم کښې مناسبت دادې: (۱)چې روح قبض کول دادَقیامت توطئه او اولین منزل دې من مات قامت قیامته (۲)اوبل داچې داپنځه قسمونه شواهد دی په ثواب اوعقاب دَبعثت او آخرت، چې څنګه دنیا کښې مؤمنانو روح په آسانئ اونرمئ سره اوکافرانو روح په سختئ او تکلیف سره قبض کیږی، نودغه شان فرق به په آخرت هم وی، مؤمنان به په راحت اوکافران به په تکلیف کښې وی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | تَرْجُفُ | الرَّاجِفَةُ ۝ | تَتْبَعُهَا | الرَّادِفَةُ ۝ | قُلُوبٌ | يَوْمَئِذٍ |
| په هغه ورځ چې | اوخوزوی | خوزونکی | وریسې راشی | وریسې راتلونکې | ډیر زړونه | به پدغه ورځ |
| وَاجِفَةٌ ۝ | أَبْصَارُهَا | خَاشِعَةٌ ۝ | يَقُولُونَ | أَإِنَّا | لَمَرْدُودُونَ | فِي الْحَافِرَةِ ۝ |
| درخیدونکی وی | سترګی به ئې | خکته وی | وائی | دوئ آیا مونږ | به واپس ګرځولې شو | زوړ حالت ته |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ءَإِذَا | كُنَّا | عِظَامًا | نَّخِرَةً ﴿١١﴾ | | قَالُوا | تِلْكَ | إِذًا | كَرَّةٌ | خَاسِرَةٌ ﴿١٢﴾ | |
| آیا کله | چه شو | مونږه | هډوکي وراسته | | وائي چه | دا | خو به | بیا | تاواني | واپسي وي |
| فَإِنَّمَا | هِيَ | زَجْرَةٌ | وَاحِدَةٌ ﴿١٣﴾ | | فَإِذَا | هُمْ | بِالسَّاهِرَةِ ﴿١٤﴾ | | | |
| بې شکه دادوباره | پیدا کیدل | صرف اواز | دې یو | | بیا به دا | ټول خلق | په مخ دزمکې وي | | | |

﴿يَوْمَ تَرْجُفُ﴾ دا تخویف دې متعلق دې دجواب قسم محذوف سره، چه لتبعثن دې، یعنی دابعثت به په هغه ورځ وي چې کومه ورځ زورداري زلزلې سره هر څه فنا شي، اوبیا به دوباره صور پوکلې شي، او تاسو ټول به دوباره ژوندي شئ. ﴿الرَّاجِفَةُ﴾ د رجف یرجف نه داسم فاعل صیغه ده، په معنی دخوزونکې، دینه مراد نفخه اولی ده چې دې سره به ساکن شې په خوځیدو شي

﴿تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ﴾ الرادفة وروسته راتلونکی ته وائي، او دینه مراد نفخه ثانیه ده،

﴿قُلُوبٌ يَوْمَئِذٍ﴾ ډیر زړونه به په هغه ورځې لړزان وي، ﴿وَاجِفَةٌ﴾ په معنی ددرخیدلو اوبریدلو کښ دي، ﴿أَبْصَارُهَا﴾ ضمیر راجع دې ﴿قُلُوبٌ﴾ ته په حذف دمضاف سره ای ابصار اهلها (روح) یعنی دډیر خوف په وجه به ئې سترګې خکته وي، یا د ابصار نه مراد بصائر یعنی عقلونه دي، یعنی عقلونه به په دغه ورځ خراب وي په هیڅ به هم نه پوهیږي چه څه اوکړو (روح).

﴿يَقُولُونَ أَئِنَّا لَمَرْدُودُونَ﴾ دا شکوه ده، دمشرکانو نه، چه دوئ به قیامت پورې استهزاء کوي، او وائي چه آیا کله زمونږ هډوکي اوریژیږي په زمکه کښ، آیا بیا به مونږ زوړ حالت ته واپس کیږو، یعنی بیا به ژوندي کیږو. ﴿الْحَافِرَةِ﴾ معنی زوړ حالت دې.

﴿قَالُوا تِلْكَ إِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ﴾ یعنی کچرته دا واپس کیدل زوړ حالت ته یعنی بیا ژوندي کیدل واقعي په حقه وي، نو مونږ به په لویه خساري کښ یو، د وجې د تکذیب نه، یا مطلب دادې چه دا به خولوئ تاوان وي، ځکه چه زمونږ په مالونو، جائیدادونو باندې به نورو خلقو قبضه کړې وي (جواهر).

﴿فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ﴾ جواب شکوه دي. هي ضمير یا ژوړ حالت ته واپس کيدلونه راجع دي، يا زادفة ته. يعني دا واپس کيدل اوبیاژوندی کیدل مشکل مه ګڼرئ او استهزء، وړپوری مه کوئ، ځکه چه دا خو به يو چړق وی، چه بس ټول خلق به د قبرونونه رابيدارشي په زمکه به ولاړوی. ﴿بِالسَّاهِرَةِ﴾ ساهرة وجه الارض ته وائي.

هَلْ أَتٰىكَ حَدِيثُ مُوسٰى ﴿١٥﴾ إِذْ نَادٰىهُ رَبُّهُ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٦﴾

آیا راغلي ده تاته قصه ده موسیٰ علیه السلام کله چه آواز اوکړوده ته رب ددهٔ په وادي پاکی کښ چه طوی دے

اِذْهَبْ إِلٰى فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغٰى ﴿١٧﴾ فَقُلْ هَلْ لَّكَ إِلٰى أَنْ تَزَكّٰى ﴿١٨﴾

ورته ئې اووئيل لاړشه فرعون ته بې شکه هغه سرکشه شويدې نوورته اووايه آيا نه غواړی داچه پاک شې د ګناه نه

وَأَهْدِيَكَ إِلٰى رَبِّكَ فَتَخْشٰى ﴿١٩﴾ فَأَرٰىهُ الْآيَةَ الْكُبْرٰى ﴿٢٠﴾ فَكَذَّبَ

او ځه لاره اوښایم تاته په طرف د رب ستانو ته اویریږې. نو اوئې خودله هغه ته معجزه لویه نو هغه ئې تکذيب اوکړو

وَعَصٰى ﴿٢١﴾ ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعٰى ﴿٢٢﴾ فَحَشَرَ فَنَادٰى ﴿٢٣﴾ فَقَالَ

او نافرماني ئې اوکړه بیائې شاکړه کوشش ئې کولو. خلق ئې راجمع کړل آواز، تقرير ئې ورته اوکړو. نو اوئې ونیل

أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلٰى ﴿٢٤﴾ فَأَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ الْآخِرَةِ وَالْأُولٰى ﴿٢٥﴾

زه يم ستاسو رب لوئي. نو اونيولو ده لره الله تعالیٰ په عذاب د آخرة او د دنيا

إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى ﴿٢٦﴾

بې شکه پدی قصې کښ خامخاعبرت دې لپاره دهغه چاچه يريږی د الله تعالیٰ نه

﴿هَلْ أَتٰىكَ حَدِيثُ مُوسٰى﴾ دا د تخويف دنيوی نمونه ده او تسلی ده حضور ﷺ ته چه مونږه حضرت موسیٰ علیه السلام فرعون ته د دعوت ورکولو د پاره اوليږلو. ليکن هغه ئې تکذيب اوکړو. نافرماني ئې اوکړه نو دنيوی عذاب سره موهم اونيولو چه غرق دې او آخرة کښ به هم ورته

عذاب ورکوؤ. نودغه شان که دااهل مکه ستاتکذیب کوی نوهغوئ له به هم مونږ عذاب ورکړو.

﴿ٱذْهَبْ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ﴾ قال له ورنه مخکښې مقدر دې. یا تفسیردې د﴿إِذْ نَادَىٰهُ رَبُّهُۥ﴾ نو ... مفسره پکښې محذوف دې. سورت طه کښې صیغه دتثنیه اذهبا راغلې ده. دواړو کښې هیڅ منافات نشته:

(۱) چونکه موسی ﷺ او هارون ﷺ دواړه فرعون ته لیږلی شوی نوځکه هلته دتثنیې صیغه ده او اصل پکښې موسی ﷺ وؤ، نوځکه دلته واحد صیغه راوړلې شوه

(۲) یا اول صرف حکم موسی ﷺ ته شوې وؤ، اوبیا هغهٔ دعا اوکړه، اوخپل ورورئ ځان سره معاون کړو، نودې وجهې نه اول حکم اعتبار سره صیغه واحد اودویم حکم اعتبار سره صیغه دتثنیې راوړلې شوی ده

﴿تَزَكَّىٰ﴾ په اصل کښې تتزکئ دې یعنی ته ځان پاک کړې دګندګئ دکفراوسرکشئ نه

﴿فَأَرَىٰهُ ٱلْءَايَةَ ٱلْكُبْرَىٰ﴾ لوئی معجزی نه مراددعصانه مارجوړول دی.یاورنه عصا او ید بیضاء دواړه دی،په اعتبار دَ دلالت یوه معجزه ده نوځکه واحد ذکرشوه.

﴿ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعَىٰ﴾ ادبار ونیلی کیږی شاه کولو ته .او سعی ونیلې کیږی تیزتللو اومنډی وهلو ته، خو دلته دواړه مجازی معنو کښې استعمال شوی دی ادبار نه مراد اعراض او سعی نه مراد دین موسوی ابطال کول دی.

﴿فَحَشَرَ﴾ دا ئې د اعراض او سعي تفصيل دې ،يعنی ساحران ئې راجمع کړل.کقوله تعالی فارسل فرعون فی المدائن حاشرين بیا ئې خپل لښکر او خلق راجمع کړل اوبیان ئې ورته تقریر اوکړواوورته ئې اوونیل﴿أَنَا۠ رَبُّكُمُ ٱلْأَعْلَىٰ﴾دلته ئې ځان ته لوئ رب اوونیل اوپه سورة قصص (۳۸)کښې اوونیل:ماعلمتُ لكم من اِلهٍ غيری،یعنی ځمانه علاوه بل اله نشته دې

﴿فَأَخَذَهُ ٱللَّهُ نَكَالَ ٱلْءَاخِرَةِ وَٱلْأُولَىٰٓ﴾ نکال پمعنی دتنکیل دې،هغه عذاب اوسزا ورکولوته وائی چه لیدونکې او اوریدونکې ورنه عبرت واخلی.او دهغه عمل نه ئې منع

کړی، نکالَ یامفعول مطلق دې ای نکل الله به نکالَ الاخرة.یامنصوب بنزع الخافض دې ای اخذهٗ بنکالِ الاخرة(روح).

﴿ اَلْاٰخِرَةِ ﴾نه مراداحراق دې په آخرة کښې په جهنم کښې او﴿وَالْاُولٰى ﴾نه مرادغرق دې په دنیا کښې،یعنی دنیا و آخرت دواړوکښې موورته عبرتناکه سزاورکړه.چه څوک دَالله ﷻ نه یریږی هغه دپاره پکښې لوئ عبرت دې.

| |
|---|
| ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ ؕ بَنٰىهَا ﴿۲۷﴾ رَفَعَ سَمْكَهَا |
| آیاتاسوزیات سخت یئ په پیداکولوکښې یاآسمان چې جوړ کړې دې الله اوچت کړې ئې دې چت دهغې |
| فَسَوّٰىهَا ﴿۲۸﴾ وَاَغْطَشَ لَيْلَهَا وَاَخْرَجَ ضُحٰىهَا ﴿۲۹﴾ وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ |
| بیائی برابر کړې دې هغه او تیاره ئې کړځولې ده شپه دهغې او روښانه کړې ئې ده ورځ دهغې اوزمکه ورستودې نه |
| دَحٰىهَا ﴿۳۰﴾ اَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعٰىهَا ﴿۳۱﴾ وَالْجِبَالَ اَرْسٰىهَا ﴿۳۲﴾ |
| خوره کړې ده . را اوباسلې ئې دې دَ دېنه اوبه دَ دې او ګیاه . او غرونه ئې قائم کړې دې |
| مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِاَنْعَامِكُمْ ﴿۳۳﴾ |
| لپاره دفائدې ستاسواودَخناورو ستاسو. |

﴿ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا ﴾داپه دعوی دَسورة یعنی حشرنشرباندې دلیلِ عقلی دې،چه آیاستاسودوباره پیداکول ګران دی اوکه دَآسمان اوځمکی پیداکول؟بلکه اسمان اودَځمکی پیداکول ګران دی،نوچه الله ﷻ پخپل قدرت سره دا پیداکړیدې،تصرفات ئې پکښې کړیدی نو ستاسو پیداکول خوآسان دی کقوله تعالی:لخلق السمٰوٰت والارض اکبرمن خلقِ الناس.

﴿رَفَعَ سَمْكَهَا ﴾بیان دې دَ﴿ بَنٰىهَا﴾ یعنی صرف پیدا کول ئې نه دی ،بلکه په هوا کښې اوچت بلاستون اوسهارې نه ئې پیداکړې دې، سمک اوچتوالی ته وائی،چت دَاسمان ورنه مراذ دې، اومطلب دادې چه اسمان ئې اوچت پیداکړیدې،دامطلب نه دې چه اول لاندې وؤ بیائی اوچت کړې دې.

﴿ فَسَوّٰنهَا﴾بیانی هوا کښې داسې ادرولي دي چې هیڅ عیب یکښې نشته.نه پکښې لاندې باندې والي شته.نه پکښې چاود شته. نه پکښې پیوند شته.اوحسنسه ستورو سره ئې مزین کړي دي

﴿وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحٰهَا ﴾صرف آسمان نه.بلکه شپه ئې پیدا کړه ورځ ئې پیدا کړه. شپه ئې تیاري والا اوګرځوله. او ورځ ئې روښانه اوګرځوله. "اغطش"بمعنی د "اظلم" سره دي. او "اخرج"بمعنی "اظهرو ابرز"سره دي. "ضحی" نه مراد ټوله ورځ ده. خوچونکه داوخت په ټولو کښې اشرف دي نوځکه د "نهار" نه تعبیر په دي سره اوشو

دلته "لیل"او"ضحی"دواړو نسبت آسمان نه شوي دي.یعنی د آسمان شپه اود آسمان ورځ. ددي وجه داده چې دشپې اوورځې تعلق نمر سره دي. چې د نمر غروب شی.نوشپه شی اوچې طلوع شی نوورځ شی.اودا امر سماوی دي. نوادنی ملابست او تعلق په وجهی دلیل اوضحی نسبت آسمان ته اوشو

﴿وَٱلْأَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ ﴾یعنی صرف آسمان اودهغې انتظامات نه دی.بلکه ځمکه ئې پیدا کړي ده.هغه ئې غوړه ولې ده،هغې کښې دخوراک سکاک بندوبست کړي دي.اوددي استقرار دپاره ئې پرې غرونه ایخیدی.داټول ئې انسانانو اوځناورو فائدي دپاره دی

«الارض» منصوب دي بنا بر "ماأضمر عامله علی شريطة التفسير". «ذلك» مشارالیه خلق السماء، اغطاش اللیل ،او اخراج النهار دي ، ﴿دَحٰنهَا﴾خوروله نه وانی.دینه معلومیږی چې خلق السماء اول شوي اودځمکې تخلیق دینه ورستو شوي دي. نو بظاهر ددي تعارض راځی د سوره البقره،آیت ۱۹ الذي جعل لکم الخ او سورت فصلت آیت ۱۱ قل ائنکم لتکفرون سره، ځکه چې هلته صراحت دي د دي خبرې چې اول ځمکې تخلیق اوبیا دآسمان تخلیق شوي دي، دا تعارض مفسرینو څوطریقو سره حل کړي دي .تفصیل دپاره ددی تفسیر جلد۱ صفحه ۱۲۵ آیت ۱۹ تفسیر ملاحظه کړئ

﴿ وَمَرْعٰهَا ﴾"مرعی"ظرف دي یعنی ورشو.یامصدربمعنی دمفعول دي،هغه واخه چه حیوان پکښې سرکوی، د انسان غذا لکه سبزی فصل وغیره ته هم شامل دي،البته اطلاق ئې دپاندي مجازاً شویدي.

﴿ فَسَوّٰىهَا ﴾بيائي هوا كښې داسې ادرولې دې چې هيڅ عيب پكښې نشته،نه پكښې لاندې باندې والي شته،نه پكښې چاودشته، نه پكښې پيوند شته.اوخائسته ستورو سره ئې مزين كړې دې.

﴿وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحٰىهَا ﴾صرف آسمان نه،بلكه شپه ئې پيدا كړه ورځ ئې پيدا كړه، شپه ئې تيارې والا اوګرځوله، او ورځ ئې روښانه اوګرځوله. "اغطش"بمعنى د"اظلم" سره دې، او "اخرج"بمعنى "اظهرو ابرز"سره دې، "ضحى" نه مراد ټوله ورځ ده، خوچونكه داوخت په ټولو كښې اشرف دې نوځكه دَ نهار نه تعبير په دې سره اوشو.

دلته "ليل"او"ضحى"دواړو نسبت آسمان ته شوې دې،يعنى دَ آسمان شپه اودَ آسمان ورځ، دَدې وجه داده چې دَشپې اوورځې تعلق نمر سره دې، چې داډوب شى،نوشپه شى اوچې طلوع شى نوورځ شى،اوداامر سماوى دې، نوادنى ملابست اوتعلق په وجهى دَليل اوضحى نسبت آسمان ته اوشو.

﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ ﴾يعنى صرف آسمان اودهغې انتظامات نه دى،بلكه ځمكه ئې پيدا كړې ده،هغه ئې غوړه ولې ده،هغې كښې دَخوراک سكاک بندوبست كړې دې،اودَدې استقرار دَپاره ئې پرې غرونه ايخيدى،داټول ئې انسانانو اوځنانوروفائدې دَپاره دى.

«الارض» منصوب دې بنا بر "مااضمر عامله علي شريطة التفسير"، «ذلک» مشار اليه خلق السماء، اغطاش الليل ،او اخراج النهار دې ، ﴿دَحٰىهَا﴾خورولو ته وائى،دينه معلوميږى چې خلق السماء اول شوې اودَځمكې تخليق دينه ورستو شوې دې، نو بظاهر دَدې تعارض راځى دَ سوره البقره،آيت ۱۹ الذي جعل لكم الخ او سورت فصلت آيت(۱۱)قل ائنكم لتكفرون سره، ځكه چې هلته صراحت دې دَ دې خبرې چې اول ځمكې تخليق اوبيادآسمان تخليق شوې دې، دا تعارض مفسرينو څوطريقو سره حل كړې دې ،تفصيل دَپاره دَدى تفسير جلد(۱)صفحه ۱۲۵ آيت ۱۹تفسير ملاحظه كړئ.

﴿ وَمَرْعٰىهَا ﴾"مرعى"ظرف دې يعنى ورشو،يامصدربمعنى دَمفعول دې،هغه واخه چه حيوان پكښې سركوى، د انسان غذا لكه سبزى فصل وغيره ته هم شامل دې،البته اطلاق ئې دَرباندې مجازاًشويدې.

﴿وَالْجِبَالَ﴾منصوب على شريطة التفسيردي﴿أَرْسٰهَا﴾نې تفسير دي﴿مَتَاعًا لَّكُمْ﴾مفعول له دي.اى فعل ذلک تمتعالکم.یعنی ستاسو اودخناور ستاسو دپاره ئې داکارونه اوکړل

فَإِذَا جَاءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى ۞ يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنْسَانُ مَا سَعٰى ۞

نوکله چه راشي حادثه لويه‌قيامت‌چه پدغه ورځ به يادشي انسان ته هغه عملونه چه ئې کړي وي

وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِمَنْ يَّرٰى ۞فَأَمَّا مَنْ طَغٰى ۞ وَاٰثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ۞

اوښکاره به کړې شي جهنم هرليدونکي ته‌نوهغه چه سرکشي ئې کړې وي اوغوره کړې ئې وي ژونددنيا

فَإِنَّ الْجَحِيْمَ هِيَ الْمَأْوٰى ۞ وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ

نوبې شکه جهنم بس هم هغه ئې ځکانه ده . اوهغه څوک چه يريدلې وي داودريدلونه په حضوردرب خپل کښې

وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى ۞ فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوٰى ۞

اومنع کړې ئې وي نفس خپل دناجائزخواهش نه، نوبې شکه جنت صرف هغه ئې ځکانه ده

﴿فَإِذَا جَاءَتِ﴾داتخويف اخروى دې چې کله قيامت راشي نو الله ﷻ به دانسان سره حساب کتاب کوى،چې دې نعمتونو شکرادکړې دې اوکه نه.

﴿الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى﴾لوئ حادثې اومصيبت ته وائى دَ طمَّ يطمُّ نه دې،پمعنى دَغالب راتللو سره،او داعلم گرځيدلې دې دَپاره دَ قيامت ، او دې ته"طامة"ځکه وائى چې داټولونه لويه حادثه ده او نور ټول مصيبتونه تکليفونه دې په مقابله کښې هيڅ نه دى.

﴿يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنْسَانُ﴾بدل دې دَ "اذاجاءت"نه، "تذکر" دَ يو شي هيريدلو نه پس ياديدلو ته وائى، دې کښې اشاره ده حساب کتاب ته ، ځکه چې انسان کوم عملونه کړى دى، نوترينه به هير وى،نوچې کله حساب،کتاب ورسره اوشى، نو يو يو عمل به ورته اوخودلې شى، دە ته به دا ټول ياد شى، او اعتراف به ئې اوکړى. ﴿مَا سَعٰى﴾نه مراد اعمال دى.

﴿وَبُرِّزَتِ الْجَحِيمُ﴾ جهنم به راوړلي شي اوبالکل په ډاګه به کیخودلي شي.هرسړی ته به ښکاري، مؤمن وي اوکه کافر، اوداسې حالت کښې به حساب کتاب اغستې شي.حدیث شریف کښې راځي چې جهنم به داسې حالت کښې راوستلې شي چې دې پورې به اویا(۷۰)زره پرې ترلې شوې وي،اوهر پړې به اویا(۷۰) زره فرښتې راکاږي..مسلم﴿لِمَن يَرَىٰ﴾اې لکل راء.

﴿فَأَمَّا مَن طَغَىٰ﴾داتفصیل دَجزا دې ، چې کومو خلقو دنیا کښې دَالله ﷻ حکمونو بغاوت کړې وي اودنیا زندګئ له ئې په آخرت باندې ترجیح ورکړې وي، نوهغه به جهنم ته اوغورځولې شي.

﴿وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ﴾دامؤمنانو جزا بیان دې، یعنی کوم خلقو سره چې دَالله ﷻ خوف وو.او دَ نفس خواهشاتو اتباع نه ئې ځان ساتلې وو، نوهغوئ به جنت ته اولیږې شي .

((مقام ربه)) نه مراد قیامت په ورځ الله ﷻ دربار کښې پیښې ده، اولفظ "مقام"دلته مقحم (زائد) دې دَپاره دَمبالغې، اومراد مطلقاًخوف الهی دې، ځکه چې دَ مکان نه خوف وي، نو مکین نه خو په پطریق اولی خوف وي، دلته صرف مبالغې معنی مقصود ده باقی الله ﷻ دَمکان نه منزه دې.

دَخوف صوفیاوو درې درجې بیان کړې دي:

(۱)داهل تقوی درجه:چې دآخرت دَمؤاخذې خوف وي.

(۲)داهل محبت درجه:دخطاپه وجه دَمحبوب دَنظر نه غورځیدلو خوف وي.

(۳)مقام عبدیت:بلالحاظ دڅه نتیجې بلکه محض دَذات الهی عظمت اوهیبت دَوجهې خوف وي. (تفسیر ماجدی)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَسْـَٔلُونَكَ | عَنِ | السَّاعَةِ | أَيَّانَ | مُرْسَاهَا | ۞ |

تپوس کوي مشرکان ستانه په باره دَقیامت کښې چه کله به وي راتلل دَهغې.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيمَ | أَنتَ | مِن | ذِكْرَاهَا | ۞ | إِلَىٰ | رَبِّكَ | مُنتَهَاهَا | ۞ | إِنَّمَا أَنتَ |

ستاڅه کاردې دَ بیانولودې سره،صرف رب ستاته ده انتهادَقیامت(علم ئې ورته حواله دې)بې شکه ته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُنذِرُ | مَن | يَخْشَـٰهَا | ۝ كَأَنَّهُمْ | يَوْمَ | يَرَوْنَهَا |
| صرف يرونكي ئي | دَهغه چاچه | يريږي دَقيامت نه | گويا چې دوئ | په هغه | ورځ چې اووينې قيمت |
| لَمْ | يَلْبَثُوٓا | إِلَّا | عَشِيَّةً | أَوْ | ضُحَىٰهَا ۝ |
| به دا كيفيت وي ، | چې نه دي تيرکړي | دوئ دنيا کښ | مګر يو بيګا | يا | يوصبا |

﴿يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلسَّاعَةِ﴾ داشکوه ده اوزجردي منکرينو دَقيامت ته چه دوئ استهزاءً تپوس کوی چه قيامت به کله راځی ﴿مُرْسَىٰهَا﴾ مُرسی يامصدرميمی دي پمعنی دَاثبات اوقيام ، يعنی راتلل دَقيامت، يا مُرسی پمعنی دَ منتهیٰ دي، د ارساءالسفينة نه ماخوذ دي، يعنی لکه په سفر روانه کشتئ چې کله په کنارې لنګر اوغورځوی اومنزل مقصود راشی نودغه شان دې عالم دنيا کشتئ به کله غاړی سره لګی اوقيامت به راځی؟

﴿فِيمَ أَنتَ مِن ذِكْرَىٰهَآ﴾ داجواب دي دوئ سوال،چې دوئ داسوال ستانه بالکل بې محل دې ځکه چې ستاکار تشريعيات بيانول دی تکوينيات بيانول نه دی، اودي تعلق خو تکوينياتو سره دي، "فيم"او"من ذکرها" دواړه جارمجرور د يو متعلق سره متعلق دی، او خبر دی دَپاره دَمبتدا "انت". ﴿ذِكْرَىٰهَآ﴾ حذف دَمضاف سره دي، اي ذکری وقتها.

﴿إِنَّمَآ أَنتَ مُنذِرُ﴾ تفسير ماجدی کښ دی،چې دې آيت کښ دوو خبر تعليم ميلاوْشو: (١)يودي چې ستاحيثيت محض دَمبلغ اومنذر دې،خبرول اوپوهه کول دستا کاردي،زړه ته خبره کوزول دادَستا کارنه دي،(٢)دويم داچې ستاتبليغ اوتعليم نه به هغه خلق اثر اخلی چې هغوئ په زړونو کښ خوف قيامت وی،اوچاسره چې خوف قيامت نهٔ وی نوهغه باندې به ستاتبليغ هيڅ اثر نه کوی. ﴿كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا﴾ داهم دَهغوئ اعتراض جواب دې مشرکينو به وئيل چې کچرته قيامت وي، نو تراوسه پورې به راغلې وي؟الله ﷻ ورته فرمائی چې قيامت شته ،اګرچې لګ مؤخر دي، اودوئ ته دامودہ اوس خوډيره ښکاری، خوکله چې قيامت قائم شی نوبيابه ورته دَ قيامت داسې ښکاری لکه يوبيګا يا صبا، "يوم يرونها" ظرف متعلق دې حال محذوفه سره "لم يلبثوا" جمله خبر ده ،دَ "کان" دپاره.

| رکوعاتها (۱) | سورة العبس مدنية | آياتها (۴۲) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۸۰) وحسب النزول (۲۴)**

نزلت بعدسورة النجم و قبل القدر

**ربط**: (۱) ماقبل سورة کښې دَثبوت دَقيامت اوتخويف اخروی نمونه ذکرشوه، دی سورة کښې تخويف أخروی على سبيل الترقی ذکر دي، چه قيامت ورځ به په کافرانو دومره سختی وی چې نفسی نفسی کښې به وی. اوهرسړې به دَيوبل نه تختی.

(۲) مخکنی سورت په آخر کښې ذکروؤ چې انما انت منذر من يخشاها اودې سورت په ابتدا کښې دَدې عملی نمونه ذکرده.

**خلاصه**: دَمضمون په اعتبارسره دَسورة درې حصې دی:

اوله حصه ترآيت (۱۶) پورې ده ، ديکښې د انما انت منذرمن يخشاها عملی نمونی بيان دې او دَعظمت قرآن ذکر دې.

دويمه حصه ترآيت (۲۳) پوری ده، ديکښې زجر دې مشرکانو ته.

دريمه حصه ترآيت (۳۲) پوری ده، ديکښې دليل عقلی دې په ثبوت دَقيامت، بيا تر آيت (۴۲) پوری تخويف اخروی دې، بيا اخرکښې بشارت اوتخويف دې (تمت).

| |
|---|
| عَبَسَ وَتَوَلّٰٓى (۱) اَنْ جَآءَهُ الْاَعْمٰى (۲) وَمَا يُدْرِيْكَ |
| تُثلردَنارا ضکن ښکاره شول په مخ مبارک اومخ ئی واړولو.پدی وجه چه راغې ده ته لونړ.اوڅه پته ده تاته |
| لَعَلَّهٗ يَزَّكّٰٓى (۳) اَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنْفَعَهُ الذِّكْرٰى (۴) اَمَّا مَنِ |
| چه کيديشی هغه پاک کړی ځان يانصيحت قبول کړی نونفع ورکړی هغه ته نصيحت.هغه څوک چه |
| اسْتَغْنٰى (۵) فَاَنْتَ لَهٗ تَصَدّٰى (۶) وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى (۷) |
| بی پرواهی کوی دَدين نه،نوته هغه ته متوجه کيږې.اونيشته په تابانذی څه ضررکه پاک.مسلمان.نشی. |

وَاَمَّا مَنۡ جَآءَكَ يَسۡعٰىۙ ﴿۸﴾ وَهُوَ يَخۡشٰىۙ ﴿۹﴾ فَاَنۡتَ عَنۡهُ تَلَهّٰى ﴿۱۰﴾

او هغه څوک چې راغې تاته په منډه منډه ، او هغه يريږي . نو ته هغه نه غفلت کوې

﴿عَبَسَ وَتَوَلّٰٓى﴾ دا آياتونه دَحضرت عبدالله بن ام مکتوم ﷺ باره کښې نازل شوي دي قصه داسې ده چې يو ځل نبي کريم ﷺ دَمشرکينو يو سردار ته دعوت ورکولو ، چې دې دوران کښې دې راغې، او دا آواز ئې لګول شروع کړو: يارسول الله ارشدني" اې دَالله رسوله څمه راهنمائي اوکړه(وفي رواية موطا استدنيني يعني ماځان ته نيزدې کړه) نبي کريم ﷺ ده طرف ته توجه ورنکړه اوهغه مشرک ته ئې خپل دعوت جاري اوساتلو. اودائې ورته اوئيل يافلان اترى بما اقول فيه باسا، اې فلانيه څه چې کوم وينا کوم، دې کښې تاسوته څه حرج ښکاري. اودې مشرک به ورته وئيل "لا" يعني نه ښکاري،نودې باره کښې دا آياتو نه نازل شول (ترمذي. موطا امام مالک)

دلته يو څو خبرو پيژندل ضروري دي.

(١)احاديثو کښې ددې واقعې صرف دومره ذکر راغلې دې، دينه علاوه څومره اضافات او زيادات دي يا بلاسنده دي اويا انتهائي ضعيف سند سره منقول دي، او دَ حديث يو معتبر کتاب کښې هم دَدې ذکر نشته ، خصوصاً دَ دې الفاظو چې "مرحبا بمن عاتبني فيه ربي" خو هډو ثبوت نشته،بلکه بعض محدثينو ورته دَموضوعي نسبت کړې دې.

(٢)ديکښې اختلاف دې چې نبي کريم ﷺ به اجتهاد کولو اوکه نه؟جمهور علماؤ دا قول دې چې نبي کريم ﷺ اجتهاد کړې دې،خوبيا په دې کښې اختلاف دې چې نبي ﷺ اجتهاد کښې خطاواقع شوې ده اوکه نه ،عام اصوليين دا وائي چې اجتهاد کښې ترينه خطاواقع شوې ده، اګر چې قرار پرې نه دې شوې، بلکه فوراًبذريعه وحی تنبيه شوې ده،ليکن محققينو او دَ عامو محديثينو قول دادې چې نبي ﷺ نه خطا نه ده واقع شوې،دوئ فرمائي چې څنګه دَنبي الهام اوامتي الهام کښې فرق دې،د نبي الهام قطعي وي ديکښې دَخطا احتمال نه وي،په خلاف د امتي الهام نه چې داقطعي نه وي اوپه ديکښې دَ خطااحتمال وي، نودغه شان دَنبي اجتهاد او امتي اجتهاد کښې هم فرق دې،امتي نه په اجتهاد کښې خطا کيدې شي (اګرچې خطا باوجود هم ورته يو اجر ميلاويږي،کله چې دَ اجتهاد اهل وي،اوخپل مکمل صلاحيتونو ئې پکښې

صرف کړې وي، خو د نبي اجتهاد قطعي وي . ديکښې خطا نشي واقع کيدې.نورتفصيل دپاره ئې د اصول فقه کتابونه ملاحظه کړئ.

(۳)کوم حضرات چې وائي چې نبي ﷺ نه په اجتهاد کښې خطا واقع شوې ده. نو هغوئ دا واقعه هغو واقعاتو په ضمن کښې ذکر کړې ده، چې نبي ﷺ پکښې اجتهاد کړې دې او اجتهاد کښې ترينه خطا شوې ده،دوئ وائي چې دلته نبي کريم ﷺ اجتهاد داسې اوکړو چې

(۱)ابن ام مکتوم خماجان نثار اوحاضر باش صحابي دې .ده نه هروخت تعليم ورکولې شم، په خلاف دَدې مشرک نه، چې دې خما مجلس ته نه راځي. او دا موقع رانه ضائع کيږي، لهذادې مشرک ته توجه ورکړه.

(۲)اوبله داچې ابن ام مکتوم دَمجلس آدابو خلاف ورزي هم اوکړه،ځکه چې نبي ﷺ مخکښې نه دې مشرک سره خبرتروکښې مصروف وو،اودې په کښې مينځ راغې، او دَ نبي ﷺ خبرې ختمولو ته انتظار ئې اونکړو، او آوازونه ئې شروع کړل. او دا دَ آدابو دَ مجلس خلاف وه، نو دَ تاديب اوتنبيه دَپاره ئې ورته توجه ورنکړه.

نودې اجتهاد کښې څواعتبار سره خطا واقع شوې ده:

(۱)عاجلې اويقيني نفع باندې آجلې اوموهوم نفع له ترجيح ورکړې شوه ، دَ حضرت ابن ام مکتوم نفع عاجله اويقيني وه، په خلاف ددې مشرک نه ،چې دَده نفع غير يقيني اوموهوم وه.

(۲)ديکښې دَغريبانو زړه ماتيدلو خطره وه.

(۳)دَصحابي طلب صادق وو اودَمشرک طلب غير صادق وو.

(۴)مزيد داچې دَمجلس آدابو خلاف کولو عذر الله ﷻ دَهغه لونړ والي بيان کړو.

کوم حضرات چې وائي چې نبي ﷺ په اجتهاد کښې خطاامکان نشته نوهغوئ وائي چې دا اجتهاد بالکل صحيح دې، ديکښې هيڅ قسم خطا نشته ،ځکه چې دا مشرک سردار وو،خلق دَ ده متبع او مقلدين وو، نو دَ ده په ايمان راوړلو سره مسلمانانو ته ډير خير او فائده حاصليده، او دَ لوې فائدې په ځائ ډيرې فائدې له ترجيح ورکول اواعظم المصلحتين باندې عمل کول عين دَشريعت حکم دې، نو ځکه نبي کريم ﷺ دې مشرک ته توجه اوکړه اوصحابي ته ئې اونکړه، نوداا جتهاد بالکل صحيح وو،البته دَغيب خبرې نورې وې،الله په علم ازلي کښې دا ليک وه چې دا مشرک به ايمان نه راوړي، نودې وجهې نه ئې نبي ﷺ ته اخبار دَغيب اوکړو چې دې پريګده، اودې صحابي ته توجه اوکړه، ځکه چې ده ته دعوت ورکولوکښې هيڅ نفع نشته.

اوآیت کښ چې کوم صورت عتاب دې نودې باره کښ محققین فرمائی چې داعتاب علی النبی نه دې بلکه عتاب للنبی دې، اوعتاب علی الشئ اوللشئ کښ ډیر فرق دې. دَ عتاب علی الشئ منشأ ناراضګی وی، اوعتاب للشئ منشأ ترحم وی. لکه یو طالب سبق نه یادوی فضول ګرځی نواستاد ورته غصه شی، نو دې عتاب منشأ نارضګی ده، او یوبل طالب دې چې محنت کوی ،تر ناوخته پورې ناست وی، سبق وائی، نو استاد ده ته هم غصه شی چې دا څه کوی؟ستاجسم په تاباندې حق دې، دې له لګ آرام ورکوه اوس داهم عتاب دې، خو دې سبب اومنشأ ترحم دې، نودلته هم دوه کسان وو یو معاند ،مشرک،دشمن اوبل مؤمن ،جان نثار، هر حکم منونکې، نو اوس آسانه خو دا وه چې نبی ﷺ دې دویم کس ته دعوت ورکړې وې، لیکن نبی ﷺ شدت حرص ایمان اوامت دَخیر د پاره ګرانه لاراختیار کړه، نو دې په وجه ترحم باندې مبنی حکم ورته الله ﷻ راولیږلو.

اوبعضو وئیلی دی چې دلته هډوسره عتاب نشته بلکه دامحض حکایت حال دې،یعني دې وخت کښې چې د نبي کریم ﷺ کوم کیفیت وو ، هغې بیان مقصود دې اوتذکیر دې.

﴿عَبَسَ﴾ عبس دَعبوس نه دې تندې تریولو ته وائی ،اودلته ترینه مراد ناګوارئ اظهار اوبدګنړل دی،اودَ تولی نه مراد اعراض کول دی اوضمیر دَغائب نبی کریم ﷺ ته راجع دې.

﴿أَن جَآءَهُ ٱلْأَعْمَىٰ﴾ دایامنصوب بنزع الخافض دې،اې لان جاءه الاعمی، او یا مفعول له دې، اوماقبل دواړو فعلونه علی سبیل التنازع دې ته متوجه دی.الاعمی نه مراد حضرت عبدالله بن ام مکتوم دې.

کوم حضرات چې دااجتهادی خطاګنړی هغوئ وائی چې دالطیف عتادب دې اوصیغه دَغائب راوړلوکښ تلطیف دې نبی کریم ﷺ سره اوتکریم دې دَهغوئ ،اوکوم حضرات چې وائی دا اجتهادی خطانه وه نوهغوئ وائی چې دامحض تذکیر دې اوحکایت حال دې، او یا عتاب للنبی دې علی النبی نه دې.

﴿ لَعَلَّهُۥ يَزَّكَّىٰٓ أَوْ يَذَّكَّرُ ﴾ یزکی اصل کښ یتزکی دې،اودې کښ دَدی صحابی کاملې نفعی طرف ته اشاره ده چې کیدی شی ستانصیحت سره دَده کامله اصلاح شوې وې، "اویذکر" داهم په اصل کښ یتذکروؤ ،اودیکښ جزوی فائدی طرف ته اشاره ده یعنی خاص حکم ئی اوریدلې

وي، اوپه هغې باندې نې عمل کړې وی «او» د مانعة الخلو دپاره دې. یعنی دادواړه حالنه هم جمع کیدې شی. خو داسې نشی کیدې چې یوهم نه وې حاصل شوې.

﴿فَتَنفَعَهُ ٱلذِّكْرَىٰٓ﴾ تزکیې اوتذکیر دواړو باندې مرتب دې یعنی یا به نې تزکیه شوې وه. یا به تذکیر اویابه دواړه، خوبه هرصورت نفع به ورته میلاؤشوې وه

﴿أَمَّا مَنِ ٱسْتَغْنَىٰ﴾ یعنی کوم سړې چې ځان دقرآن اوعلوم نبوت اوهدایت نه ځان مستغنی گڼړي ستاتوله توجه هغه ته ده.

﴿وَمَا عَلَيْكَ أَلَّا يَزَّكَّىٰ﴾ دهغه دایمان نه راوړلو به ستانه تپوس نه کیږي، ته ورته مه دومره پریشانه کیږه، 'ما' نافیه ده 'علیک' خبرمقدم دې او 'الایزکی' مبتدا مؤخر دې.

﴿وَأَمَّا مَن جَآءَكَ يَسْعَىٰ﴾ یعنی ابن امّ مکتوم چه دهدایت اودخصال الخیرطلب کونکې دې ﴿وَهُوَ يَخْشَىٰ﴾ یعنی دالله ﷻ نه خوف کوی، یاخوف کوی داذیت د کفارو نه ستا خوا ته راتلو کښې، یاخوف کوی په لاره کښې دغورزیدلو نه، ځکه چه ځوک ورسره نه وی چه دلاس نه نې اونیسی ، یاخوف کوی چه ستادرس ورنه فوت نشی(روح المعانی)

| |
|---|
| كَلَّآ إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴿١١﴾ فَمَن شَآءَ ذَكَرَهُۥ ﴿١٢﴾ فِى صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴿١٣﴾ |
| هرگزداسې مه کوه بې شکه قرآن نصیحت دې نوځوک چه غواړي نصیحت دی ورنه واخلی په پاڼړوعزت مندوکښې دې |
| مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍۭ ﴿١٤﴾ بِأَيْدِى سَفَرَةٍ ﴿١٥﴾ كِرَامٍۭ بَرَرَةٍ ﴿١٦﴾ |
| چه لوئ قدروالادی پاکی دی په لاسونودفرشتولیکونوکښې دی چه عزت مندی دی، نیکانی دی |

﴿كَلَّآ إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ﴾ 'کلا' په نیز دمحققینو په معنی د'الاحرف استفتاح دې، اوجمهور مفسرینو په نیز ردع دې یعنی داسې انداز د دعوت مه اختیاره وه، «انها» ضمیر یا قرآن ته راجع دې، او مؤنث د وجهې دخبر نه راوړلې شوې دې، او یا ضمیر الدعوة الی الله ته راجع دې چې مقام په دې باندې دلالت کوی.

﴿ فِي صُحُفٍ ﴾بيان دَعظمت دَقرآن دي، جارمجرور په اعتبارِدَمحذوف متعلق صفت دي دَ﴿ تَذْكِرَةٌ ﴾ اى كائنةٌ يا مثبتة فى صحفٍ، يا خبرثانى دي دَ﴿ إِنَّهَا ﴾(روح). مرادورنه لوحِ محفوظ دي. يعنى دغه قرآنى آياتونه په عزت ناکو پانړويعنى لوح محفوظ کښې ثابت اوليکلی شويدی

﴿ مَّرْفُوعَةٍ ﴾يعنى مرفوعة القدردى، لوئ قدر ئې دي عندالله ، يا مرفوعة المكان دى ځکه چه لوحِ محفوظ تحت العرش دي.

﴿مُّطَهَّرَةٍ ﴾دَهرعيب نه پاکې دی که هغه عيب دَتناقض دي په مضامينو کښې، يا دلائلو کمزوری ده، يا دَ شيطانانو مس کول دی.

﴿ بِأَيْدِي سَفَرَةٍ ﴾جمع دَسافرده پمعنى دَ کاتب،مرادورنه فرشتې دی. دَ لوح محفوظ نه نقل کولو په وجه دوئ ته "سفرة" اووئيل شول،يعنى داقرآنى آياتونه په لاسونو دَ کاتبانو فرشتو کښې دی چه عزت مندی اونيکانی دی دَالله اطاعت کونکی دی، يا﴿سَفَرَةٍ ﴾جمع دَ سافرٌ ده پمعنى دَسفير،يعنى هغه فرشتى چه دَالله ﷻاودَانبياؤمينځ کښې سفيرانى دی، (ابن کثير،روح).

﴿ كِرَامٍ بَرَرَةٍ ﴾ كرام يا دَ كرامة نه ماخوذ دي، پمعنى دَعزت مند . يعنى دا فرشتې دَالله ﷻ خواه ته ډيرې عزت مندې دی،اويادَ "كرم" نه ماخوذ دي، يعنى ډيرې کريمې اومهربانې فرشتې دی، مؤمنانو دَ پاره مغفرت سوال کوی او انسانيت دَ پاره دَ خير رسائى ذريعه ګرځيګى، "بررة" نيکوکارې دَ افعالو په اعتبار سره. يعنى دَالله ﷻاطاعت کونکی دی، په حديث کښې دی:الّذى يقرأالقرآن وهوماهرٌبه مع السّفرة الكرام البررة،والذى يقراء وهوعليه شاق،له اجران(ابن کثير).

ابن کثيرؒ وائى دلته نه دامعلومه شوه چه حامل قرآن يعنى حافظ قرآن دپاره مناسب ده چه دَهغه په افعالواقوالوکښې دی دَفرشتوپه شان درستګی وی

| |
|---|
| قُتِلَ الْإِنسَانُ مَا أَكْفَرَهُ ۞ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ ۞ مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُ |
| هلاک دی شی انسان څومره ناشکره دې،دکوم څيزنه الله ﷻپيداکړيدې دې،دَنطفی نه پيداکړې ئې دې |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَدَّرَهُ ﴿١٩﴾ | ثُمَّ | السَّبِيْلَ | يَسَّرَهُ ﴿٢٠﴾ | ثُمَّ | أَمَاتَهُ | فَأَقْبَرَهُ ﴿٢١﴾ | ثُمَّ | إِذَا | |
| نو اندازه کړې ئې | دې بيا لاره | او تلوئې اسانه کړېده | ورته بيائې مړکړی | نو | قبرکښ ئې دفن کړی | بيا چه کله | | | |
| شَآءَ | أَنْشَرَهُ ﴿٢٢﴾ | كَلَّا | لَمَّا | يَقْضِ | مَآ | أَمَرَهُ ﴿٢٣﴾ | | | |
| د الله ﷻ خوښه شي | دوباره به ئې پيداکړي | يقيناً | ندې پوره کړې انسان | هغه حکم | چه امرورته کړيدې الله ﷻ | | | | |

﴿قُتِلَ ٱلْإِنسَٰنُ مَآ أَكْفَرَهُۥ﴾ ديکښ زجر دې انسان کافرمتکبر ته. چې دې څنګه ځان د الله ﷻ احکاماتو او هدايت نه مستغنی ګنړی!؟ د خپل زندګی اطوارو او حالاتو باندې غورنه دې کړې چې دې هر هر حالت کښ الله ﷻ ته محتاجه دې، نو چې جسم اعتبار سره محتاجه دې نو روح اعتبار سره څنګه مستغنی کيدې شی؟

﴿قُتِلَ ٱلْإِنسَٰنُ﴾ دينه مقصود لعنت او اظهار د ناراضګئ دې ﴿مَآ أَكْفَرَهُۥ﴾ ما تعجبيه ده يعنی تعجب دې چې دومره واضحه دلائلو باوجود هم دې کفرکوی. يا ما استفهاميه دې يعنی دومره دلائلو باجود کوم شی دې په کفر آماده کړو؟

﴿مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُۥ﴾ ديکښ د انسان زندګئ مختلفو مراحلو بيان دې، او دا اوله مرحله ده چې د مور خيټې زندګی ده ، مفسرين فرمائي چې دلته استفهام د پاره د تحقير دې لکه مونږ پښتو کښ به طور تحقير چا ته وايو: ده ته اوګوره! او د څه نه پيدائې؟ کمافي قوله تعالى:خلق الانسان من نطفة فاذا هو خصيم مبين(سورت يٰسين)حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائي: کيف يتكبر من خرج من سبيل البول مرتين(الزهد للامام احمد)يعنی څنګه هغه کس تکبر کوی چې دوه کرته متيازو د لارې وتلې دې.

﴿فَقَدَّرَهُۥ﴾ تقدير نه مراد(١) دلته د مور خيټه کښ مختلف مراحل هم کيدی شی، کوم چې سورت المؤمنون کښ ذکر دی ثم خلقنا النطفة علقة فخلقنا العلقة مضغة فخلقنا المضغة عظاما فكسونا العظام لحما. (٢)دغه شان د ټول اعضا او اندامونه په ترتيب سره کيخودل ترينه هم مرادکيدې شی، کمافي قوله تعالى:خلقک من ترب ثم من نطفة ثم سواک رجلا. (٣) او دينه تقدير

هم مراد كيدې شي لكه حديث كښ راغلي، چې انسان دَ مور په خېټه كښ څلور مشتې شي نو الله ﷻ ورته فرشته رااوليګي اوهغه ئې تقدير اوليکي

﴿ ثُمَّ ٱلسَّبِيلَ يَسَّرَهُۥ ﴾دادَرُوند دويمه مرحله ده چې انسان دمور خېټې نه راوځي اودنيا كښ قدم كيدى.

"السبيل" نه(١)څنې مفسرينو دَمورخېټې نه وتلو لار مراد اغستې ده. (٢) اوځنې مفسرينو ترينه دَهدايت اوحق لاراغستې ده. (٣) اوځنو ترينه دَحصول رزق لار مراد اغستې ده. خلاصه داچې دَمور خېټې كښ پروت وى،تنګه لار وى الله ﷻ ورته آسانه كړى.دې ترينه را اوځى،بياورله دَغذابندوبست اوكړى اودَمور تې روى،اودَقبول حق فطرى استعداً پكښ هم كيدى،نوكچرى په سمه تلل غوارى نوتلې شي.

﴿ثُمَّ أَمَاتَهُۥ فَأَقْبَرَهُۥ ﴾دادريمه مرحله ده چې انسان مړشي اوقبركښ خخ كړى شي. "اقبره" اي صيره ذا قبر، باب افعال كښ خاصه دَتصيير ده، يعنى صاحب ماخذ ګرځول .يعنى دَ الله ﷻ پرې په دې حالت كښ غټ احسان دادې چې هسې په داګه ئې نه پريګدى، چې بې احترامه پروت وى،اوځاروى مرغان ئې خورى، لكه دَنورو مخلوقاتو حال دې.بلكه قبر ورله وركړى، اوخه په احترام سره هغې كښ دفن كړې شي.

﴿ثُمَّ إِذَا شَآءَ أَنشَرَهُۥ﴾داڅلورمه مرحله ده چې بعث بعدالموت دې يعنى انسان په قبر كښ پروت وى بيا چې كله الله ﷻ قيامت قائم كول اوغوارى، نودې به دوباره راژوندې كړى.

﴿كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ أَمَرَهُۥ ﴾"كلا" په باره كښ دلته دَمفسرينو متعدد اقوال دى. بې تكلفه قول دادې دا پمعنى دَ "الا"استفتاحيه سره دې،اوالله ﷻ ګله كوى دَانسان نه چې دومره احساناتو باوجود ده دَ الله ﷻ حكم لا تر اوسه نه دې منلې.

څنې مفسرين فرمائى چې ﴿كَلَّا ﴾ خپلې معنى ردع دَپاره دې، خو ماقبل كښ ظاهراً صراحتاً څه داسې شې نشته چې دا ورله ردع اوګرځى، نودې وجهې نه مفسرينو دَدې متعدد توجيهات ذكر كړى دى:

(١)دامخكښ آيت ثم اذا شاءانشره باندې دَمنكرينو دَبعث الموت اشكال نه ردع ده، هغه اشكال دادې چې داڅلورمراحل ذكر كړى شو، دې كښ اول درې مرحلې زمونږ په مشاهده

كښې دي اوموږ ئې منو. خو دا څلورمه مرحله خوموږ اونه ليدله .کچرته دا هم برحق وی نو اوسه پورې څومره مړی اوشول. څوک خوبه ژوندي شوې وې؟ نو الله ﷻ ورته فرمائی چې داسې خبره نه ده چې تاسو کوئ. بلکه بعث حق دې خو وقوع څکه نه کيږی چې لاتر اوسه پورې ورته دَالله ﷻ حکم نه دې شوې

(۲)څنې مفسرين فرمائی چې دادَمابعد يعنی ﴿ لَمَّا يَقۡضِ مَآ أَمَرَهُۥ﴾نه ردع ده، يعنی انسان که ډير اووائی چې ماد الله ﷻ حق اداکړې دې خونه دې کړی (التحرير والتنوير)

فَلۡيَنظُرِ ٱلۡإِنسَٰنُ إِلَىٰ طَعَامِهِۦٓ ﴿٢٤﴾ أَنَّا صَبَبۡنَا ٱلۡمَآءَ صَبّٗا ﴿٢٥﴾ ثُمَّ شَقَقۡنَا

پس اودی ګوری انسان خوراک خپل ته. چې موږ راتوئی کړې اوبه څه ډيرې بيا مو اوشلوله څمکه په ناآشنا

ٱلۡأَرۡضَ شَقّٗا ﴿٢٦﴾ فَأَنۢبَتۡنَا فِيهَا حَبّٗا ﴿٢٧﴾ وَعِنَبٗا وَقَضۡبٗا ﴿٢٨﴾ وَزَيۡتُونٗا

طريقې سره،نورازرغون موکړه په دې کښې غله‌دانې، اوانګور اوسبزيانې اوزيتون

وَنَخۡلٗا ﴿٢٩﴾ وَحَدَآئِقَ غُلۡبٗا ﴿٣٠﴾ وَفَٰكِهَةٗ وَأَبّٗا ﴿٣١﴾ مَّتَٰعٗا لَّكُمۡ وَلِأَنۡعَٰمِكُمۡ ﴿٣٢﴾

اوکجوری اوباغونه ګڼ اوميوی اوګياه لپاره دَفائدی ستاسو اودَځناورستاسو.

﴿فَلۡيَنظُرِ ٱلۡإِنسَٰنُ ﴾دادليل عقلي آفاقی دې په ثبوت دَقيامت، چې انسان دې خپل طعام باندې غوراوکړی نوده ته به معلومه شی چې الله ﷻ ته د ده دوباره پيداکول هيڅ ګرانه نه ده، يعنی باران اوشی،دَهغې اوبه تخم سره ميلاوې شی تخم ډډ شی. نو په زمکه باندې بوټې را شين شی، نو کوم ذات چې زمکې کښې دننه پروت تخم نه تک شين تروتازه بوټي باهر په څمکه راوباسلې شی هغه تاسوهم دوباره پيداکولې شی.

﴿ أَنَّا صَبَبۡنَا ٱلۡمَآءَ ﴾بدل دې ﴿ طَعَامِهِۦٓ﴾نه، ﴿حَبّٗا ﴾ نه مرادغنم،جوار،روجې وغيره دی

وَقَضۡبٗا﴾ تازه سبزيانو ته وائی، دغه شان هغه چه بغير دَ پخولونه خوړلې کيږی.لکه مولئ. ګاجرى، پياز، وغيره. مقصودورنه ترکاريانې دی، يا شنو واښو ته وائی.

﴿وَحَدَآئِقَ غُلۡبٗا ﴾غلبا جمع دَ اغلب وغلباءده، اصل کښې غټ سټ ته وئيلی کيږی.اودلته ترينه مقصود تشبيه ده دَباغونو په لوئ والی دَغټو ونو سره. يعنی لکه څنګه دَغټ ستی

سړی په سټ کښې پرسیدلی رګونه ښکاری دهغه شان دې بغونو شاخونه هم په ګنړ ولی داسی ښکاری

﴿ وَأَبًّا﴾ دَ څناورشنې ګیاه ته وائی. بعض وائی بوسونه وائی. دابوبکر ﷺ ددی لفظ د معنی باره کښې سوال اوکړې شونو اوئی فرمائیل: ای سماء تظلنی وای ارض تقلنی اذاقلتُ فی کتاب الله مالااعلم، دغه شان دَحضرت عمر ﷺ نه هم دی باره کښې توقف راغلې دې اوفرمائیلی دي چه الله ﷻ مونږ دَ دې دَمعنی مکلف کړی نه یو، بلکه دَقرآن په کوم مطلب چه پوهه شئ په هغې عمل اوکړئ اوچه په کوم نه پوهیږئ الله ﷻ ته ئی حواله کړئ(روح المعانی)

مفسرین فرمائی چې دینه مقصود دَدې حضراتو دَقرآن معانی معلومولونه منع کول مراد نه وو، بلکه په دې خبرې تنبیه کول وو چې اصل مقصد عمل دې. چې انسان دآیت په مدعا باندې پوه شی، اوبیا ورله یودوه الفاظو معنی نه ورځی. نودَهغې تحقیق کولو نه اول په آیت مدعاباندې عمل ضروری دې، اوبل داچی بې جاتعمق نه منع کول دی. ځکه چې "اب" معروف بوټې دې، اوعرب شعروشاعرئ کښې هم استعمال شوې دې، نودانشې کیدې چې داحضرات دَ دینه ناواقفه وو، بلکه دَخاص نوع، شکل او جنس تحقیق کولونه منع کول دی. چې داد آیت مطلب کښې مفید نه دې.(تفسیر القرضاوی لجزعم)

﴿مَّتَٰعًا لَّكُمۡ﴾ مفعول له دې یامفعول مطلق ای متعکم بذلک متاعًا.

| |
|---|
| فَإِذَا جَآءَتِ ٱلصَّآخَّةُ ۝ يَوۡمَ يَفِرُّ ٱلۡمَرۡءُ مِنۡ أَخِيهِ ۝ وَأُمِّهِۦ وَأَبِيهِ ۝ |
| نوکله چه راشی سخت اواز(قیامت)پدغه ورځ به تختی هرسړې دَورورخپل نهاودَمورنه اودَپلارنه |
| وَصَٰحِبَتِهِۦ وَبَنِيهِ ۝ لِكُلِّ ٱمۡرِيٕ مِّنۡهُمۡ يَوۡمَئِذٍ شَأۡنٌ يُغۡنِيهِ ۝ |
| اودَښځې خپلې نه اودَځامنو خپلونه دَهرکس به دَدوئ نه پدغه ورځ داسی حال وی چه بې پرواه کړې به ئی وی دَبل نه |

﴿فَإِذَا جَآءَتِ ٱلصَّآخَّةُ﴾ داتخویف اخروی دې اودعوه دسورة پکښې مذکورده علی سبیل الترقی دَماقبل سورة نه، "صاخة" تیز او غوږونه کنړونکی اوازته وائی، بعض مفسرین وائی دا دَقیامت نوم دې اوځنې مفسرین فرمائی چې دینه مراد نفخهٔ ثانی ده، جواب دَ"اذا"محذوف

دي اى اشتغل كل واحدٍ بنفسه،يعني چه كله نفخهٔ ثاني اووهلې شي. قيامت راشي نوهرسړي سره به دَخپل ځان غم شي. دَ ورور ،اومور ،پلار ،ښځې،ځامنونه به تختي

دَام المؤمنين عائشه ﵂روايت کښې دي چه حضورﷺاوفرمائيل چه دَقيامت په ورځ به دَ خلقو حشر ابلې خپې،بربنډ ،ناسنته کيږي،حضرت عائشه ﵂عرض اوکړوچه داخوبه خلق يو بل ته ګوري،حضورﷺاوفرمائيل دابه دومره سخته ورځ وي چه خلقوته به هوش نه وي، هر سړي په دَخپل ځان په فکرکښې مشغوله وي، عکرمه﵀وائي ميدانِ حشرکښې به يوسړي دَ خپلې ښځې سره ميلاؤشي ورته به اووائي آياځه ستاخاوندنه ووم؟ هغه به اقراراوکړي اوښه مدح به ئې اوکړي چه ته ځماډيرښه خاوندوی،خاوندبه ورته اووائي ماته دَخپلونيکونه صرف يوه نيکي راکړه، کيدې شي چه ماته پرې نجات ميلاؤشي، ښځه به ورته اووائي تاځمانه دَ ډير اسان ځيز مطالبه اوکړه ليکن پوره کولې ئې نه شم ، ځکه خه هم دَ هغه ځيزنه يريږم کوم نه چه ته يريږې،دغه شان به يوسړي ځوی سره ملاؤشي، دَ يوې نيکي مطالبه به ورنه اوکړي، چه خه صرف يوې ذرې نيکئ ته محتاج يم،ماته راکړه، کيدې شي ماته نجات ملاؤشي ليکن ځوې به هم ورته دغه شان جواب ورکړي(ابن کثير).

پدې وجه به هرسړې دَقيامت په ورځ دَخپلوخپلوانونه تختي.چه مانه دَځه نيکي مطالبه اونکړي،بعضِ وائي پدی وجه به تختي چه دَحقوقومطالبه اونکړي، مثلاًوروربه ورته وائي تاماسره ځماپه غم کښې همدردی نه وه کړې،مورپلاربه ورته وائي تاځمونږپوره خدمت نه وؤ کړې، بی بی به ورته وائي تاماباندې حرام خوړلی وؤ،دا کار او دا کار دې کړې وؤ،ځامن به ورته وائي تاموننږته تعليم اودينی تربيت نه وؤکړې(روح المعاني).

| |
|---|
| وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴿٣٨﴾ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿٣٩﴾ وَوُجُوهٌ |
| ځنې مخونه به پدغه ورځ روښانه وي.خنديدونکي به وي خوشحالي کونکي به وي.اوځنې مخونه به |
| يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴿٤٠﴾ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴿٤١﴾ أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ ﴿٤٢﴾ |
| پدغه ورځ کښې پرته به درباندې وی دوړه.خوربه وی دربانډې توروالي.داکسان هم دوئ کافران فاجران دي. |

﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴾مؤمنانوته بشارت اخروی دې،چه دَدوئ مخونه به دقيامت په ورځ روښانه،خنديدونکي،خوشحاله به وي.

﴿ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا ﴾تخويف اخروى دي كافرانو فاجرانو ته. چه ددوئ مخونو باندى به د قيامت په ورخ غبار كدورة وى، دَ ډيرغم پوجه به وربانديِ تورو الي خور وى. چه دا ډير اوحش اوقبيح هيئت دي.

﴿ غَبَرَةٌ ﴾ او ﴿قَتَرَةٌ ﴾كښ متعدد اقوال دي:

(۱)بعض وائى چي دواړه يو شي دي غبارته وائى.

(۲)څنى مفسرين فرمائى چي ﴿ غَبَرَةٌ ﴾ نه مرادغبار دي او﴿قَتَرَةٌ ﴾نه مراد دَغم اوپريشانئ اثرات په مخ اوتندى تريوالي دي

(۳) او بعض وائى﴿ غَبَرَةٌ ﴾ هغه دوړى ته وائى چه دَبرى نه زمكى ته راكوزيږى،او﴿قَتَرَةٌ ﴾ هغه دوړى ته وائى چه دَ زمكى نه بره خيجى نومطلب دادي چه لاندي باندي به دوړوكښ راګيروى نعوذبالله.

| ركوعاتها (١) | سورة التكوير مكيّة | آياتها (٢٩) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دې شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٨١) وحسب النزول (٧)**

نزلت بعد سورة اللهب و قبل الاعلى.

**ربط**: مخكني سورت كښې دَقيامت هولناكئ بيان وؤ، چې يوم يفر المرأ من اخيه.اوس دې سورت كښې على سبيل الترقى بيان دې چې علمت نفس ما احضرت‌هر كس ته به دَهغه اعمال نامه وركړې شى او جنت يا جهنم ته به روان شى.

**خلاصه**:

آيت ١ نه تر ١۴ پورې دولس حوادثو دَقيامت بيان دې، اولنو شپږوتعلق نفخه اولى سره دې او نورو شپږو تعلق نفخه ثانيه سره دې،

آيت ١۵ نه تر ٢۵ پورې دَقرآن او نبى ﷺ دَرسالت حقانيت اثبات كيږى،

آيت ٢٦ نه تر آخر پورې زجر دې.

| |
|---|
| إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ۝ وَإِذَا النُّجُومُ انْكَدَرَتْ ۝ وَإِذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ ۝ |
| كله چه نمر راغوندكړې شى.اوكله چه ستورى په غورځيدوشى.اوكله چه غرونه روان كړيشى(والوځولې شى) |
| وَإِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ ۝ وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ ۝ وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ۝ |
| اوكله چه دلسو مياشتو اوښې پريخودلې شى.اوكله چه وحشى خناور راجمع كړيشى.اوكله چه دريابونه ته اوور وركړى شى. |

﴿ إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ﴾ دا شپږ حالات او حوادث دى دَقيامت دَنفخهٔ اولى نه قبل، دا اوله حادثه دا ده چه دَ نمر والارنړا به ختمه شى.

"تكوير" ګول راغونده ولو او انغښتلو ته وائى، كتكوير العمامة، په حديث كښې دى: نعوذبالله من الحور بعد الكور، يعنى دراغونديدلو او اتفاق نه ورستو دَ بې اتفاقئ نه پناه غوارو. بعضو ترينه

دلته مراد ازاله اغستې ده، يعنى نمر به لرې كړې شى څكه چې بوشى كله خلق لرې كوى نو اول ئې راټول كړى اوبيائې لرې كړى.(۲)اوبعضوترينه بې نوره كول مراد اغستى دى

﴿وَإِذَا ٱلنُّجُومُ ٱنكَدَرَتْ﴾دادويمه حادثه ده.چه كله ستورى خواره واره شى اوغورځيږى

"انكدار" اصل كښې انصباب،بهيدلوته وائى، دقيامت په ورځ دباران په شان ستورى داسمان نه او وريږى،يوستورې به هم په اسمان كښې پاتې نه شى. بعضو"انكدار"د "كدر"نه اغستې دې په معنى خړكيدلو اوبې نوره كيدلو سره،اودامطاوع دې،د"كورت"يعنى نمر چې راټول كړې شى نو ورسره به ستورى هم بې نوره شى.

﴿وَإِذَا ٱلْجِبَالُ سُيِّرَتْ﴾دادريمه حادثه ده چه غرونه به دځپل ځائ نه والوځى.په هواكښې به ذرې ذرې خواره شى:كماقال تعالى:وترى الجبال تحسبهاجامدة وهى تمرّ مرّ السحاب.

﴿وَإِذَا ٱلْعِشَارُ عُطِّلَتْ﴾داځلورمه حادثه ده، "عشار"جمع د"عشراء" ده،هغه حامله اوښه چه لس(۱۰)مياشتوته رسيدلى وى،دَ قيامت دسختئ په وجه به دوئ بيكاره پريخودلې شى، حالانكه عربو ته د دې نه بل محبوب څيز نشته دې،دابه ډيرقيمتى څيز وؤ. تر وضع حمل پورې به مالك ورنه، نه جداكيدلو.چونكه اكثرمال اوعيش دَ عربو دَ اوښانونه وؤ،پدى وجه دَ دې ذكر به طورِ خاص اوشو،ورنه مقصودهرڅيزپريخودل دى، اوځپل ځان باره كښې په غم كښې اخته كيدل دى.

بعضو مفسرينو دااحتمال هم ظاهر كړى دې چې دلته "العشار"نه وريځى واغستلې شى، ځكه چې اهل عرب داوبونه ډكو وريځو باندې"عشراء"او"العشار" اطلاق كوى،او"عطلت" مطب به داشى چې باران نه به وروى،اوديكښې اشاره ده چې قيامت ته قريب به سخت قحط راځى، چې دې سره به خلق اوځناور هلاک كيږى.

﴿وَإِذَا ٱلْوُحُوشُ حُشِرَتْ﴾داپنځمه حادثه ده، "حشرت" نه مراد يا جمع كيدل دى چه وحشى ځناور به ځنګل او غر پريدى، آبادئ طرف ته دپناه اخستلوليپاره به راجمع شى، وحشيت به ئې ختم شى، ځپل ځان بچ كولو باره كښې به ورسره خوف وى، لكه اوس هم دا مشاهده ده چه ځنګل كښې سيلاب راتلوسره دوئ ابادئ طرف ته منډى وهى، انسانانو ته څه نه وائى، علامه عثمانى رحمه الله ليكلي دى چه يو ځل هندوستان كښې سيلاب راغې ، خلقو اوكتل

چه لوئ چهپراوبه اوړی، اوپه هغه باندی سرو ،خناور ،مارانوخانونه ککلک نیولی وؤ، یوبل ته نی هیڅ نه وئیل ،نفسانفسی وه

بعضو مفسرینو دَ حشرت معنی مړه کیدل کړیده ،یعنی کله خناورمړه شی .بعضونی معنی دَ قصاص دپاره دَراژوندی کیدوکړیده ،لکه سورة النباء کښ تیرزدی، خو دا احتمال ضعیف دې

﴿ وَإِذَا ٱلْبِحَارُ سُجِّرَتْ ﴾دا شپږمه حادثه ده، تسجیر دوه معنې دلته مفسرینو بیان کړی دی: (۱)ایقاد ،یعنی دریابونه گرم شی اوبه ئی وچې شی او دې په ځائ پکښې اور پیدا شی (۲) بعضو ئی معنی تفجیر سره کړې،یعنی الله ﷻ دریابونه په مینځ کښ پردې ایخیدی، خوگ اوتریخ جداجدا روان وی، قیامت ته نیزدې به داختم شی اویو غټ دریاب به ترینه جوړ شی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | النُّفُوسُ | زُوِّجَتْ ۞ | وَإِذَا | الْمَوْءُدَةُ | سُئِلَتْ ۞ | بِأَيِّ | ذَنْبٍ |
| اوکله چه خلق جوړه جوړه تقسیم کړې شی.اوکله چه ژوندئ خخه کړې شوې جینئ نه تپوس اوکړیشی. چه په کوم گناه | | | | | | | |
| قُتِلَتْ ۞ | وَإِذَا | الصُّحُفُ | نُشِرَتْ ۞ | وَإِذَا | السَّمَاءُ | كُشِطَتْ ۞ | وَإِذَا الْجَحِيمُ |
| قتل کړې شوې وه.اوکله چه عملنامی کولاؤکړې شی.اوکله چه اسمان نه پوستکې اوباسلې شی.اوکله چه جهنم | | | | | | | |
| سُعِّرَتْ ۞ | وَإِذَا | الْجَنَّةُ | أُزْلِفَتْ ۞ | عَلِمَتْ | نَفْسٌ | مَّا | أَحْضَرَتْ ۞ |
| گرم کړې شی.اوکله چه جنت نیزدې کړې شی پوهه به شی هرنفس په هغه عملونوچه حاضرکړی ئی وی. | | | | | | | |

﴿وَإِذَا ٱلنُّفُوسُ زُوِّجَتْ ﴾دا نفخه ثانیه نه ورستو اوله حادثه ده. ددې آیت مفسرینو متعدد توجیهات کړی دی:

(۱)النفوس نه مراد خلق دی، او زوجت نه مراد جوړه جوړه کول او جماعتونو کښ تقسیمول دی، یعنی قیامت په ورځ به خلق مختلف جماعتونو اوصنفونو کښ تقسیم کړې شی لکه سورت الواقعه تیردی: وکنتم ازوجاثلثة،اودابه درې جماعته اوصنفه به وی:(۱) السابقون(۲)اصحٰب المیمنة (۳)اصحٰب المشئمة.

(۲)ځنی مفسرین فرمائی چې "النفوس" نه مراد خلق دی. او "زوجت"نه مراد ضم کول دی او میلاوول دی ، یعنی هر سړي به خپل هم مثل سره ضم کړی شي. مؤمنان دَمؤمنانو سره. کافر به کافرانو سره ،زانی به زانیانو سره، ذاکر به دَ ذاکرینو سره .
(۳)اوځنې مفسرین وائی چې "النفوس"نه مراد ارواح دی او "زوجت"معنی بدنونو سره میلاول دی، اودَروح دَبدن سره نفس تعلق اګر چی دَمخکښ نه وی خوډیر ناقص وی. او دا میلاول به داسی وی چې دې سره حیات کامله په بدن کښ راشی. دې نه علاوه نورجیهات هم شته دې،

﴿وَإِذَا ٱلْمَوْءُۥدَةُ سُئِلَتْ﴾دادویمه حادثه ده دَقیامت دَ ورځ. دَژوندئ خخه کړې شوی جینئ نه تپوس کول به د تبکیت دَ قاتل دپاره وی، لکه دَعیسی عليه السلام نه به تپوس دَپاره دَ تبکیت دَعیسایانو وي، یا"موؤدی" ته نسبت مجازأدې،مقصوددادې چه دی باره کښ به تپوس کولې شی چه داپه کوم جرم قتل کړې شوی وه.
**فائده**:عربوپه زمانه جاهلیت کښ خپلې لونړی خخه ولې، چاسره به ئی دَرزق فکر وؤ، نو ځکه به ئی قتل کړی،اوچابه عار ګڼړلو.
بعضو به عین پیدائش په وخت کښ ژوندئ خخه ولې، او هغه داسې چې کله به ولادت ایام قریب شو،نو یوه کنده به ئی اوکنسته له،اوښځه به ئی دَهغې په غاړه کینوله،کچرته اولاد نارینه پیدا اوشو،نو داینړی به راونیولو،اوکه جینئ به وه نو هغې کندې ته به ئی او غورځوله.
اوځنو طریقه کار داوؤ چې کله جینئ به دَشپږکالوشوه،نومورته به ورله اونیل چې دا خائسته کړه اوخوشبو ورباندې اولګوه، ځه داسخرګنئ خواله بوزم، نو صحراته به ئی بوتله اوهلته به ئي خخه کړه(روح مختصرا)

﴿ وَإِذَا ٱلصُّحُفُ نُشِرَتْ ﴾داریمه حادثه ده، یعنی عملنامی به کولاؤ شی دپاره دَ حساب، یا دا معنی ده چه تقسیم کړې شی دَخلقو مینځ کښ.

﴿وَإِذَا ٱلسَّمَآءُ كُشِطَتْ ﴾ داځلورمه حادثه ده دَ قیامت دَ ورځ. "کشط"په اصل کښ دَذبح کړې شوی ځناورنه څرمن اوباسلوته وائی.اودلته ترینه مراد ازاله ده یعنی بالکل به لرې کړې شی،ابن عاشور رحمه الله فرمائی چې حساب څوپورې نه وی شوې نوترهغه وخت پورې به آسمان

شلندلي قائم وی، خو چې کله حساب کتاب ختم شي نو دا به بالکل لرې کړې شي، او ب مراد د کشط نه انشقاق او چودبدل دی خو دا بیا نفخه اولی دحالاتو نه دی. «التحریر والتنویر»

﴿وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ﴾ دجهنم اور به تیز کړې شي لکه به سو. کښ چه اور لړوسي او وهلې شي او اور تیز شي د جهمیانو دراتلو دپاره

﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ﴾ جواب د «اذا» دې، یعنی کله چه دا حالات راشي، نو هر انسان به به هغه عملونه حاضر شي، چه دنیا کښې ئې کړی وو، نو ده به معلومه شي چه ماسره خو مره ذخیره د نیك عمل ده او خومره دبدعمل ﴿مَّا أَحْضَرَتْ﴾ مرادورنه نیك اوبداعمال دی، حاضربدلو نه مراد یا حاضریدل د عملنامو دی، یعنی عمل نامې به حاضرې شي، یابه هر عمل صورتًا حاضر شي، یعنی مجسم به شي

فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ۝ الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ۝ وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ۝

پس خامخا قسم وی په ستوروواپس کیدونکو سیداملونکوپټیدونکوباندی اوقسم به شپه کله چه خوره شي

وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ۝

اوبه سهار کله چه ساواخلی

﴿فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ «الخنس»، «الجوار» او «الكنس» دري واړه صفات دی د ستورو.

"الخنس" جمع ده د "خانس" یا "خانسة"، د "خنوس" نه ماخوذ دې، پمعنی دپټیدلو اواختفاء سره

"الجوار" اصل کښې "الجواري" وو، یاء تخفیفا حذف شوې ده، جمع ده د "جارية"، اوماخوذ دي د "جري" نه، په معنی دمنډووهلو سره

"الكنس" جمع ده "كانس" یا "كانسة"، دا هم پټیدلو ته وائی، خو "كنوس" او "خنوس" کښې فرق دا دې چې "خنوس" کښې دمقابل د نظر نه پټ کیدل وی خو بغیر د څه سهارې نه، یعنی کورته داخلیدل یاوني یاکانړی شاته پټیدل نه وی، بلکه هغې دهغه نظر نه ځان پټ کول وی، او "كنوس" د څه شي په سهارې پټیدلو ته وائی، ځکه چې دا "كناس" نه ماخوذ دي، اوکناس د

ځاروی هغې پناه ګاه ته وائی چې ونوبوتو ځانګو نه نی ځان له جوړه کړې وی .عرب وائی کنس الوحش اذادخل في کناسه.

(۱)نوځنی مفسرین فرمائی چې داستورو مختلف حالاتو بیان دې اوتشبیه ئی ده هوسئ سره . "الخنس"داستورو دَ ورځی حالت بیان دې، چې دا په مطلع باندې موجود وی خونظر کونکی ته نه ښکاری ، نو دا داسې شو لکه چې هوسئ بغیر دځه شی پناه اغستلو ځان دَ ښکاری دَ نظر نه بچ کړی. "الجوارِ"دائی ماښام وخت کښ دَظهور کیفیت بیان دې چې کله ماښام شی نو یو یوستورې په مطلع کښې ښکاره کیږی، او لیدونکی ته داسې ښکاری لکه چې دا رَوان وی، نوداسی شوه لکه هوسئ چې منډې وهی "الکنس"دائی دَسحر کښ پناه کیدوحالت بیان دې، یعنی چې کله سحر شی نو دا ستوری داسې معلومیږی لکه چې ډوبیږی، نودې تشبیه هغه هوسئ وسره ورکړه چې ښکاری نه بچ کیدو دپاره خپل کورته داخله شی(التحریر والتنویر)

(۲)ځنی مفسرین فرمائی چې دادکواکب خمسه متحیره زحل ،مشتری،مریخ ،زهره ، عطارد اوصافو بیان دې، او"الخنس"پمعنی "رواجع" سره دې، او دا سیارې هم نیغې روانې وی، بیا را واپس شی او بیا ځی ځی تردې چې خپل مطلع کښ ډوبې شی. (جواهر،ماجدی)

(۳)بعض معاصر علماؤ ددې مصداق هغه ستوری ګرځولې دی چې جدید تحقیق مطابق هغه دَ فضادَ صفائی کار ورکوی،دې ستوروته عربئ کښ "الثقوب السوداء"وائی،چونکه دا ډیر تیزرفتارئ سره حرکت کوی، اونه ښکاری نودې وجهی نه ورته،«الخنس الجوار» اوئیلی شو، او دا دَفضا صفائی کارورکوی،غبار،ګند،بلکه هرشې چې دوئ طبقې ته داخلیږی هغه ختم کوی اوصفایه ئی کوی،نودې اعتبارسره ورته «الکنس» اوئیلی شو ، «الکنس» په معنی دَ جارو کولو او صفا کولو سره کلام عرب کښ استعمالیږی. دا توجیه اګرچې متحمل ده خو تفسیر دَ آیاتو صرف په دې مبنی نه دې.

﴿ وَٱلَّيۡلِ إِذَا عَسۡعَسَ ﴾"عسعس"دَاضدادونه دې،پمعنی دَ"اقبل"هم راځی،یعنی مغ را اوګرځوی،یعنی تیاره ئی خوره شی، او دغه شان پمعنی دَ"ادبر"هم راځی،شاه اوګرځوی،یعنی لاړه شی. ﴿ وَٱلصُّبۡحِ إِذَا تَنَفَّسَ ﴾ساه واخلی یعنی روښانه شی.

جواب قسم باره کښې دوه قوله دي.دحضرت شيخ غلام الله خان رحمه الله رائې داده چې جواب قسم محذوف چې هغه لتركبن طبقاعن طبق دې.اوپه دې دليل دسورت الانشقاق داآيتونه دي فلااقسم بالشفق، والليل وما وسق، لتركبن طبقاعن طبق.

اوقسم اوجواب قسم کښې مناسبت دادې چې داقسم شاهد دې په بعث بعدالموت ، او د هغې نه ورستو مختلفو حالاتو باندې، اوهغه داسې چې لکه څنګه دستورومختلف حالات دي چې نيغ روان دي،بيارا واپس شي اوپټ شي دهغه شان تاسوبه هم دزندګئ مسافت مخ په وړاندې تيرلو نه بعد به خپل آخرى منزل ځمکې ته راګرځئ، او د زندګئ چراغ خو به مړيږي. او څنګه چې شپه اوورځ کښې او د دې مختلفو حصوحالاتو کښې فرق دې دغه شان به تاسو هم مختلف حالاتو سر مخه کيږئ.

اوعام مفسرين فرمائى چې جواب انه لقول رسول كريم دې.اودې تقدير باندې قسم او جواب قسم کښې مناسبت دا ذکر شوې دې چې څنګه دستورو مختلف حالات دي، کله پټ کله ښکاره وي،کائنات کښې کله شپه کله ورځ وي، نودغه دې قرآن په باره کښې باوجود دينه چې دابرحق کتاب دې، د خلقو مختلف طرزعمل دې،ځنې ترينه رانده دي، اوځنو نه ورته هدايت حاصل دې،ځنې دجهالت په تيارو کښې سرګردانه ګرځي،اوځنې ددې دهدايت په رڼړا کښې زندګي تيره وي.(اضواءالبيان)

| |
|---|
| إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿١٩﴾ ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ ﴿٢٠﴾ |
| بې شکه داقرآن خامخاقول درسول عزت منددې خاونددقوة دې دعرش دخاوند(دالله)په نيزمرتبې والادې |
| مُّطَاعٍ ثَمَّ أَمِينٍ ﴿٢١﴾ |
| خبره منلې شويده دده هلته،امانت داردې |

﴿إِنَّهُ﴾ ضميرراجع دې قرآن ته او دقرآن حقانيت بيان دې﴿ رَسُولٍ ﴾نه مراد جبرئيل عليه السلام دې، چونکه دې واسطه او ناقل دې د الله ﷻ د طرفه نه ، نو ځکه ورته نسبت د رسول اوشو ، نو مطلب دادې چه قرآن دالله ﷻ کلام دې په واسطې دجبرئيل عليه السلام سره حضور ﷺ ته وحى کيږي. بيا الله ﷻ درسول پنځه صفات بيان کړو.

﴿كَرِيمٍ﴾ دا اول صفت دې یعنی شریف او معزز دې ﴿ذِي قُوَّةٍ﴾ دا دویم صفت دې "قوت" د معنی حقیقی اعتبارسره په مقابله د "ضعف" کښې راځي. او کله مجازاً په مقابله د ګبراهټ اویره کښې استعمالیږي، لکه یا یحیٰ خذالکتاب بقوة، اودلته دواړه معنې مراد کیدې شی، نو اولې معنې اعتبارسره مطلب دا دې دېر لوئ قوت والا دې، غټ غټ کارونه په یواځې ځان کولې شی. نو دا دسفارت کار په مابین د الله ﷻ او دغه رسول کښې هم ډیر په ښه طریقې سره کوی. او دویمې معنې اعتبار سره به مطلب داشی چې الله ﷻ کلام رسول الله ﷺ ته بیانولو حالت کښې ده باندې څه ګبراهټ نه راځي، چې هغې دوجهې نه پیغام واضح اونه رسوی، اویاترینه پکښې څه حصه پاتی شی، ځکه چې ګبراهټ اود یرې دوجهې نه ځنې وخت سړې ډیر څه ونیل غواړی خواونه وائی.

﴿عِندَ ذِي ٱلۡعَرۡشِ﴾ دائی دریم صفت دې یعنی دَ الله ﷻ په نیزچه خاوند دعرش دې، لویه مرتبه ئی ده. ﴿مُّطَاعٍ﴾ دائی څلورم صفت دې، یعنی فرشتې ئې اطاعت کوی خبره ئی منی، بقول والد محترم رحمه الله چه شاه منصور باباجی رحمه الله وائی چه دفرشتوصدراعظم دې.

﴿ثَمَّ﴾ ظرف دې او اشاره ورسره کیږی مکان بعید ته، او دلته اشاره ده عرش الهی ته. او دې تعلق یا ماقبل "مطاع" سره دې، او مطلب دا دې چې عرش الهی کښې هم مطاع دې، یعنی دَ عرش الهی مقربې فرشتې هم دده اطاعت کوی، اویائی تعلق مابعد سره دې یعنی بارګاه الهی کښې دې امانت داره دې. ﴿أَمِينٍ﴾ پنځم صفت دې دَرسول.

| |
|---|
| وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجۡنُونٖ ۝٢٢ وَلَقَدۡ رَءَاهُ بِٱلۡأُفُقِ ٱلۡمُبِينِ ۝٢٣ وَمَا هُوَ |
| اوندې ملګرې ستاسولیونې اویقیناً ده لیدلې دې جبرئیل علیه السلام په کناروښکاره دآسمان اوندې دې |
| عَلَى ٱلۡغَيۡبِ بِضَنِينٖ ۝٢٤ وَمَا هُوَ بِقَوۡلِ شَيۡطَٰنٖ رَّجِيمٖ ۝٢٥ فَأَيۡنَ |
| په بیانولو دغیب کښې بخل کونکې اوندې قرآن قول دشیطان رټلی شوی نوکوم طرف ته |
| تَذۡهَبُونَ ۝٢٦ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرٞ لِّلۡعَٰلَمِينَ ۝٢٧ لِمَن شَآءَ مِنكُمۡ |
| ځئ تاسو نه دې داقرآن مګرنصیحت دې لپاره دخلقو لپاره دهغه چاچه غواړی ستاسونه |

أَنْ يَسْتَقِيْمَ ﴿٢٨﴾ وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٩﴾

داچه په سمه لاره لاړشي اونه شئ خوښه ولې ناسومګرداچه خوښه سي داللهﷻچه رب دي دخلګو

﴿ وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴾دازجردي مشركانو ته.اودهغوئ يوڅواعتراضاتوجوابونه دي، اول اعتراض دَ هغوئ دا وو چې نبی کریم ﷺ دَ بعث بعدالموت خبرې کوی. دا دَ لیونتوب خبرې دی ، او دي نعوذبالله مجنون دې ، نو الله ﷻ ورته بطور زجر جواب ورکوی چې حضورﷺچه تاسو سره ئی څلویښت کاله تیرکړي دي ، تاسو ئی دَ اخلاقو. دَ عقل. دَ صدق په خپله معترف وئ ، نو اوس څنګه مجنون شو . بلکه ده ته مجنون وئیل دا د احمق او مجنون کار دې.

﴿وَلَقَدْ رَءَاهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ﴾دا ئی دویم اعتراض جواب او ورستونی آیت دَ پاره تمهید دې. مشرکینو به وئیل چې نبی کریم ﷺ ته نعوذبالله نه فرشته راځی او نه ده فرشته اوجبرئیل ﷤ لیدلې دې، بلکه چرته ئې جنی لیدلې دې نو ګمان ئی پرې دَفرشتې کړې دې. الله ﷻ ډیر په تاکید سره دَدوئ قول رد کوی چې دې نبی خه په کهلاؤ افق دَ آسمان کښ جبرئیل ﷤ لیدلې دې اویقیناً چې ئی لیدلې دې. "راه"کښ ضمیر مرفوع نبی کریم ﷺ ته اوضمیر منصوب جبریل ﷤ ته راجع دې.

﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ﴾دادَمشرکانو یوبل اعترض جواب دې چې نبی کریم ﷺ نعوذبالله نبی نه دې بلکه کاهن دې، نو الله ﷻ ورته بطور زجر جواب ورکوی چې دې هرګزکاهن نشنی کیدلې، کاهن اوده کښ ډیر فرق دې: (١) کاهن کښ د کتمان ماده وی ،هغه خبرې بغیر دَاجرت نه چاته نه خائی،اودې داخبرې پټول نه غواړی، بلکه حریص دې په دې چې ټولوته ئی اورسوی. (٢)کاهن سره ټول علم دَغیب نه وی، یوه خبره ورسره چرته دَغیب وی چې شیطان ورته رارسولې وی، نورې ټولې دروغ وی، اوده ته خو دَ دې خبروالله ﷻ وحی کړې ده.

﴿بِضَنِينٍ﴾بخیل ته وائی، او"الغیب"نه مراد وحی اوقرآن دې،دیکښې اول فرق طرف ته اشاره ده ، یعنی مغیباتو خبرورکولو دَبخل نه کاراخلی، یوبل متواتر قرات ﴿ظنين﴾په "ظاء" سره راغلې دې پمعنی دَ "متهم" سره، یعنی دا نبی متهم نه دې په دروغو، یا په بل څه سره.

﴿وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَٰنٍ رَّجِيمٍ﴾ دیکښې دویم فرق طرف ته اشاره ده چې کاهن اقوال خود شیطان له طرف وي او دا د شیطان مردود قول نه دی.

﴿فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ﴾ دیکښې د مشرکینو عناد ذکر دې او هغوئ ته زجر دې چې دومره تخویفات نه ورستو بیا ولې ایمان نه راوړئ آخر په کوم طرف راون یئ.

﴿إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ﴾ یعنی قرآن د هدایت او نصیحت کتاب دې خو هدایت ورنه هغه چاته میلاویږی چې انصاف پسند او د هدایت او حق طلب گار وی، عنادیانو او متعصبینو ته ورسره هدایت نه میلاویږی، ﴿لِمَن شَاءَ﴾ بدل دې د ﴿لِّلْعَٰلَمِينَ﴾ نه.

| ركوعاتها (١) | سورة الانفطار مكيّة | اٰياتها ١٩ |
|---|---|---|

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دی شروع کوم

**ترتيبها حسب التسلسل (٨٢) وحسب النزول (٨٢)**

نزلت بعدالنازعات وقبل الانشقاق

**ربط**: دی سورة کښې ماقبل سورت مضمون بيان دی. علی سبيل الترقی. ماقبل کښې ئې اوفرمائيل چه دَحساب نه ورستوبه هريو په تاسوکښې خپل مقام جنت يا جهنم، ته اورسی لکه ستوری چه پس دَحرکت نه خپل مقام ته اورسی، دی سورة کښې فرمائی چه بيابه دخپل مقام نه غائب کيدلې هم نشی. بلکه هميشه هميشه پديکښې وئ وماهم عنهابغائبين.

**خلاصه**: آيت ١ نه تر ٥ ديکښې دآخرت احوال بيانيږی.

آيت ٦ - ٨ زجردې په ناشکرئ باندې،

آيت ٩ تا آخر: دَقيامت اثبات دې، بشارت اوتخويف دې اوبيان دَتوحيد اونفی دَشفاعت قهری ده.

| |
|---|
| إِذَا السَّمَآءُ انْفَطَرَتْ ۝ وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ ۝ وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ ۝ |
| کله چه اسمان اچوی اوکله چه ستوری خواره واره اوغورزيږی اوکله چه دريابونه روان کړې شی |
| وَإِذَا الْقُبُوْرُ بُعْثِرَتْ ۝ عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ |
| اوکله چه قبرونه لاندی باندی کړې شی پوهه به شی هرنفس په هغه عملونو چه مخکښې ئې راليږلی دی |
| وَأَخَّرَتْ ۝ |
| اوورستونې پريخی وی. |

﴿إِذَا السَّمَآءُ انفَطَرَتْ﴾ داځلورحالات دَقيامت بيانيږي، دا اول حالت دې، چه پدغه ورځ به اسمان اوچوی دپاره دَنزول دَملائکو، کقوله تعالی: يوم تشقق السّماء بالغمام ونزّل الملائکة

تنزيلاً الفرقان: ۲۵)یابه دَ ډیر هیبت په وجه اوچوی

﴿وَإِذَا ٱلۡكَوَاكِبُ ٱنتَثَرَتۡ﴾دادویم حالت دې، ستوري دَ اسمان به خواره واره او غورځيږي.

﴿ وَإِذَا ٱلۡبِحَارُ فُجِّرَتۡ ﴾ دادریم حالت دې چه دَدریابونوکنارې به اوشلیږي اوبه به ئې اوبهیږي ټول دریابونه به یوځائې شي.

﴿وَإِذَا ٱلۡقُبُورُ بُعۡثِرَتۡ﴾داخلورم حالت دې، چه قبرونه به لاندې باندې شي، یعنی لاندې حصه به ئې باندې اوباطن به ئې ظاهر شي. نواهل قبوربه ورنه بهرراأوځي، مرادورنه بعث بعد الموت دې.

﴿عَلِمَتۡ نَفۡسٞ﴾ جواب دَ"اذا"دې ، یعنی چه کله دغه حالات واشي، قیامت قائم شي ، نو هر انسان ته به خپل ښه اوبدمعلوم شي.﴿مَّا قَدَّمَتۡ وَأَخَّرَتۡ﴾مفسرینومتعددې معنې ذکر کړې وې:

(۱)قدمت،نه مرادهغه اعمال دی چې کوم ئې کړی دی که خیر وی اوکه شر،او"اخرت"نه مراد هغه اعمال دی چې نه ئې وی کړی خیراوکه شر.

(۲)"قدمت" نه مراد هغه اعمال دی چې پخپله ئې کړی وی ،اعمال خیروی او که شر، او "اخرت" نه مراد هغه اعمال، دی چې دې ئې ورستونوخلقو دَپاره سبب اونمونه ګرځیدلی وی، اعمال خیر وی اوکه بد.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا | ٱلۡإِنسَٰنُ | مَا | غَرَّكَ | بِرَبِّكَ | ٱلۡكَرِيمِ ۞ | ٱلَّذِي | خَلَقَكَ فَسَوَّىٰكَ |
| اې انسانه!څه | څیزدهوکه کړې | ئې ته | په رب | خپل عزت مند.هغه | رب چه ته | ئې پیداکړې | بیائې برابرکړې |
| فَعَدَلَكَ | فِيٓ | أَيِّ | صُورَةٖ | مَّا | شَآءَ | رَكَّبَكَ ۞ | |
| بیائې معتدل کړې،په | کوم | صورة کښې | چه خوښه | ئې وه | ته | ئې جوړکړې | |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡإِنسَٰنُ﴾زجردې دَالله ﷻ نافرمانی کونکی انسان ته،چه کوم څیزته په دهوکه کښې اچولې ئې، اودَالله ﷻ په عصیان باندې ئې جرأت مند کړې ئې،حالانکه په تاچه کوم حالات را

روان دی هغه تاته معلوم شول ﴿ٱلَّذِى خَلَقَكَ فَسَوَّىٰكَ﴾ يعنی الله ﷻ پخپل قدرت سره ته پیدا کړې، دَ مور په ګیډه کښ ئی درته اعضاء دَ بدن برابر کړل. سلیم الاعضاء ئی کړې . دَ منافعو استعداد ئی در کښ پیدا کړو.﴿فَعَدَلَكَ﴾ يعنی هريو اندام ئی دَبل اندام سره يوشان جوړ کړو ،داسی نه چه يوه خپه لنډه اوبله اوږده،ورنه انسان به ګرځيدلې نه شو ،بلکه دواړه ئی يوشان کړې چه په اسانئ سره ګرځيدې شی،دغه شان دواړه لاسونه.سترګی ، غوږونه

﴿فِىٓ أَىِّ صُورَةٍ﴾اي كماليه ده اي في صورة كاملة بديعة.جارمجرور متعلق دې په رَکبَ پورې، اوداجمله بیان دې دَپاره فسواک فعدلک، يعنی تعدیل اوتسویه دَاعضاؤو داسې ده چې الله ﷻ ورله خپله صورت خوخ کړو اوهغې مطابق ئی دَانسان ترکیب اوتخلیق اوکړو.

| |
|---|
| كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُونَ بِٱلدِّينِ ﴿٩﴾ وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَـٰفِظِينَ ﴿١٠﴾ |
| نه دی دهوکه کیدل پکار ،بلکه تاسو خوتکذیب کوئ په ورځ دَجزا(قيامت)اوبی شکه په تاسو مقرردی نګرانې فرشتی |
| كِرَامًا كَـٰتِبِينَ ﴿١١﴾ يَعْلَمُونَ مَا تَفْعَلُونَ ﴿١٢﴾ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ لَفِى نَعِيمٍ ﴿١٣﴾ |
| عزت مندی دی،لیکونکی دی،پته وی ورته دَ هغه څه چه تاسوئی کوئ،بی شکه نیکان به به نعمتونوکښ وی. |
| وَإِنَّ ٱلْفُجَّارَ لَفِى جَحِيمٍ ﴿١٤﴾ يَصْلَوْنَهَا يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴿١٥﴾ وَمَا هُمْ عَنْهَا |
| اوبی شکه فاجران به په جهنم کښ وی،داخليږی به ورته په ورځ دَجزاء(قيامت)اونه به شی دوئ دَهغی نه |
| بِغَآئِبِينَ ﴿١٦﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلدِّينِ ﴿١٧﴾ ثُمَّ مَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلدِّينِ ﴿١٨﴾ |
| پټیدونکی. اوڅه پته ده تاته چه څه ده ورځ دَجزا،بیاڅه پته ده تاته څه ده ورځ دَجزاء. |
| يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْـًٔا ۖ وَٱلْأَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ ﴿١٩﴾ |
| په هغه ورځ نه به وی مالک يونفس دپاره دَبل نفس دَهيڅ څيزاوحکم به پدغه ورځ الله لره وی. |

﴿كَلَّا﴾ردع دي،يعنى هرګزدَ كريم رب نه دهوكه كيدل نه دى پكار. او دهغه داحكاماتو نافرمانى نه ده پكار، بلكه هغه شكر اواطاعت پكاردي. ﴿بَلْ تُكَذِّبُونَ﴾ بل دپاره داضراب انتقالى دي، يعنى تاسو خو اطاعت او شكر خود نه كوئ، بلكه دبعث اوحساب كتاب نه هم انكاركوئ.

﴿ وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ ﴾دي كښ دَجزاء اثبات دي،يعنى تاسودَقيامت تكذيب كوئ حالانكه مونږپه تاسوفرشتى مقرركړيدى چه ستاسو هر عمل ليكى.محفوظ كوى.تاسوچه څه هم كوئ په هغى پوهيږى.

﴿إِنَّ الْأَبْرَارَ ﴾دابشارت اخروى دي مؤمنانوته﴿وَإِنَّ الْفُجَّارَ ﴾داتخويف اخروى دي فاجرانو ته، چه دَقيامت په ورځ به جهنم ته داخليږى،پتى دلي به نشى.﴿وَمَا أَدْرَاكَ﴾ دا د قيامت دَشدت بيان دي چه دومره شديده ورځ ده چه ادراک ئى څوک نشى كولي.

﴿يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ ﴾بيان دَتوحيداونفى دَشفاعت قهرى ده.چې دنياكښ اګرچي چاته مجازى بادشاهى حاصل وى،غالب مغلوب،غريب،فقير،حاكم محكوم وغيره ترتيب وى، خوآخرت كښ به داهيڅ نه وى،صرف به دَ الله ﷻ اختياراوبادشاهى وى.

| ركوعاتها (۱) | سورة المطففين مكية | اٰياتها (۳۶) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۸۳) وحسب النزول (۸۶)**

نزلت بعدسورة العنكبوت وقبل سورة البقرة

مکی سورتونو کښې آخری سورة دې،بعضِ وائی مدنی دې. چې مدینه کښې يوکس وؤ، ابوجهينه ئې کنيت وؤ،دوه مکيله ورسره وؤ، يوباندی به ئې پوره اخستل، بل باندې به ئې کم ورکول، نوده باره کښې داسورة نازل شو،په يوروايت کښې دی چه نبیﷺمدينی ته راغې نوخلقوپه ناپ تول کښې کمی کوله نوالله ﷻداسورة نازل کړو. نوبیابه خلقوصحیح ناپ تول کولو.

**ربط** :ماقبل سورة کښې حالات دقيامت ذکرشول، دی سورة کښې على سبيل الترقى ذکر کيږی، سورة الانفطارکښې ئی اوفرمائيل چه'وماهم عنهابغائبين'چه څوک به هم غائب کيدي نشی، دی سورة کښې فرمائی چه دَهرچانوم په مخصوص رجسټرکښې مرقوم دې، څوک به هم دَچاپه سفارش سره خپل نوم نشی اوباسلي'کتاب مرقوم'.

**خلاصه**:داسورت په څلورو حصوباندې تقسيم دې:

**اوله حصه**: آيت۱ نه تر۶ پورې: ديکښې زجر دې مطففينوته.

**دويمه حصه**:۷نه تر۱۷پورې،ديکښې دَالله ﷻ دَاحکاماتونافرمانی کونکو حالاتوتذکره ده.

آيت ۹،۸،۷کښې ورته تخويف دې،

آيت ۱۰نه تر۱۲ پورې پکښې زجر دې،

آيت ۱۳، ۱۴کښې شکوه ده.

او۱۵نه تر۱۷پورې پکښې اخروی سزاذکر دې.

**دريمه حصه**:۱۸ نه تر ۲۸پورې ده ديکښې دَمؤمنانو حالاتو تذکره ده.

۱۸نه تر ۲۰ پورې بشارت دې.

۲۱نه تر۲۸پورې اخروی انعاماتو ذکردې.

**خلورمه حصه** : ۲۹نه ترآخره پورې ده،دیکښې دکافرانو اومؤمنانو د دنیا اوآخرت ژوند په طور دَ تقابل ذکر دې.

| |
|---|
| وَيۡلٌ لِّلۡمُطَفِّفِيۡنَ ۝١ الَّذِيۡنَ اِذَا اكۡتَالُوۡا عَلَى النَّاسِ يَسۡتَوۡفُوۡنَ ۝٢ |
| هلاکت دې لپاره دکمی کونکوپه ناپ تول کښې،هغه کسان چه کله څان دپاره بسمانه کوی په خلقو نوپوره اخلی |
| وَاِذَا كَالُوۡهُمۡ اَوۡ وَّزَنُوۡهُمۡ يُخۡسِرُوۡنَ ۝٣ اَلَا يَظُنُّ اُولٰٓئِكَ اَنَّهُمۡ |
| اوچه کله هغوئ ته په پیمانه ورکوی یاورته وزن کوی نوکمی کوی آیاگمان نکوی دوئ چه یقیناً دوئ به |
| مَّبۡعُوۡثُوۡنَ ۝٤ لِيَوۡمٍ عَظِيۡمٍ ۝٥ يَّوۡمَ يَقُوۡمُ النَّاسُ لِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ۝٦ |
| پورته کولې شی،په ورځی لوئ کښې،په هغه ورځ چه اودریږی به خلق لپاره دفیصلی درب العالمین |

﴿ وَيۡلٌ لِّلۡمُطَفِّفِيۡنَ ﴾دادسورت **اوله حصه** ده ، چې دیکښې زجر دې مطففینوته.ویل په باره کښې دَمفسرینومتعدد اقوال دی خوراجح قول دادې چې داکلمه دَوعید ده یعنی هلاکت دې دی دَپاره دَمطففینو.او مطففینو ته څوک مراد دی؟نورستنی آیات دَدې پخپله وضاحت کوی ﴿الَّذِيۡنَ اِذَا اكۡتَالُوۡا﴾دابیان دې دَمطففینو،یعنی کله چې څان دَپاره کیل کوی نو خپل حق پوره پوره اخلی اوکله چې بل چادَپاره کیل یاوزن کوی نوپکښې کمی کوی.

دلته دَیوڅوخبرو پیژندل ضروری دی:

(۱)علمافرمائی چې دې آیت اصل مصداق اگر چې ناپ تول کښې کمی کونکی خلق دی، خودې وعید کښې هرهغه څوک شامل دی چې هغه خپل مکمل حقوق طلب کوی اودَبل حقوق اداکولو کښې کوتاهی کوی،مثلاښځی دَخاوند نه اوخاوند دَښځې نه خپل حقوق مطالبه کول اودَبل حقوق پوره نه ورکول،ملازم دَ مالک نه اومالک دَملاز م نه خپل مکمل حقوق اغستل اوهغه دَبل حقوق پوره نه اداکول، اودغه شان هغه ټول تعلقات چې دَجانبینو نه وی لکه استاد شاگرد تعلق اوبادشاه رعایا تعلق دیکښې راځی.

(۲)"اکتالو"داکتیال نه دې اواکتیال خپل حق پوره پوره اغستلو ته وائی،اوخپل حق پورا اغستل څه عیب اومذموم امر خونه دې نوبیائی ولې دې آیت کښې ذم بیان شوې دې؟جواب دادې چې دلته اصلا دَ دې مذمت بیان مقصود نه دې،بلکه کموالی اونجس صفت قباحت کښې

تاكيد مقصود دي.چې بل له كم تلل اوكم كيل كول هځي دګناه اوبده خبره ده. خوليكن چې بيادبل رعايت هم نه ساتي، يعنې چې كله ځان له كيل كوي نوپوره پوره كوي. نو دا بيا ډيره بده خبره ده«بيان القرآن»

«۳»ځان ډپاره پيمانه كولو صورت كښې صرف دکيل«اكتالوا»ذكر شوي دي،اوبل ډپاره پيمانه كولوصورت كښې دکيل اووزن دواړو ذكر شوي دي، مفسرينو ددې متعددې نكتې بيان كړې دي،حضرت تهانوى رحمه الله فرمائي چې چونكه كمي كول مذموم امر دې نوځكه دكيل اووزن دواړو تصريح اوشوه، چې خبره خه واضحه شي،اوخپل حق پوره اغستل مدار ذم نه دې نوځكه صرف په كيل اكتفا اوشوه«بيان القرآن»

﴿أَلَا يَظُنُّ ﴾ديكښې سبب دتطفيف ذكر دې، يعني ناپ تول كښې كمي اوخيانت كولو بنيادي سبب دآخرت هيرول دي، كچرته دوئ سره دآخرت استحضار اوپه آخرت ئې يقين وې نو دوئ به هرګز داسې نه كولې.استفهام توبيخي دې،ظن پمعنى ديقين دې ياپخپله معنى دې،يعنى آيادوئ دا ګمان نه كوي چه په كومه ورځ الله تعالى داولو خلقو فيصله كوي په هغه ورځ به مونږهم دالله تعالى مخې ته ورځو.

ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چه نبي كريم ﷺ فرمائي:دقيامت په ورځ به خلق دربّ العالمين مخې ته ولاړوي ، حتّى چه بعض خلق به پخپلو خولو كښې ترغوږونه پورې پټ وي،په يوروايت كښې دي چه دقيامت په ورځ به نمرپه اندازې ديوميل يادوه ميله قريب شي،نوخلق به په دخپلو عملونو مطابق په خولوكښې ډوب وي،بعض به دپوندو پورې،بعض دركبتينو پورې، بعض به داسې هم وي چه دخولولګام به ورته اچولې شوي وي، ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه حضور ﷺ بشير غفاري رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه په هغه ورځ به ستاځه حال وي چه په كوم ورځ خلق ربّ العالمين ته ددنيادورځو برابردرې«۳۰۰»سوه كاله ولاړوي،نه به څه خبرراځي نه به ورته امركيږي،هغه عرض اوكړو،الله تعالى مدد كونكې دې،حضور ﷺ ورته اوفرمائيل چه كله اوده كيږې نو دالله تعالى نه دقيامت دسختئ اودسوء الحساب نه پناه غواړه«ابن كثير»

﴿لِيَوْمٍ عَظِيمٍ ﴾ "لام"پمعنى د"فى"دې.

| كَلَّآ | إِنَّ | كِتٰبَ | الْفُجَّارِ | لَفِيْ | سِجِّيْنٍ | ﴿وَمَآ | أَدْرٰىكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هرګز داسې مكوئ،ځكه بې شكه اعمال نامه دفاجرانوپه سجين كښې ده .اوتاته څه پته ده چه | | | | | | | |

مَا سِجِّينٌ ﴿٨﴾ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ ﴿٩﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿١٠﴾ الَّذِينَ

څه دي سجين. کتاب دی مهروهلی شوی هلاکت دی په دغه ورځ لپاره دتکذیب کونکو هغه چه

يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ ﴿١١﴾ وَمَا يُكَذِّبُ بِهِۦٓ إِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ﴿١٢﴾

تکذیب کوی په ورځ دجزاءاونکوی تکذیب پدغه ورځی مګرهرتجاوزکونکی دحدنه،ګنهګار

﴿ كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْفُجَّارِ ﴾دادسوت **دویمه حصه** ده، چې دیکښې دفاجرانو اودالله ﷻ احکامات نه منونکو تذکره کیږی،او داتخویف اخروی دې اودماقبل سورت مضمون پکښې علی سبیل الترقی بیان دې، ځکه چې ماقبل کښې وو چې دوئ به جهنم نه، نشي غائب کیدې او پټې دې نشی،اوس دیکښې دی چې ﴿كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ﴾چې دوئ په نومونو باندې مهر لګولې شوې وی هلته نه به کله هم راوتلې نشی.

"کلا"یایعنی د"الا"او"حقا"سره دې، اویادپاره د ردعې دې چې ناپ تول کښې کمی مه کوئ، او « ان کتاب الفجار » ورله تعلیل دې، «کتاب الفجار» نه مراد اعمال نامې دی چې کافرانو اعمال بد پکښې لیکلی شوی وی،﴿ سِجِّينٍ ﴾داوو ځمکو لاندې مقام دې چې هلته دکفارو ارواح اودهغوئ اعمال نامې پرتې وی.﴿وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا سِجِّينٌ ﴾داجمله معترضه ده اودیکښې سجین تهویل بیان دی.

﴿ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ ﴾دادکتاب الفجار بیان دې،مرقوم پمعنی دمختوم سره دې،یعنی په دې باندې به مهر لګیدلې وی، څوک به پکښې اضافه اوکمې نشی کولې، یا دا د سجین بیان دې، خودې صورت کښې به تقدیر دعبارت داسې وی وما ادراک ماکتاب سجین، او آیت کښې تهویل داعمال نامې دې دسجین نه دې.

﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ﴾داتخویف اوزجر دې علی سبیل الترقی،ځکه چې ماقبل سورت کښې صرف د تکذیب ذکروو،اوس دلته دتکذیب کونکو تعیین صفات هم ذکر کیږی،چې هغه معتدی یعنی حدنه تجاوز کونکی اوپه ګناهونو کښې منهمک خلق دی.

| |
|---|
| إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿١٣﴾ كَلَّا |
| كله چه لوستلې شي پده باندې آياتونه زمونږ وائي دادروغې قصې دي دېخوانوخلقو.هرګزنه ده داسې خبره |
| بَلْ ۜ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٤﴾ |
| بلکه زنګ لګولي دي په زړونوددوئ هغه ګناهونوچه دوئ ٠ کوی |
| كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ﴿١٥﴾ ثُمَّ |
| خبرشئ: بې شکه دوئ به دَ ليدلودَرب خپل نه دَ قيامت په ورځ خامخا په برده کښې(منع)کړې شوی به وی بيابه |
| إِنَّهُمْ لَصَالُو الْجَحِيمِ ﴿١٦﴾ ثُمَّ يُقَالُ هَٰذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴿١٧﴾ |
| دوئ ننوتونکي وی جهنم ته بيا به اوويلې شي ورته دا هغه عذاب دې چه تاسو د دې تکذيب کولو |

﴿إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا﴾ داشکوه ده چه کله دوئ باندې زمونږ آياتونه لوستل کيږی نودوئ ورته دَپخوانئ دروغو قصې وائی.﴿كَلَّا﴾ ردعيه دې،زجردې چه قرآن هرګز دَ دروغو قصو کتاب نه دې، بلکه حقيقت دې،ليکن اصل خبره داده چه دَدوئ دَ ګناهونوپوجه دَدوئ په زړونوزنګ لږيدلې دې،چه دَهغې پوجه حق باندې پوهيدلوصلاحيت پکښې نشته دې.

﴿بَلْ رَانَ﴾ رينّ زنګ ته وائی،يعنی دګناهونوپه مسلسل ارتکاب سره تورواليِ اوزنګ چه په زړه اولږی. په حديث کښې دی چه کله بنده يوه ګناه اوکړی نوپه زړه ئې توره نکته اوداغ اولږی ، که توبه اوباسی نوهغه داغ وران شی، ورنه کله چه بياګناه اوکړی نوبل داغ پرې اولږی، دأرنګې زړه ئې تک تورشی، نوداهغه زنګ اوتوروالې دې چه الله ﷻ په قرآن کښې ذکرکړيدې(ابن کثير)مجاهد رحمه الله وغيره وائی چه'رينّ'مهرته وائی يعنی دَدوئ په زړونو دَ بدبختئ مهرلږيدلې دې.

په حديث کښې دی چه څلورخصلتونه دَ سړی زړه فاسده وی:

(١)احمقانوسره مقابله اوبحث مباحثه کول.

(٢)کثرت دګناهونو.

(٣)دَزنانهؤ سره خلوت او دَ هغوئ په رائ عمل کول،

(۴) مروسره ناسته کول.

چاعرض اوکړومړی څوک دی اوئی فرمائیل هغه غنی چه خپلی مالداریٔ پکښ تکبر پیدا کړې وی.(روح)

﴿ كَلَّآ ﴾پمعنی دَالاسره دې،تخویف اخروی دې مکذبینوته اوخروی سزاگانو ذکر دې، چه دویٔ به دقیامت په ورځ دَالله ﷻ دَدیدارنه محرومه وی،جهنم ته به داخلیږی،فرشتی به ورته وائی داهغه جهنم دې چه تاسوئی تکذیب کولو.

﴿ لَمَحْجُوبُونَ﴾حجاب کنایه ده دَعدم رؤیت نه، آیت کریمه نه معلومه شوه چه مؤمنان به دَقیامت په ورځ دیدارالهی کوی اودغه رنګه دیدارالهی به په ټولونعمتونوکښ لویٔ نعمت وی، ځکه چه دکافرانودپاره غټ عذاب دَدیدارالهی نه محرومه کیدل ذکرشو.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَلَّآ | اِنَّ | كِتٰبَ | الْاَبْرَارِ | لَفِيْ | عِلِّيِّيْنَ ۞ | وَمَآ | اَدْرٰىكَ | | |
| حقه | ده | بی شکه | اعمال نامه | دَنیکانو | په علین کښ به وی | | اوخه | پته ده | تاته |
| مَا | عِلِّيُّوْنَ ۞ | كِتٰبٌ | مَّرْقُوْمٌ ۞ | يَّشْهَدُهُ | الْمُقَرَّبُوْنَ ۞ | | | | |
| چه | څه دې | علین یوکتاب دې | مهروهلی، | حاضریږی | هغی ته | مقربی فرشتی | | | |

﴿كَلَّآ ﴾داهم پمعنی الاسره دې.او دادَسورت دریمه حصه ده چې پکښ به طور تقابل دَمؤمنانو تذکره ده ، دابشارت دې مؤمنانوته چې دویٔ اعمال نامی اوروحونه به علیین کښ وی چې هغهٔ اوچت اومعززمقام دې.

﴿عِلِّيِّيْنَ ﴾داضد دَسجین دې په اووم آسمان باندې یوځایٔ دې چې هلته دَنیکانو اعمال نامی اوارواح پراته وی ﴿وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا عِلِّيُّوْنَ ﴾دیکښ یا دَعلیین عظمت شان بیان دې،اوپه علیین باندی پرتی اعمال نامو عظمت شان بیان دې، اودې صورت کښی به عبارت کښ تقدیر وی اې وماادراک ماکتاب علیین.

﴿يَشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُوْنَ ﴾صفت دې دکتاب﴿ الْمُقَرَّبُوْنَ ﴾نه مرادفرشتی دی یعنی دا اعمال نامې کتو دَپاره دَالله ﷻ مقربې فرشتې حاضریږی،لکه دنیا کښ چې انسان څه امتحان یامقابله

کښې کامياب شي. اوانعام ياسند واخلي نوهغه داانعام خپلې مهمان خانې باداسې خاۍ
کښې آويزان کړي، چې خلق ئې اوګوري. نو د نيکانو اعمالنامې به ددوئ دپاره انعام اودجنت
حصول سند وي، الله ﷻ به عزت افزائې دپاره داپه عليين کښې کيدي اومقربې فرشتې به
راخي اوهغه به ملاحظه کوي، په روح المعاني کښې دکعب ﷺ روايت دې چه کله ملائکې
دمؤمن روح قبض کړي، ملائکې درحمت ئې پورته وړي. نودهر اسمان مقربې فرشتې ورسره
خې تردې چه ووم اسمان ته ئې اورسوي، خپلومخوته ئې کيدي. دعاګانې ورته کوي. او
الله ﷻ ته عرض کوي چه ياالله ﷻ مونږ ته دده عملنامه اوښايه. نو دهغه عملنامه کولاوه شي،
نو د دوئ په حضورکښې دمړي نوم په هغې کتاب کښې محفوظ کړې شي اودامطلب دې دقول
دالله ﷻ چه کتاب مرقوم يشهده المقربون (مختصراً ومفهوماً)

| |
|---|
| إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ﴿٢٢﴾ عَلَى الْأَرَائِكِ يَنظُرُونَ ﴿٢٣﴾ تَعْرِفُ |
| بې شکه نيکان به خامخاپه نعمتونوکښې وي، په تختونوباندې به وي ګوري به تماشابه کوي پيژنې به ته |
| فِي وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيمِ ﴿٢٤﴾ يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ ﴿٢٥﴾ خِتَامُهُ |
| په مخونو دهغوئ کښې تازګي دنعمتونو. څکولې به شي په دوئ خالص شراب چې مهر به پرې لګيدلې وي مهريه ئې |
| مِسْكٌ ۚ وَفِي ذَٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ ﴿٢٦﴾ وَمِزَاجُهُ |
| مشک وي اوصرف پدې شرابوکښې دې پس رغبت اوکړي رغبت کونکي اوخوند به وي دې شرابو کښې |
| مِن تَسْنِيمٍ ﴿٢٧﴾ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُونَ ﴿٢٨﴾ |
| د تسنيم ، چه دا يوه چينه ده په جنت کښې چه څکي به دهغې نه مقربين |

﴿إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ﴾ داپه مؤمنانو فرمانبردارانو انعاماتوذکر دې به طور تقابل د الا
انهم عن ربهم يومئذ ، چه دوئ به دقيامت په ورځ په نعمتونوکښې وي ﴿عَلَى الْأَرَائِكِ يَنظُرُونَ﴾
يعنې دجنت مرغوب مناظربه ګوري ، يابه يوبل ته ګوري نويودوست به دبل دوست نه غائب
نوي، (روح المعاني).

﴿تَعْرِفُ فِي وُجُوهِهِمْ﴾یعنی دَنعمتونوررونق به ئې په مخونوښکاری. هرچاته به پته لګی چه دوئ ښه خوشحاله دی.

﴿يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ﴾ درحیق مفسرینو دوه معنې ذکر کړې دی (۱)خالص شراب(۲)عمده شراب، ﴿مَّخْتُومٍ﴾دااول صفت دې دَشرابو،یعنی سیل بند به وی اومهربه پرې لګیدلې وی، استعمال شده به نه وی.

﴿خِتَٰمُهُۥ مِسْكٌ﴾دادویم صفت دې دَشرابو، او ختام په معنی دَخاتمه اوانتهاء سره دې. یعنی کله چې جنتیان داشراب اوڅکی نوآخر کښې چې کوم اجزاء پاتې شی نو دَ هغې بوئی به دَ مشکو وی، په خلاف دَ شرابو دَ دنیا، چې هغه ډیر بدبودار وی، او یا ختام نه مراد مهر دې. یعنی دې پیالو او جامونو باندې به دَمشکومهر لګیدلې وی.﴿وَفِي ذَٰلِكَ﴾اشاره یارحیق مختوم ته ده،یانعماؤدَجنت ته،جارمجرورتقدیم لپاره دَحصردې،یعنی صرف هم دَجنت په شرابوکښې دی رغبت اوکړی رغبت کونکی،نه په شرابودَدنیاکښې،اوهم صرف دَدی دَحصول لپاره دی عمل اوکړی عمل کونکی،کقوله تعالی:لمثل هذافليعمل العاملون(صفات:۶۱).

﴿وَمِزَاجُهُۥ﴾دادریم صفت دې دَ شرابو دَ جنت، او مزاج مصدر دې دَمازج یمازج؛ په معنی اسم مفعول سره، اي المزوج به، یعنی هغه شې چی هغې کښې آمیزش وی دَبل شی، یعنی دې شرابو کښې به دَ تسنیم شرابو خوند وی. او تسنیم دَ سنم اوسنام نه دې، په معنی دَ بلندئ سره،داپه جنت کښې یوه چینه ده چې دَ آبشارپه شان دَبلندئ نه راغوځیږی، او دَ دې شراب به دَتولو نه عمده اواوچت شراب وی نوځکه ورته تسنیم وئیلی کیږی.

﴿عَيْنًا﴾منصوب علی المدح دې،﴿يَشْرَبُ بِهَا ٱلْمُقَرَّبُونَ﴾باء په بها کښې یازائده ده، یا پمعنی دَمن ده،یعنی تسنیم داسی عظیمه چینه ده دَ شرابو . چه مقربین یعنی السابقون الاولون، به ورنه شراب څکی ، اوهرچه ابراریعنی اصحاب الیمین دی نوهغوئ په شرابوکښې به دَدې چینی خلط وی،بعضِ وائی ابراراومقربون پدی سورة کښې په یوه معنی دی.

إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ ﴿٢٩﴾ وَإِذَا

بې شکه هغه کسان چه مجرمان کافران دي وو دوئ په دنیاکښې مؤمنانو پورې به ئ خاندل اوکله چه

مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ ﴿٣٠﴾ وَإِذَا انْقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمُ

تیریدل به مؤمنان پدوئ نوپه سترګوبه ئ یوبل ته اشاري کولې اوکله چه به واپس شول خپلوکورونوته

انْقَلَبُوا فَكِهِينَ ﴿٣١﴾ وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَٰؤُلَاءِ

واپس کیدل به په خوند خوند اوکله چه به اولیدل کافرانومؤمنان اوبه ئې وئیل بې شکه دامؤمنان

لَضَالُّونَ ﴿٣٢﴾ وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ ﴿٣٣﴾ فَالْيَوْمَ الَّذِينَ آمَنُوا

یقیناګمراه کم عقل دي حال داچه نه دي لیږلي شوي دوئ په مؤمنانو باندې نګرانان پس نن ورځ به مؤمنان

مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ ﴿٣٤﴾ عَلَى الْأَرَائِكِ يَنْظُرُونَ ﴿٣٥﴾ هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ

په کافرانوپورې خنداکوي په تختونوبه ناست وي تماشې به کوي یقیناً بدله ورکړې شوه کافرانوته

مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

دَهغه عملونو چه دوئ کول

﴿إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا﴾ دادَسورت **خلورمه اواخري حصه** ده،مخکنو دوو حصوکښې دَ کافرانو اومؤمنانو احوالو به طور تقابل جداجدا تذکره وه،اوس دیکښې په یوځائ دَ دواړو فریقینو دنیوي اواخروي احوالو انقلاباتو به طورتقابل تذکره کیږي.

﴿إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا﴾ دیکښې دَمشرکینودنیوي زندګئ صورت حال بیانیږي،اود آیت اسلوب داوائي چې داحکایت دي دَ هغه قول چې قیامت په ورځ به دَالله ﷻ دَ طرفه کفارو ته بطور زجر وتوبیخ وئیلې کیږي.﴿يَضْحَكُونَ﴾دادکافرانواول حالت دې چې هغه استهزاء ده یعني دوئ به مؤمنان سپک ګنړل اوهغوئ پورې به ئې خانداګانې کولې،﴿مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ جار مجرور په خپل متعلق باندې تقدیم کښې اشاره دَدې قول انتهائي شناعت ته،چې چاپورې

خنداکول خوهځې څه خبره نه ده،اوبیا مؤمن پوري اودهغه دايمان په وجه هغه پوري خندل؟

﴿وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ﴾دائی دویم حالت دې، "اذا"دلنه دپاره دماضی دې (التحریروالتنویر) یعنی مؤمنان چې کله په دوئ باندې تیریدل ، نودوئ ورپورې اشارې کولې ﴿تغامز﴾ سترګو سره اشاره کولو ته وائی،اودینه مقصود دَ دوئ مؤمنانو تنګول وؤ او عیب پمعنی کښې هم استعمالیږی یعنی دَدوئ کښې به ئی عیبونه لټول اوخلق به ئې ترینه متنفرکول.

﴿وَإِذَا انقَلَبُوا﴾دائی دَدریم حالت بیان دې، یعنی چې کله به کورته واپس شول نوبیا ورته په دې خپلو زیاتو باندې ندامت نه وؤ، بلکه په خوند خوندبه ئی په کورکښې دَدې تذکرې کولې،﴿فَكِهِينَ﴾اي متلذذين.

﴿وَإِذَا رَأَوْهُمْ﴾دائی دَڅلورم حالت بیان دې ، چې مؤمنان به ئی کله اولیدل نوخلقوته به ئی وې چه داګمراهان دی،دَدوئ اتباع مه کوئ،خلاصه داچې دوئ دَزندګئ نصب العین دَمؤمنانو تنګول اوایذا رسانی ګرځولې وه نوځکه الله ﷻفرمائی ﴿وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ﴾څه دوئ خو الله ﷻ نګرانان نه وؤ جوړکړی په مؤمنانو، چې دوئ دَهغوئ هر قول اوفعل جائزه ئی اغستله او دَ دوئ رشد و ضلال فیصلې ئی کولې؟ او جمله حال ده دَضمیر دَ"قالوا" نه.

﴿فَالْيَوْمَ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ دادآخرت حالاتو اوانقلاباتو تذکره ده،چې دنیا کښې کافرانو مؤمنانو پورې خندل،اوس په آخرت کښې به مؤمنان دوئ پورې خاندی.﴿عَلَى الْأَرَائِكِ﴾دنیا کښې به کافرانو خوندونه کول، اوس به آخرت کښې مؤمنان عیش وعشرت کوی،په تختونو باندې به ناست وی. ﴿يَنظُرُونَ﴾دنیا کښې به کافرانو دَمسلمانانو غربت او بدحالئ ته کتل اوخندل، اوس په آخرت کښې به مؤمنان دَ دوئ بدحالئ ته ګورې او دَ خپل څه حال باندې دَالله ﷻ شکر ادا کوی.

﴿هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ﴾الله ﷻ فرمائی چې دا جزاء من جنس العمل ده، چې څه ئی کول دَ هغې بدله به ورکولې کیږی،اوچې څه کرلی دی هغه به نن ریبی. "ثوب" دَ تثویب نه دې،جزاء او بدلې ورکولوته وائی،اواستفهام تقریری دې.

| ركوعاتها (١) | سورة الانشقاق مدنية | اٰياتها (٢٥) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٨٤) وحسب النزول (٨٣)**

نزلت بعد سورة الانفطار و قبل الروم

**ربط** (١) ماقبل سورة کښ تخويف اخروی وؤچه دوئ نومونه په جهنميانو رجسټر کښ ليکلی شوی دی، پس حيله بهانه او زورسفارش سره دوئ دلته نه خان نشی خلاصولې. نودې سورت کښ علی سبيل الترقی دامسئله بيانيږی چې دوئ به خامخا هلته خی اوبيا به هلته مختلف قسمه حالاتو اوعذابونه سره مخامخ کيږی

(٢) دغه شان ماقبل سورة کښ دقبيح عمل يعنی ناپ تول کښ کمی کونکوذکروؤ. دی سورة کښ نيک اعمالوته ترغيب دې چه ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْإِنسَٰنُ إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا ﴾.

**خلاصه**: ابتداء نه ترآيت (٥) پوري تخويف اخروی دې، آيت (٢) ترغيب دې اعمال صالحوته. بياترآيت (٩) پوری بشارت اخروی دې، بياآيت (١٥) پوری تخويف اخروی دې، آيت (١٦) نه ترآيت (١٩) پوری شواهد دی په دعوی دسورة بياترآخره زجردې مشرکانوته (تمت).

| |
|---|
| إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ ۝ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ۝ وَإِذَا الْأَرْضُ |
| کله چه اسمان څيری شی، اوتابع شی حکم درب خپل ته او دا ورسره لائقه ده . او کله چه زمکه |
| مُدَّتْ ۝ وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ ۝ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ۝ |
| اوږده کړې شی. او را اوباسی هغه چه پدې کښ دی اوخالی شی. او تابع شی حکم درب خپل ته او دا ورسره لائقه ده. |

﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنشَقَّتْ ﴾ تخويف اخروي دې، دقيامت دراتلوحالات دی، چه کله اسمان اوشليږي، لپاره دنزول دملائکو.

﴿ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا ﴾ دالله ﷻ حکم ته غوږکيدی، غوږکيخودل کنايه ده دانقياداوطاعت نه.

﴿وَحُقَّتْ﴾يعنى اسمان لائق دې ددى چه دَالله ﷻ دحكم انقباداوكړى.څكه چه الله ﷻ ئې خالق دې.

﴿وَإِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ﴾خوره به شي،دابه دوه طريقو سره وى (١) يو دا چې زمكه اوس غونډه اوګول ده نوقيامت په ورځ به ئې ګولائى ختمه كړې شى اودفرش پشانتې به ټوله اوغوړولې شى. (٢)اوبل داچې زمكه كښې لاندې والې باندې والې دې، غرونه دى،كندې دى. داهرڅه به ختم كړې شى اوبالكل برابره سطحه به اوګرځولې شى (الكنزالثمين) دَ دې وجهى نه حديث كښې راځى چې خلق به ټول يوبل وينى دَځمكې يوكناره نه به بلې كنارى ته نظر رسى

﴿وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ﴾ يعنى دى كښې مدفون مړى،اوخزانى وغيره به رااوباسى اوورنه خالى به شى. حديث شريف مفهوم دې:چې زمكه به دَخپل ځګر ټكړې دَ سرو او سپينو زورو . په شان لويوستونونو باهر به رااوغورځوى، نوقاتل به ورته راشى. اوبه وائى مادې دَپاره قتل كړې وو ،قطع رحمى كونكې به ورته راشى اواوبه وائى چې مادې دَوجهې نه قطع رحمى كړې وه، غل به راشى اواوبه وائى چې څمالاس دې دَوجهى نه كټ شوې وؤ!اوبياداخزانې داسې پريګدى اوهيڅ تريحنه نه اخلى.(مسلم شريف)

جواب دَ"اذا"يامحذوف دې"اى يلاقى الانسانُ ماكدح"يعنى كله چه داحالات راشي نو انسان به خپلوعملونوسره ملاقات اوكړى، يعنى اوبه ئې وينى،دغه شان په سورة التكوير او انفطار كښې هم تيردى،ياجواب﴿يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ﴾دې،يا﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ﴾.

| يَا أَيُّهَا | الْإِنسَانُ | إِنَّكَ | كَادِحٌ | إِلَىٰ | رَبِّكَ | كَدْحًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اې انسانه بې شكه ته كسب (عمل) كونكې ئې دَ ملاقات دَ رب خپل پورى (وخت دَمرګ پورى)په كسب كولوسره | | | | | | |
| فَمُلَاقِيهِ ﴿٦﴾ | فَأَمَّا | مَنْ | أُوتِيَ | كِتَابَهُ | بِيَمِينِهِ ﴿٧﴾ | فَسَوْفَ |
| بياته ميلاويدونكې ئې ورسره.پس هغه څوك چه وركړې شى ورته عملنامه دَهغه په ښى لاس دَهغه كښې نوزردې | | | | | | |
| يُحَاسَبُ | حِسَابًا يَسِيرًا ﴿٨﴾ | وَيَنقَلِبُ | إِلَىٰ أَهْلِهِ | مَسْرُورًا ﴿٩﴾ | وَأَمَّا | مَنْ أُوتِيَ |
| چه حساب به ورسره اوشى حساب اسان.اولاړبه شى اهل خپل ته خوشحاله اوهغه څوك چه وركړې شى | | | | | | |

كِتٰبَهٗ وَرَآءَ ظَهْرِهٖ ﴿١٠﴾ فَسَوْفَ يَدْعُوْا ثُبُوْرًا ﴿١١﴾ وَّيَصْلٰى سَعِيْرًا ﴿١٢﴾ اِنَّهٗ كَانَ

ورته عملنامه دهغه ورستو دشادهغه نه،نوزردې چه راغواړي به هلاكت.اوداخليږي به جهنم ته بیشکه دې وو

فِيْٓ اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا ﴿١٣﴾ اِنَّهٗ ظَنَّ اَنْ لَّنْ يَّحُوْرَ ﴿١٤﴾

په اهل خپل(دنیا)كښې خوشحاله ځكه دده داگمان وؤچه هرګزبه رجوع نه كوي(الله ﷻ ته)

بَلٰٓى ۚ اِنَّ رَبَّهٗ كَانَ بِهٖ بَصِيْرًا ﴿١٥﴾

داگمان غلط دې ځكه چه بې شكه رب دده په ده ليدونكى دې.

﴿يٰٓاَيُّهَا الْاِنْسَانُ﴾ داترغيب دې اعمالِ صالحوته، چه اې انسانه تاته تروخت دمرګ پورې موقع ده، مرګ نه ورستوبه الله ﷻ سره ملاقات كوې نونيك اعمال اوكړه چه رسوا نشې.

﴿اِنَّكَ كَادِحٌ﴾ اي كاسبٌ وجاهدٌ، "كدح" اصل كښې كار اومحنت كښې ځان ستړې كولو ته وائي، ځنې مفسرينو دلته ﴿كَادِحٌ﴾ په خپلى ظاهرى معنى كښې اغستې دې اي جاهد، ﴿اِلٰى رَبِّكَ﴾ په تقدير دمضاف سره دې.اى الى لقاءِ ربك،اومراد ترينه مرګ دې، مطلب دآيت دادې چې دمرګ وخت پورې دعمل كولو اوستړې كولو موقع ده ،مرګ نه ورستو په دې الله ﷻ سره ملاقات وى.

اوځنې مفسرينو﴿كَادِحٌ﴾ په معنى د"ساعٍ" او"ماشٍ" سره اغستې دې يعنى اې انسانه ته خپل رب طرف ته روان ئې، هغه سره به دې ملاقات وى. ﴿فَمُلٰقِيْهِ﴾ "فاء" دپاره دترتيب ده او ضمير راجع دې "رب" ته، يعنى بيا به دې خپل رب سره ملاقات وى هغه به درله جزا دركوى، كه نيک اعمال دې كړى وې، نونيكه بدله اوكه بداعمال دې كړې وى نوبده بدله. او يا ضمير "كدح" ته راجع دې ، يعنى دخپل عمل جزاء سره ملاقات كونكې ئې، د خپل كسب ثمره موندونكې ئى،نودې وجه نه لازمه ده چه دځان سره داعمالِ صالحه ذخيره جمع كړې.

﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ﴾ دادجزا تفصيل دي اوبشارت دي نيك عمل كونكوته﴿ حِسَابًا يَسِيرًا﴾ حساب يسير يعنی اسان حساب ديته وائی چه څه مناقشه وربانديِ اونكړې شي.صرف پيشی ئی اوشي،په ترمذی ابوداؤد وغيره كښ دي چه حضورﷺاوفرمائيل چه دقيامت په ورځ دچاسره هم حساب اوشی نوهلاك به شی،عائشه ؓعرض اوكړو،يارسول الله؛ قربان شم،اللهﷻ خوفرمائی چه﴿ فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ ۝ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا ﴾مطلب دعائشه ؓداوؤچه آيت نه معلوميږی چه حساب خوبه مؤمن سره هم كيږی ليكن هلاك به نوي بلكه ښه خوشحاله به وی ، نوحضورﷺاوفرمائيل چه داخوبه صرف پيشی وي چه دوئ به پيش كيږی،دچاسره چه په حساب كښ مناقشه اوشوه نوهلاك به شی.

بل روايت كښ دئ چه حضورﷺبه په مانځه كښ دادعاكوله:اللّهم حاسبنی حسابًا يسيرا كله چه دمونځ نه فارغ شو ، نو حضرت عائشه ؓ عرض اوكړو حساب يسيرڅه دي، حضورﷺ اوفرمائيل چه صرف دهغه په عملنامی نظراوكړې شي،تجاوزورنه اوكړې شي.

﴿ وَيَنقَلِبُ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ ﴾:اهل نه مرادخپل خاندان دې چه خوشحاله به وي اوهغوئ ته به خپله عملنامه ښائی چه:هاؤم اقرؤاكتابيه ، يادَاهل نه مرادهغه نعمتونه دی چه كوم ورته اللهﷻاختياركړی وی چه حوری غلمان دی.

﴿وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ ﴾داتخويف اخروي دې،بدعمل كونكوته،چه عملنامه به ورته په گس لاس دشادطرفه ميلاويږی،نودوئ به ځان ته دغې وخت كښ خيرې كوي، چه مونږ دې هلاك شو ، بيابه جهنم ته داخليږي.

**فائده:**دلته د "وراءظهره"ذكر دې اوپه سورت الحاقه "بشماله"ذكر دې ، نو اكثر مفسرين فرمائی چې دا دواړه صورته به وی،يعنی يوخواعمال نامې به كفاروته په گس لاس ميلاويږی اوبل انتهائی ناراضګئ اوكراهيت اظهار د وجهی نه به ورله مخامخ نه وركولې كيږی، بلكه "شا" طرف نه به ورله وركړې شی، او بعضو داتوجيه هم كړې ده چې "شماله"په اعتبار مؤمنانو گناهگارانو سره دې او"وراء ظهره"په اعتباردكفاروسره دې.

﴿فَسَوْفَ يَدْعُوا ثُبُورًا﴾ ثبور هلاکت ته وئيلې کيږي. يعنى دوئ به هلاکت ته چغې وهى دَدې جملې تفسير په سورت الفرقان کښې تير شوې دې.

﴿إِنَّهُۥ كَانَ فِىٓ أَهْلِهِۦ﴾ داعلت دې دَماقبل جزايعنى جهنم ته به ځکه ځى چې دنيا کښې دوئ مستئ کولې اوآخرت نه په غفلت کښې پراته وو. دَ هغې غم ورسره نه وو

﴿إِنَّهُۥ ظَنَّ﴾تعليل دې دَخوشحالئ په دنياکښې.چه دَده داګمان وو چه الله ﷻ ته رجوع نشته پس دَمرګ نه، ياداګمان ئې وو چه ځمارجوع به عدم ته يعنى مرګ ته نه کيږى.دمرګ نه غافله وو. ﴿أَن لَّن يَحُورَ﴾ حور رجوع ته وائى.

﴿بَلَىٰٓ﴾يعنى داسى نده لکه چه دې ګمان کوې بلکه مونږته به واپس کيږى﴿ إِنَّ رَبَّهُۥ كَانَ بِهِۦ بَصِيرًا﴾ ئى تعليل اوتاکيددې.يعنى خامخابه واپس کيږى ځکه چه رب دَده. په ده اودده په اعمالو بصيردې،هيڅ هم دَالله ﷻ نه خفى نه دى.

| |
|---|
| فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلشَّفَقِ ﴿١٦﴾ وَٱلَّيْلِ وَمَا وَسَقَ ﴿١٧﴾ وَٱلْقَمَرِ إِذَا ٱتَّسَقَ ﴿١٨﴾ |
| پس ځه قسم خورم په شفق باندې.اوپه شپه اوپه هغې چه دائى جمع کوې.اوپه سپوږمئ چه کله پوره شى رڼړادهغى |
| لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴿١٩﴾ فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠﴾ |
| چه خامخابه مخامخ کيږئ تاسو دَ يو حال سره ورستو دَ بل حال نه . پس ځه شوى دى دوئ لره چه ايمان نه راوړى. |
| وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ ٱلْقُرْءَانُ لَا يَسْجُدُونَ ﴿٢١﴾ |
| اوکله چه اولوستلې شى په دوئ قرآن نودوئ سجده نه کوى. |

﴿فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلشَّفَقِ﴾داقسم دې جواب قسم ئى﴿ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ﴾دې،پدې آياتونو کښې په دعوې دَسورت يعنى په موت او مابعد دَ موت نه چه کوم احوال دقيامت دى په هغى شواهدذکرکيږى،چه لکه ځرنګه په کائناتومختلف حالات راځى دغه شان به په تاسوهم مختلف حالات راځى،چه مرګ دې،بيابرزخ ، بيادوباره ژوندى کيدل،بياحسابَ

"شفق" هغه حمرة (سرخي) ته وائي چه په اُفق باندې ورستو دَ نور غروب نه ليدلې كيږي. يا هغه بياض (سفيدي) چه ورستو دَ دغه حمرة نه وي

﴿وَٱلَّيۡلِ وَمَا وَسَقَ﴾ اى وماضمّ وجمع (روح) يعني چه كوم څيزونه په ورځ كښې منتشر وي. خواره وي، هغه راجمع شي، نو "وسق" جمع كولو، راټولو ته وائي، بعضِ وائي معنى داده چه هغه څيزونه چه شپه ئې خپلې تيارې سره پټ كړي. ﴿وَٱلۡقَمَرِ إِذَا ٱتَّسَقَ﴾ اى اجتمع نوره، يعني رڼائي جمع شي اوبدر كامل ترې جوړه شي.

﴿لَتَرۡكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٖ﴾ داجوا ب قسم دې يعني څنګه چې كائنات كښې مختلف احوال دي، او مختلف احوال پرې څې راځي، دغه شان به ستاسو په قيامت كښې مختلف حالتونه وي، اومختلف حالتونه به درباندې څې راځي،

دَدې آيت مفسرينو متعدد توجيهات بيان كړي دي:

(۱) اكثر مفسرين فرمائي چې دې كښې خطاب مشركينوته اودَبعث اوآخرت منكرينوته دې، چې نن خوتاسودآخرت اوقيامت انكار كوئ، خو هلته به مسلسل يوحالت نه ورستوبه حالت سره مخامخ كيږئ اوهرحالت دَبل نه سخت وي، دې توجيه مطابق "ركوب" دلته په معنى دَ "ملاقات" او "ملازمه" سره دې يعني خامخا به مخامخ كيږئ. او "طبقا" نه مراد اخروى حالت او عذاب دې، څكه چې طبق وئيلې كيږي "مايطابق غيره في الحجم والقدر" ته، يعني هغه شې چې په مقدار اوحجم كښې دَ بل شي برابر وي، نوچونكه داعذاب دَانسان عمل مطابق وى نوڅكه ورته "طبق" اوئيلې شو، "طبقا" يامفعول به دې اوياحال دې، او "عن طبق" ورله صفت دې او "عن" دلته په معنى دَ "بعد" سره دې اي حالة بعدحالة وعذاب بعد عذاب، او يا دلته بعديت اعتبارى دې اي حالة هي اشدمن الاولى وافظع.

(۲) څنې مفسرينو په احوالو كښې عموم كړې دې چې دلته مراد حالت نه عام دې:

(۱) خواه كه هغه احوال زمانى وى، لكه نن مالداره صباغريب، نن بادشاه صباغريب، نن فاتح صبا مفتوح وغيره كمافي قوله تعالى: وتلك الايام نداولها بين الناس.

(۲) يااحوال مكانى وى، لكه نن دنيا صباقبر، بله ورځ قيامت، نن په يوځائ صباپه بل ځائې كښې.

(۳) يا احوال بدني وی، لکه ماشوم توب،ځوانی،بوډا والې کما في قوله تعالی:الله الذين خلقكم من ضعف ثم جعل من بعد ضعف قوة(الروم)

(۴) يااحوال قلبي وی، چې نن مال سره محبت ، صبا جاه سره. کله ګاډوبنګلو سره ئی محبت وی اوکله ئی ښځو سره محبت وی کمافي الحديث ان القلوب بين اصبعين من اصابع الله يقلبها كيف يشاء(ترمذی).

(۳)اوځنې مفسرين فرمائی چې طبق نه مراد دلته مقام اومرتبه ده، رکوب په معنی دَ انتقال دې، يعنی قيامت کښې به ستاسو حالات بدل شی، دنيا کښې به ذليل هلته به معزز وی، او دنيا کښې معزز به هلته ذليل وی ، د دنيا نعمت پرور خلق به هلته په سختئ کښې وی، او مصيبت زده به په راحت کښې وی کما في قوله تعالی خافضة رافعة.

﴿فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾دازجردې،يعنی چه دَقيامت پۀ ورځ باندی په دوئ مختلف قسمه سخت حالات راځی نو دوئ ايمان ولې نه راوړی چه دې شدائددَقيامت نه بچ شی.

﴿وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ ﴾ سجده کنايه ده دَخضوع نه،يعنی دوئ په وخت دَ تلاوت دَقرآن کښې خضوع ولې نه کوی،ياورنه مرادمونځ دې،ياورنه خپله ظاهري معنی يعنی سجده مراده،نوداآيت دَسجدی دې،حضورﷺنه دَدی آيت لوستلووخت کښې سجده کول منقول دي.

| |
|---|
| بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ ﴿٢٢﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ ﴿٢٣﴾ |
| بلکه کافران تکذيب کوی دَقرآن اوالله تعالی ښه پوهه دې په هغی چه ساتی ئی دوئ په زړونوکښې |
| فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٤﴾ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ |
| پس زيری ورکړه دوئ ته دَعذاب دردناک مګرمؤمنان اونيک عمل کونکی چه دی هغوئ لپاره |
| أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿٢٥﴾ |
| اجردې نه ختميدونکې. |

﴿ بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ترقی ده دَماقبل نه،یعنی قرآن لوستلووخت کښې سَجده خوخود نه کوی بلکه دَقرآن تکذیب کوي.

﴿وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ ﴾ یعنی دَدوئ په زړونوکښې چه کوم کفر،حسد،بُغض اودشمنی دَ مسلمانانو سره پټ دي،الله ﷻ ته دَهغی ښه علم دي،یا﴿ يُوعُونَ ﴾پمعنی دَ یجمعون دي، نو مطلب دا دي چه دوئ پخپلوعملناموکښې کوم بداعمال جمع کوي الله ﷻ ته معلوم دي، نو الله ﷻ به ئې بدله ورکوي(روح المعانی).

﴿ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ ﴾مشرکانوته تخویف اخروي دي﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾استثناء یا متصل ده، یعنی چه کافرانوکښې چه کوم ایمان راوړي اوعمل صالح اوکړی نوهغوئ ته به الله ﷻ نه ختمیدونکی اجرورکوي،یااستثناء منقطع ده،پمعنی دَ لکن یعنی لیکن مؤمنانولپاره اجر غیرمقطوع دي،﴿ ءَامَنُواْ ﴾و﴿وَعَمِلُوا ﴾دواړه دَماضی صیغی په اعتباردَعلم دَالله ﷻ سره دي یادواړه پمعنی دَمضارع دي.

| ركوعاتها (۱) | سورة البروج مكيّة | اٰياتها (۲۲) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكى دى شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۸۵) وحسب النزول (۲۷)**

نزلت بعدالشمس وقبل التين.

**ربط**: دى سورة كښې احوال دَقيامت باندى درى شواهدذكردى بطورترقى دَماقبل نه دغه شان دى سورة كښې دَتوحيدذكردې.

**خلاصه**: آيت(۱)نه ترآيت(۳)پورى په ثبوت دَقيامت درى شواهددى،آيت(۴)نه ترآيت (۸) پورى متعلق دې دَدريم شاهدپورى په طريقى دَلف نشرغيرمرتب، آيت(۹) دَتوحيد بيان دې،آيت(۱۰)تخويف اخروى دې،آيت(۱۱)بشارت اخروى دې.آيت(۱۲)نه ترآيت (۱۲) پورى متعلق دې دَدويم شاهدسره،آيت(۱۷)نه تر(۲۰)پورى دَاول شاهدسره متعلق دې، آيت (۲۱، ۲۲)بل الذين كفروا سره متعلق دى(تمت).

| |
|---|
| وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ ۝۱ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ ۝۲ وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ ۝۳ |
| قسم په اسمان چه خاونددبروجونودې،اوپه ورځى وعده كړې شوى باندى،اوپه حاضراوپه حاضرشوى |

﴿وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ﴾داپه ثبوت دَقيامت باندى اول شاهددې،﴿البروج﴾نه بعض مفسرينو ستورى اغستى دى، ځنى فرمائى چې دينه دَستورومنازل مراد دى، اوجواب قسم محذوف دې،چې هغه لتبعثن دې،اويا ان الله من ورائهم محيط دې، اوقسم اوجواب قسم كښې مناسبت دادې چې لكه څنگه چه اسمان په تاسواحاطه كريده او دَ ده دكيرې نه تاسو نشئ وتلې، نو داپدى شاهد دې چه الله ﷻ هم دغه شان په تاسومحيط دې،دَقيامت په ورځ ورنه چرته نشئ تختيدلې.

﴿وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ﴾دادويم شاهددې،مراددَيوم موعودنه ورځ دَقيامت ده څكه چې دَدې وعده كيږى مؤمنانوسره هم، لكه لايحزنهم الفزع الاكبر وتتلقهم الملائكة هٰذا يومكم الذي كنتم

توعدون، او كافرانو سره هم لكه فذرهم يخوضو ويلعبوا حتى يلاقو مومهم الذي يوعدون او جواب قسم محذوف دي، چې ان بطش ربک لشدید دې، اوقسم اوجواب قسم کښې مناسبت دادې چې لکه څرنګه چه دقیامت ورځ به سخته وی.نوغه شان پدغه ورځ به دالله ﷻ نیول هم سخت وی.

﴿وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ﴾دادریم اوڅلوم شاهد دې په قیامت.د "شاهد" معنی حاضر اوکتونکې، اود "مشهود" معنی حاضرکړې شوې اولیدلې شوې ده. ددې دواړو اوصافونه دلته څه مراد دی ؟ د دې متعلق دمفسرینو شل نه زیات اقوال منقول دی.

(۱) بعض وائی چې "شاهد" نه مراد هغه کافران دی چې مسلمانانوته تکلیف اوایذارسانی د پاره حاضریدل او "مشهود" نه مرادهغه مؤمنان دی چې هغوئ ته به تکلیفونه میلاویدل.

(۲) شاهد نه مراد جمعه اومشهود نه مراد یوم عرفه ده.

(۳) شاهد نه مراد انبیا اومشهود نه مراد امتیان دی.

(۴)شاهد نه مراد امت محمدیه اومشهود نه مراد نورامتونه دی.

(۵)شاهد نه مراد فرشتی اوکراما کاتبین دی اومشهود نه مراد بنی آدم دی.

(۶)شاهد نه مراد اعضا دانسان اومشهود نه مراد انسان دې.

راجحه خبره داده چې شاهد اومشهوددا ټول بلکه هغه ټول څیزونه دی چې هغه شاهد او مشهود جوړیدو صلاحیت لری،اوکومو روایاتو کښې چې ئی تعیین راغلی دې نوهغه به طور تمثیل دې بطور تخصیص نه دې.

- جواب قسم محذوف دې چې ان کفارقریش لملعونون، چې کفارقریش به دالله ﷻ غضب مورد وی په قیامت کښې، قسم اوجواب کښې مناسبت دادې چې څنګه دوئ مؤمناتو ته تکلیف رسولو دپاره حاضریږی نودغه شان به قیامت په ورځ به الله ﷻ دوئ له عذاب ورکوی، او مؤمنان به ئی د نینداړې د پاره حاضریږی،هغه ورځ به مؤمنان شاهد اودوئ به مشهود وی.

| |
|---|
| قُتِلَ اَصْحٰبُ الْاُخْدُوْدِ ۙ﴿۴﴾ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُوْدِ ۙ﴿۵﴾ اِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُوْدٌ ۙ﴿۶﴾ |
| لعنت کړې شویدې په خاوندانو د کندو، د اور چه لمبو والا وؤ، کله چه دوئ په غاړودکندوناست وؤ، |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَهُمْ | عَلَىٰ | مَا | يَفْعَلُونَ | بِالْمُؤْمِنِينَ | شُهُودٌ ۞ | وَمَا | نَقَمُوا | مِنْهُمْ إِلَّا |
| اودوئ په هغه کارونوچه کول ئی مؤمنانوسره حاضر وؤ اونه ني اغستو انتقام د مؤمنانو نه مگر | | | | | | | | |
| أَنْ | يُؤْمِنُوا | بِاللَّهِ | الْعَزِيزِ | الْحَمِيدِ ۞ | الَّذِي | لَهُ | مُلْكُ | |
| صرف د دې وجه نه چې دوئ ايمان راوړو په الله چه غالب دې،ستائيلې شويدې هغه ذات چه هغه لره ده بادشاهي | | | | | | | | |
| السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ | وَاللَّهُ | عَلَىٰ | كُلِّ | شَيْءٍ | شَهِيدٌ ۞ | | |
| دآسمانونو | اوزمکې | اوالله ﷻ په | | هرخيزباندې | | گواه | دې | |

﴿قُتِلَ أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ﴾ "قُتِلَ" يمعنى د "لُعِنَ" دې،ابن عباس رضي الله عنه فرمائي قرآن کښ چه "قُتِلَ" کوم ځائ ذکر وی، نو يمعنی د "لُعِنَ" دې(قرطبي)

دادَريم شاهد سره متعلق دې.يعنی څنگه چې اصحاب الاخدود ملعون شول دهغه شان به کفارمکه هم ملعون کيږی."اخدود" جمع د "خده"ده کندی ته وائی﴿النَّارِ﴾بدل دې د﴿الْأُخْدُودِ﴾ نه، يعنی په اصحاب الاخدودباندی دی لعنت وی چه دَ اورکندې نی بلې کړې وی په مؤمنانو.

دی آياتونوکښ دکافرانودَيوقوم قصې ته اشاره چه مؤمنانوباندی ئی کوشش اوکړوچه دَخپل دين نه واوړی،ليکن چه انکارئی اوکړونوکندی ئی ورته اوکنستلې،اورئی پکښ بل کړو ،مؤمنان ئی ورته غورځول.

قرطبي،ابن کثيروغيره په حواله دَمسلم،ترمذي،ليکلی دی چه دَصهيب رضي الله عنه نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائي،چه يوبادشاه وؤ،دَهغه سره يوساحروؤ،کله ئی چه عمر زيات شو نو بادشاه ته ئ اووئيل،ماته يوغلام يعنی شاگرداکړه چه څه ورته سحراوښايم چه داعلم ضائع نشی،بادشاه ورته شاگرد ورکړو،ساحر به ورته سحر ښودلو، دا هلک به چه ساحر خوا ته راتللو، نو لاره کښ يوراهب ناست وؤ،نوداماشوم به چې کله هم په دې راهب تيريدلو نوڅه ساعت به دې راهب سَره کيناستلو، د هغه خبرې ترې به نی اوريدلې اوخوندبه ئی ورله ورکولو، نوچه ساحرخواته به راغې نوهغه به په ناوخته راتلوباندی به ئي اووهلو،نوده راهب ته شکايت اوکړو ،راهب ورته اووئيل چه کله دی ساحر وهی نوته ورته وايه چه څه کوروالوپه څه کار کښ حصارکړې ووم،اوچه کورته ناوخته لاړشی نوورته وايه ساحر راباندی ناوخته

کړو . يوه ورخ داهلک راتلونوپه لاره کښې يوه لويئ بلاناسته وه چه بعض وائی زمري وو خلق ئې حصارکړی وو .څوک هم تلې نشو .نودی هلک اووئيل نن به خه معلومه وم. چه آيا دين د راهب حق دې،اوکه ساحر په حقه دې.يوکاڼړې ئې راوخستلو اونی وئيل ياالله کچرته راهب دين په حقه وی اودې تاته خوښ وی نوپه دی کاڼړی دا بلا مړه کړې.چه خلق تيرشی،لاره ورته ازاده شی،کاڼړې ئې اوويشتلو ، نو هغه مړه شوه، خلقو ته لاره کولاوه شوه،هلک راهب ته خبر ورکړو دَ دی واقعی،راهب ورته اووئيل:اوس ته څمانه افضل ئې.ستامرتبه څمانه لويه ده، تا باندی به امتحانات راځی،ليکن څماباره کښې چاته څه مه وايه،داهلک خلقوکښې مشهور شو، دَ نابينا او ابرص والا اودغه شان دَنوروبيمارانوعلاج به ئې کولو،دَ بادشاه يو نابينا ملګرې وو،ډيری هديی دې هلک ته راوړې،ورته ئې اووئيل کچرته تاماته شفاراکړه، نو دابه ټول ستاوی،هلک ورته ووئيل څه چاته شفاءنشم ورکولې، شفاءورکونکې صرف الله ﷻدې،کچرته په الله ﷻدی ايمان راوړونوڅه به دعااوکړم.الله ﷻبه درته شفادرکړی ايمان ئې راوړو،الله ﷻورته شفا ورکړه ، نظر ئې راغې،دَبادشاه خواته راغې،بادشاه ورته اووئيل: نظر درته چادرکړو،نوده ورته اووئيل:څمارب،بادشاه ورته اووئيل څمانه علاوه ستا بل رب شته دې؟ده ورته اووئيل:رب څمااورب ستاالله ﷻ دې،بادشاه ګرفتارکړو، سزائی ورکوله حتّی چه هغه ورته هلك اوښودلو،بادشاه هلك ته اووئيل آياته دَخپل سحرپه وجه دا کارونه کوی، هلك ورته اووئيل: داڅه نه کوم،بلکه شفاء ورکونکې الله ﷻدې،بادشاه دې هم ګرفتار کړو، حتّی چه هغه ورته راهب اوښودلو،بادشاه راهب ته اووئيل دَخپل دين نه واپس شه، راهب انکاراوکړونوبادشاه په آری باندی دوه ټکړې کړو،بيائی دغه شان کارخپل ملګري سره هم اوکړو، بيا ئی هلك ته اووئيل چه خپل دين نه واپس شه، ليکن هغه هم انکار اوکړو، نو يو څو نوکرانو(پوليس والؤ)ته ئی حواله کړوچه دې.بوځئ دَفلانی غرنه ئی اوغورځوئ چه مړ شی، هغوئ چه غرته بوتلونوهلك دعااوکړه:اللّٰهم اکفنيهم بماشئتَ،نوپه غرزلزله راغله، هغوئ دَغرنه لاندې اوغورزيدل او هلك بچ شو، بادشاه ته راغې،واقعه ئی ورته بيان کړه، بادشاه نوروکسانوته حواله کړوچه دې بوځئ په سين کښې ئی ډوب کړئ،هغوئ چه بوتلونوده بياهغه دعااوکړه،نوپه هغوئ کشتئ اولټه شوه، ټخپله غرق شول،دې بچ شو،بيابادشاه ته راغې واقعه ئی ورته بيان کړه، اوبيائی ورته اووئيل چه ترهغی ته مانشی قتل کولې چه کومه طريقه درته څه اونه ښايم. بيائی ورته طريقه اوښودله چه په يوميدان کښې خلق راجمع کړه،

يوې اوني پوري ماواوتړه، غشي راواخله څمادَترکش نه.ليندهٔ کښې غشي کيده، او دا اوايه بسم الله ربّ الغلام، بيا ما اووله، نوځه به قتل شم.بادشاه چه دغه شان طريقه اوکړه نوهلك مړ شو، ليکن ځومره خلق چه راجمع وو، ټولو ايمان راوړو،اوئې وئيل:امنّابربّ الغلام، امنّابربّ الغلام، دَ بادشاه په حکم کندې جوړې شوې،اوروته پکښې بل کړې شول،چابه چه دَ مرتد کيدلو نه انکاراوکړو، هغه به ئې پکښې غورځولو،تردې چه يوه ښځه راوستلې شوه، په غيږ کښې ورسره ماشوم بچې وو،هغې هم دَمرتد کيدلو نه انکاراوکړو،په اورکښې ورتللوته ئې هم زړه اونه نيولو، ليکن بچې ورته اووئيل:ياامة اصبرى فانكِ على الحق(قرطبي).

دينه علاوه دې قصې کښې دَمفسرينونوراقوال هم دي،دَاختلاف په وجه په موضع کښې ئې هم اختلاف دې،بعضِ وائى داواقعه نجران کښې شويده،بعضِ وائى حبشه کښې،بعضِ وائى دَيمن په يوکلى کښې شويده،روايت دې چه حضورﷺبه چه کله دَاصحاب الاخدودتذکره کوله نوپه ازمائش اوامتحان کښې واقع کيدلونه به ئې پناه غوښتله.

﴿ إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُودٌ ﴾يعنى پدغه وخت کښې دکندونه ګيرچاپيره ناست وو﴿وَهُمْ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ﴾ددې مطلب يا(۱)دادې چه دوئ دَبادشاه په حضورکښې دَيوبل په کارګردګئ باندې ګواهي ورکوله چه ستاپه امرکښې چاهم تقصيرندې کړې،(۲)يادا دې چه دَقيامت په ورځ به دوئ پدې خپل فعل شنيع يوبل خلاف ګواهي کوى،يادَدوئ اعضاء به پدوئ ګواهي کوى،(۳)بعضِ وائى﴿ عَلَىٰ ﴾پمعنى دَ"مع"دې،نومطلب دادې چه دوئ سره دَدينه چه مؤمنانوته ئې کوم عذاب ورکولو، حاضر وو، ليکن بيائى هم دَقسوة قلبى پوجه په زړونوکښې نرمى نه پيداکيدله(روح المعانى).

﴿ وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ ﴾يعنى کافرانودَمؤمنانوصرف داعيب ليدلې وو چه دوئ ولې دَاللهﷻپه وحدانيت باندې ايمان راوړې دې﴿الَّذِى لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ ﴾دادَتوحيدبيان دې﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴾وعيددې عذاب ورکونکوکافرانوته چه اللهﷻستاسوپه عمل باندې عالم دې دَدې بدله به درنه دَقيامت په ورځ اخلى.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ |
| بی شکه هغه کسان چه تکلیف ئې رسولې وی مؤمنانوسړومؤمنانوښځوته بیائې توبه نه وی اوباسلی نودوئ لره |
| عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيقِ ۞ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ |
| عذاب دجهنم دې اودوئ لره عذاب د اور سیزونکی دې بی شکه مؤمنان اونیک عمل کونکی |
| لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيرُ ۞ إِنَّ بَطْشَ |
| دوئ لره جنتونه دی بهیږی به دلاندی دهغی نه نهرونه دا کمیابی لویه ده بی شکه نیول |
| رَبِّكَ لَشَدِيدٌ ۞ إِنَّهُ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيدُ ۞ وَهُوَ الْغَفُورُ |
| درب ستاخاماخاسخت دی،بی شکه هغه الله اول خل پیداکول کوی اودوباره پیداکول کوی.اوهغه ډیر بخونکي دې |
| الْوَدُودُ ۞ ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيدُ ۞ فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ ۞ |
| ډیر محبت کونکي دې،مالک دعرش دې ډیرلوئی دې،کونکي دې دهغه څه چه اراده ئې اوکړی. |

﴿ إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ ﴾داتخویف اخروی دې،چه کوموخلقو مؤمنانوسړواوښځو ته دتوحیدپه وجه عذاب ورکړیدي اوتوبه ئې نده اوباسلی،دوئ دپاره دوه عذابونه دی : یو عذاب جهنم دابه په سبب دکفر وی،اودویم عذاب الحریق چې دابه عام جهنم نه سخت عذاب وی، اودابه ورته مسلمانانو ته تکلیف رسولو په سبب میلاویږی،

ځنې مفسرینو لیکلی دی چې عذاب جهنم نه مراد عذاب دزمهریر دې چې دا دجهنم انتهائی یخه طبقه ده اوعذاب الحریق نه مراد داور اوګرمئ عذاب دې.

﴿ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا ﴾دابشارت اخروی دې.

﴿إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ ﴾.دا متعلق دې تخویف اخروی ان الذین فتنوا المؤمنینسره یعنی دالله ﷻ عذاب معمولی مه ګڼری هغه ډیر سخت دې.

﴿إِنَّهُ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيدُ ﴾یعنی دوئ دی داګمان نه کوی چې بس د،دې دنیا ژونددې چې څه کولې شئ هغه اوکړئ، دینه ورستو هیڅ نشته،بلکه دینه ورستو آخرت دې ځنګه موچې

اول خل پیدا کړی یی، دغه شان به دوباره پیدا کوی. اودهر څه تپوس نه درنه کوی. یبدئ نه مراد اوځل پیدا کول دی او یعید نه مراد دوباره پیدا کول دی.

﴿وَهُوَ ٱلۡغَفُورُ ٱلۡوَدُودُ﴾ دې تعلق دې بشارت اخروی ان الذین امنو وعملوا الصلحت سره. یعنی الله ﷻ بخونکي ذات دې اوخپل بندګانو سره ډیر مینه کونکي ذات دې ﴿ذُو ٱلۡعَرۡشِ﴾ عرش مالک اوفضل وکرم والا.

﴿فَعَّالٞ لِّمَا يُرِيدُ﴾ دهغه قوت اوطاقت لامحدود دې چې څه فیصله اوڅه کول غواړی هغې کښی ورته څوک رکاوټ نشی اچولی.

| |
|---|
| هَلۡ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ٱلۡجُنُودِ ۞ فِرۡعَوۡنَ وَثَمُودَ ۞ بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ |
| آیاراغلي دې تاته خبر د لښکرو. فرعون دې اوثمودیان دی بلکه داکافران دمکی |
| فِي تَكۡذِيبٖ ۞ وَٱللَّهُ مِن وَرَآئِهِم مُّحِيطُۢ ۞ بَلۡ هُوَ قُرۡءَانٞ مَّجِيدٞ ۞ |
| په تکذیب کښ دی. اوالله ﷻ ګیرچاپیره ددوئ نه احاطه کونکي دې بلکه داقرآن دې لوئ شان والا. |
| فِي لَوۡحٖ مَّحۡفُوظِۭ ۞ |
| په لوح محفوظ کښ لیکلې شوې |

﴿هَلۡ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ٱلۡجُنُودِ﴾ تاکید دې د فعال لمایرید او د بطش ربك لشدید او تسلی ده حضور ﷺ ته ﴿فِرۡعَوۡنَ وَثَمُودَ﴾ بدل دې د ﴿ٱلۡجُنُودِ﴾ نه په حذف دمضاف سره ای جنود فرعون، د فرعونیانو اوثمودیانو هلاکت ته پکښ اشاره ده چه دسرکشئ پوجه څرنګه الله ﷻ هلاك کړل نو که داخلق هم سرکشی کوي نو دوئ به هم هلاك کړی.

﴿بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ اضراب دې دمماثلت نه یعنی دااهل مکه دفرعونیانو ثمودیانو نه زیات سخت دی په کفرکښ، ځکه چه دقرآن په شان عظیم الشان کتاب تکذیب

كوي،نودوئ زيات مستحق دَعذاب دی.﴿وَٱللَّهُ مِن وَرَآئِهِم ﴾داول شاهد سره متعلق دي.﴿بَلۡ هُوَ قُرۡءَانٞ مَّجِيدٞ ﴾دكافرانودَتكذيب رددي،يعنى داسى قرآن باندى تكذيب نه دي مناسب ﴿ فِي لَوۡحٖ ﴾اى كائن فى لوحٍ﴿مَّحۡفُوظِۭ ﴾يعنى دَرسيدلو دَشياطينونه محفوظ دي.

| رکوعاتها (۱) | سورة الطارق مكيّة | آياتها (۱۷) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۸۶) وحسب النزول (۳۶)**

نزلت بعدسورة البلد وقبل اقتربت الساعة

**ربط**: ماقبل سورتونوکښ دَقیامت مسئلې بیان تفصیلاً اوشو، دې سورة کښ اوس فرمائی چه اوس هم چه داکافران قیامت نه منی نوبیا ئي ما ته پریده "فمهّل الكافرين امهلهم رويداً".

**خلاصه**: ترآیت (۴) پوری تخویف أخروی دي، بیاآیت (۱۰) پوری حشرنشرباندی دلیل عقلی دي بطورنمونه، آیت نمبر (۱۴) پوری دویم دلیل دي بطورنمونه، "انهم یکیدون" شکوه ده کافرانو نه، آخری آیت تخویف دي (تمت).

| وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ ۝ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الطَّارِقُ ۝ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ۝ |
| --- |
| قسم دي په اسمان اوپه راتلونکی دَ شپې . او څه پته ده تاته چه څه دي دَشپې راتلونکې، ستورې دي ځلیدونکې. |

| اِنْ | كُلُّ | نَفْسٍ | لَّمَّا | عَلَيْهَا | حَافِظٌ ۝ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| نه دي | هرنفس | مګرپه | هغه | باندی مقرردي | يو ساتونکې |

﴿ وَٱلسَّمَآءِ وَٱلطَّارِقِ ﴾ دادوه قسمونه دی دَپاره دَاستشهاد ، اول قسم په آسمان باندي دي اودویم قسم په "الطارق" باندي، "الطارق" دَ "طرق" نه دي اصل کښ "دق" یعنی تکولو ته وئیلې کیږی، اوبیادَشپې راتلو په معنی کښ استعمال شو، ځکه چې شپې راتلونکې هم دَ کور دروازه تکوی، لکه په حدیث کښ دې معنی کښ راغلې دي نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یطرق المسافر اهله لیلا، اودلته ترینه مراد ستورې دي چې شپې راښکاره کیږی.

﴿وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلطَّارِقُ﴾ داسوال دَپاره دَبیان دَعظمت دَ "الطارق" دي،

﴿ٱلنَّجْمُ ٱلثَّاقِبُ﴾خبردي دَمبتدامحذوف ای هوالنجم الثاقب.یعنی طارق یوچمکداره روښانه ستوري دي،ثاقب ورته ځکه وائي چه دي تیاری روښانه کوی.بعض وائی ثاقب پمعنی دَمرتفع دي

﴿إِن كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا﴾داجواب قسم دي چې تاسو کښې هر چاباندې نګراني فرښتې مقرر دی، چې هغه ستاسو اعمال لیکی، **قسم اوجواب قسم کښې مناسبت** دادې چې لکه څرنګه په آسمان ستوری هروخت موجود وی خوظهور ئې صرف دَشپې کیږی نودغه شان په تاسو هم نګراني فرښتې مقرر دي هغوئ ستاسو اعمال خیر وشرټول لیکی.خوددې پته تاسو ته اوس نه لګی قیامت په ورځ به ددې ظهور کیږی(بیان القرآن)

اوځنی مفسرینو مناسبت داسی بیان کړې چې:لکه ستوري په آسمان کښې وی اوخپله ذمه داری پوره کوی،چې شپه شی راشی پرقیږی،اودآسمان زینت ذریعه ګرځی، کمافي قوله تعالی: انا زینا السما الدنیا بزینة الکواکب وحفظا من کل شیطان مارد، نودغه شان په تاسو هم نګرانې فرښتې مقرر دی، اوهغه خپله ذمه واری پوره کوی، چې کله تاسو کښې څوک څه عمل اوکړی نو هغه ئې فورا اولیکی. "ان"نافیه دي پمعنی دَ "ما"سره، "لما"په معنی دَ "الا"سره دي،

﴿حَافِظٌ﴾ نه مراد کراما کاتبین دی کمافي قوله تعالی:وان علیکم لحافظین کراماکاتبین، یا ترینه هغه فرښتې مراد دي چې دَانسان په حفاظت باندې ماموردی کمافي قوله تعالی:له معقبٰت من بین یدیه ومن خلفه یحفظونه من امر الله(الرعد) اویاترینه مراد په خپله الله ﷻ دي کمافي قوله تعالی:وکان الله علی کل شئ رقیبا.

| |
|---|
| فَلْيَنظُرِ ٱلْإِنسَٰنُ مِمَّ خُلِقَ ۝ خُلِقَ مِن مَّآءٍ دَافِقٍ ۝ يَخْرُجُ |
| پس اودې ګوری انسان چه دَڅه څیزنه پیداکړې شویدې،پیداکړې شویدې دَاوبوټوپ وهونکونه چه راوزی |
| مِنۢ بَيْنِ ٱلصُّلْبِ وَٱلتَّرَآئِبِ ۝ إِنَّهُۥ عَلَىٰ رَجْعِهِۦ لَقَادِرٌ ۝ يَوْمَ |
| دَمینځ دَملادَسری نه اودَسینودنبځی نه.بې شکه الله ﷻ په دوباره پیداکولودَانسان خامخاقادردې.په هغه ورځ |

| تُبْلَى | السَّرَآئِرُ ۝٩ | فَمَا | لَهُ | مِنْ | قُوَّةٍ | وَّلَا | نَاصِرٍ ۝١٠ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چه ښکاره به کړې شي | رازونه ، | پس نه به وي | ده لره | هيڅ | قوت | او نه | مددكونكي |

﴿فَلْيَنظُرِ ٱلْإِنسَـٰنُ مِمَّ خُلِقَ﴾داپه حشرنشرباندي اول عقلي نمونه ده،چه انسان دي په نظردعقل اوفكرسره اوګوري چه الله ﷻ دې دمني داوبونه څنګه پخپل قدرت سره پيدا كړيدې نودغه شان ئې پخپل قدرت سره دوباره پيدا كولوباندې هم قادردې.

﴿خُلِقَ مِن مَّآءٍ دَافِقٍ﴾توپ وهونكو اوبونه مرادمني ده،دفق په تيزئ سره بهيدلوته وائي. نو ﴿دَافِقٍ﴾ يا پمعنى مدفوق دې،يعني په تيزئ سره بهيولې شوى،يافاعل ذى كذا دې،اى ذى دفقٍ.

﴿مِن مَّآءٍ﴾ ئې مفردراوړوحالانكه انسان دسړي اوښځې د دواړو اوبونه پيدا كيږي،څكه چه مراد ورنه مخلوطې اوبه دي، نوداپه شان د ماء واحد دي،اووصف ئې په دفق سره يا په اعتبار د احد الجزئين دې،چه مني دسړي ده يامني دښځې هم دافقه ده رحم ته(روح المعاني).

﴿يَخْرُجُ مِنۢ بَيْنِ ٱلصُّلْبِ وَٱلتَّرَآئِبِ﴾ "الصلب"ملاته وائي، "الترائب" جمع د "تريبة"ده، د سينې بالائي هډوكي ته وائي،دې وجهې نه ځنې مفسرينو ئې معنى موضع قلادة المرأة كړې ده ، يعني هغه هډوكې چه هغې باندې دښځې هارپروت وي.ددې آيت په تفسير كښې مفسرينو نه متعدد توجيهات منقول دي:

(١)ځنې مفسرين فرمائي چې"الصلب"كښې اشاره دة سړي ته،چونكه سړي كښې صلابت او مضبوط والې وي نوځكه ورته الصلب سره اشاره اشوه،او"الترائب"كښې اشاره ده ښځې ته ، چونكه ديكښې نزاكت وي نوځكه ورته دې سره اشاره اشوه،اوداسې دې لكه عرب وائي يخرج من بين زيد وعمرو خير كثير،اومقصد داوي چې دادواړه دخير سبب دي،نودآيت مطلب دادې چې دانسان پيدائش سبب ظاهري دسړي اوښځې مخلوطه نطفه ده.

(٢)ځنې مفسرين فرمائي چې "الصلب"نه مراد صلب الرجل او"الترائب"نه مراد"ترائب المراة" دې ، نوديكښې اشاره ده چې سړي نطفه دملا نه راوځي اودښځې نطفه دسينوراوځي.

(٣)ځنې مفسرين فرمائي چې"الصلب" او"الترائب"دواړو نه دسړي صلب اوترائب مراد دي، څكه چې "دفق"وصف دسړي په مني كښې وي ښځې په مني كښې نه وي.

(۴)خنو مفسرینو دصلب اوترائب نه مراد دسړی اوښځو دواړو صلب اوترائب اغستي دي

**فائده**: (۱)قرآن مجید کښې دمنی خروج په باره کښې صرف دومره ذکر راغلې دې چې من بين الصلب والترائب نه رااوځي ،اودومره خبرې باندې اجمالا ایمان او عقیده ساتل ضروری دی،باقی دااحتمال هم شته چې خروج نسبت ورته حالا شوې وی. یعنی عین انزال په وخت کښې دَ "من بين الصلب والترائب"نه رااوځي، اوداهم ممکن ده چې انزال په وخت کښې دادسړی خصیتینو اودښځې "مبهضة"نه رااوځي، خو "من بين الصلب والترائب" ته نسبت تسببا شوې دې، ځکه چې کوم قوت اوغذا دیته ورکولې کیږی هغه دَ "من بين الصلب والترائب" نه راځی

**فائده۲**:طب قدیم دَمسلماتو نه داخبره وه چې منی دَپوره جسم نه خارجیږی، طب جدید دَ دې رد کړې دې، اوداوائی چې نطفه دَسړی خصیتینو او دَ ښځې "مبهضة" نه خارجیږی، په ظاهر دا دَ قرآن دَدې آیت مخالف تحقیق دې، دې وجهی نه بعض علماؤ مُوجوده سائنسی او طبی تحقیقاتو اودَقرآن ظاهر کښې تطبیق کوشش کړې دې، چې کله انسان جنین حالت کښې وی، نودَده خصیتینو خلیې اواصول "من الصلب والترائب"وی، بیا ورو ،ورو دَوخت تیریدلو سره لاندې راکوزې شی، حتی چې دَسړی خصیتین آله تناسل لاندې لفافې ته راکوزې شی او دَ ښځې منی اصول دَ رحم خواه نیزدې مقام ته راکوز شی، اوبیا دَدې نه منی خارجیږی، نو قرآن دَدې آیت سائنسی تحقیقاتو سره هیڅ مخالفت نشته،بلکه دادَقرآن اعجاز دې چې د منی تاریخ بیان کړې دې چې دَ هغې انکشاف دیارلس سوه کاله ورستو سائنس اوکړو.

البته داتطبیق دَتکلف نه خالی نه دې:

(۱)ځکه چې سائنسی تحقیقاتو کښې خصیتینو راکوزیدلو ذکر دې اوقرآن کښې دَمنی خروج ذکر دې.

(۲)دویم داچې قرآن کښې بين الصلب والترائب ذکر دې اوترائب دَسینې بالائی هډوکی نه وائی،اوسائنسی تحقیقاتو کښې دَدَاضلاعو(پختو)لاندې حصې ذکر دې،

لهذا راجحه خبره داده چې دې باندې اجمالا ایمان راوړلې شی اوالله اعلم بمراده وهو الحق عقیده اوساتلې شی، باقی سائنسی اوطبی تحقیقات داځه قطعیات نه دی بلکه ظن اوتجرباتو باندې مبنی دی، نن یوځه وائی صبابل څه،نودې وجهی نه دَقرآن مفهوم اوتفسیر دَتبدل اوتغیر تخته مشق نه دی گرځول پکار.

﴿إِنَّهُۥ عَلَىٰ رَجۡعِهِۦ﴾داسابقه دلیل دپاره پمنزله دنتیجه دي یعنی د انسان په دي انداز تخلیق باندي غورکونکي په دي واضحي نتیجي رسی چي کوم ذات دمنی نه انسان په پیداکولو قادر دي هغه دانسان په دوباره پیداکولو هم قادر دي. انه کښې ضمیر منصوب الله ﷻ طرف ته راجع دي او رجعه کښې ضمیر مجرور انسان ته راجع دي.

﴿يَوۡمَ تُبۡلَى ٱلسَّرَآئِرُ﴾ظرف متعلق دي د﴿رَجۡعِهِۦ﴾سره،یعنی چه په کومه ورځ به رازونه ښکاره کیږی نو الله ﷻ دانسان په دوباره پیداکولوباندی قادردي،﴿ٱلسَّرَآئِرُ﴾نه مرادپه زړونوکښې پټ عقائد،اونیات دی،دغه شان هغه رازونه چه دانسان اودالله ﷻ مینځ کښې وؤ،که خیروی که شر،اداکونکي وی که ضائع کونکي،نوپدغه ورځ به هرڅه ښکاره شی،انسان لپاره به دالله ﷻ نه بچ کولو نه څه قوت وی او نه مددکونکي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَٱلسَّمَآءِ | ذَاتِ | ٱلرَّجۡعِ ⑪ | وَٱلۡأَرۡضِ | ذَاتِ | ٱلصَّدۡعِ ⑫ | إِنَّهُۥ | لَقَوۡلٞ |
| اوقسم دي په اسمان چه د باران والا دي اوپه زمکی چه چودولووالادہ چه بیشکه داقرآن خامخا خبره | | | | | | | |
| فَصۡلٞ ⑬ | وَمَا | هُوَ | بِٱلۡهَزۡلِ ⑭ | إِنَّهُمۡ | يَكِيدُونَ | كَيۡدٗا ⑮ | وَأَكِيدُ |
| فیصله کونکي دي اوندي داقرآن توقې بی شکه داکافران تدبیرکوی په تدبیرکولوسره اوځه هم تدبیرجوړم | | | | | | | |
| كَيۡدٗا ⑯ | فَمَهِّلِ | ٱلۡكَٰفِرِينَ | أَمۡهِلۡهُمۡ | رُوَيۡدَۢا ⑰ | | | |
| په تدبیرسره،پس | مهلت ورکړه | کافرانوته | مهلت ورکړه | لږه زمانه | | | |

﴿وَٱلسَّمَآءِ ذَاتِ ٱلرَّجۡعِ﴾دادویمه نمونه ده په حشرنشرباندی،﴿ذَاتِ ٱلرَّجۡعِ﴾یعنی باران والا، باران ته ځکه رجع وائی چه بار بار راځی.

﴿وَٱلۡأَرۡضِ ذَاتِ ٱلصَّدۡعِ﴾صدع شق ته وائی،په نباتاتو،اوچینوسره زمکه شلیږی.

جواب قسم محذوف دي چي كذلك تخرجون دي، یعنی څنګه چي مونږ آسمان نه باران اوروؤ، توځمکه ورسره اوشلیږی اوبوتی را اوځی، نودغه شان به قیامت په ورځ تاسو هم را اوباسو.

﴿إِنَّهُۥ لَقَوْلٌ فَصْلٌ﴾ضميرراجع دي مذكوركلام ته چې هغې دبعث بعدالموت ذکر دې. يعنی دابعث فيصله کن خبره ده، هغې توقی نه دې، ياضمير قرآن ته راجع دې يعنی داقرآن فاصل فيصله کونکې دې بين الحق والباطل، هغې دټوقوکتاب نه دې.

﴿إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ﴾داشکوه اوتخويف دې مشرکينوته، چې دومره دلائل شواهد او تخويفاتو باجود دوئ قرآن نه منی اوکمزوری اوواهی شبهاتو سره ردکوی.

﴿وَأَكِيدُ كَيْدًا﴾ مکر مونږ په خپل لطف سره ددوئ اعتراضاتو جواب ورکووا وددوئ هره حيله اوشبه باطل کوؤ، او يا د "اکيدکيدا"مطلب دادې چې زمونږ تدبيردادې چې دوئ له به طور استدراج مهلت ورکوؤ، خودوئ په دې نه پوهيږی.

﴿فَمَهِّلِ ٱلْكَٰفِرِينَ﴾داتخويف اخروی دې يعنی که دوئ بيا هم نه پوهيږی نوته ورته څه مه وايه،مونږ به ورنه خپله انتقام اخلو، ﴿أَمْهِلْهُمْ﴾بدل دې د"مهل الکافرين"نه ﴿رُوَيْدًۢا﴾پمعنی د" قليلا"سره صفت دې دمفعول مطلق محذوف اې امهالاقليلا.

| ركوعاتها (۱) | سورة الاعلى مكيّة | آياتها ۱۹ |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکی دی شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۸۷) وحسب النزول (۸)**

نزلت بعدسورة التكوير وقبل سورة الليل

**ربط**: دَسورة القيامة نه ترسورة الطارق پورى مسئله دَقيامت على سبيل الترقى تفصيلاً بيان شوه، اوس دى سورة نه ترآخره پورى مسئله دَتوحيد بيانيږى . او چونكه دَ توحيد نه اعراض دَدنيوى عيش وعشرت كښ انهماك په وجه وى. نو په دى وجه دَ مسئلى دَ توحيد سره سره تزهيد من الدنيا مضمون هم ذكركيږى.

**خلاصه**: خلاصه ددې سورت دوه حصې دي:

اوله حصه تر ابتدا نه آيت ۱۵ پورې ده اوديكښ دَمسئله توحيد ذكردې.دويمه حصه دَ"بل تؤثرون" نه ترآخره پورې ده او ديكښ تزهيد من الدنيا ذكر دي

اولې حصې كښ دَ دؤو دعوو ذكر دې اوبيا په هرې دعوې يو يوانعام ذكر دې. اوله دعوه داده چې كائنات كښ متصرف اوكار ساز صرف الله ﷻ دې ،اوآيت ۲نه تر۵ پورې بيا په دې دعوې شپږ شواهد ذكر دى،آيت نمبر ۲ كښ په دې انعام ذكر دې، آيت۷ كښ "انه يعلم الجهر" كښ دَدويمى دعوې ذكر دې،چې عالم الغيب صرف الله ﷻ دې، اوآيت ۸كښ ورباندى دَ انعام ذكر دې، ۹او ۱۰ كښ تسلى ده، ۱۱نه تر۱۳كښ تخويف اخروى دى، ۱۴، ۱۵كښ بشارت دې .

حضورﷺ دى سورة سره ډيرمحبت وؤ، په حديث كښ راغلى دى چه دى سورة ته افضل المسبحات پيغمبرعليه السلام وئيلى دى، په يوحديث كښ دى چه حضورﷺ به دَوترو په اول ركعت كښ سورة الاعلى اودويم كښ سورة الكافرون اودريم كښ "قل هو الله احد" وئيل، دَ اختر او دَ جمعى په مونځ كښ بې هم داسورة او"هل اتاك حديث الغاشية" وئيل

سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ۝ الَّذِي خَلَقَ فَسَوّٰى ۝ وَالَّذِي

باكى بيان كړه دَنوم دَرب خپل چه ډيرلوئى دې، هغه الله ﷻ چه پيدا كړيدې هرخيز بيائى برابركړيدې اوهغه الله ﷻ

قَدَّرَ فَهَدٰى ۝ وَالَّذِيْٓ اَخْرَجَ الْمَرْعٰى ۝ فَجَعَلَهٗ غُثَآءً اَحْوٰى ۝

چه اندازه ئي مقرر كړه (دهر شي) بيا هدايت ئي ورته كړيدي، او هغه الله چه را اوباسلې ئي دی واخه . پس گرځوی ئي وچ تور (بوس)

﴿ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى ﴾دا په ابتدا دَسورت كښ دَمكمل سورت لب لباب او خلاصې بيان دي ، چې دسورت دواړو دعوؤ (چې الله متصرف اوعالم الغيب دې )حاصل او نتيجه داده چې صرف دَ الله ﷻ عبادت كوه اوهغه دَهرقسم شريكانو نه پاك گڼره﴿اسْمَ رَبِّكَ ﴾لفظ دَاسم باره كښ مفسرينو مختلف اقوال دی :

(۱)بعض وائي چې دادلته مقحم (زائد)دې لپاره دَتعظيم دَمسمى،لكه لبيد وائي، الى الحول ثم اسم السلام عليكما

(۲)بعض وائي چې اسم نه مراد دلته مسمى دې چې هغه ذات دَالله ﷻ دي.

(۳)اوځنې مفسرين فرمائي چې اسم نه مقحم دې او نه ورنه مراد مسمى دې، بلكه خپله معنى ترينه مراد ده ،يعنى دَخپل رب نوم تسبيح كوه ،نودې كښ حكم دې چې صرف ذكر قلبى .. نه اكتفاء مه كوه،بلكه ذكر لسانى هم اختيار كړه.

﴿الَّذِيْ خَلَقَ ﴾ديكښ دَسورت اوله دعوى مذكورده،چې كارساز او متصرف صرف الله ﷻ دي، اوپه دې باندې شپږشواهد اودلائل ذكردی،دااول دليل اوشاهددې،چې خالق دَ كائنات صرف الله ﷻ دي لهذاكارساز هم صرف هغه دي.

﴿فَسَوّٰى ﴾دادويم شاهد دې ،چې بيائي هر شى تهيک اوتناسب سره پيدا كړې دي، انسان جسم ته اوگوره څومره خائسته انداز سره ئي تخليق شوې دي،هرعضو اواندام ئي مناسب او برمحل دې، اودغه شان آسمان ،زمكه،حيوانات بلكه هر مخلوق ته اوگوره ، نو دينه به هم تا ته پته اولگى چې متصرف په كائنات كښ صرف الله ﷻ دي.

﴿وَالَّذِيْ قَدَّرَ﴾دريم شاهد دې يعنى بيائي دَهر شى اندازه هم لگولې ده ، دَهغه دَجنس اندازه ئې هم لگولى ده چې دې به دكوم جنس نه وی، دَهغه دَاجل اندازه ئي هم كړيده چې كوم وخت په وی تر كوم وخته پورې وي،دَهغه دَافعالو اندازه ئی هم لگولې ده چې څه به كوی څه به نه كوی،دغه شان دهغه صفاتو ،ارزاقو وغيره دَهرشى ورله اندازه لگولې ده.

﴿ فَهَدَىٰ ﴾څلورم شاهد دي ، يعنی بيائی هر يونه دَخپل وظائف اداء کولو طريقه هم خودلې ده اوتقدير موافق تللو لارئی ورته هم همواره کړې ده.

﴿وَٱلَّذِیٓ أَخۡرَجَ ٱلۡمَرۡعَىٰ ﴾پنځم شاهد دي، چې حيواناتو دَپاره وابنه دَځمکی نه رااوباسلی دی، ْمرعیْ مصدر ميمی دې مرادترينه وابنه دی .

﴿فَجَعَلَهُۥ غُثَآءً أَحۡوَىٰ ﴾شپږم شاهد دي،يعنی تک شته وابنه راوباسلو نه لګه موده پس هغه وچ اوتور اوګرځوی،نوداټول تصرفات په دې دلالت کوی چې متصرف في الامور صرف الله ﷻ دي، ْغثاءْ وچو واخوته وئيلی کېږی،ْاحویْ تورمائل رنګ ته وئيلی کيږی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَنُقۡرِئُكَ | فَلَا | تَنسَىٰٓ ⑥ | إِلَّا | مَا | شَآءَ | ٱللَّهُۚ | إِنَّهُۥ | يَعۡلَمُ |
| زرده چه اوبه لولومونړيه تاقرآن نونه به ئی هيره وي،مګرهغه چه اوغواړی الله ﷻ بی شکه الله ﷻ عالم دې | | | | | | | | |
| ٱلۡجَهۡرَ | وَمَا | يَخۡفَىٰ ⑦ | وَنُيَسِّرُكَ | لِلۡيُسۡرَىٰ ⑧ | | | | |
| په ښکاره اوپه هغه چه پټ وی، او اسان به کړو تا ته دا آسان شريعته | | | | | | | | |

﴿سَنُقۡرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ ﴾داپه اولې دعوی انعام دې ،چه انعام کښې به مونږتاته قرآن درکړو کله چه ته دَتوحيدبيان کوی چه خالق اورازق صرف الله ﷻ دي، او قرآن به درته داسی ياد کړو چه درنه هيريږی به نه، البته هغه آياتونه چه دَهغوهيرول دَالله ﷻ خوښه وی هغه به درنه هيريږی چه داهم يوقسم نسخ ده.

حضور ﷺ باندی به چه کله وحی نازليده نوجبرئيل عليه السلام به فارغه شوې نه وۀچه حضور ﷺ به لوستل شروع کړل دَوجی دَخوف نه په هيريدلونودا آيت نازل شو(قرطبی).

﴿سَنُقۡرِئُكَ ﴾ کښې ْسينْ يا دَ تاکيد د پاره دې، يا دَ استقبال دې نو وعده ده دَ استمرار د وحی . ﴿إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُۚ ﴾ سوا دَ هغې نه چې الله ﷻ دَ هغې هيرول اوغواړی، او دَ دې دوه صورته دی : يو به طورنسخ هيرول دی،يعنی که الله ﷻ دَيوآيت يازيات نسخ اوغواړی نوهغه به درنه هيرشی،لکه تيرشو ،اوديته انساء وئيلې شی،اودويم صورت دادې چې عارضی طور باندې بتقاضائی بشريت ترينه هير شی ،لکه په روايت کښې دی چه حضور ﷺ دَسهارمونځ

کښې بوآيت پريخودلو . نو ابی بن کعب ﷺ گمان اوکړو چه دا به منسوخ وی. تپوس نی اوکړو نو حضور ﷺ ورته اوفرمائيل مانه هيرشوې وو

﴿ إِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلْجَهْرَ وَمَا يَخْفَىٰ ﴾دويمه دعوی ده اودماقبل علت دې.يعنی الله ﷻ ظاهری باطنی اقوالو ،افعالو ،اعمالو باندی عالم دې، او ستاپه حال اوحرص په حفظ دَمايُوحی باندی هم عالم دې ، نو دَ نسيان نه به دې محفوظه ساتی. مگرهغه چه دخپل علم اوحکمت موافق به درنه هيرکړی

﴿وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرَىٰ ﴾، داانعام دې په دويمه دعوی منلو باندې.چې ددين ټول کارونه به ستادَپاره آسان کړو ،خواه هغه دعوت اوتبليغ وی، ياتعليم اوتعلم وی. خواه هغه دَوحی تلقی وی يا دَهغې حفظ وی

**فائده**: "تيسير"فعل په صله کښې چې"لام"حرف جر راشی، نودهغې مدخول "ميسرله"وی. اومفعول به ئې "مَيَسَّر"وی، لکه وَ يَسِّرلِي فِي امري،دلته موسی عليه السلام "ميسرله" او امر ورله "ميسر" دې، حالانکه دلته خبره دَدې عکس ده، مفسرينو ددې متعدد توجيهات ليکلی دی:

(۱)تيسير دلته خپلی معنی کښې نه دې، بلکه توفيق او تهيئة په معنی کښې دې، اي نوفقک و نهيئک للطريقة والشريعة اليسری، او " لام" په ((لليسری)) کښې اجليه دې، اي لاجل اليسری وقبولها.

(۲)څنی مفسرين فرمائی چې "تيسير"خپلې معنی کښې دې. خوآيت کريمه کښې"قلب"شوې دې، ميسر پمنزله دَ"ميسر له"، او"ميسرله" پمنزله دَ"مسير" گرځولې شوې دې ، دَ تيسير حکم کښې مبالغې دَپاره،اصل کښې داسې دې ونيسرلک اليسری، نوقلب دلته حکم کښې مبالغه راوستلو سره سره نوری دوه فائدې ورکړې:

(۱)يوداچې کوم احکاماتو مونږ تا مکلف گرځوُو هغه يسير اولگ دی خو مقصود باندې محيط دی.

(۲)دويم داچې دَهغې لگو احکاماتو اداکول هم به تاته آسان کړو(التحرير والتنوير)

﴿لِلْيُسْرَىٰ ﴾ صفت دې دَموصوف چې هغه "الشريعة"دې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَذَكِّرْ | إِنْ | نَّفَعَتِ | الذِّكْرَى ﴿٩﴾ | سَيَذَّكَّرُ | مَن | يَخْشَى ﴿١٠﴾ |

پس نصیحت کوه که نفع ورکړي نصیحت زرده چه نصیحت به واخلي هغه څوک چه یریږي د الله ﷻ نه.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَتَجَنَّبُهَا | الْأَشْقَى ﴿١١﴾ | الَّذِي | يَصْلَى | النَّارَ | الْكُبْرَى ﴿١٢﴾ | ثُمَّ | لَا | يَمُوتُ |

ډډه به کوي ورنه لوئي بدبخت هغه چه داخلیږي به اورلوئ ته بیابه نه مرکیږي

فِيهَا وَلَا يَحْيَى ﴿١٣﴾

په جهنم کښې اونه به ژوندې وي.

﴿فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ ٱلذِّكْرَىٰ﴾ تسلی ده حضور ﷺ ته او دَتبلیغ حکم دې، چې الله ﷻ تاته دعوت لاړآسانه کړې ده، دَ هغه مدد به در سره پل په پل وي، لهذا ته مسلسل خپل دعوت او تذکیرجاري ساته.

"ان نفعت الذكرى" (۱) "ان" دلته یاپه معنی دَ "قد" سره دې، اومطلب دَ آیت دادې چې نصحیت کوه ځکه چې نصیحت خامخا فائده ورکوي.

(۲) یا ان شرطیه دې خودَشرط دَپاره تقیید نه دې، چې که دَنصیحت فائده وي نوبیا کوه، کنې هغې مه کوه ،بلکه شرط اتفاقي دې،لکه ((فلا جناح علیکم ان تقصروا من الصلوٰة ان خفتم)) او ((لاتکرهوفتیاتکم على البغاء ان اردن تحصنا)) (النور) کښې،اومقصد دَشرط دادې چې نصیحت کول خوهغې هم پکار دې، خو کچرته نفع ورکوي نو بیاخو ډیر زیات پکاردې، خو چونکه یقیني طور باندې داسې څه محل متعین نه دې چې هغه به قبولوي یا به نه قبولوي، نو لهذا هر چا ته پکار دې، په دې امکان چې کیدې شي دې نصیحت قبول کړي،نودَدې نه دَ تذکیر او تبلیغ عموم تاکیدثابت شو.

(۳) بعض مفسرینو شرط دَپاره دَتقیید گرځولې دې، خو هغوئ تذکیر اوتبلیغ کښې فرق کړې دې،چې تبلیغ دَپاره خوداشرط نه دې،البته تذکیر دَپاره داشرط دې، بشرطیکه چې یقیني علم وي چې دلته اوس نصیحت څه فائده نه ورکوي.

﴿سَيَذَّكَّرُ مَن يَخْشَىٰ ﴾ يعنى چاکښ چه خوف وى هغه به ترينه خامخا نصيحت اخلى. او څوک چه بدبخت وى هغه به ورنه لرى تختى﴿ ٱلنَّارَ ٱلْكُبْرَىٰ ﴾نه مراد دَجهنم آخرى طبقه ده، بعضِ وائى دَ جهنم اور ورنه مراد دي مطلقًا، دنيا اورته نارصغرىٰ وائى،آخرت اور ته نارِ كبرىٰ، په صحيحنوکښ دَابوهريره﷜نه روايت دې نارُكم هذه جزءٌ من سبعين جزءً من نارجهنم.

﴿ثُمَّ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ﴾كنايه ده عدمِ نجات نه،ځکه چه نجات په مرگ سره راځى نوجهنم کښ مرگ نشته دې،اونه به ئې داسى حيات وى چه نفع ورته ورکړى.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَدْ | أَفْلَحَ | مَن | تَزَكَّىٰ ⑭ | وَذَكَرَ | اسْمَ | رَبِّهِ | فَصَلَّىٰ ⑮ | |
| يقينًاكامياب دې هغه څوک چه ځان ئې پاک کړو(دَشرک نه)اويادئې کړونوم درب خپل پس مونځ ئې اوکړو. | | | | | | | | |
| بَلْ | تُؤْثِرُونَ | الْحَيَاةَ | الدُّنْيَا ⑯ | وَالْآخِرَةُ | خَيْرٌ | وَأَبْقَىٰ ⑰ | إِنَّ | هَٰذَا |
| بلکه غوره کوئ تاسوژوندددنيا حال داچه اخرة غوره دې اوباقى پاتى کيدونکې دې بى شکه دا(خبرې) | | | | | | | | |
| لَفِي | الصُّحُفِ | الْأُولَىٰ ⑱ | صُحُفِ | إِبْرَاهِيمَ | وَمُوسَىٰ ⑲ | | | |
| خامخاپه صحيفومخکنوکښ | | وى چه | صحيفى | دَابراهيم عليه السلام دى | اودَموسى عليه السلام دى | | | |

﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ ﴾بشارت اخروى دې،دَاهل جنت دَپاره ﴿ تَزَكَّىٰ ﴾چې ځان ئې دَشرک نه پاک کړو،ديکښ تصديق قلبى ته اشاره ده.

﴿وَذَكَرَ ٱسْمَ رَبِّهِۦ ﴾دَ لااله الا الله اقرار ئې هم اوکړو چې خپل حاجات ئې صرف دَالله ﷻ نه اغوختل بل چاته ئې ندااونکړه نوديکښ اقرار ساتى طرف ته اشاره اوشوه.

﴿فَصَلَّىٰ ﴾اوخپله عملى زندگى ئې هم دَشريعت دَاحکاماتولاندې تيره کړه،مونځ چونکه عملى احکاماتو کښ دَټولونه اهم عبادت دې نوځکه دَدې تخصيص اوشو،نوديکښ اعمال صالحوُو طرف ته اشاره اوشوه،نوتصديق، اقرار او عمل مجموعى نه ايمان کامل حاصل شو،چې مؤمنين کاملين کامياب دى.

﴿بَلْ تُؤْثِرُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا ﴾دادویم مضمون یعنی تزهید من الدنیا ذکر کیږی.چه دنیا د ترجیح څیز نه دي،پدی کښ ځان ډیرمه مشغوله کوئ څکه دافانی ده.باقی آخرت دې هغی ته ترجیح ورکړئ.

'بل'داضراب انتقالی دپاره دي،یعنی تاسوخودې خبرو له ترجیح نه ورکوئ،بلکه دنیا خو لیدلې ده، هغې پسی شوی یئ.

﴿وَٱلْآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰٓ ﴾یعنی دآخرت نعمتونه ددنیا نعمتونو نه بهترهم دی اودائم هم دی. همیشه به وی په خلاف ددنیا نعمتونونه چې دانه په عمدګئ دآخرت نعمتونوته رسی اونه ئی همیش والې شته.

﴿إِنَّ هَٰذَا ﴾مشارالیه دهذاکلام مذکور دې،چې ﴿قَدْ أَفْلَحَ﴾نه شروع کیږی اوپه 'ابقی' ختم شوې دې،یعنی دامضمون په مخکښنو صحیفو کښ هم وؤ: خصوصا دحضرت ابراهیم اوموسی علیهما السلام صحیفو کښ.﴿صُحُفِ إِبْرَٰهِيمَ ﴾بدل دې د﴿ٱلصُّحُفِ ٱلْأُولَىٰ ﴾نه.

| رکوعاتها (۱) | سورة الغاشية مكيّة | اياتها ۲۶ |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکی دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۸۸) وحسب النزول (۶۸)**

نزلت بعدسورة الذاريات و قبل الكهف

**ربط**: داسورة دَاول سورة يعنى دَسورة الاعلى تتمه ده، يعنى دَتزهيد من الدنيا بيان دي پكښې په ذكردَتخويف اخروى اوبشارت اخروى سره. اوبيان دَتوحيد دي

**خلاصه**: اول نه ترآيت (۷) پورى تخويف اُخروى دي، بياترآيت (۱۲) پورى بشارت دي بياترآيت (۲۰) پورى تفريع ده په مذكوره امورِاربعه ؤپه طريقى دَلف نشرمرتب ايت (۲۱. ۲۲) تسلى ده حضورﷺ ته، بياترآخره تخويف اخروى دي (تمت).

| |
|---|
| هَلۡ اَتٰىكَ حَدِيۡثُ الۡغَاشِيَةِ ۝۱ وُجُوۡهٌ يَّوۡمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ۝۲ عَامِلَةٌ |
| يقيناراغلي دي تاته خبر دَ پټوونكى (ورځ دَقيامت) بعض مخونه به پدغه ورځ ډيرېدونكى وي مشقت كونكى به وى |
| نَّاصِبَةٌ ۝۳ تَصۡلٰى نَارًا حَامِيَةً ۝۴ تُسۡقٰى مِنۡ عَيۡنٍ اٰنِيَةٍ ۝۵ لَيۡسَ لَهُمۡ |
| ستړى به وى داخليږى به اورډيرګرم ته څكولي به شى ورته دَچينى ډيرى ګرمى نه . نه به وى دوئ ته |
| طَعَامٌ اِلَّا مِنۡ ضَرِيۡعٍ ۝۶ لَّا يُسۡمِنُ وَلَا يُغۡنِيۡ مِنۡ جُوۡعٍ ۝۷ |
| خوراک مګر دَ ازغى دار ترېخ بوټى نه، چه نه به څربوى بدن اونه به دفع كوى څه لوږه |

﴿هَلۡ اَتٰىكَ حَدِيۡثُ الۡغٰشِيَةِ﴾ داتخويف اخروى دي "هل" پمعنى دَقد دي، ياپخپله معنى دي اواستفهام لپاره دَتعجب اوتشويق دي،

﴿الۡغٰشِيَةِ﴾ نه مراديا قيامت دي، قيامت ته څكه غاشيه وائى چه خلق پټوى پخپلو اهوالو سره.

بعض وائى چه "غاشية" نه مراد دَ دوزخ اور دي، كقوله تعالى "ومن فوقهم غواش"

﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ﴾دابيان دې د﴿ٱلْغَاشِيَةِ﴾يعنى هغه سرونه چي دنيا كښ ئې الله ﷻ ته خشوع نه كوله، پدې ورځ به ذليله وى. هغه كسان چې دنيا كښ دالله ﷻ احكامانو تعميل نه كولو ،اواعمال ئې نه اداكولوهغه به په دې ورځې مسلسل عمل كښ لګياوى.زنځيرونه او درنې زولنې به ځان سره راكاږى،اوهغه كسان چې دنيا كښ دَالله ﷻ په عبادت كښ ستړې نه برداشت كوله اوس به هميشه ستړى وى.

خاشعة، عاملة، ناصبة: درې واړه اخبار دى، اومبتدا ئې وجوه دې. خاشعة معنى ذليله او رسوا ده،﴿عَامِلَةٌ﴾ عمل كونكى به وى.مختلف دَعذاب اعمالو مكلف كړى شوى به وى، زنځيرونه او زولنى به ځان سره ګرځوى،جهنم كښ به ورله غوپى وركولې كيږى،وغيره، ناصبة مسلسل عمل دَوجهى به ستړى وى،څه دَدمې كولو موقع به ورته هم نه ميلاويږى.

﴿تَصْلَىٰ نَارًا حَامِيَةً﴾خبر رابع دې دَوجوه. يعنى داسى أورته به داخليږى چه ګرم والې دَ هغې به انتهاءته رسيدلې وى،دَډيرى ګرمئ پوجه به اوبه اوغواړى نودَسختى ګرمى چينى نه به ورته اوبه وركولې كيږى، چه په څكلوسره به ئې كلمى رااوزى،لكه په سورة محمد كښ تيردى، ﴿عَيْنٍ ءَانِيَةٍ﴾يعنى هغه ګرمې اوبه چه ګرم والې ئې آخرى حدته رسيدلې وى نورى نه ګرميږى.

﴿إِلَّا مِن ضَرِيعٍ﴾ ضريع ازغى داراوتريخ بوټې دې،دوزخى باندى چه اوخوړولې شى نونه به لاندى تيريږى دَډيرتريخ والى په وجه، او نه به بهرته واپس راځى دَ ازغوپه وجه.

بخارى كتاب التفسيركښ دى چه ضريع يوواښه دې،چه شبرق ورته وائى، داچه كله اوچ شى نو ضريع ورته وائى، دا ډير تريخ وى، زهريله وى، غالبًا پښتو كښ ورته كاپركنډه وائى. دلته دَجهنميانو دَخوراک حصر شوې دې په ضريع كښ. چې دوئ ته به جهنم كښ صرف ضريع ميلاويږى،اوسورت الحاقه كښ ئې حصر شوې دې په غسلين كښ، نو مفسرين فرمائى چې دواړو كښ تعارض نشته:

(١)چې ضريع دَ ونې نوم دې، اودې ونې نه چې كوم خوراک را اوځى نو دهغې نوم غسلين دې.

(٢)ياضريع اوغسلين دواړو نه مراد دَجهنميانو وينى زوې دى.

۳، اویا ضریع کنایه طعام مکروه نه، خواه که هغه غسلین وی او که زقوم وی

﴿ لَّا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِن جُوعٍ ﴾روایت دي چه کله دامخکنی آیت کافرانو واوریدلو. نو اوئی وئیل چه ضریع خوداسی واښه دی چه اوښان ئی په خوراک سره ښه څربیږی.نودا آیت نازل شوچه هغه ضریع به دَدنیاضریع په شان نه وی.نه به ورسره څوک څربیږی او نه به ورسره لوږه ختمه وی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وُجُوهٌ | يَوْمَئِذٍ | نَّاعِمَةٌ ﴿٨﴾ | لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ﴿٩﴾ | فِي جَنَّةٍ | عَالِيَةٍ ﴿١٠﴾ | لَّا تَسْمَعُ |
| بعض مخونه | به پدغه ورځ | تروتازه وي | په عمل خپل به راضي وي | په جنت | اوچت کښې به وي | نه به اوري |
| فِيهَا | لَاغِيَةً ﴿١١﴾ | فِيهَا عَيْنٌ | جَارِيَةٌ ﴿١٢﴾ | فِيهَا | سُرُرٌ | مَّرْفُوعَةٌ ﴿١٣﴾ |
| په هغی کښې | فضول خبرې | پدی جنت کښې به چینه وی | جاري | پدی کښې به | تختونه وی | دنګ دنګ |
| وَأَكْوَابٌ | مَّوْضُوعَةٌ ﴿١٤﴾ | وَنَمَارِقُ | مَصْفُوفَةٌ ﴿١٥﴾ | وَزَرَابِيُّ | مَبْثُوثَةٌ ﴿١٦﴾ | |
| اوګلاسونه | کیخودلي شوي | په ترتیب سره اوبالختونه | په صف ایخودلي شوي | اوقالینونه | غوړولي شوي | |

﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ﴾ دابشارت اخروی دي مؤمنانوته،چه دَقیامت په ورځ به ډیر خوشحاله وی،دَخپلونیکوعملونو اومجاهدوپه اجروثواب به راضی وی.

. "ناعمة" داپه مقابله دَ "خاشعة" کښې دې، چې جهنمیانو په مخونه به ذلت اورسوائی اثرات وی او دَ مؤمنانو مخونه به دَخوشحالئ نه تروتازه وی.

﴿ لِّسَعْيِهَا ﴾ یعنی دَعمل خپل چه کوم ئی دنیاکښې کړې وی داپه مقابله دَ عاملة ناصبة کښې دې . یعنی کافرانو دنیا کښې عمل نه کولو،نونن الله ﷻ دَهغې نه سخت اوشاق عملونو مکلف اوګرځول په خلاف دَمؤمنانو چې هغوئ دنیا کښې عملونه کړی وو .نونن به ورته الله ﷻ دَهغې صله اوبدله ورکوی،اودوئ به هغې راضی وی.

﴿ فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴾داپه مقابله دَ تصلی ناراکښې دې، چې کافران به جهنم ته غورځولې شی او مؤمنان به جنت کښې ډیر په عیش وعشرت کښې وی، "عالیة" قیمتی،لوئ شان والا،دنګ دنګ محلات.

﴿لَّا تَسْمَعُ﴾صيغه دواحدمذكرمخاطب ده خطاب جنتي دي.پهصيغه دمؤنث ده ضمير پكښې ﴿وُجُوهٌ﴾ته راجع دي ، ﴿لَٰغِيَةً﴾شور شرابه،لغو،فضول اوبكواس به پكښې نه وي.چې دانسان په مزاج بوج راولي ﴿فِيهَا عَيْنٌ﴾ عين جنس دي مرادترينه ډيرى چينې دى كافور.سلسبيل.تسنيم وغيره﴿جَارِيَةٌ﴾په زمكې به رواني وي.لكه سورة الدهركښې دى چه هرجنتي به ورنه خپلى بنګلى ته يونهرجارى كړي وي ﴿يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا﴾.

﴿فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ﴾جمع دسريرته،تخت ته وايئ﴿ مَّرْفُوعَةٌ﴾ يعني مرفوعة القدربه وي. يااوچت به وي په هواكښې.چه كله وربائدى جنتي كيناستل اوغواړي نوداوښې په شان به ورته راخكته شي.

﴿وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ﴾يعني مخې ته به ئې كيخودلې شوى وي.ياپه كناردنهرونو چينوبه كيخودلې شوى وي.

﴿وَنَمَارِقُ﴾جمع دنمرقة ده تكيه ګانوته وائي،چه تكيه لګولودپاره به په صف كښې يعني يوبل سره جوختې پرتې وي.

﴿وَزَرَابِيُّ﴾جمع دزربية ده،بستروته وائي،چه هرطرف ته به غوړولې شوى وي

| |
|---|
| أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ﴿١٧﴾ وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ ﴿١٨﴾ |
| آيا نو نه ګوري دوئ مشركان اوښې ته چه څرنګه پيداكړې شويدې اواسمان ته چه څرنګه اوچت پيداكړې شويدې |
| وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ﴿١٩﴾ وَإِلَى الْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ ﴿٢٠﴾ |
| اوغرونوته چه څرنګه اودرولى شويدى اوزمكى ته چه څرنګه غوړه ولى شويده |

﴿أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ﴾ددي څلور آياتونو متعلق مفسرينو متعدد اقوال دى.

(١)ځنې مفسرين فرمائي چې دي تعلق ماقبل سره دي اوهغه داسې چې كله مخكښې آياتونو كښې چې دَ جنت كوم آخرى څلور اوصاف(فيها سرر مرفوعة تر و زرابي مبثوثة) بيان

شول ۔ نو مشرکینو به دې ډیر دتعجب اظهار اوکړو چې داځنګه کیدې شی.نو الله ﷻ ورله دې آیتونو کښ به طور لف نشر مرتب ددې دټولو نظائر اونمونې ښکاره کوی

﴿أَفَلَا يَنظُرُونَ﴾ داد ﴿سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ﴾ نمونه ده، مشرکانو وئیل چه دومره دنګو تختونو باندې به جنتیان څنګه ورخیژی، نوجواب اوشوچه اوښانوته نه ګوری چه څومره دنګ دنګ پیدا کړې شوې دی، لیکن چه تاسو پرې سورېږې نوراځکته شی، دغه شان به د جنت تختونه هم وی

﴿وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ﴾ دا د ﴿وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ﴾ نمونه ده. مشرکینو وئیل چې دا څنګه کیدې شی چې دومره ډیر ګلاسونه وی، د هغی ترتیب نه ګډوډېږی، نو الله ﷻ ورته فرمائی چه لکه څرنګه اسمان کښ ستوری، نمر، سپوږمۍ په ترتیب سره پیدا کړې شوی پراته دی، دغه شان به د جنت ګلاسونه هم په ترتیب سره کیخودلی شوی وی

﴿وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ﴾ دا د ﴿وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ﴾ نمونه ده. چه لکه څرنګه غرونه مضبوط دی پخپلو ځایونو. دغه شان به د جنت تکیه ګانی بالختونه هم په صف اوقطار کښ پراته وی.

﴿وَإِلَى الْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ﴾ دا د ﴿وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَةٌ﴾ نمونه ده. چه لکه څرنګه الله ﷻ زمکه خوره کړیده دغه شان به جنت کښ بستری، قالینونه خواره وی.

(۲) اوځنې مفسرین فرمائی چې ددې آیاتونو تعلق ورستو "فذکر" سره دې، چونکه هغې کښ د دعوت حکم اوامردې نودې آیتونو کښ به طور تمهید د داعی اوصافو طرف ته اشاره کیږی:

﴿أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ﴾ دیکښ وصف انقیاد ته اشاره ده چې لکه څنګه اوښ لوئ لوئ بوجونه راغستی په لرې لرې سفرونو روان وی، خوهغې باوجود هغه منقادوی، اړیکی او سختی نه کوی، بلکه نرمی اختیاره وی نود غه صفت د داعی هم پکار دې.

﴿وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ﴾ دیکښ نافعیت اواستغناء طرف ته اشاره ده چې آسمان ته اوګوره څومره منافع ورسره زمونږ وابسته دی، نور، سپوږمۍ، په دیکښ دی، باران دلته نه وریږی، وغیره، خوزمونږ نه ئې څه منافع نشته، دغه شان داعی له پکارده چې بې غرضه خلقو

ته نفع رسائي كوشش كوي ﴿وَإِلَى ٱلْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ﴾ ديكښې استقلال او استقامت طرف ته اشاره ده. ﴿وَإِلَى ٱلْأَرْضِ﴾ ديكښې تواضع ته اشاره ده.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَذَكِّرْ | إِنَّمَآ | أَنتَ | مُذَكِّرٌ ﴿٢١﴾ | لَّسْتَ | عَلَيْهِم | بِمُصَيْطِرٍ ﴿٢٢﴾ | إِلَّا | مَن |
| پس نصيحت كوه، بې شكه ته صرف نصيحت كونكې ئې، نه ئې ته پدوئ مسلط كړې شوې، مګر هغه څوک | | | | | | | | |
| تَوَلَّىٰ | وَكَفَرَ ﴿٢٣﴾ | فَيُعَذِّبُهُ | ٱللَّهُ | ٱلْعَذَابَ | ٱلْأَكْبَرَ ﴿٢٤﴾ | إِنَّ | إِلَيْنَآ | |
| چه اعراض اوكړي اوكفراوكړي نوعذاب به ورته وركوي الله ﷻ عذاب لوئ بې شكه صرف مونږته ده | | | | | | | | |
| إِيَابَهُمْ ﴿٢٥﴾ | ثُمَّ | إِنَّ | عَلَيْنَا | حِسَابَهُم ﴿٢٦﴾ | | | | |
| رجوع دَدوئ بيابې شكه په مونږدې حساب اغستل ددوئ | | | | | | | | |

﴿فَذَكِّرْ إِنَّمَآ أَنتَ مُذَكِّرٌ﴾ داتسلي ده حضور ﷺ ته، يعني ته دې مشركانو ته وعظ نصيحت كوه، ستاذمه واري صرف دغه ده باقي ته دَدوئ دَنصيحت په قبلولو مسلط اوذمه وار نه ئې. ﴿بِمُصَيْطِرٍ﴾ جمهور وپه قرائت كښې په صاد سره دې. ليكن اصل كښې په سين سره دې ځكه چه مأخوذ دې دَ سطر نه پمعنى دَتسلط.

﴿إِلَّا مَن تَوَلَّىٰ وَكَفَرَ﴾ تخويف دې كافرانو ته استثناء منقطع ده پمعنى دَ لكن من موصوله مبتداء دې.

﴿فَيُعَذِّبُهُ ٱللَّهُ﴾ ئې خبردې، مبتداء متضمن دې معنى دَشرط لره ، نو په خبرئې فاء داخله ده يعني ته نصيحت كوه ليكن څوک چه اعراض اوكړي او په كفرقائم پاتې شي نو الله ﷻ به ورته لوئ عذاب وركوي. ﴿ٱلْعَذَابَ ٱلْأَكْبَرَ﴾ مرادورنه عذاب دآخرة دې، عذاب دَدنيائي په نسبت سره اصغر دې.

﴿إِنَّ إِلَيْنَآ إِيَابَهُمْ﴾ اياب مصدر دې، پمعنى دَرجع، يعني مونږته ددوئ رجوع ده په موت سره اوبعث سره، مونږبه ورسره حساب كوؤ.

| ركوعاتها (۱) | سورة الفجر مكيّة | اٰياتها (۳۰) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۸۹) وحسب النزول (۱۰)**

نزلت بعدسورة الليل وقبل الضحى

**ربط**: (۱) داسورة دَسورة الاعلى دَيومضمون يعنى تزهيدمن الدنياتفصيل دې (۲) ماقبل سورت په آخر کښ دَالعذاب الاکبرذکر راغلې وو، اوس دې سورت ابتدا کښ دَهغې لوئى والى احساس ورکولو دَپاره پنځه قسمونه خوړلي کيږى، اودغه شان په آخردَسورت کښ لګ تفصيل هم بيانيږى

**خلاصه**: ابتداءنه ترآيت (۵) پورى دعوه دَسورة ده يعنى ترغيب دې تضرع الى الله ته پدغه پنځه مبارک اوقاتوکښ، آيت (۸) پورى اوله نمونه ده دَتخويف دنيوى، لپاره دَتزهيدفى الدنيا، آيت (۹) دويمه نمونه ده، آيت (۱۰) دريمه نمونه ده، آيت (۱۵) نه تر ۲۰ پورې زجر دې. آخرکښ تخويف اوبشارت دې (تمت).

| وَالْفَجْرِ ۝١ | وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝٢ | وَّالشَّفْعِ | وَالْوَتْرِ ۝٣ | وَالَّيْلِ | إِذَا | يَسْرِ ۝٤ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قسم دې په صباباندى | اوپه شپولسوباندى | اوپه جفت | اوپه طاق | اوبه شپې | چه كله | روانه شى |

| هَلْ | فِيْ | ذٰلِكَ | قَسَمٌ | لِّذِيْ | حِجْرٍ ۝٥ |
|---|---|---|---|---|---|
| آياشته | دې | پدى | قسمونوکښ | عبرت | دخاوند دَعقل لپاره |

﴿وَالْفَجْرِ﴾ داپنځه قسمونه دى دَعذاب اکبر احساس ورکولو لپاره ذکر کيږى، دااول قسم دې: (۱) دَبعض مفسرينوپه نيزدَفجرنه مرادجنس فجردې، بغيردَفجر دَيوم مخصوص نه (۲) دَابن عباس رضي الله عنه اومجاهد رحمه الله قول دې چه مرادورنه فجردَيوم النحريعنى دَغټې اختر فجر دې. (۳) بعض وائى فجر دَ يوم الجمعه ورنه مراددې. (۴) بعض وائى دَفجرمونځ ورنه مراددې. او دا دَ ورځى اولنې مونځ دې اودَورځى اوشپې ملائکى ديته حاضريږى، کقوله تعالى: انّ

قرآن الفجر كان مشهوداً بهرحال حاصل دادي چه دامبارک وخت دي.دی کښې الله ﷻ ته تضرع کوه.

﴿وَلَيَالٍ عَشْرٍ﴾ دادویم قسم دي،دَدی په باره کښې هم مختلف اقوال دی: (۱)بعض وائی دَذی الحجه اولنۍ لس ورځې ورنه مراددی. دَ لیال نه مراد مطلق وقت دي. ورځ اوشپه دواړو ترینه مراد دي،چه په حدیث کښې دَدی ورځودیرفضائل راغلی دی،دَابن عباس ؓ نه روایت دي: مامن ایام فیهنّ العملُ احبُّ الی الله والفضل من ایّام العشر.یعنی دَ دې لسو ورځونه نورو ورځوکښې یونیک عمل الله ﷻ ته زیات خوښ نشته .چاعرض اوکړوچه آیاجهادهم .اوئی فرمائیل چه هاؤ،مګرهغه کس چه جهادته لاړشی مال هم ځان سره یوځی،نه ئي مال راواپس شی نه ئي ځان (ابن کثیربحواله بخاری وغیره). (۲)بعض وائی چه مرادورنه دَرمضان آخری لس شپې دی،چه پکښې لیلة القدرهم ده.

﴿وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ﴾ دادریم اوڅلورم قسم دي،دَدی په مرادکښې هم دَمفسرینوډیراقوال دی: (۱)بعض وائی دینه مرادمونځونه دی څکه بعض مونځونورکعتونه جفت دی دَبعضوطاق. (۲)بعض وائی یوم عرفه اویوم النحرورنه مراددي،(۳)اوبعض وائی چې شفع نه مراد مخلوقات دی چې دَهرچا جوړه شته او وتر نه مراد الله ﷻ دي.

﴿وَالَّيْلِ إِذَا يَسْرِ﴾ داپنځم قسم دي،مرادورنه دَهری شپې آخری وخت دي، چه داهم ډیرمبارک وخت دي.

﴿هَلْ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ﴾ دیکښې دَپنځوقسمونوعظمت بیان دي ،چې داځه معمولی قسمونه، نه دی،بلکه ډیر لوئ قسمونه دی اودیکښې دَیوعقل مند دَپاره دَعبرت ډیر سامان پروت دي.﴿ذَٰلِكَ﴾مشارالیه ورله مذکور پنځه اموردی په تاویل دَ مذکور سره،﴿قَسَمٌ﴾ تنوین دَپاره دَتعظیم دي اي قسم کاف ومقنع، یعنی آیا دې مذکوره پنځو امورو باندی خوړل دا دَ یو عقل مند قانع کولو دَپاره کافی نه دي؟ یا قسم په معنی دَ مقسم به سره دي،یعنی آیا دا مذکوره اشیاء دَ دې لائق نه دی چې یو عقل مند دَپاره پرې قسم اوخوړلې شی، "ذي حجر"

حجر په معنی دعقل سره دی.اصل معنی ئی د منع ده. عقل حو نکه انسان د منعم نافرمانی نه او د ضرر رسونکي ځيزونو نه منع کوی نو خکه ورته حجر ونیلی کیږی

جواب قسم محذوف دی،چی لیعذبن دی، **قسم اوجواب قسم کښې مناسبت** دادی ۱.چې څنګه دا امور عظیم دی نودغه شان داعذاب هم ډیرعظیم اواکبر دی.۲.اوبل داچي دامبارک اوقات اودقبولیت ساعات دی لهذا په خصوصیت سره په دیکښې دالله ﷻ دعذاب نه دپناه غوختلو دعاپکار ده.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ | تَرَ | كَيْفَ | فَعَلَ | رَبُّكَ | بِعَادٍ ۞ إِرَمَ | ذَاتِ | الْعِمَادِ ۞ | |
| آیاته نه | وینی | چه څرنګه | کارکړې | وژرب | ستادعادسره | جه ارم وو.دنګ | دنګ | ستنووالا |
| الَّتِي | لَمْ | يُخْلَقْ | مِثْلُهَا | فِي | الْبِلَادِ ۞ | | | |
| هغه چه | نه | وژپیداکړې | شوی | ددوئ | په | ښارونوکښ | | |

﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ﴾دادَ **تخویف دنیوی اوله نمونه** ده برانی تزهیدفی الدنیا.چه قوم عادته اوګورئ الله ﷻ څنګه هلاک کړل.حالانکه ځومره طاقتورقوم وو.لهذا تاسوهم دنیاپسې منډې مه وهئ بلکه دآخرت فکرکوئ.﴿إِرَمَ﴾عطف بیان یابدل دی.ارم ددوئ جدامجد نوم دی او دَ حضرت هود ﷺ قوم وو.دیته عادارم هم وئیلی کیږی او عاداولیٰ ورته هم وئیلې کیږی

﴿ذَاتِ الْعِمَادِ﴾ "عماد"نه مراد یاستنی دی، اومقصود دلته ددوئ تشبیه ده دستنو سره په اوچت والی کښې ، او یا عماد جمع دَ عمادة ده په معنی ددنګ دنګ عمارتونو. او یا عماد نه مراد قوت دی،یعنی ډیر قوت ورله الله ورکړی وو. ذات مؤنث دَ ذو دی مؤنث ځکه راوړلې شو،چی عاد نه مراد قبیله عاد ده.﴿الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا﴾یعنی ددوئ په شان غټواودنګوبدنونوو الااوقوة والاپه دنیاکښې نه وژپیداشوی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَثَمُودَ | الَّذِينَ | جَابُوا | الصَّخْرَ | بِالْوَادِ ۞ | وَفِرْعَوْنَ | ذِي | الْأَوْتَادِ ۞ |
| اوثمودیانوسره | هغه چه | تراشلی | وژګانړی | په وادی کښې | اوفرعون سره | چه | خاونددمیخونووژ. |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | طَغَوْا | فِي | الْبِلَادِ ⑪ | فَأَكْثَرُوْا | فِيْهَا | الْفَسَادَ ⑫ | فَصَبَّ | |
| اتول هغه وڅه | سرکښی ئی کړي وه | په | ښارونوکښ | پس زيات کړي | وژندی کښ | فساد | پس نازله کړه | |
| عَلَيْهِمْ | رَبُّكَ | سَوْطَ | عَذَابٍ ⑬ | إِنَّ | رَبَّكَ | لَبِالْمِرْصَادِ ⑭ | | |
| پدوئ | باندی | رب | ستاکوړه | دعذاب بی | شکه | رب | ستانه | خائ دانتظارکښ دي |

﴿وَثَمُودَ ٱلَّذِينَ﴾ دا دَ **تخويف دنيوی دويمه نمونه** ده،چه قوم ثمود ته اوګوره چه څومره طاقتور او کاريګرقوم وؤچه په غرونوکښ بئ کاڼړی ته تراش کول.مکانات به ئی جوړه ول،ليکن دَ نافرمانئ په وجه هلاک شول

﴿وَفِرۡعَوۡنَ ذِی ٱلۡأَوۡتَادِ﴾دا **دريمه نمونه** ده، "اوتاد"دَوتدجمع ده،ميخ ته وائی.فرعون ته «ذی الاوتاد» وئيل ياکنايه ده دَ هغه دَ سلطنت دَ استحکام نه. يا په دی وجه چه هغه به چاته سزا ورکوله نوميخونه به ئی څلورپه هغه ټک وهل.

﴿ٱلَّذِينَ طَغَوۡا۟﴾محلاً مجرور دي، صفت دي دَ مذکورينو. يعنی دَ عاد و ثمود او فرعون يعنی دی ټولو قومونوسرکشی اوکړه،فسادئی اوکړو،په دی وجه الله ﷻ هلاک کړل.

﴿فَصَبَّ عَلَيۡهِمۡ رَبُّكَ﴾"صب" وئيلی کيږی بهولواو تيولو ته، او ديکښ اشاره ده دَعذاب کثرت اوسرعت ته،چې لکه څنګه يوه مشکيزه اچانک اوشليږی،اودَهغې نه اوبه کثرت او تيزئ سره بهيدل شروع شی،چې سړی له ئی بيا هيڅ بند نه ورځی. نو دَغه شان دَالله ﷻ عذاب په دوئ داسې تيزئ اوشدت سره احاطه اوکړه.

﴿سَوۡطَ عَذَابٍ﴾"سوط"کوړې ته وائی،مفسرين فرمائی چې دلته اضافت دَصفت دې موصوف طرف ته، او "سوط" کنايه ده دَشدت نه.چونکه دکوړې سزا دَعربو په نيزسخت ترينه سزا وه، نو هر سختې سزا دَ پاره به ئی دَ"سوط" لفظ راوړلو، اي عذابا کالسوط في الشدة والسرعة،

﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِٱلۡمِرۡصَادِ﴾"مرصاد"کمين ګاه ته وائی،داکنايه ده دَاحاطه علمی نه،يعنی لکه څنګه چې کمين ګاه کښ ناست کس دَخپل مخالف حرکاتو اوسکناتوته ګوری اوانتظارئی

کوي. دغه شان الله ﷻ دخپل بندګانو حرکاتو سکناتو نه خبردي. اومقرر وخت ئې ورله بندي په ورله بدله دهغې ورکوي. لهذا دنيا پريګدئ اودآخرت غم اوکړئ

فَأَمَّا الْإِنسَانُ إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ

پس هرچه انسان دې چه کله آزمېښت اوکړي دده رب دده نوعزت ورکړي ورته اونعمت ورکړي ورته

فَيَقُولُ رَبِّي أَكْرَمَنِ ﴿١٥﴾ وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهُ

نودې وائي رب خماعزت راکړوماته اوکله چه آزمېښت اوکړي دده نوتنګه کړي ده روزي دده

فَيَقُولُ رَبِّي أَهَانَنِ ﴿١٦﴾

نودې وائي رب خماسپکوالي اوکړوخما

﴿فَأَمَّا الْإِنسَانُ﴾ دې آياتونو کښې دمذکوره قومونو دطغيان اوفساد سبب بيان دې. اوزجر دې کافرانو ته، چې دوئ دنيا زندګئ اصل ګنړلې ده، دنيا عزت دوئ ته حقيقي عزت ښکاري. او دنيا مالداري دوئ په نظر کښې حقيقي کاميابي ښکاري. دنيا کښې غريبي اوتنګ دستي د دوئ په نظر کښې حقيقي رسوائي اوذلت دې. حالانکه غريبي مالداري، نعمت اومصيبت ټول ازمائش اوامتحان مختلف صورتونه دي.

"اما" دَ پاره د تفصيل دې، اودتفصيل دوه صورتونه وي:

(١) کله ماقبل کښې څه اجمال وي دَهغې تفصيل بيانوي. لکه فمنهم شقي وسعيد، فاما الذين...

(٢) کله ماقبل کښې اجمال نه وي، خوورسره مدمقابل کښې دبل حالت بيان وي نودهغې سره فرق دپاره تفصيل بيانوي، اودلته دادويم صورت دتفصيل دې.

﴿وَنَعَّمَهُ فَأَكْرَمَهُ﴾ امام راغب رحمه الله د، اکرام دوه معنی بيان کړی دی:

(١) يوداچې څه قابل قدرشې ورکول، مال وي اوکه بل څه وي.

(٢) دويم داچې څوک قابل قدر اومعزز ګرځول، نو "اکرمه" کښې اوله معنی مراد ده. چې الله ﷻ ورله خلقو کښې عزت ورکړي، مال ورله ورکړي، او "اکرمن" کښې دويمه معنی مراد ده، چې واقعي ځان معزز اوګڼړي اوداخپل ذاتي صلاحيت اوګڼړي.

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَلَّا بَل لَّا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ ﴿١٧﴾ وَلَا تَحَاضُّونَ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ﴿١٨﴾ | | | | | | | | | | |
| هرگزداسې نده ښکاري. بلکه نه کوئ تاسوعزت دیتیم اونه ترغیب ورکوئ یوبل ته په خوراک دمسکین | | | | | | | | | | |
| وَتَأْكُلُونَ | التُّرَاثَ | أَكْلًا | لَّمًّا ﴿١٩﴾ | وَتُحِبُّونَ | الْمَالَ | حُبًّا | جَمًّا ﴿٢٠﴾ | | | |
| اوخورئ | تاسومیراث | په | خوړلوټولوسره | اومحبت | کوئ | دمال | سره | محبت | ډیر | |

﴿ كَلَّا ﴾ دپاره دَ ردع دي يعني دَدنیازندگی اودَدې احوال حقیقی زندگی اواحوال نه دی گرخول پکار ،بلکه آخرت له ترجیح ورکول پکاردی.

﴿بَل لَّا تُكْرِمُونَ ﴾"بل"اضراب(ابطالی)دې دَردع دَمضمون نه یعنی دنیا زندگی حقیقی زندگی نه ده گرځول پکار خوستاسونې گرځوئ.ځکه چې ستاسو طرزعمل په دې دلالت کوی،اومخکښې دَدې څلورعملی مظاهر علی سبیل الترقی بیانیږی:

﴿لَا تُكْرِمُونَ﴾دااول مظهر دې،چه تاسودَیتیم سره ښه سلوک نه کوئ،حق ئې نه ادا کوئ، دَحضورﷺارشاددې چه خیربیتٍ فی المسلمین بیتٌ فیه یتیم یُحسن الیه،وشرّبیتٍ فی المسلمین بیتٌ فیه یتیم یساءالیه یعنی په مسلمانانوکښې ښه کورهغه دې چه یتیم وی پکښې اودهغه سره ښه سلوک کولیشی، او بد کور هغه دې چه یتیم وی پکښې اوبدسلوکی ورسره کولې شی(ابن کثیر).

﴿ وَلَا تَحَاضُّونَ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ﴾ تحاضون په اصل کښې تتحاضون دې،تخفیفًایوه تاء حذف ده،دادویم مظهر دې دَماقبل نه علی سبیل الترقی چه یوبل ته دَمسکین دَحقوقواوخوراک باره کښې ترغیب هم نه ورکوئ.

﴿وَتَأْكُلُونَ التُّرَاثَ ﴾دادریم مظهر دې علی سبیل الترقی،چه دَیتیمانانوکوم خپل حق دې چه میراث کښې ورته پاتې وی هغه هم ورنه ټول په ټول قبضه کړئ.﴿أَكْلًا لَّمًّا ﴾ لمّا پمعنی دَ جمعًا دې، دَ یوسړی کارونه چه راغونډشی نوعرب وائی لمّ الله شعثه، مراد ورنه دلته(۱)جمع کول دې،دَحلال اوحرام،یعنی تاسودَمیراث په مال کښې خپله حصه اودَبل حصه جمع کوئ اوقبضه کوئ،داپرواه نه کوئ چه دابل چاحصه ده،داحرام دې،روایت دې چه دوئ

به بنخوته.ماشومانو ته میراث نه ورکولو،اوداطریقه نی وه چه میراث به صرف هغه چاته میلاویږی چه جنګ کولی شی اودَخپل ملکیت حفاظت کولی شی(روح)

(۲)بعض وائی مراددادی چه دَمړی نه کوم مال پاتی وی اوهغه جمع کړی وی،هغه اخلی اوخوری ئی،که حلال وی که حرام،حالانکه تاسوته دابنه علم وی چه دائی په حرامه طریقه جمع کړی دی.

﴿وَتُحِبُّونَ ٱلْمَالَ حُبًّا جَمًّا﴾ جَمًّا یعنی دکثیرادی.داځلورم مظهر دی،چه دَښولونه لوئ دلیل دی، په دی چه دَمال سره دومره زیات محبت کوئ چه دَحرام حلال فرق پکښی نه کوئ.

| |
|---|
| كَلَّآ إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا ﴿٢١﴾ وَجَآءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا |
| هرګزداسی مکوئ کله چه ماته کړی شی زمکه ټوټې ټوټې اوراشی رب ستاوملائکی صفونه |
| صَفًّا ﴿٢٢﴾ وَجِاْیٓءَ یَوْمَئِذٍۭ بِجَهَنَّمَ ۙ یَوْمَئِذٍ یَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ وَأَنَّىٰ |
| صفونهاورابه ویستلی شی پدغه ورځ جهنم،نوپدغه ورځ به نصیحت قبلوی انسان،لیکن چرته به وی |
| لَهُ الذِّكْرَىٰ ﴿٢٣﴾ یَقُولُ یَٰلَیْتَنِی قَدَّمْتُ لِحَیَاتِی ﴿٢٤﴾ |
| ده له نصیحت موقع،وائی به هائی افسوس مالره چه مامخکښی رالیږلی وی دپاره دَدی ژوند،څه نیک عمل |
| فَیَوْمَئِذٍ لَّا یُعَذِّبُ عَذَابَهُۥٓ أَحَدٌ ﴿٢٥﴾ وَلَا یُوثِقُ وَثَاقَهُۥٓ أَحَدٌ ﴿٢٦﴾ |
| پس پدغه ورځ به عذاب نه ورکوی په شان دَعذاب دَالله هیڅوک،اونه به شی تړل کولی په شان دَتړلو دَالله ﷻ هیڅوک |

﴿كَلَّآ﴾ردعیه دی،یعنی دَ دی طرزعمل نه ځان اوساتئ، داسی هرګز مه کوئ،ورنه پدی به درته دَقیامت په ورځ سخت حسرت وی، لیکن بیابه دغه وخت کښی حسرت فائده نه درکوی،﴿إِذَا دُكَّتِ﴾تخویف اخروی دی اودَقیامت احوالوبیان دی،﴿إِذَا دُكَّتِ﴾اول حالت دی ﴿دَكًّا دَكًّا﴾ تکراردَتاکیدلپاره دی،یعنی زمکه به داسی باربارماتولوسره ماته ماته شی چه غونډئ غرونه به پکښی واړه واړه،ریزه ریزه شی اوبالکل هموار به شی.

﴿وَجَآءَ رَبُّكَ﴾ دویم حالت دې دمجیئت(راتلو) نسبت الله ﷻ دمتشابهاتونه دې، چې ددې په حقیقي معنی او کیفیت الله ﷻ عالم دې، باقي متقدمین اهل السنة عموما پدیکښ تفویض کوي، نه ئې دمعنی لغوي اثبات کوي او نه ئې تاویل کوي، اومتاخرین ئې عمومي طورباندې تاویل کوي. چه ای وجاء امر ربک و قضاءه، یعني فیصله او امردالله ﷻ راشي چه بعث بعد الموت دې، بعض وائي چه راشي آثاردقدرت اودبادشاهي دالله ﷻ، بعض وائي راتلل درب کنایه ده دشبهاتو اوشک زائله کیدلونه. یعني دمشرکانو چه دقیامت باره کښ کوم شک شبهات وؤ، هغه به ختم شي په سترگو به ئې او ویني. (قرطبي)

﴿وَٱلۡمَلَكُ صَفّٗا صَفّٗا﴾ دریم حالت دې، یعني دهر اسمان ملائکې به صفونه صفونه شي، او کناروته به لاړې شي او دانسانو اوجناتو احاطه به اوکړي.

﴿وَجِاْيٓءَ يَوۡمَئِذِۭ بِجَهَنَّمَ﴾ څلورم حالت دې، یعني جهنم به ښکاره کړې شي، کقوله تعالی وبرّزت الجحیم لمن یری. په مسلم اوترمذي وغیره کښ دي. حضور ﷺ فرمائي چه جهنم به داسي راوستلې شي چه دهغه به اویازره مهارونه وي، اودهریومهارسره به اویازره فرشتي وي، راکاږي به ئې.

﴿يَوۡمَئِذٖ يَتَذَكَّرُ ٱلۡإِنسَٰنُ﴾ اوداپنځم حالت دې ، بدل دې د ﴿إِذَا دُكَّتِ ٱلۡأَرۡضُ﴾ نه،

﴿يَتَذَكَّرُ ٱلۡإِنسَٰنُ﴾ یادا مطلب دې چه پدغه ورځ به انسان نصیحت قبولوته تیارشي لیکن دغه وخت به ورته نصیحت قبولول هیڅ فائده نه ورکوي، ځکه هغه دارالجزاء دې، یادامطلب دې چه خپل گناهونه اوکوتاهئ، غلطئ به رایادي کړي، اودحسوت اوندامت اظهاربه کوي، لیکن هیڅ فائده به ورته ندامت نه ورکوي، اوافسوس به کوي چه هائ افسوس ماله چه مادنیاکښ دې ژوندلپاره هم څه رالیږلې وې.

﴿قَدَّمۡتُ لِحَيَاتِي﴾ لحیاتی: کښ لام تعلیلیه دې اوحیات نه مراداخروي حیات دې اومفعول د

﴿قَدَّمۡتُ﴾ حذف دې چه اعمالاً صالحةً دې، یالام وقتیه دې، حیات نه مرادحیات دنیوي دې، یعني هائې افسوس چه ماپخپل دنیاوي ژوندکښ نیک عملونه کړې وې، نونن ورځ به ماته نفع میلاوه شوې وه.

﴿فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهُ﴾ شپږم حالت دې ضمیر په﴿عَذَابَهُ﴾ او﴿وَثَاقَهُ﴾ کښې راجع دې الله ﷻ ته، او دې دوه مطلبه کیدې شي: یو دا چه دقیامت په ورځ به دالله ﷻ دعذاب او د وثاق به شان به بل هیڅ څیزعذاب نشي ورکولې، یادامطلب دې چه دعذاب الهی متولی او واک داربه بل څوک نه وي، چه چاته ئې خوښه شي عذاب ورکړي او څوک معاف کړي،

بعضِ وائي ضمیرد﴿ عَذَابَهُ﴾او﴿وَثَاقَهُ﴾انسان موصوف ته راجع دې نو﴿ عَذَابَهُ﴾کښې اضافت مفعول ته دې، نومطلب دادې چه دملائکې دجهنم به دده په شان عذاب بل چاته نه ورکوي(روح المعانی).

| يَٰٓأَيَّتُهَا ٱلنَّفْسُ ٱلْمُطْمَئِنَّةُ ﴿٢٧﴾ ٱرْجِعِىٓ إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ﴿٢٨﴾ |
|---|
| اې نفس ارام کونکیه واپس راشه دخپل رب حضورته پدې حال کښې چې راضي ئې ته دهغه نه، اوهغه راضي دې ستانه |

| فَٱدْخُلِى | | فِى | | عِبَٰدِى ﴿٢٩﴾ | | وَٱدْخُلِى | | جَنَّتِى ﴿٣٠﴾ | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پس | داخل | شه | په | بندګانو | خماکښې | اوداخل | شه | جنت | خماته |

﴿ يَٰٓأَيَّتُهَا ٱلنَّفْسُ ٱلْمُطْمَئِنَّةُ ﴾دابشارت اخروي دې،چه په وخت دمرګ کښې به دمؤمن روح ته اووئیلې شي چه خپل رب طرف ته واپس شه پدی حال کښې چه ته دخپل رب نه اورب دستانه خوشحاله اوراضی دې. اوجنت ته داخل شه،نفس مطمئنة نه مرادنفس دمؤمن دې،داخطاب به ورته په وخت دموت کښې کیږي،بعضِ وائي دبعث په وخت کښې به ورته اوشي.اوابن کثیر رحمه الله وائي چه په وخت دځنګدن اوپه ورځ دقیامت دواړوکښې به ورته کیږي،لکه څرنګه چه ورته نورزیري دواړووختونوکښې ورکوي.﴿ رَاضِيَةً﴾یعنی چه کوم نعمتونه ئې درته تیارکړیدي په هغې به راضي ئې﴿ مَّرْضِيَّةً ﴾یعنی ستارب هم ستانه راضي دې.﴿فَٱدْخُلِى فِى عِبَٰدِى ﴾یعنی خمادمخلص اونیکوبندګانوجماعت کښې داخل شه، د ابو امامه رضي الله عنه نه روایت دې چه حضور ﷺ یوکس ته اوفرمائیل چه دادعاوایه:اللّهم انّی اسالکَ نفسًابکَ مطمئنةً تؤمنُ بلقائکَ وترضیٰ بقضائکَ وتقنعُ بعطائکَ،دی دعاکښې دنفس مطمئنه بعضِ صفات بیان دی.

| رکوعاتها (۱) | سورة البلد مکیّة | آیاتها (۲۰) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۹۰) وحسب النزول (۳۵)**

نزلت بعدسورة ق وقبل الطارق

**ربط**: داسورة دَتیرشوی سورة تمته ده،ماقبل سورة کښ دنیا او دَ دنیا دَ محبت مذمت مذکور وو،اوس دی سورة کښ دَمال صحیح مصرف ذکردې،چه هغه مال ښه دې چه په صحیح ځائ کښ خرچ کړې شی.

**خلاصه**: ۱ نه تر۴ پوری:دوه شواهد ذکردی،په تزهید في الدنیا.

۵ نه تر۷ پوری: زجردې.

۸ نه ۱۰ پوری انعاماتوبیان دې،دَپاره تزهید في الدنیا،

۱۱ نه ۱۷ پوری زجر دې،

۱۸ بشارت دې.

۱۹، ۲۰ تخویف دې.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَآ | اُقۡسِمُ | بِهٰذَا | الۡبَلَدِ ۝ | وَاَنۡتَ | حِلٌّۢ | بِهٰذَا | الۡبَلَدِ ۝ | وَوَالِدٍ |
| قسم | کوم | پدی | ښار.اوته | اوسیدونکې | ئی | پدی | ښارکښ.اوپه | پلار |
| وَّمَا | وَلَدَ ۝ | لَقَدۡ | خَلَقۡنَا | الۡاِنۡسَانَ | فِيۡ | كَبَدٍ ۝ | | |
| اوپه | هغوچه | دَده | نه | پیدادی. | یقیناموبیداکړیدې | انسان | په | مشقت کښ. |

﴿ لَآ اُقۡسِمُ﴾داتزهید في الدنیا دې چې کافر دَدې دنیا ژوند اصل اوحقیقی ژوند ګڼرې، او دې راحتونه اوآرام حاصلولو کوشش کوی،اودآخرت زندګئ نه ئی ځان بالکل غافله کړې دې، حالانکه دادنیا مسلسل دَپریشانیو اوازمائشونونوم دې دآخرت زندګی اصل زندګی ده.

﴿لَآ اُقۡسِمُ بِهٰذَا الۡبَلَدِ﴾دااول قسم دې دَپاره دَاستشهاد دَ جوابِ قسم، "لا"زائده دې لپاره دَ

تاکید "البلد" نه مراد ښار د مکې دې، یعنی ډیر لرې مه ځئ خپل ښار مکې ته او ګورئ څنګه بې آب و ګیاه بیابان وو، حضرت ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام په څومره مشقت سره آباد کړو

﴿ وَأَنتَ حِلٌّ بِهَٰذَا الْبَلَدِ ﴾ حل د "حلول" نه دې، یعنی ته دې خپل حالاتو ته او ګوره اې پیغمبره! چې په تا څومره مصیبتونه او تکلیفونه راغلی دی چې کله ته دلته مقیم وې، بعض مفسرین وائی چې "حل" د "حلت" نه دې، یعنی دې شهر کښې ستا دپاره قتال حلال دې، یعنی د تکلیف دورانیه ختمه نه ده، بلکه ته به دې ښار کښې قتال کوی او الله ﷻ به درله فتحه درکوی.

﴿ وَوَالِدٍ وَمَا وَلَدَ ﴾ دادویم قسم دې دپاره داستشهاد، د "والد" او "ولد" په مصداق کښې د مفسرینو ډیر اقوال دی:

(۱) بعض وائی چې "والد" نه مراد آدم علیه السلام او "ولد" نه مراد ټول بنی آدم دی.

(۲) څنی مفسرین فرمائی چې مطلق والد او ولد مراد دی.

(۳) او بعض مفسرین دسیاق اعتبار سره دیته ترجیح ورکړې ده چې دینه مراد حضرت ابراهیم و اسماعیل علیهما السلام دې (التحریر والتنویر)

یعنی تاسو خپل آباؤ اجداد تاریخ ته او ګورئ هغوئ څومره امتحانو تو او تکلیفونو نه تیر شوی دی.

﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ﴾ جواب قسم دې، چې انسان ژوند دتعب او مشقت نه عبارت دې، **قسم او جواب قسم کښې مناسبت** دمخکښې تفصیل نه بالکل ظاهر دې، چې دوئ د آباؤ و اجداد او د علاقې تاریخ دجهد مسلسل او تکلیف نه عبارت دې، نو دوئ څنګه دادنیا د راحت او آرام ځائی ګڼړی، او دا زندګی اصل زندګی ګڼړی او دالله ﷻ احکاماتو نه بغاوت کوی.

﴿فِي كَبَدٍ﴾ مشقت او تکلیف ته وائی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَيَحْسَبُ | اَنْ | لَّنْ | يَّقْدِرَ | عَلَيْهِ | اَحَدٌ ۘ | يَقُوْلُ | اَهْلَكْتُ |
| آیا ګمان کوی دې | داچه | هرګزبه | قادرنه شی | په ده | باندی هیڅوک | وائی | چه خرچ می کړو |
| مَالًا | لُّبَدًا ۗ | اَيَحْسَبُ | اَنْ | لَّمْ | يَرَهٗٓ | اَحَدٌ ۗ | |
| مال ډیر | آیا ګمان کوی دې | داچه | نه دې | لیدلې ده لره | هیڅ چا | | |

﴿أَيَحْسَبُ أَن لَّن يَقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ﴾ دازجر دي.انسان كافر نه. چي دَ دنيا بې ثباتي تقاضهٔ خو دا ده چي دې دَالله ﷻ احكاماتو ته منقاد شوې وې، ليكن دې دَهغې نه بغاوت كوي، دَ رسولانو په لارې كښې ركاوټونه اچوي، او دَ هغې دَپاره زركثير خرچ كوي، اودا باوركوي چې داسې يوڅوک نشته چې په ده قادر وي، اودَ ده نه به دې باره كښې تپوس اوكړي، خو دا دَ ده هير دى، الله ﷻ ئې مسلسل تعاقب كښې دې، هغه ئې هر څه ته ګوري

﴿يَقُولُ أَهْلَكْتُ﴾ "اي انفقت"چونكه داما ل خرچ دَاسلام خلاف كوششونو كښې وؤ، او به طور دَ رياء وؤ ، نو ځكه ورله "اهلكت" فعل استعمال شو﴿مَالًا لُّبَدًا﴾اي كثيرا

| |
|---|
| أَلَمْ نَجْعَل لَّهُ عَيْنَيْنِ ﴿٨﴾ وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ ﴿٩﴾ وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ ﴿١٠﴾ |
| آيانه دى ګرځولى مونږه لره دوه سترګى.اوژبه اودوه شونډې.اوښودلى دى مونږه ته دوه لارې. |
| فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ ﴿١١﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْعَقَبَةُ ﴿١٢﴾ فَكُّ رَقَبَةٍ ﴿١٣﴾ أَوْ إِطْعَامٌ |
| نودې ندې ختلې غونډئ ځائ دَنجات.ته اوڅه پته ده تاته چه څه ده غونډئ.هغه آزادول دَغلام دى. ياخوراک وركول دى |
| فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ ﴿١٤﴾ يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ ﴿١٥﴾ أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ﴿١٦﴾ |
| په هغه ورځ كښې چه لوږې والاوې.يتيم ته چه رشته داروې.يامسكين ته چه دَخاوروروالاوې. |

﴿أَلَمْ نَجْعَل لَّهُ﴾مخكښې آياتونو كښې دعوت وؤ دَتزهيد في الدنيا اودَالله ﷻ احكامات منلوپه محنو اومشقتونو بيان سره،اوس دې آياتوكښې دعوت دې ورته دَنعمتونو بيان سره ، "الم"استفهام تقريرى دې ﴿عَيْنَيْنِ﴾مونږ ورله دوه سترګى نه دى وركړې،چې دحق دلائل پرې اوګورى اوعبرت واخلي،﴿وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ﴾ژبه اوشونډې خوورله نه دى وركړې چې پرې حق بيان كړي،.﴿وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ﴾يعنى دَخير وشردواړه لارې مو ورته خودلى دى،پكار ده چې دې په خير لارې روان شي، "النجدين"تثنيه ده دَ "النجد"، اوچتې لارې ته وائى،اودلته ترينه دَ خير و شر لاره ده، كمافي قوله تعالى:اناهديناه السبيل اما شاكرا و اما كفورا(الدهر)

﴿فَلَا ٱقۡتَحَمَ ٱلۡعَقَبَةَ﴾دازجر دې انسان ته ، چې دومره انعاماتو اوهدايت اسبابو مهيا كولو باوجود دې نه دَالله ﷻ احكامات منى اونه خپل استعداد صحيح لاره كښې صرف كوى.
"العقبة" غر كښې تللې تنګې اوګرانې لارى ته وائى، او "اقتحام"وائى په تكليف اومشقت سره يوځائى ته داخليدلو يا په لاره تيريدلو ته،او "اقتحم العقبه"نه مراد اعمال صالحه كول دى ځكه چې دا په نفس داسې شاق وى لكه غرته ختل اودَغرپه لارې تلل.

**فائده**: "لا" په باره كښې دَمفسرينو اختلاف دې،چې كومه"لا" ده:

(۱)بعض وائى چې دانافيه ده او"لا" چې فعل ماضى باندې داخل شى نوعام نحويانوپه نيز اګرچې تكرار دَ"لا" شرط دې،خوسيبويه په نيز داشرط نه دې (اعراب القرآن للنحاس).

(۲) كوم نحويان چې تكرار شرط ګڼړى،هغوئ په نيز ثم كان من الذين"داقائمقام دَ"لا" دې، او"لا"معناموجود دې،ځكه چې دې معنى داسې ده: لااقتحم العقبه ولاآمن(اللباب).

(۳)ځنې مفسرين فرمائى چې"لا"نافيه نه ده بلكه په معنى دَ"هلا"سره ده.

﴿وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا ٱلۡعَقَبَةُ﴾تكراردَعظمت شان دَپاره دې.

﴿ فَكُّ رَقَبَةٍ ﴾دادَعقبه بيان دې،اول حكم دې دَ "عقبة"لاندى داخل احكاماتو كښې، يعنى غلام دَغلامئ نه خلاصول،دا عقبه ته دَاخيلدل دى، دَدى په ضمن كښې بى ګناه قيدى خلاصول،مقروض دَقرض نه خلاصول هم داخل دى.

﴿أَوۡ إِطۡعَٰمٞ فِي يَوۡمٖ ذِي مَسۡغَبَةٖ﴾دا دويم حكم دې،"مسغبة"مصدرميمى دې پمعنى دَ"سغب"، قحط سالى ته وائى،نومطلب دادې چه دَلوګې اودَقحط په وخت كښې يتيم اومسكين ته خوراک وركول. دَ "في يوم ذي مسغبة"قيد اتفاقى دې دَتاكيد دَپاره ،چې اطعام هرقسم حالاتو كښې پكار دې خوبيا چې كله زمانه دَ قحط وى اوخلقو احتياج ورته ډير وى نوديكښې خو لا ضرورى دې.

﴿يَتِيمٗا ذَا مَقۡرَبَةٍ﴾مفعول به دې دَ"اطعام" دَ "ذا مقربة"مطلب قرابت دار او رشته دار دې، دا قيد هم اتفاقى دې دَتاكيد دَپاره، يعنى يتيم له خوهسى طعام وركول ضرورى دى خوچې بيا كله خپلوانو كښې وى نودهغه خيال ساتل خوډير زيات ضرورى وى.

﴿ أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ﴾ اودَتقسیم دَپاره دي،متربة مَصدر میمی دي.ای ذا تراب. دَ خاور والا، مرادورنه هغه مسکین دي چه کورئی نه وی په لاروکښ په خاورو ناست وی

| |
|---|
| ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِينَ اٰمَنُوا وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا |
| بیاولی نشو دي دَهغوخلقونه چه ایمان ئې راوړیدي اووصیت کوي یوبل ته دَصبراووصیت کوي یوبل ته |
| بِالْمَرْحَمَةِ ﴿١٧﴾ أُولَٰئِكَ أَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ﴿١٨﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِاٰيٰتِنَا هُمْ |
| دَرحم کولوپه مخلوق،داکسان خاوندان دَښی لاس دي،اوهغه کسان چه کفرئی کړیدي په ایاتونوزمونږدوئ |
| أَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ﴿١٩﴾ عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ ﴿٢٠﴾ |
| خاوندان دکس لاس دي. پدوئ به اوروی بندکړي شوي |

﴿ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِينَ ﴾داهم زجرتحت داخل دي، اوثم دَتراخی رتبی دَپاره دي یعنی داخوپریګده دَایمان په شان اهم امر ترینه هم پاتې دي،دینه داهم معلومه شوه چې مال په دغه مصارفو کښ خرچ کول به هله فائده ورکوی،چې ایمان ورسره وی که ایمان نه وی نو بیا فائده نه ورکوی،لکه حدیث شریف کښ دی چې حضرت عائشه ﵂ یوځل نبی کریم ﷺ نه دَابن جدعان په باره کښ تپوس اوکړو چې ده په زمانه جاهلیت کښ صله رحمی کوله،طعام به ئې ورکولو،قیدیان ئې خلاصول،اوغلامان ئې آزدول،اودَالله ﷻ رضادَپاره به ئې خلق په خپل اوبن کینول، آیا دابه ده له څه نفع ورکړي؟نوبنی کریم ﷺ اوفرمائیل:نا،ده یو ورځ هم داسې نه دی وئیلی رب اغفرلي خطيئتي يوم الدين اي څماربه په ورځ دَقیامت څمادګناهونه ماته بخنه اوکړه.(مسلم شریف۳۷۵).

﴿وَتَوَاصَوْا ﴾عطف دي په﴿ءَامَنُوا ﴾ یعنی یوبل ته دَصبروصیت کوی، په ایمان اوپه ثابت قدم پاتی کیدلوباندی اودګناه نه دَمنع کیدلو.

﴿وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ ﴾یعنی په خلقوباندی دَرحم کولویوبل ته وصیت کوی،چه دَدینه امربالمعروف اونهی عن المنکرهم دي،څکه دیکښ دَخلقودیره خیرخواهی ده(روح)یامطلب دادي چه یوبل ته دَداسی کارونوترغیب ورکوی چه هغه اسباب دَرحمة دَالله ﷻ دي.

﴿أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ﴾ دابشارت أخروی دي چه داموصوف پدغه صفاتو مذکورو سره هغه دی چه اعمالنامی به ورته په خی لاس کښ ورکولې کیږی.

﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ داتخویف اخروی دي کافرانوته، چه دوئ زمونږدَدلائلو اودَقرآن انکار کوی نو دوئ ته به عملنامې په گس لاس کښ ورکولې کیږی.

﴿عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ﴾ "مؤصده" دَ اوصدالباب نه دې دروازې بندلوته وائی، یعنی جهنم ته به اوغورځولې شی اوبیابه پرې دروازې دَجهنم بندکړی شی، نوهمیشه په دې کښ وی او راوتلې به ترینه نشی.

| ركوعاتها (١) | سورة الشمس مكيّة | آياتها (١٥) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکی دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٩١) وحسب النزول (٢۶)**

نزلت بعد سورة القدر و قبل البروج

**ربط**. دې سورت کښې دَسورت الاعلی دواړو مضمونونو یعنی توحید اوتزهید اعاده ده، په ضمن دَتفریق دَاعتقاد په مابین دَمؤمن اومشرک کښې،چې مؤمن عقیده دَتوحید لری او کافر عقیده دَشرک لری،نودوئ داوړو کښې لوئ فرق دې،مؤمن کامیاب اوکافر ناکام دې ځکه چې توحید حق اوشرک باطل دې.

**خلاصه**:په موضوع دَسورة یعنی تفرقی فی الاعتقادباندې څلورشواهد .چه لکه څرنګه رڼا او تیاره،ورځ اوشپه،اسمان اوزمکه،نفسِ زکیه اونفسِ خبیث برابرنه دی دغه شان عقیده دَ مومن اوکافربرابرنده. ﴿كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَآ﴾نه آخره پوري تخویف دنیوی دې.چه څوك کفرشرك کوي نوانجام به ئې دَقوم ثمودپشان وی.

| |
| --- |
| وَالشَّمْسِ وَضُحٰىهَا ۞١ وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰىهَا ۞٢ وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰىهَا ۞٣ وَالَّيْلِ |
| قسم دې په نمر اوپه رڼا دَهغې.اوپه سپوږمۍ چه کله تابع شی دَنمر.اوپه ورځ چه کله ښکاره کړی نمر اوقسم په شپه |
| اِذَا يَغْشٰىهَا ۞٤ وَالسَّمَآءِ وَمَا بَنٰىهَا ۞٥ وَالْاَرْضِ وَمَا طَحٰىهَا ۞٦ |
| چه کله پټ کړی نمر.اوپه اسمان اوپه هغه ذات چه جوړکړې ئی دې،اوپه زمکی اوپه هغه ذات چه غوړه ولې ده. |
| وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰىهَا ۞٧ فَاَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَتَقْوٰىهَا ۞٨ |
| اوپه نفس اوپه هغه ذات چه برابرکړې ئی دې،پس ښودلې ئی ده ورته بدکاری دَهغه اوپرهیزګاری دَهغه |

﴿وَالشَّمْسِ وَضُحٰىهَا﴾ داپه ابتدا دَسورت کښې الله ﷻ په نهه امورو باندې(هغه صورت کښې چې ورستونو آیتونو ۵، ۲ ، ۷ کښې "ما" موصوله واغستلې شي) قسم خوړلې دې. او

دوه دوه امرونو تقابل ئی به طور شاهد په جواب قسم پیش کړی دی. اوجواب قسم قد افلح من زکٰها دې یعنی څنګه چې دادواړه امره یوشان نشی کیدې دغه شان توحید وشرک اوموحد اومشرک هم یوشان نشی کیدې.

**دا اول تقابل دې** په مابین دَ نمر اوسپوږمئ کښ، چې چرته نمر چې رڼړا کښ مستغنی دې دَ سپوږمئ نه، او چرته سپوږمئ چې محتاجه ده خپلې رڼړا کښ نمرته، نوچې څنګه دادواړه یو شان نشی کیدې، دغه شان مؤحد اومشرک نشی برابرکیدې.

﴿وَضُحٰهَا ﴾ اي ضوءها. ﴿اذا تلها ﴾ ضمیر مرفوع قمر ته اوضمیر منصوب شمس ته راجع دې، یعنی قسم دې په سپوږمئ، چې کله دا تابع شی دَ نمر ، سپوږمئ په ډیرو امورو کښ دَ نمر تابع ده :

(۱)په طلوع کښ هم د نمر تابع ده، چې میاشتې ابتداء کښې کله نمر دَمشرق نه طلوع شی، نو ورپسی سپوږمئ هم دَمشرق نه طلوع شی، خو چونکه دواړه ډیره وړه وی، او رڼړا ئی ډیره کمزوری وی، نو هیڅ پته ئی نه لګی، چې نورغروب شی نو بیا خلقوته اولیدې شی (روح)

(۲)په رڼړا ورکولو کښ دَنور تابع ده، اوهغه داسې چې دا دَخپلی رڼړا اکتساب دَ نور نه کوی، اوبیا چې څوړپورې طلوع وی دَ دې رڼړا نه وی، خو چې کله غروب شی نو بیا دا رڼړا ورکول شروع کړی، اومیاشتې مینځنئ ورځو شپوکښ ددې ښه اندازه کیږی.

(۳)حرکت کښ هم دَنمر تابع ده چې دَنمر سره نه برابرې دې شی اونه ترینه مخکښ کیدې شی.

حضرت حسین علی رحمه الله فرمائی چې دلته ترینه مرادخصوصاًاتباع دَاولې توجیه ده، چې دې سره دَنمر اوسپوږمئ تقابل اوتفاوت ډیر ښې طریقې سره کیږی.

﴿ وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا ﴾ **دا دویم تقابل دې** په مابین دَ ورځ اوشپه کښ، چې لکه ورځ او شپه یو شان نشی کیدې، دَ ورځې نور وی ، تولـه څمکه روښانه وی، هر څه واضحه ښکاری، او دَ شپې تکه توره تیاره وی، چې ښکاره څیزونه هم دَ نظر نه غائب شی، دغه شان دَتوحید په نوړ منور اودَشرک په تیارو کښ غرق انسان نشی برابرې دې.

ضمیر منصوب راجع دې شمس ته،یعنی قسم په ورځ چه نمرظاهرکړی اوقسم په شپې چه نُوَرپټ کړی،بعض وائی ضمیرونه راجع دې زمکی ته یعنی قسم په ورځ چه زمکه روښانه کړی،اوقسم په شپې چه زمکه تیاره کړی

﴿وَٱلسَّمَآءِ وَمَا بَنَىٰهَا ۞ وَٱلْأَرْضِ وَمَا طَحَىٰهَا﴾ **دا دریم تقابل** اوشاهد دې، چې چرته دآسمان بلندی او چرته دَزمکې پستی څنګه چې دې دواړو کښې بون بعیددې،دهغهٔ شان مؤمن اومشرک کښې هم بون بعید دې،چرته نشی برابرې دلې مؤمن کامیاب اومشرک نامراد دې'ما'په دواړوځایونوکښې مصدریه دې،ای وبنائهاوَطحوِها یعنی قسم په اسمان اودَهغی په جوړيدلواوپه زمکی اودَهغی په غوړيدلو. یا ما موصوله ده په معنی د 'من' موصوله سره ، یعنې قسم دې په اسمان او په هغه ذات چې ئې جوړ کړې دې ، او قسم دې په زمکې او په هغه ذات چې ئي غوړولې ده ،

﴿ وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّىٰهَا ﴾**څلورم تقابل اوشاهد دې** په جواب قسم. چې الله ﷻ انسان پیدا کړې دې، دَ خیر او شر شعور او استعداد ئی پکښې ایخیدې. څوک دَخیر استعداد نه کار اخلی، نو دَ معاشرې صلاح ذریعه ګرځی، او څوک دَ شر استعداد نه کار اخلی نودَمعاشرې دَ فساد ذریعه ګرځی، هر سړې داتسلیمه وی چې مصلح اومفسد برابر نشی کیدې، نودغه شان موحد چې حقیقی مصلح د کائناتو دې اومشرک چې حقیقی مفسد دې په کائناتو کښې، دوئ هم نشی یوشان کیدلې، دلته هم'ما'مصدری یا موصوله پمعنی د 'من' سره ده ، مراد دَ تسویه نه تعدیل دَاعضاؤدې

﴿فَأَلْهَمَهَا ﴾ای عرّفها(قرطبی)یعنی دَبدکارئ اودَپرهیزګارئ لاری ئی ورته اوښودلې په ذریعه دَوحی اوعقل.

| قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّىٰهَا ۞ وَقَدْ خَابَ مَن دَسَّىٰهَا ۞ |
|---|
| یقیناًکامیاب دې هغه څوک چه پاک ئی کړونفس،اویقیناًناکامه دې هغه څوک چه خخ ئی کړونفس. |

﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّىٰهَا ﴾جواب قسم دې﴿وَقَدْ خَابَ مَن دَسَّىٰهَا ﴾'دسّی'په اصل کښې 'دسّس'دې دویم سین په الف سره بدل شویدې تخفیفا ،پمعنی دَپټولواودوبولویعنی هغه انسان کامیاب

شوچه خپل ځان ئی پاك كړودګناه اودشرك نه.اوهغه ناكام شوچه خپل ځان ئی په ګناه اودشرك په دلدل كښې خخ كړو، بعض وائی ضميرپه ﴿زكى﴾او ﴿دسّى﴾كښې راجع دې الله ﷻ ته، نو معنى داده چه كامياب دې هغه كس چه الله ﷻ دهغه نفس پاك كړو اوناكام دې هغه كس چه الله ﷻ دهغه نفس په ګناهونو كښې خخ كړو .دابن عباس ؓ نه مروى دى چه حضور ﷺ به كله دا آيت﴿ وَنَفْسٍ وَمَا سَوّٰىهَا﴾ اولوستلو، نو وقفه به ئى اوكړه او دا دعا به ئى اوكړه: اللّهم آت نفسى تقوٰها، انتَ وليّها و مولاها وخيرُ من زكّاها او يوبل روايت كښې دَدې ذكر داسې راغلې دې اللهم آت نفسي تقواها وزكها انت خير من زكاها انت وليها ومولاها (ابن كثير)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَذَّبَتْ | ثَمُوْدُ | بِطَغْوٰىهَآ ⑪ | اِذِ | انْۢبَعَثَ | اَشْقٰىهَا ⑫ | فَقَالَ | لَهُمْ رَسُوْلُ |

تكذيب كړې وؤثموديانوپه سبب دَ سركشئ خپلې ،كله چه راپورته شو ډيربدبخت يدوئ كښې نو اووئيل ورته رسول

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اللّٰهِ | نَاقَةَ اللّٰهِ | وَسُقْيٰهَا ⑬ | فَكَذَّبُوْهُ | فَعَقَرُوْهَا | فَدَمْدَمَ |

دَالله صالح خيال كوئ داوښې دَالله اوداوبودَهغې،نودوئ تكذيب اوكړودَرسول نوزخمى ئى كړه،نوهلاكت راوستلو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِمْ | رَبُّهُمْ | بِذَنْۢبِهِمْ | فَسَوّٰىهَا ⑭ | وَلَا | يَخَافُ | عُقْبٰهَا ⑮ |

پدوئ رب دَدوئ په سبب دګناهونودَدوئ نو برابر ئي كړو دوئ (دځمكې سره).اونه يريدلو الله ﷻ دَانجام دَهلاكت دَدوئ نه

﴿ كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَآ ﴾ترآخره پورې تخويف دنيوى دې، "طغوى"مصدر دې دَطغيان يعنى په عصيان كښې دَحدنه تجاوزكول او "باء" سببيه ده، يعنى قوم ثمود په سبب دَطغيان او سركشئ تكذيب اوكړو، يا "طغوى" نه مراد سخت عذاب دې اوعذاب باندې اطلاق دَ "طغوى"او "طاغية" كيږى لكه سورت الحاقه كښې دى، فاهلكو بالطاغية، او "باء" صله ده دَ تكذيب فعل ، يعنى قوم ثمود دَ هغه عذاب تكذيب اوكړو چې كوم نه صالح ؑ دوئ يرول.

﴿ اِذِ انْۢبَعَثَ ﴾متعلق دې دَ﴿ كَذَّبَتْ ﴾سره،انبعاث يعنى راپاسيدلو نه مرادتلل دى يعنى چه دَ اوښې زخمى كولوليپاره لاړو.﴿ اَشْقٰىهَا ﴾ضمير راجع دې قوم ثمودته،يعنى لوئ بدبخت په ثموديانو كښې چه هغه "قُدار بن سالف"وؤ. (روح)

﴿ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ ٱللَّهِ ﴾دَالله دَرسول نه مرادصالح علیه السلام دي.چې هغه دوئ اويرول چې تاسو دا معجزه غوختله، نو الله تعالیٰ ستاسوفرمائش مطابق داظاهره کړه اوس خيال کوئ چې ديته څه نقصان ياتکلف اونه رسوئ، کنې دَالله تعالیٰ عذاب به درباندې راشي. باقي تفصيلي واقعه دَقوم ثمودپه سورة اعراف وغيره کښې تيره ده.﴿نَاقَةَ ٱللَّهِ ﴾ناقة منصوب على التحذير دي، اى احذروانافة الله،يعنى دَناقة الله دَزخمي کولونه ځان بچ کړئ،اضافت دَناقې الله تعالیٰ ته تشريفا شوي دي لکه بيت الله، ﴿وَسُقْيَٰهَا ﴾اى واحذرواسقياها(روح)يعنى دَدى دَاوبوڅکلونه ځان بچ کړئ دَدې په نمبرکښې دامه منع کوئ.﴿فَكَذَّبُوهُ ﴾قوم ثمودد َخپل پيغمبر خبره اونه منله اوښه ئې قتل کړه نودَ الله تعالیٰ عذااب پرې نازل شو.﴿فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ ﴾ دمدم لغت کښې متعدد معنو کښې استعمال شوې دې: (١)غضب: يعنى دَدوئ رب په دوئ باندې غصه شو(٢)الارجاف والتحريکيعنى خوځول چې دَدوئ رب به دوئ باندې زلزله راوسته .(٣)اطباق:دَبره نه پرې څه شي رابندول،يعنى مسلسل عذاب پرې الله تعالیٰ داسې اورولو لکه چې دَدوئ دَپاره سرپوخ اوسائبان وؤ،هيڅ طرف ته ترينه نشو وتلې (۴) الصاق بالارض،زمکې پورې انخولول،يعنى دَسراچتولو موقع ئې ورنکړه، بلکه زمکې پورې ئې خخ کړو. (۵) طحن: يعنى ريزه ريزه ئې کړو،دې معنو په بنياد مونږ دَ "دمدم" دا جامعه معنى کولې شو چې الله تعالیٰ دَدوئ نه دَقهر ډک انتقام واغستلوچې هغې کښې داتول امورڅه نه څه درجه کښې وؤ،

﴿فَسَوَّىٰهَا﴾داانتيجه ده دَچې دې انتقام نتيجه دا وه چې الله تعالیٰ دَزمکې سره برابرکړو،هيڅ نوم نشان ئې پاتې نشو،ضمير منصوب قوم ثمود ته راجع دې اي سوى الله ثمود بالارض، يا "سوى" په معنى دَعموم سره دې،ضمير منصوب "دمدمه"ته راجع دې ،يعنى داانتقام ټولو ته شامل اوعام وؤ.

﴿وَلَا يَخَافُ عُقْبَٰهَا ﴾دَدنيا بادشاهان چې چاله سزا ورکوى،نودَهغوئ سره دَبغاوت خوف وى، ياخپل صباني انجام ورته مخې ته وى،نودې وجهې نه په سزا کښې څه نه څه رعايت اوکړى،چونکه الله تعالیٰ سره دَدې هيڅ خوف نشته نو څه سخت عذاب ئې پرې مسلط کړو اومکمله بيخ کنى ئې ورله اوکړه.

| ركوعاتها (١) | سورة الليل مكيّة | آياتها (٢١) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکی دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٩٢) وحسب النزول (٩)**

نزلت بعدسورة الاعلى وقبل الفجر.

**ربط**: دې سورت کښې هم دَسورت الاعلى دواړو مضمونه توحيد اوتزهيد في الدنيا ذكر كيږي خو په ضمن دَتفريق په مابين دَاعمالو دَمؤمن اودَمشرک کښې

**خلاصه**: آيت(۴) پورې په موضوع دَسورة يعنى تفريق فى الاعمال باندى دوه شواهد ذكر كيږي چه عمل دَمؤمن په شان دَورځې اوسړی دې اوعمل دَمشرك په شان دَشپې اودَښځې دې، آيت(۱۳) پورې دَجواب قسم تشريح اووضاحت دې،آيت(۱۲) پورې تخويف اخروی دې بيا ترآخره بشارت اخروی دې(تمت خلاصة السورة).

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّيْلِ | اِذَا | يَغْشٰى | وَالنَّهَارِ | اِذَا | تَجَلّٰى | وَمَا |
| قسم دې په شپه چه کله پټ کړی عالم(په خپلوتيارو)اوپه ورځ چه کله روښانه شی،اوپه هغه ذات | | | | | | |
| خَلَقَ | الذَّكَرَ | وَالْاُنْثٰى | اِنَّ | سَعْيَكُمْ | لَشَتّٰى | |
| چه | پيداكړي | نر | دې | نراوښځه چه | بی | شکه | عملونه | ستاسوجداجدادی |

﴿ وَالَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ ﴾دا اول شاهد دې چې څنګه ورځ او شپې آثار اوخصوصيات جداجدا دی، ورځ کښې هر څه ښکاره شی، اوشپې کښې هر څه پټ شی. ورځ کښې رڼا اوشپې کښې ظلمت وی،نودا په دې شاهد دې چې ستاسواعمال هم جداجدا دی داچااعمال ښه او چا بد دی. ﴿ وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ﴾يعنی ښکاره شي، تياره دَشپې زائله شي.

﴿ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ ﴾دادويم شاهد دې په جواب قسم ،چې څنګه ښځه اوسړي يوشان نشی كيدی، دَ دواړو صنف جداجدا دي، مزاج اوخويونو کښې اختلاف دې، دغه شان ستاسو اعمال هم يو شان نشی كيدي،"ما"دلته هم يا مصدريه ده اويا"ما"موصوله پمعنى دَ "الذى" دي،

يعني قسم په هغه قادر عظيم القدرة ذات چه دوه صنفه ئی پیدا کړیدی د یو حیوان. مذکر او مؤنث

﴿ إِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتَّىٰ ﴾جواب قسم دې،شتّى جمع دَشتيت.ده پمعنى دَمتفرق.لکه دَمريض جمع مرضىٰ ده،يعنى ستاسوسعى اوعملونه مختلف دى بعض په طاعت سره عمل کونکى دى لپاره دَجنت اوبعض په معصية سره عمل کونکى دى لپاره دَجهنم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَمَّا | مَنْ | أَعْطَىٰ | وَاتَّقَىٰ | ۞وَصَدَّقَ | بِالْحُسْنَىٰ ۞ |
| نوهرهغه څوک چه ورنی کړومال اوځان ئی اوساتلو(شرک،بخل نه)اوتصديق ئی اوکړو په کلمی ښائسته(کلمه توحيد) | | | | | |
| فَسَنُيَسِّرُهُ | لِلْيُسْرَىٰ | ۞وَأَمَّا | مَنْ | بَخِلَ | وَاسْتَغْنَىٰ ۞ |
| نوخامخااسان به کړو دوئ ته اسباب دَ آسانئ.اوهرهغه څوک چه بخل ئی اوکړو اوبی پروائی ئی اوکړه. | | | | | |
| وَكَذَّبَ | بِالْحُسْنَىٰ ۞ | فَسَنُيَسِّرُهُ | لِلْعُسْرَىٰ ۞ | | |
| اوتکذيب ئی اوکړوپه کلمی ښائسته نوخامخا اسان به کړو ورته اسباب دَ سختئ . | | | | | |

﴿ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ ﴾داتشريح اوتفصيل دې دَجواب قسم،يعنى چاچه پخپل مال کښ دَ الله تعالىٰ حق ورکړو ،دَالله تعالىٰ په لاره کښ ئی نفقه کړو﴿وَاتَّقَىٰ ﴾تقوي نه مراد دلته لغوي معنى خوف ده، يعني د ځان فکر اوغم وي ورسره. او یا ورنه معروفه اصطلاحي معنى مراد ده ، چې گناهونو او محارمو نه ئي ځان بچ کړو، ﴿وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ ﴾ موصوف ورله مقدردې اى بالكلمة الحسنىٰ، مراد ورنه کلمه دَ لا اله الاّ الله ده يا الملة الحسنىٰ چه ملت اسلام دې،بعض وائى موصوف ئى الجنة دې،اى بالجنة الحسنىٰ

صاحب دَروح المعانى وائى ځماپه نيزراجحه داده چه﴿ مَنْ أَعْطَىٰ ﴾کښ اشاره ده عبادات ماليه ؤته،او﴿وَاتَّقَىٰ ﴾ کښ اشاره ده عبادات بدنيه ؤته،او﴿ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ ﴾کښ اشاره ده اعتقاد ياتو ته،

﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَىٰ﴾ بشارت دي،يعنی چه دَ كوم كس سعي چه مذكوره اعمالولپاره وی. نو مونږ به هغه ته دَنيكئ اوطاعت توفيق وركړو، دا كارونه به ورته اسان كړو، 'يسرىٰ'نه مراد هغه خصلت دې چه 'يُسر' او 'راحت' ته رسول كوي، چه هغه اعمال صالحه دی چې داسبب دې دَدخول جنت، ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ﴾كښ'سين' دَ تاكيد لپاره دې، يا د 'يُسرىٰ' نه مرادلاره دَجنت ته،يعنی خامخابه ورته دَجنت لاره اسانه كړو.

﴿وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ﴾داپه مقابله دَ'اعطى' كښ دې، يعنی چاچه په مال كښ بخل كښ اوكړو.

﴿وَاسْتَغْنَىٰ﴾ دا په مقابلی دَ'واتقى'كښ دې، يعني د خپل نجات او اصلاح فكر ورسره نه وو، بلكه ځان ئې مستغني او ګڼړلو، او كه تقوى نه مراد معروفه معنی شي، نو بيا مطلب دا دې چې دَ محارمو اوګناهونه ئی ځان نه كړو بچ،نودا دَجنت او دآخرت نعمتونو نه اعراض دې نو ځكه 'استغنى'فعل راورلې شو. يعنی دَالله ﷻ سره چه كوم اجرونه ثوابونه دی هغی نه ئی استغنااوكړه.

﴿وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَىٰ﴾داپه مقابله د"وصدق بالحسنى" كښ ده. يعنی دكلمهٔ دَتوحيدنه ئی انكار اوكړو،يادَملت حسنٰی تكذيب ئی اوكړو،يادَجنت تكذيب ئی اوكړو.

﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَىٰ﴾تخويف دې ،يعنی چه دكوم كښ سعی چه مذكوره اعمالولپاره وی نو مونږ به هغه ته دَنافرمانئ لاره اسانه كړو،'عسرىٰ' نه مرادهغه خصلت دې چه تنګئ او تكليف ته رسول كوی، يا ورنه لاره دَ جهنم مراد ده.

قرآن مجيدكښ دا مضمون څو ځايه بيان شوي دې، چه كوم كس دَ خير او رُشد لاره خپله كړی،نوالله ﷻ ورته دَخيرتوفيق وركوی اوچه كوم كس دَشراومعصيت لاره اختياره وی نوالله ﷻ ورته هغه لا رآسانه كړی.اوداټول دَهغه تقديرمطابق كيږی چه علم الهی كښ موجوددي(ابن كثير)

په يوحديث كښ دی:اعملوافكل ميّسرلماخُلق له،امّامن كان من اهل السعادة فييسرلعمل اهل السعادة وامّامن كانَ من اهل الشقاء فييسرلعمل اهل الشقاء،بياحضورﷺ دا دواړه آياتونه اولوستل (روح بحواله بخاری مسلم وغيره).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | يُغْنِي | عَنْهُ | مَالُهُ | إِذَا | تَرَدَّى ⑪ | إِنَّ عَلَيْنَا | لَلْهُدَى ⑫ |
| اوپه کار به رانشي د ده مال د ده کله چه اوغورځيږي جهنم ته بې شکه مونږ به ذمه دی لارښودل | | | | | | | |
| وَإِنَّ لَنَا | لَلْآخِرَةَ | وَالْأُولَى ⑬ | فَأَنذَرْتُكُمْ | نَارًا | تَلَظَّى ⑭ | لَا | يَصْلَاهَا |
| اوبې شکه مونږلره دی آخرة اودنيا پس يرومه ځه تاسوداورنه چه لمبې وهی،نه داخليږی دېته | | | | | | | |
| إِلَّا | الْأَشْقَى ⑮ | الَّذِي | كَذَّبَ | وَتَوَلَّى ⑯ | | | |
| مگر | ډيربدبخت هغه | چه | تکذيب کوی | اواعراض کوی | | | |

﴿ وَمَا يُغْنِي عَنْهُ ﴾دازجر دې بخيل ته چې اوس دَخرچ کولو وخت دې اوس خرچ کړه، خو چې کله مړ شي بيادرله دامال هيڅ فائده درنکړي. "ما"نافيه ده،يعنی چه کله دابخيل دَهلاکت کندی ته اوغورځيږی نوبيابه ورته دامال هيڅ فائده نه ورکوی.يا"ما"استفهاميه دې،يعنی بيابه ورته کوم څيزفائده ورکړي﴿إِذَا تَرَدَّىٰ ﴾مراد ترينه دَقبر ياجهنم کندې ته غورځيدل دی.

﴿ إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ ﴾يعنی زمونږ په ذمه خو هدايت لارخودل وو،هغه موورته خودله ده اوس خو مرضی ده چې ايمان راوړیٔ اوکفر کویٔ،

﴿ وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَىٰ ﴾داهدايت اودَلارې خودل هم زمونږ فضل واحسان وو ،کنې الله ﷻ باندې دَچاحق نه وو،هغه سره خودنيا وآخرت بادشاهی ده چې څه کول پکښې غواړی دَهغه مرضی ده،اوحضرت تهانوی رحمه الله ليکی:دنيا بادشاهی هم زمونږ ده څکه مودلته درباندې احکام مقرر کړی دی اودآخرت بادشاهی زمونږ ده نوهلته به درله دَاعمالوموافق سزاوجزا درکوو.

﴿ فَأَنذَرْتُكُمْ نَارًا ﴾ داتخويف اخروی دې چه څه تاسو دَلمبو وهونکی اُوريعنی جهنم نه يره وم، چه الله ﷻ دَهغه کافرلپاره تيارکړيدې چه تکذيب کوی اواعراض کوی دَالله ﷻ دَخبری نه.

﴿ لَا يَصْلَاهَا إِلَّا الْأَشْقَى ﴾"اشقیٰ"نه مرادکافردې،نوحصر«۱»په اعتباردَدخول ابدی سره دې، يعنی کافربه ورته هميشه لپاره داخليږي اوهرچه مؤمن عاصي دې،نودَلږوخته لپاره به

داخليږي (۲)یاپه اعتباردسخت والي دعذاب سره دي.یعنی کافرته به پکښې سخت عذاب ورکولې کيږي.اودلالت کوي پدې باندې لفظ د"لایصلی". څکه "صلی"دیته وائی چه کنده اوکنستلې شي، سکروټي پکښې جمع کړې شي،بيزه وغيره ئې په مينځ کښې واچولې شي او وريته کړې شي، نومطلب دادې چه کافربه ئد مينځ ته ور داخليږي اومؤمن عاصي ته کم عذاب ورکولې کيږي(روح المعاني).

(۳)بعض وائی"اشقی"پمعنی ده شقي دې،نومؤمن عاصی هم پکښې داخل دې،لهذادآيت کريمه نه دمرجيه ؤمسلك نه ثابتيږي چه مومن عاصی به جهنم ته نه داخليږي

| |
|---|
| وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى ﴿۱۷﴾ الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّى ﴿۱۸﴾ وَمَا لِأَحَدٍ عِنْدَهُ |
| اولرې به ساتلې شي ورنه لوئ پرهيزګار.هغه چه ورکوي مال خپل چه پاک شي.اونه وي دهيڅ چاپه ده باندې |
| مِنْ نِعْمَةٍ تُجْزَى ﴿۱۹﴾ إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِ الْأَعْلَى ﴿۲۰﴾ وَلَسَوْفَ يَرْضَى ﴿۲۱﴾ |
| څه احسان چه بدله ئې ورکولې شي،مګرلپاره دطلب درضادرب دده چه لوئ دې.اوزرده چه راضي به شي دې |

﴿وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى﴾دابشارت اخروي دې، "سين"دتاکيدلپاره دې،یعنی هغه ډير پرهيزګار چه بخل نه کوي بلکه صرف دالله تعالیٰ درضاء لپاره مال ورکوي هغه به دجهنم نه لرې اوساتلې شي.﴿الَّذِي يُؤْتِي﴾یعنی مال خپل په مصارفودخيرکښې لګوي. ﴿يَتَزَكَّى﴾ حال دې،یعنی پدې حال کښې چه خپل ځان پاکونکې وي عندالله، د رياء او شهرت لپاره ئې نه ورکوي،اونه ورباندې دچاڅه احسان وي چه دهغې بدله ورته ورکوي، بلکه صرف دالله تعالیٰ رب العزة رضا طلب کوي.

مفسرين وائی چه دا آياتونه دحضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه باره کښې نازل دي،حضرت بلال رضی الله عنه چه دامیه بن خلف غلام وؤ، هغه به ورته داسلام راوړلوپوجه عذابونه ورکول، نو ابوبکر رضی الله عنه ورنه واخستلواوازادئې کړو، خلقو اووئيل چه دائې څکه ازادکړوچه دبلال رضی الله عنه په ابوبکر رضی الله عنه څه احسان وؤ،نوالله تعالیٰ ئې ترديداوکړوچه﴿وَمَا لِأَحَدٍ عِنْدَهُ﴾.

په يوروايت کښ دی چه ابوبکر ﷺ به عموماً کمزوري مسلمانان غلامان اخستل او ازادول. نو پلار ئی ورته اووئيل چه داسي خلق ازاده وه چه صبا دې پکار راځي. نو ابوبکر ﷺ ورته اوفرمائيل چه ځمامقصدصرف داللهﷻ رضاطلب کول دی

مروي دی چه حضرت ابوبکر ﷺ وه (۷) داسي غلامان ازادکړيدی چه هغوئ ته داسلام پوجه عذابونه ورکول کيدل، پدی آيت کريمه سره استدلال شويدې چه ابوبکر ﷺ په امت کښ دټولونه افضل دې (کبير، روح).

﴿وَلَسَوْفَ يَرْضَىٰ﴾ ضمير "اتقیٰ" ته راجع دې، چه عندالاکثرابوبکر ﷺ ورنه مراددې، يعنی اللهﷻ به دې، په ثواب اوجنت سره راضی کړی اوچه کوم مقصدلپاره چه مال خرچ کوی چه طلب درضاء الهی دې، هغه به ئی پوره شي، ياضميرراجع دې اللهﷻ ته. يعنی اللهﷻ به ضرورده نه راضی کيږی، صاحب دروح المعانی وائی دادويم احتمال ځماپه نيزداول نه زيات ښه دې ځکه چه رضاداللهﷻ دبنده نه زياته دخوشحالئ خبره ده.

| رکوعاتها (۱) | سورة الضحیٰ مکیّة | آیاتها (۱۱) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۹۳) وحسب النزول (۱۱)**

نزلت بعدسورة الفجروقبل الم انشرح

**ربط**: داسورة اوورستني سورة بطورجمله معترضه ذکرکیږی. لپاره دتسلی حضور ﷺ ته چه په شان نزول کښ ئی بیان راروان دي.

**خلاصه**: ابتداء کښ دمشرکانو داعتراض جواب اوتسلی ده حضور ﷺ ته ﴿ أَلَمْ يَجِدْكَ ﴾ دری انعامات په حضور ﷺ اوپه هغې تفریع بطورلف نشرمرتب یاغیرمرتب، کماسیاتی.

| |
|---|
| وَالضُّحٰى ۝ وَالَّيْلِ إِذَا سَجٰى ۝ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ |
| قسم دي په وخت چاښت باندی، اوپه شپې چه کله کامله شي تیاره ددې چه نه ئی پریخي ته رب ستا |
| وَمَا قَلٰى ۝ |
| اونه ئی تاسره بغض کړیدي |

﴿ وَالضُّحٰى ۝ وَالَّيْلِ إِذَا سَجٰى ﴾ دي سورت بنیادی موضوع تسلی ده نبی ﷺ ته، مفسرین فرمائی چي جبرئیل ؑ یوڅل وحی راوړلو کښ څو ورځی تاخیراوکړو، نومشرکینو شورجوړکړو چي محمد ﷺ نه، نعوذبالله دهغه رب ناراضه شو. اودي ئی پریخودلو. نوالله ﷻ په ورځ اوشپې باندې قسم خوری چي اې حبیبه، نه ته خپل رب پریخي ئی اونه هغه ستانه خفه دي.

سجی دوه معنې دی: (۱) سَكَنَ: اومقصود دلته ترینه دادې چي بنه تیاره شی اودخلقورانګ بند او آوازونه خاموش شی اوبالکل سکون شی. (۲) غشی: یعنی تیاره هر خواه ته خوره شی (ماجدی).

﴿مَا وَدَّعَكَ﴾جواب قسم دې، چې په ديکښې د دوو انعامتو ذکر دې (۱)يوداچې ﴿ما ودعک﴾ چې ستارب به تاچرته هم نه پريږدي.(۲)دويم ﴿وَمَا قَلَىٰ﴾ خفګان ،بغض او ناراضګي ته وئيلی کيږي،چې ستا رب ستا نه نه خفه کيږي.

اوقسم اوجواب قسم کښې مناسبت مفسرين څوطريقو سره واضح کړي دي

(۱) يو داچې څنګه دَ ورځې رڼرا اودَشپې تيارې کښې فرق دې ، دغه شان ستا دين او جاهليت کښې فرق دې ، تا سره نور دې اودوئ سره تياری دی. نوبيا څنګه کيدې شی چې ستا رب تا پريږدی.

(۲) څنګه چې شپې پسې ورځ اوتيارې پسې رڼرا راتلل دَالله ﷻ دَرحمت مقتضی ده ، نو دغه شان داهم دَالله ﷻ دَ رحمت مقتضی ده چې نور انسانيت دَ جاهليت دَ تيارو نه دَ هدايت نور طرف ته رااوباسی، او دا دَ هدايت نور تا ته درکړې شوې دې نوبيا څنګه هغه تاپريږدی او ستانه ناراضه شي.

(۳) بعضومناسبت داسې بيان کړی دې چې څنګه دکائنات احوال مختلف وی ،کله ورځ کله شپه ،کله رڼرا کله تياره ،اوکله ورځ ،اوګده ،کله شپه اوګده،نودغه شان دَوحی حالات دی، کله به تاخير وی کله به تعجيل ،ديکښې دَالله ﷻ خپل مصلحت اوحکمت وی دا نه ده چې الله ﷻ ته پريخودلې اوستانه خفه شو.

| وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْأُولَىٰ ﴿٤﴾ وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ ﴿٥﴾ |
|---|
| اوخامخاآخرت غوره دې تالره دَدنيانهاوزرده چه درکړی تاته رب ستادېرنعمتونه نوته به راضی شې. |

﴿وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ﴾بل انعام دې، او د آخرت او اولی په مصداق کښې د مفسرينو څو اقوال دي:

(۱) آخرت نه مراد ژوند د آخرت دې ، او"اولی" نه مراد ژوند دنياده،يعنی آخرت ستالپاره دَ دنيا نه ډير بهتر دې.

(۲) ياآخرة نه مراد ورستې حالت يعنی تاخير دَوحی دې او"اولی"نه مراداولنې حالت يعنی عدم تاخيردې،نومطلب دادې چه ستالپاره تاخيردَوحی دَعدم تاخيرنه اولی دې،ځکه دې سره ستادَنبوت تصديق دې، کچرته وحی دَځان جوړه وې نوتاخيربه پکښې نه راتلو.

(۳) یادِ آخرة نه مرادورستوراتلونکي وخت دي او اولی نه سبرشوي وخت دي. نومطلب دادي چه هرراتلونکي وخت به ستالپاره دَاول حالت نه ښه وي. ورځ په ورځ به درته ترقی درکولې کیږی اودَ کفاروتنزل کیږی.
راجحه خبره داده چې دلته مرادتول احوال دَنبی ﷺ دی چې ستاهرحالت مسلسل په ترقئ کښ دي اوهر راتلونکي حالت ستادَپاره دَتیرشوی نه غوره دي

﴿ وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ ﴾دادَبل انعام وعده ده اوداټولو عطایا ئی الهیوته شامل دي ،چې هغې کښ کثرت اَتباع هم دی،په نورو انبیاؤو باندې .اسلام ته ترقی اوغلبه میلاویدل هم دی، دَحجت وبرهان غلبه هم ده، او دشمنانو باندې رعب هم دي. حوض کوثر اومقام محمود شرف دي، اوشفاعت عامه وخاصه منصب هم دي. اودینه علاوه نور اخروی مقامات اومراتب هم دی چې هغې نه یو الله ﷻ خبر دي.

| |
|---|
| أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَىٰ ۝ وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَىٰ ۝ |
| آیانه ئي موندلې ته یتیم نوځائې درکړو ،اوموندلې ئی وې ته بې خبره دتفاصیلودشرع نه‌نوهدایت ئی درته اوکړو |
| وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَىٰ ۝ |
| اوموندلې ئی وې ته فقیرنوغنی ئی کړې |

﴿ أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا ﴾دادری انعامات ذکرکیږی برائی تسلّی چې قبل ازنبوت مونږ دَستامکمله دستګیری کړې ده ته مونه ئی پریخې چې نبوت مودرکړو نو اوس څنګه پریخوې شوی،

﴿يَتِيمًا فَآوَىٰ ﴾دا **اول انعام** دي، چی ته له نه وې پیدا شوې چې پلار دې وفات شو،چې دَ شپږ کالو شوې، نو دَمورغیږی نه محروم شوې، الله ﷻ ستاپرورش عبدالمطلب په ذمه اولګولو، لګه موده پس هغه وفات شونو الله ﷻ درله هغه په ځائی ابو طالب درکړو.

﴿وَوَجَدَكَ ضَالًّا ﴾دادویم انعامَ دي، دلته داخبره یادساتل پکار دی چې ضلال په لغت کښ په ډیرو معنو کښ استعمال شوې دې، چې په کښې معروفه معنی ګمراهی او دَ هدایت ضد ده، خو دلته دامعنی هرګز نه ده مراد، ځکه چې دا صَریح نص خلاف ده ماضل صاحبکم

وماغوى(النجم: ۲)، لهذ دلته به هغه معنی اخلو چې هغه دجناب نبوت سره منافی نه وی.د دې وجهی نه علماؤو د دې متعدد معنې ذکر کړې دی:

(۱)بعضو ئی معنی "غیر عالم" او "غافلا"سره کړې ده، اي غیر عالم بالنبوة و علومها، او دې معنې تائید ددیر آیاتونو نه کیږی: ((ماتدري ما لکتٰب ولا الایمان))، الشوری، ((نحن نقص علیک احسن القصص بما اوحینا الیک هذ القرآن ، وان کنت من قبله لمن الغافلین))(یوسف) ((وعلمک مالم تکن تعلم ))(النساء)

(۲)بعض مفسرینو ئی معنی هائما في المحبةکړې ده،چې ته دالله ﷻ په مینه محبت کښې مشغول وی نو الله ﷻ درله نبوت درکړو. "ضلال"لغت کښې په دې معنی کښې استعمالیږی. لکه سورت یوسف کښې دی: انک لفي ضلالک القدیم ، نو دلته هم د ضلال نه مراد محبت دې. بقول والدمحترم رحمه الله چې حضرت شاه منصورباباجی رحمه الله به دې معنی له ترجیح ورکوله.

(۳)بعض علماؤو ضالا د ضل في الطريق نه اغستی دې ، یعنی لار خطاکول ،اوفرمائی چې دیکښې دسیرت په کتابونو مذکور یوې واقعې طرف ته اشاره ده، چې نبی کریم ﷺ یوځل دمکې په گلوکوڅوکښې ورک شو،ډیر ئی تلاش کړو، خو اوئی نه موندلو،عبدالمطلب او د کور نورکسان ډیر پریشانه وؤ،الله ﷻ غیبی طریقی سره ددې بندوبست اوکړو،اونبی کریم ﷺ خپل کور ته راغې. دې علاوه نو هم متعدد توجیهات مفسرینو نقل کړی دی.

﴿وَوَجَدَكَ عَآئِلاً فَأَغْنَىٰ﴾دریم انعام دې ، چې نبوت نه مخکښې زندگی مالی اعتبار سره د کمزورئ وه، الله ﷻ غنی کړې،حضرت خدیجه رضی الله عنها خپل مال درله تجارت دپاره درکړو، حضرت ابوبکر رضی الله عنه خپل مال ستا د قدمونو نذرکړو.

| |
|---|
| فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ ۞ وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ ۞ وَأَمَّا بِنِعْمَةِ |
| پس هرچه یتیم دې نوغصه ورته مکوه اوهرچه سوال کونکي دې نومه ئی رټه‌اوهرچه نعمت |
| رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۞ |
| درب ستادې نوبیانوه ئی. |

﴿فَأَمَّا ٱلۡيَتِيمَ فَلَا تَقۡهَرۡ﴾دادری تفریعات دی په دری انعاماتوباندی په طور دلف نشر مرتب، نو﴿ فَأَمَّا ٱلۡيَتِيمَ ﴾مرتب دي په﴿أَلَمۡ يَجِدۡكَ يَتِيمًا﴾باندی. یعنی چونکه تاهم دیتیمئ دور تیرکړیدي،نولهذا په یتیم سختی مه کوه،امرحضورﷺته دي خوعموم دي پکښ چه هرکس ته دَیتیم خیال ساتل پکاردی،احادیث پدی باب کښ ډیردی.

﴿ وَأَمَّا ٱلسَّآئِلَ فَلَا تَنۡهَرۡ ﴾داپه دویم انعام یعنی﴿ وَوَجَدَكَ ضَآلّٗا ﴾باندی تفریع ده. چه الله ﷻ تاته علم درکړوپه وحی سره، نو اوس سائل فی العلم والدین مه رټه،بلکه دَهغه دَسوال جواب په ښه طریقی سره ورکوه.بعض وائی داپه دریم انعام یعنی﴿وَوَجَدَكَ عَآئِلٗا ﴾ باندی مرتب دي،نولف نشرغیرمرتب دي،مطلب دادي چه ته فقیروی اللهﷻغنی کړې نو اوس سائل دَمال مه رټه څه احسان ورسره کوه،یائی په نرمی وبناسره واپس کوه،صاحب دَروح المعانی وائی چه نهی دَرټلونه دَهغه سائل باره کښ ده چه ډیرتنګول نه کوی،که یوسائل درپوری اونخلی اوپه نرمئ سره نه واپس کیږی نوبیاورسره سختی کول هم جائزدي.

﴿وَأَمَّا بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثۡ﴾داپه دریم انعام مرتب دي،چه اللهﷻتاته دولت درکړو نودَدی نعمت شکراداکوه اوذَدی اقرارآواعتراف کوه،تحدیث بالنعمة هم شکردي، علماء فرمائی چې تحدیث بالنعمت په دوه طریقو سره کیږی: (۱)یوداچی دَنعمت په ژبه اعتراف اوکړی(۲)دویم داچی دَنعمت په مقتضی عمل اوکړی،مثلا علم ورله الله ﷻ ورکړې وی، نو بل ته ئی هم اوښائی،وغیره،خوزبانی تحدیث بالنعمت دَپاره یوڅو شرائط دی:

(۱)یوداچی بطورریاء نه وی.

(۲)بطور تفاخر نه وی.

(۳)دَبل زړه ماتیدلوخوف نه وی.

(۴)حسدخوف نه وی(التحریر والتنویر، التسهیل)

بعض وائی داپه دویم انعام یعنی﴿ وَوَجَدَكَ ضَآلّٗا ﴾باندی مرتب دي نودَنعمت نه مرادنبوت دي،یعنی ته نبی نه وې،نبوت ئی درکړونواوس دَدی تبلیغ کوه.

**فائده**.مفسرينو ليکلي دی چه مستحب دی چه دسورة الضحی نه ترآخره پوری دهرسورة په اختتام کښ تکبیر اووئیل شي یعنی الله اکبر،ځکه ددی سورة په نزول باندی خوشحاله کیدلو سره حضورﷺالله اکبراووئیل،په روایت کښ دی حضورﷺددی امرکړیدی(روح المعاني،قرطبي وغيره).

| ركوعاتها (١) | سورة الانشراح مكيّة | آياتها (٨) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٩٤) وحسب النزول (١٢)**

نزلت بعدسورة الضحىٰ وقبل العصر

**ربط**: ماقبل سورة کښې حضور ﷺ ته تسلي وه دمشرکانو داعتراض باری کښې. دی سورة کښې هم تسلي ده، دمشرکانو دی اعتراض باره کښې چه مؤمنانو سره مال نشته دې. په تنګئ کښې دی او مونږ مالداره یو، نوجواب اوشوچه په تاباندی الله ﷻ خومره انعامات کړیدی دغه شان به فقرهم ختم کړی، دعسرنه ورستو یسرراځی.

**خلاصه**: ابتداء کښې انعاماتِ ثلثه ؤبیان دې، بیاتسلی ده آخرکښې دمسئلی دتوحید دتبلیغ حکم دې (تمت).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَلَمْ | نَشْرَحْ | لَكَ | صَدْرَكَ ۝١ | وَوَضَعْنَا | عَنْكَ | وِزْرَكَ ۝٢ | الَّذِیْٓ |
| آیانده | فراخه کړیده | مونږتالره | سینه ستا. اولری | کړیدی | مونږستانه | بوج ستا. هغه | چه |
| اَنْقَضَ | ظَهْرَكَ ۝٣ | وَرَفَعْنَا | لَكَ | ذِكْرَكَ ۝٤ | | | |
| درنه کړې وه | ملاستا | اواوچت کړیدې | مونږتالره | یادول ستا | | | |

﴿اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ﴾ دااول انعام دې، استفهام تقریری دې، یعنی مونږ ستاسینه مبارکه فراخه کړیده په علم حلم سره، یعنی علم موهم درته وسیع درکړواودمشرکانو په ایذاء په مقابله کښې مودرته حلم هم درکړو، بعضِ مفسرینو دشرح صدرنه معجزه دشقِ صدر مراد کړې ده.

﴿وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ﴾ دادویم انعام دې، وزر بوج ته وائي. دینه مراد هغه مباحاتو بوج هم دې چه قبل ازنبوت خلاف اولی وؤ، چه د دې په ارتکاب سره به په حضور ﷺ ثقل او بوج وؤ، نودې آیت کښې دَ هغی په عدم مواخذه بشارت دې، تو دا قول دَ الله ﷻ په شان دَ

ليغفرلك الله ماتقدم من ذنبك دي، دغه شان دَرسالت دَمنصب اوذمه واريوبوج هم ورنه مراد دي، چه دَهغې حق اداکولو اوقوم ته رسول وؤ، الله ﷻ ورته اسان کړو، چه په ښه طريقې سره ئې ادا ئې کړو. دَوحي بوج هم ورنه مراد دي چې ابتداء کښې په نبي ﷺ دَوحي ډير بوج وؤ حتى چې سخت ژمی کښې به ترينه خولې بهيدلې.«روح وقرطبي وغيره».

﴿وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴾ دادريم انعام دې، چه تولو انبياؤ کښې دَحضور ﷺ مرتبه اوچته ده، په حديث کښې دی چه "اذاذُکرتُ ذکرتَ معي" يعني کوم ځائ چه دَالله ﷻ نوم ذکرکيږي هلته ورسره دَحضور ﷺ تذکره هم کيږي، په اذان کښې، اقامت کښې، تشهد کښې. خطبو کښې. تحريرونو کښې، دغه رنګه کوم ځائ کښې چه الله ﷻ دَخپل اطاعت امرکړيدي نو دَحضور ﷺ دَاطاعت امرئې هم کړيدي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّ | مَعَ | الْعُسْرِ | يُسْرًا ﴿٥﴾ إِنَّ | مَعَ | الْعُسْرِ | يُسْرًا ﴿٦﴾ | فَإِذَا فَرَغْتَ |
| پس بې شکه دَسختئ سره اسانی وی بې شکه دَسختئ سره آسانی وی پس کله چه فارغ شی تهدَدعوت نه» | | | | | | | |
| فَانْصَبْ ﴿٧﴾ | وَإِلَىٰ | رَبِّكَ | | | فَارْغَبْ ﴿٨﴾ | | |
| نوعبادت کوه. | اوصرف | خپل | رب | ته | پس | عاجزی | کوه. |

﴿فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ داتسلی ده حضور ﷺ ته، مشرکانو به حضور ﷺ اومؤمنانو ته دَ فقر او دَ تنګئ پيغورورکولو، نونبی کريم عليه السلام دااوګڼله چه دامشرکان زمونږ دَ فقر په وجه اسلام نه راوړی، نو الله ﷻ ورته مذکوره انعامات هم ذکرکړل اوتسلی ئې ورکړه چه نن په تاسو کوم عُسردې الله ﷻ به دَدی په ځائ يُسرراولی.

﴿إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ دَاصول فقه قاعده ده چه اسم معرفه دوباره معرفه ذکر شی نوثانی عين اول وي، اوچه اسم چې دوباره نکره ذکر شي نکره نوثانی غير وی دَ اول نه، دی آياتونو کښې ﴿الْعُسْرِ﴾ معرفه ذکرشويدې او ﴿يُسْرًا﴾ نکره، نو دلته دَ يو عُسر په بدله کښې دَ دوؤ يسرونو وعده ده، نوحضور ﷺ ته دَ دوؤ يُسرونو بشارت ورکړې شو، يو يُسر دنيوی چه فتوحات دی، بل يُسراخروی، بعضِ وائی يوهغه فتوحات دی چه دَحضور ﷺ په زمانه کښې شوی وؤ، بل هغه چه دَ خلفاءِ راشدينو په زمانه کښې شوی وؤ.

﴿ فَإِذَا فَرَغْتَ فَٱنصَبْ ﴾دا په آخر کښې نبي کريم ﷺ ته دوه حکمونه دی.دا اول حکم دې چې کله فارغ شی نو بیاځان ستړې کوه، دَ «فرغت» او «فانصب» دواړو مفعول به نه دې ذکر. مفسرين کرام فرمائی چې دینه مقصودعموم دې چې یوحالت اوعمل نه فارغ شی نوبل حالت اوعمل کښې ځان مشغول کړه، دَ جلوت اعمالونه فارغ شی نودَخلوت اعمالو کښې مشغول شه، دَ دعوت نه فارغ شی انفرادی عبادت کښې مشغول شه ، دَ فرائضو نه فارغ شی نوافلو کښې مشغول شه وغيره،بهرحال زندګی مسلسل دَ عمل او کار نه عبارت پکار ده.

﴿وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَٱرْغَب ﴾یعنی ټول اعمالو کښې مقصود دَرب رضاساته.دنیوی اومادی فوائد یا جاه و شهرت مد نظر مه ساته.

ركوعاتها ١ سورة التين مكية آياتها ٨

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع کوم په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکی دی

**ترتيبها حسب التسلسل (٩٥) وحسب النزول (٢٨)**

نزلت بعد سورة البروج وقبل القريش. ٢

**ربط**: سورة الضحى او سورة الانشراح په طور دجملی معترضی ذکرشول. اوس دی سورة کښې مسئله د توحيد ذکرکيږی. پنځه دلائل دی چه انسان ته اوچت مقام دتوحيد په وجه ورکولې کيږی.

**خلاصه**: ابتداء کښې څلور قسمونه دی ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ﴾ جواب قسم دې ﴿ثُمَّ رَدَدْنَٰهُ﴾ تخويف دې بداعمال کونکوته، ﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ بشارت دې مؤمنانوته ﴿فَمَا يُكَذِّبُكَ﴾ زجر دې. (تمت).

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالتِّيْنِ | وَالزَّيْتُوْنِ ① | وَطُوْرِ | سِيْنِيْنَ ② | وَهٰذَا | الْبَلَدِ | الْاَمِيْنِ ③ | |
| قسم دې په انځراوپه | خونځزيتون اوپه | غرد | سنين | باندی اوپدی | ښارامن | ورکونکی باندی | |
| لَقَدْ | خَلَقْنَا | الْاِنْسَانَ | فِيْ | اَحْسَنِ | تَقْوِيْمٍ ④ | | |
| يقيناً | مونږ پيداکړيدې | انسان | په | ډيرښکلی | شکل کښې | | |

﴿وَٱلتِّينِ وَٱلزَّيْتُونِ ۝ وَطُورِ سِينِينَ ۝ وَهَٰذَا ٱلْبَلَدِ ٱلْأَمِينِ﴾ دا څلور قسمونه دی په مقامات مبارکه ؤباندې.

"بلدامين" نه مراد بالاتفاق مکه مکرمه ده، "امين" فعيل يا پمعنی د فاعل دې يعنی امن ورکونکې ښار، يا پمعنی د مفعول دې يعنی مامون، او "طورسنين" نه هم مراد بالاتفاق هغه غر دې چه الله ﷻ پکښې موسی علیه السلام سره کلام کړې وؤ، "طور سينا" هم ورته وائی. البته "التين والزيتون" په باره کښې مفسرينو اختلاف کړې دې چې دينه مراد معروفه ميوه ده، يا "منابت

التين والزيتون دي؟ ځني مفسرينو ترینه ظاهری معنی مرا داغستي ده چي دينه مراد انځر اوخونه دي، او په قسم دَ دی وجهی نه اوخوړي شو چي دي سره دانسان ډيرمنافع تړلی دی. حضرت والد رحمه الله دويمی توجيه له ترجيح ورکړي ده چي دينه مراد منابت التين والزيتون (يعنی هغه مقام چي هلته انځر او زيتون ميوه ډيره کيږی) دي. چي دا بيت المقدس دي په دليل دَ سياق سره، ځکه چي ورستو هم ذکر دَمکان دي، نو دلته ذکر دَ دري مقاماتو اوشو. خو مراد ترينه مقامات نه دی، بلکه دا دَ ذکر المکان و ارادة المکين دَ قبيلي نه دی. يعنی مراد دَ دينه هغه رسولان دی چي هغه دي علاقو ته مبعوث شوی وؤ

﴿التين والزيتون﴾کښ اشاره ده حضرت عيسى عليه السلام ته چي هغه بيت المقدس اودي خواه شاه علاقو کښ مبعوث آخری پيغمبر وؤ، هم دا وجه ده چي دَ زيتون تذکره دَحضرت عيسى عليه السلام مناسبت سره په مسيحی مصادر کښ کثرت سره ميلاويږی. نفصيل دپاره رجوع اوکړئ تفسير ماجدی ته.﴿ وَطُورِ سِينِينَ ﴾کښ اشاره ده حضرت موسى عليه السلام ته او﴿ٱلْبَلَدِ ٱلْأَمِينِ﴾ کښ اشاره ده نبی کريم ﷺ ته .

﴿لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ ﴾جواب قسم دي،الانسان نه مراد مطلق انسان دي﴿أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ﴾نه خائسته خلقت اوهيئت مراددي،اودَانسان خلقت ظاهری اعتبار سره هم هم خائسته دي اوباطنی اعتبار سره هم، ظاهری اعتبارسره داسې چي متناسب اعضائی ورکړی دی، مناسب ځائيونو باندي ورله الله تعالى ايخيدی،بل يو مخلوق هم دَ اعضاؤ په ترکيب کښ دَانسان په شان نشته، او باطنی اعتبارسره خائست ورله داسی ورکړي دي چي دي په فطرت باندي پيدا کړي دي ، عقل وشعور ئی پکښ ايخيدی،دَخير وشرپيژندلو استعداد ئی ورکړی دي.

**قسم اوجواب قسم کښ مناسبت** دادي چي الله تعالى په دي قسمونو کښ دادري رسولان او دَ دوئ شرائع شواهد او گواه گرځوی،په دي خبره چي انسان ته کوم مقام الله تعالى ورکړي دي، او دَ ظاهری اوباطنی خوبونو نه ئی مالامال کړي دي نوهغه صرف دَدي وجهي نه چي دي توحيد اومنی، اوسزاوجزا باندي ايمان راوړی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | رَدَدْنَٰهُ | أَسْفَلَ | سَٰفِلِينَ ۝ | إِلَّا | ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا۟ | وَعَمِلُوا۟ | ٱلصَّٰلِحَٰتِ |
| بیاگرځولي | دي | مونږده. | لره | لاندي | دَلاندونه | مگرمؤمنان | چه دی | اونيک عمل کونکی |

کتاب درنه واخلی؟څه بنیاد باندې ته دبعث نه انکار کوی ﴿ أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِأَحْكَمِ ٱلْحَٰكِمِينَ﴾ دلیل عقلی دې په بعث . چې دنیا مجازی بادشاهان خپل احکامات په رعایا باندې لازمی ګڼری اوخلاف ورزی په صورت کښ ورله سزاورکوی، نو الله ﷻ خواحکم الحاکمین دي . د بادشاهانو بادشاه دې هغه به څنګه حساب کتاب درسره نه کوی اوڅنګه به په دې قادر نه وي.

"ما"په ﴿ فَمَا يُكَذِّبُكَ﴾ کښ استفهامیه ده،اوتقدیر دعبارت داسې دې، اي ما يجعلك مكذبا «بَعْدُ »مبنی دې مضاف الیه محذوف دې ، اي: بعد هذه الحجج و البراهين او بعد هذا البيان.

حضرت ابوهریره ﷺ دنبی کریم ﷺ نه نقل کوی چې څوک سورت التين شروع کړی. او د آخری آیت الیس الله باحکم الحاکمین هم تلاوت کړی ،نوبیا دې ورپسې دااوئی بلی وانا علی ذلک من الشاهدين.(تفسیر ابن کثیر)

| ركوعاتها (۱) | سورة العلق مكية | آياتها (۱۹) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۹۶) وحسب النزول (۱)**

**ربط** : دیکښ دَسورت الاعلی اول مضمون توحید ذکر دي.اونبی کریم ﷺ ته حکم دي چي دَقرآن تلاوت اوتبلیغ کوه ، نوتاته به پرې استقامت نصیب کیږي.اودغه شان چي کوم خلق دَدي نه انکارکوی اودي لاره کښ خنډونه اچوی هغوئ ته زجر اوتخویف دي.

**خلاصه**: په ابتداء کښ ترآیت(۵)پوري ترغیب دي قرائت دَقرآن ته.آیت (۶) او(۷)شکوه ده چه انسان دمالداریٔ په وجه سرکشه دي.آیت(۸)تخویف اخروي دي چه رجوع دَانسان الله ﷻ ته ده، الله ﷻ به ورته دَطغیان سزاورکوي،آیت۹نه تر(۱۴)پوري زجردي منکرینو ته، آیت (۱۵) نه تر(۱۸)پوري تخویف اُخروي دي،آخرکښ خطاب دي حضور ﷺ ته،امردي ورته دَاستقامت .

| |
|---|
| اِقۡرَاۡ بِاسۡمِ رَبِّكَ الَّذِيۡ خَلَقَ ۞ خَلَقَ الۡاِنۡسَانَ مِنۡ عَلَقٍ ۞ |
| لوله په توکل دَنوم دَرب خپل،هغه رب چه پیداکړي دي هرڅیز.پیداکړي يې دي انسان دَټکری دَوینی نه |
| اِقۡرَاۡ وَرَبُّكَ الۡاَكۡرَمُ ۞ الَّذِيۡ عَلَّمَ بِالۡقَلَمِ ۞ عَلَّمَ الۡاِنۡسَانَ |
| لوله اورب ستاډیرکریم دي.هغه رب چه تعلیم ئی ورکړیدي په قلم سره.تعلیم ئی ورکړیدي انسان ته |
| مَا لَمۡ يَعۡلَمۡ ۞ |
| دَهغې چي ده ته ئي علم نه وو. |

﴿ اَقۡرَاۡ بِاسۡمِ رَبِّكَ الَّذِيۡ خَلَقَ ﴾ دانبی کریم ﷺ ته دَقرآن تلاوت اوتبلیغ حکم اوترغیب دي، چي ته مسلسل دَدي تلاوت کوه،اودَمخالفینو پرواه مه کوه

دا ابتدائی پنځه آیاتونه دَقرآن کریم اولین آیاتونه او اوله اوله وحی ده،بخاری شریف روایت مفهوم دي چي نبی کریم ﷺ غارحرا کښ خلوت نشین وۀ،چي حضرت جبرئیل علیه السلام ورته راغي، اوورته ئی اوویل: اقرأ، نبی کریم ﷺ ورته اوئیل ماانا بقارئ، چي څه لوستلي

نشم، حضرت جبرائیل علیه السلام ورته غیږه ورکړه اوخه زور ئی ورکړو .بیائی پریخودلو اوورته ئی اوئیل چې اقرأ ، نبی کریم ﷺ بیا هغه جواب ورکړو چې ماانا بقارئ. دغه شان درې ځلې دا عمل اومکالمه اوشوه،اودینه ورستو جبرئیل علیه السلام داپنځه آیاتونه اولوستل

﴿ بِٱسْمِ رَبِّكَ ﴾اي مستعینا باسم ربکیعنی دقرآن لوستل اوتبلیغ کول ډیرګران کاردې اوبیا چې یوکس امی هم وی، خودې ته سوچ اوکړه چې کوم ذات ستاموقع په موقع تربیت کړې دې،دیتم سفرئی درته آسان کړې دې، دجاهلیت ګندګیو نه ئی پاک ساتلې ئی .داهم د هغه ذات د ربوبیت تقاضه ده چې د کل عالم ستاپه ذریعې سره تربیت اوکړی،لهذا دهغه نوم واخله اودقرآن لوستل اوتبلیغ شروع کړه،هغه به درته داهم آسان کړی.

﴿ٱلَّذِى خَلَقَ﴾ کوم ذات چې داټول کائنات دنیست نه هست اوعدم نه وجود ته راوستې دې هغه له دا څه ګرانه ده چې تاله به لوستلو قدرت درکړی، اودکوم ذات په قدرتونو چې داسې لوئ دلائل موجود دی اودهغې باوجود څوک ددې انکار کوی،نودهغه دمخالفت پرواه مه کوه اودقرآن تلاوت اوتبلیغ جاری ساته.

﴿خَلَقَ ٱلْإِنسَـٰنَ مِنْ عَلَقٍ﴾(١)کوم ذات چې بې جانه اوبې عقله وینی ټکرې نه روغ موټ عقل مندانسان پیداکړې دې هغه په دې قادر دې چې امی انسان ته په لوستلو قدرت ورکړی،(٢) کوم ذات چې دوینی ټکرې کښې دومره انقلابات راوستلونه ورستو انسان پیدا کړې دې هغه ذات د دې قرآن اوستا په ذریعې سره کائنات کښې یوغټ انقلاب راوستلو اراده کړې ده لهذا ته دقرآن تلاوت اودی تبلیغ شروع کړه.(٣)کوم ذات په وحدانیت اوقدرت چې داسې واضح دلائل موجود دی که څوک ددې باوجود بیا هم ترینه انکار کوی نوته دهغه پرواه مه کوه بلکه دقرآن تلاوت او تبلیغ تسلسل سره جاری ساته.

﴿ٱقْرَأْ وَرَبُّكَ ٱلْأَكْرَمُ﴾قرآن لوله.دستارب شان کریمی تقاضه داده چې تاله په دې قدرت درکړی، اوددې دعوت جاری ساته، دهغه شانِ کریمی انسانیت دجهالت نه رااوباسلو اراده کړې ده.

﴿ٱلَّذِى عَلَّمَ بِٱلْقَلَمِ﴾کوم ذات چې قلم ذریعه دتعلیم اوتعلم ګرځولې ده نوهغه دقلم نه سوا بل شې ورله هم ذریعه ګرځولې شی لکه دلته ذریعه حضرت جبرئیل علیه السلام دې.

﴿عَلَّمَ ٱلْإِنسَـٰنَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ واسطه اوآله څه ضروری ده"؟ انسان له د څومره اشياؤو علم بغير دَ آلې اوواسطې نه درکړې دي، لهذا هغه تاله هم علم بغير دَواسطې اوذريعې درکولې شي.

**فائده**: "ربک الاکرم" مبتدادې، او "الذي علم بالقلم" یا "علم الانسان" ورله خبر دې. اوديکښې اشاره ديته چې انسان د علم نه مالامال کول دَالله ﷻ دَ کرم انتهاء ده.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَلَّآ | إِنَّ | ٱلْإِنسَـٰنَ | لَيَطْغَىٰٓ ۝٦ | أَن | رَّءَاهُ | ٱسْتَغْنَىٰٓ ۝٧ | إِنَّ | |
| خه ده داخبره چه بی شکه انسان یقیناً چې سرکشی کوي څکه چه ګنړی خپل ځان بی پرواه بی شکه | | | | | | | | |
| إِلَىٰ رَبِّكَ ٱلرُّجْعَىٰٓ ۝٨ | | | | | | | | |
| رب ستاته واپس تلل دی | | | | | | | | |

﴿كَلَّآ إِنَّ ٱلْإِنسَـٰنَ﴾ داشکوه ده انسان نه چې دومره انعامات. چې پکښې څه جسمانی دی لکه دَویني لوتړې نه پیداکول، اوڅه روحانی دی چې علم ئی ورکړو، اوانبیاوؤ په ذریعې سره ئی ورله دَتربیت انتظام اوکړو، دومره انعاماتو باوجود دې ځان مستغنی ګنړی اوالله ﷻ بندګان دَهغه عبادت نه منع کوی.

داآیاتونه آخره پوری دَابوجهل باره کښې نازل دي،چه دَمالدارئ په وجه سرکشه وؤ، حضور ﷺ به ئي دَمانځه نه منع کولو.یوځل ئی قسم اوکړوچه کچرته محمدﷺماپه سجده کښې اولیدلو، نو په څټ بئ خپې کیدم،حضورﷺمونځ کولو،دا لعین په دغه اراده راغې لیکن زر واپس شو،اوپه لاسونوئی دَځان نه څه څیزونه لری کول،چاورنه تپوس اوکړوچه څه دربانديا اوشول؟ اوئی وئیل چه ماته مخې ته دَ اور یوخندق جوړشو، او دَ وزرو والا څیزونه می اولیدل، حضورﷺاوفرمائیل:قسم دې که راغلې وې ماته نیزدې شوې وې نوفرشتوبه نیولې وؤ ، اوټوټې ټوټې کړې به ئي وؤ(مسلم،نسائی وغیره).

«کلا» ردعیه دهٔ، اوماقبل کښې صراحتاًڅه داسې امر نشته چې دادَهغې نه ردعه اوګرځی،دې وجه نه څنې مفسرین فرمائی چې دلته دا دَ مابعد نه ردع نه ده، اوڅنې فرمائی چې په معنی "الا" سره ده

﴿أَن رَّءَاهُ ٱسْتَغْنَىٰٓ﴾ لام تعليليه مقدر دي .اى لان راه مستغنيا ،مفعول له دي د ((ليطغى)).

((رءاه)) كښې ضمير منصوب او ضمير مرفوع دواړه انسان ته راجع دي ، او ((استغنى)) ئي مفعول به دي ،يعنې سرکشي ځکه کوي چه ځان غني ګڼړي، الله ﷻ ته محتاج ځان نه ګڼړي.

﴿إِنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ ٱلرُّجْعَىٰٓ﴾ داورته تخويف دي چې که هرڅومره سرکشي وي اودې کړي آخربه الله ﷻ دربار کښې پيش کيږي هغه به ترينه حساب کتاب اخلي.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَرَءَيْتَ | ٱلَّذِى | يَنْهَىٰ ﴿٩﴾ | عَبْدًا | إِذَا | صَلَّىٰٓ ﴿١٠﴾ | أَرَءَيْتَ | إِن | كَانَ | |
| اوايه ماته | هغه کس چه منع کوي | بنده (حضور ﷺ) | چه کله هغه مونځ کوي | | | اوايه ما ته | کچرته وي دي | (حضور ﷺ) | |
| عَلَى | ٱلْهُدَىٰٓ ﴿١١﴾ | أَوْ | أَمَرَ | بِٱلتَّقْوَىٰٓ ﴿١٢﴾ | أَرَءَيْتَ | إِن | كَذَّبَ | وَتَوَلَّىٰٓ ﴿١٣﴾ | |
| په سمې لارې | يا حکم کوي | دتقوىٰ | | | اوايه ما ته | کچرته دي (ابوجهل) | تکذيب کوي | اواعراض کوي. | |
| أَلَمْ | يَعْلَم | | بِأَنَّ | | ٱللَّهَ | | يَرَىٰ ﴿١٤﴾ | | |
| آيانه | پوهيږي | دي | په | دې | چه | بې شکه | الله ﷻ | ويني. | |

﴿أَرَءَيْتَ﴾ دازجر اوتعجب دي په حال دمشرک چې خپله خوهسې ځان مستغني ګڼړي اودالله ﷻ عبادت نه کوي، اوچې کوم بنده عبادت کوي، اوبيا هغه عبادت دمونځ پشان عبادت وي نودې هغه هم منع کوي.﴿ ٱلَّذِى يَنْهَىٰ ﴾ مرادورنه ابوجهل دي﴿عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰٓ ﴾ مرادورنه حضور ﷺ دي.

﴿أَرَءَيْتَ إِن كَانَ عَلَى ٱلْهُدَىٰٓ ﴾دادريم زجر اوتعجب دي په دوئ حالت، چې کوم کس دوئ بيت الله کښې دعبادت نه منع کوي دهغه ذاتي حالت هم ښه دي چې په هدايت باندې قائم دي اونورو ته هم دخير اودتقوى دعوت ورکوي، اودمنع کونکي، ذاتي احوال هم خراب دي چې عقيده اوعمال ئې دواړه صحيح نه دي اودخير اوتقوى دعوت خو هسې نه ورکوي، نوتعجب دې چې خپله خه نشي کولې نوبل څه له منع کوي؟!

﴿إِن كَانَ عَلَى ٱلْهُدَىٰٓ﴾ دې تعبیراو اسلوب کښې اشاره ده دېته چې کچرې یو جانب دهدایت اوبل جانب دضلالت صرف امکان وې نو بیا هم داطرزعمل نه وۀ پکار، اودلته خو یاجانب په هدایت باندې کیدل اوبل جانب په ضلالت باندې کیدل یقیني دی،نودلته خو په طریق اولی سره داسې نه ده پکار.

﴿أَوْ أَمَرَ بِٱلتَّقْوَىٰٓ﴾ او مانعه الخلو دپاره دې اودې راوړلو کښې اشاره ده دېته چې کچرته هدایت اوامربالتقوی کښې یو امر هم موجود وې نوبیاهم مخالفت مذموم وۀ،اودلته خودواړه موجود دی نودې مخالفت خوډېر زیات مذموم دې(بیان القرآن)

﴿أَلَمْ يَعْلَم بِأَنَّ ٱللَّهَ﴾ دا سابقه زجر تحت داخل دې چې ده سره دومره هم خوف خدا نشته،چې خپله خوهسې څه کارنه کوی چې بل هم ترینه منع کوی

**فائده**: دلته درې ځله د «رایت» تکرار اوشو، او دا چونکه د افعال قلوبو نه دې ، نو دې وجهې نه د دؤو مفعولو تقاضه کوي ، نو اول ځائ (ارایت الذي ینهی)کښې مفعول اول شته ، چې هغه «الذي» دې په «الذي ینهی» کښې ، او دویم مفعول ئي حذف دې ،چې په هغې دلالت کوي «الم یعلم بان الله یری »چې دا دویم مفعول دې د دریم «رایت»

دریم ځائ(ارایت ان کذب وتولی) کښې ئي مفعول ثاني شته .چې جمله استفهام «الم یعلم بان الله یری» ده، او مفعول اول ئي حذف دې ،چې هغې باندې «الذي» دلالت کوي چې دا مفعول اول دې د اول «رایت»

او دویم ځائ (ارایت ان کان علی الهدی)کښې د «رایت» نه مفعول اول شته او نه مفعول ثاني، دواړه حذف دي ، مفعول اول باندې ئي «الذي» دلالت کوي او مفعول ثاني باندې ئي «الم یعلم بان الله یری» دلالت کوي.

دویم او دریم «رایت» نه ورستو فعل شرط راغلې دې ، چې جواب ورله محذوف دې ، چې تقدیر ئي " ا فلم یعلم بان الله یری " دې ،او په دې قرینه «الم یعلم بان الله یری» ده ، او فعل شرط سره د جواب نه جمله مستانفه ګرځي .(البحر المحیط)

كَلَّا لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ ۙ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ﴿١٥﴾

هرګز داسې نده پكار. قسم دې كچرته دې منع نه شو. نوخامخابه مونږدې راكاږو جهنم نه په وينسودنندې سره

نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ ﴿١٦﴾ فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ ﴿١٧﴾ سَنَدْعُ

هغه تندي نه چه دروغ جن دې دخطاكار دې، پس را اودې غواړي دې ملګرې دمجلس خپل زرده چه راؤبه غواړومونږ

الزَّبَانِيَةَ ﴿١٨﴾ كَلَّا ۗ لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ ﴿١٩﴾

ملائكې دجهنم هرګزبه نې بياخلاص نكړي. مكوه نه اې پيغمبره اطاعت دده. او سجده كوه اوقربت حاصلوه الله ته

﴿ كَلَّا لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ ﴾ داتخويف اخروې دې چې ده له نورداخپل طرزعمل پريخودل پكار دې، قسم دې كچرته دې منع نه شودنبي كريم ﷺ دمخالفت نه اودمونږ نه منع كولونه نوپه سختئ سره بې ركاږودقيامت په ورځ اوردجهنم ته.

﴿ لَنَسْفَعًا ﴾ سفع ونيلې كيږي په سختئ سره راكاږلوته. نون خفيفه په صورت دتنوين كښ ليكلې شويدې اصل كښ لَنسفعَنْ دې. بعض وائي مطلب دادې چه په دنياكښ به دده په مخ داغ اولګوؤ، لكه په بدركښ داسې اوشول.

﴿نَاصِيَةٍ كَٰذِبَةٍ ﴾ بدل دې د ﴿ بِالنَّاصِيَةِ ﴾، كاذبة او خاطئةاصل كښ صفت جوړيږي د صاحب ناصيه اودانسان، خودلته ئې نسبت ناصيه ته مجازا شوې دې دپاره دمبالغې، چې د ده دروغ ژن كيدل اوباطل كيدل دومره عيان اوظاهر امر دې، چې د ده تندې نه معلوميږي.

﴿ فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ ﴾ مضاف مقدردې اى اهل ناديه يعنى دې دې بياخپل اهل مجلس را اوغواړي، روايت دې چه حضور ﷺ مونځ كولوابوجهل تيريدلوورته ئې اووئيل آياماته دمونځ نه منع كړې نه ئې، نبي كريم ﷺ ورسره سختى خبرې اوكړې، ابوجهل اووئيل اياته ماته سختې خبرې كوې ته خبرنه ئې چه مكه كښ څماډيراهل مجلس دى ماسره ناسته پاسته كوي نودا آيت نازل شو. چه دې دې خپل ملګرې رااوغواړي، مونږبه ورپسې دجهنم ملائك رااوغواړوچه جهنم ته بې راكاږي. ليكن هغوئ به ورسره هيڅ مددنه شي كولې

﴿ كَلَّا ﴾ردعيه دي.زجردي لعين ابوجهل ته.يعني هرگزبه ده لره خپل اهل مجلس دَالله ﷻ دَعذاب نه خلاص نه کړی لکه دَده چه گمان دي

﴿لَا تُطِعْهُ ﴾داخطاب دي حضورﷺته. اوامرد دَاستقامت دي.چه دَابوجهل وغيره کافرانوپه مخالفت کښې هميشه اوسيږه او الله ﷻته سجده کوه دَدوئ په منع کولومه منع کيږه. ﴿وَٱسْجُدْ ﴾سجده ورنه مراده،ياکنايه ده دَمونځ نه. ﴿وَٱقْتَرِب ﴾يعني پدې سره دَ الله ﷻ تقرب حاصله وه. دَابوهريره ﷺنه روايت دي چه اقربُ مايکون العبدُ من ربّه وهو ساجد فاکثروا الدعاء. يعني دَټولونه زيات دَسجدې په حالت کښې انسان الله ﷻته قريب وی.نوسجدې کښې ډيرې دعاگانې کوئ.

| ركوعاتها (۱) | سورة القدر مكيّة | اٰياتها (۵) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دى شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۹۷) وحسب النزول (۲۵)**

نزلت بعدسورة الطارق و قبل الحشر

**ربط** : سورة العلق كښ حكم وؤ دَ تلاوت دَ قرآن، دى سورة كښ عظمت دَقرآن ذكردي چه قرآن لوله، ځكه داعظيم الشان كتاب دې په عظيم الشانه شپه كښ مونږنازل كړيدي.

**شان نزول**:رواياتونوكښ راغلى دى چه نبى اكرم ﷺ دَمخكنوامتونوعمرونوته اوكتل چه ډيرډيرووؤ،اودَدى امت عمرونه كم وؤ،نوكه دوئ په نيك عملونوكښ دَهغوئ برابرې كول غواړي نو نامكنه ده،پدى باندى حضور ﷺ سره غم شو،پدى دا سورة نازل شو،بعضِ رواياتو كښ دى چه نبى اكرم عليه السلام دَبنى اسرائيلودَيوكس تذكره اوكړه چه دَزرومياشتو پورى ئې دَ الله تعالىٰ په لاره كښ جهادكولو،صحابه كرام رضي الله عنهم ورته اوپسخيدل نو الله تعالىٰ دا سورة نازل كړو، يو روايت كښ دى چه حضور ﷺ بنى اسرائيلوكښ دَڅلوروحضراتوتذكره اوكړه،حضرت ايوب عليه السلام، حضرت زكريا عليه السلام،حضرت حزقيل عليه السلام،حضرت يوشع عليه السلام چه اتيا(۸۰)كاله پورى دَالله تعالىٰ په عبادت كښ مشغول وؤ،اودَسترګى دَرپ برابرئ نافرمانى نه وه كړې،پدى صحابه كرام رضي الله عنهم حيران شول نودا سورة نازل شو(روح،قرطبى وغيره).

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّآ اَنۡزَلۡنٰهُ | فِيۡ | لَيۡلَةِ | الۡقَدۡرِ ۖ ﴿١﴾ | وَمَآ | اَدۡرٰىكَ | مَا | لَيۡلَةُ | الۡقَدۡرِ ﴿٢﴾ | |
| بيشكه مونږنازل كړيدې قرآن | په | شپې | دقدركښ | اوڅه | پته | ده | تاته | چه څه ده شپه | دَقدر |
| لَيۡلَةُ | الۡقَدۡرِ | ۙ خَيۡرٌ | مِّنۡ | اَلۡفِ | شَهۡرٍ ﴿٣﴾ | | | | |
| شپه | دَقدرچه | ده،غوره | دې عبادت | دَهغې | زروماشتونه | | | | |

﴿ اِنَّآ اَنۡزَلۡنٰهُ ﴾ دى آياتونو كښ دَقرآنِ مجيد عظمت ذكر كيږى، ضمير منصوب قرآن ته راجع دې،اګر چې ماقبل كښ ئى ذكرصراحتاًنشته دې اوديكښ دَقرآن عظمت شان طرفَ ته اشاره ده،چې دادومره عظيم الشان كتاب دې چې دې دَپاره مرجع ضرورت نشته،بلكه هر

چاپه ذهن کښ حاضر دي مراددنزول نه په ليلة القدر کښ دَلوح محفوظ نه اسمان ددنيا ته نازل دی دفعةً واحدةً، يعنی قرآن پاک دَلوح محفوظ نه ددنيا په اسمان پدی شپه کښ نازل شوې دې ، او بياحسب الضرورت(۲۳)کاله کښ زمکی ته نازل دې،يامراددنزول نه ابتداء دنزول ده يعنی دَقرآن پاک دَنزول ابتداء مونږپه دی شپه کښ کړيده

﴿فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ قدر يا پمعنی دَتقديرسره دې،نودې شپې ته ليلة القدرځکه وائی چه دی کښ تقاديردَمخلوقاتودَيوکال فرشتوته حواله کيږی، يا قدر پمعنی دَعظمت اوشرافت دی، نودې شپې ته ليلة القدرځکه وائی چه څوک پدی شپه کښ نيک عمل کوی هغه عندالله قدرمند اوعزت مندګرځی، ياپدی شپه کښ قدرمند کتاب نازل شويدې،په واسطی دَقدرمنی فرشتی،په قدرمند پيغمبر دَ امت قدرمندلپاره ، ياقدرپمعنی دَتنګ والی دې،ځکه چه زمکه پدی شپه دَملائکودَنزول بوجه تنګه شی(روح المعانی).

﴿ لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ﴾يعنی دَ زرو مياشتو دَ عبادت چه څومره ثواب دې دَهغی نه زيات شب قدر کښ دَ عبادت کولو ثواب دې، هغه زر مياشتی چه شب قدر پکښ نه وی، دَ زر مياشتو نه تقريبًادری اتيا(۸۳)کاله څلورمياشتی جوړيږی.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَنَزَّلُ | الْمَلَٰٓئِكَةُ | وَالرُّوحُ | فِيهَا | بِإِذْنِ | رَبِّهِم | مِّن | كُلِّ | أَمْرٍ | ④ |
| نازليږی | ملائکی | اوجبرئيل امين | پدی کښ | په اجازت | دَرب | خپل،لپاره | دَهرکارمقرر، | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سَلَٰمٌ | هِيَ | حَتَّىٰ | مَطْلَعِ | الْفَجْرِ | ⑤ | |
| داشپه | دَسلامتیٔ | ده،، | ترختلو | دَصباپوری | ده. | |

﴿تَنَزَّلُ الْمَلَٰٓئِكَةُ وَالرُّوحُ ﴾ يعني دادومره مبارکه شپه چه فرشتی اوجبرئيل پدغه شپه دَ اسمان نه زمکی ته راکوزيږی،مؤمنانوباندی سلام کولولپاره اودَهغوئ عبادت کتلولپاره، بعضِ وائی چونکه پدی شپه کښ دَعبادت ديرثواب دې نودوئ هم دَعبادت لپاره را کوزيږی، نو دی کښ ترغيب دې انسان ته دَطاعت.

﴿بِإِذْنِ رَبِّهِم ﴾متعلق دې دَ﴿تَنَزَّلُ﴾پوری،يامحذوف پوری ای متلبسين باذن ربهم،يعنی الله تعالیٰ په امرسره راکوزيږی،دې کښ هم دَدی شپې فضيلت ته اشاره ده.

﴿مِن كُلِّ أَمْرٍ﴾ "من" یا په معنی دَلام تعلیلیه دې. متعلق دې د "تَنَزَّل" پورې. نو مطلب دا دې چه فرشتی دَهغی کارلپاره راکوزیږی چه هغه مقررکړې شوې وی دراتلونکی کال پورې. ب "من" په معنی دَ "باء" دې، ای تنزّل بکلّ امرٍ. مراددا مرنه هرخیراوبرکت دې. یعنی هرخیر اوبرکت خان سره راوړی.

﴿سَلَٰمٌ﴾مصدر دې په معنی دَ سلامة. خبرمقدم دې او﴿هِيَ﴾ مبتداء دې، یعنی دا شپه دَ سلامتیٔ ده دَ هر شر نه، یا داچه ټوله شپه دَملائکودَطرفه په مؤمنانو باندی سلام کیږی.

﴿حَتَّىٰ مَطۡلَعِ ٱلۡفَجۡرِ﴾جارمجرورمتعلق دی په﴿سَلَٰمٌ﴾پورې. غایه ده دَسلامتیٔ. یعنی دَ دې شپې سلامتی ترصباختلوپورې جاری وی، دانه چه دَشپې څه خاصه حصه کښې دابرکتونه وی اوپه څه حصه کښې نه وی،

یاوقف په ﴿سَلَٰمٌ﴾ دې، خبردې دَمبتداء محذوف او﴿هِيَ﴾ مبتدادې. او﴿حَتَّىٰ مَطۡلَعِ ٱلۡفَجۡرِ﴾ خبردې.

نودې سورت کښې دَلیلة القدر فضیلت متعدد وجوهو سره بیان شو:

(۱) دَقرآن نزول پکښې شوې دې.

(۲) استفهام سره "ومآادراک ما لیلة القدر" چې دا دَتفخیم دَپاره دې.

(۳) الله ﷻ ورته زرو شپونه بهتره شپه اوئیل.

(۴) فرشتې پکښې راکوزیږی.

(۵) الله ﷻ ورته سلام وئیلی دې.

(۶) بله داچې مکمل سورت الله ﷻ په قرآن کښې دَدې په مدحه کښې نازل کړو، نو دا یواځې مستقل اوغټ فضیلت دې.

ركوعاتها (١) **سورة البينة مدنية** آياتها ٨

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کوونکی دی شروع کوم

**ترتيبها حسب التسلسل (٩٨) وحسب النزول (١٠٠) دی**

نزلت بعد سورة الطلاق وقبل الحشر

**ربط**: ماقبل سورة کښ دقرآن دعظمت بيان وو دی سورة کښ دکفارو او مشرکانو په عناد شکوه ده. چه دداسی عظيم الشان کتاب نه اعراض کوی.

**خلاصه**: ابتداء کښ داهل کتابو او مشرکانو په عناد شکوه ده. درميان کښ تخويف اخروی دی، آخر کښ بشارت دی (تمت).

لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَالْمُشْرِكِيْنَ مُنْفَكِّيْنَ

نه دی هغه کسان چه کفرئی کړيدی داهل کتابو نه (يهود و نصاری) او مشرکان پريخودونکی (خپل دين لره)

حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ۝١ رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰهِ يَتْلُوْا صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۝٢ فِيْهَا

تردی چه راشی دوئ ته دليل واضحه چه رسول دی دطرفه دالله ﷻ نه، لولی (پدوئ) صحيفی پاکی (قرآن) پدی کښ

كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ۝٣ وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْ بَعْدِ

احکام دی برابر او اختلاف ندې کړې هغه کسانو چه ورکړې شوو ورته کتاب (اهل کتاب) مگر وروستو د دینه

مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ۝٤ وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ

چه راغلو دوئ ته دليل واضح حال دا چه حکم نه وو کړې شوې دوئ ته په توراة، انجيل کښ مگر دا چه عبادت دې کوی دالله ﷻ

مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۙ حُنَفَآءَ وَيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوا الزَّكٰوةَ

چه خالص کونکی به وی الله ﷻ لره ددين مائله به وی (دشرک نه) او قائموی به مونځ اوورکوی به زکوة

وَذَٰلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ

اودا مامورات دين برابردي

﴿ لَمْ يَكُنِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾داشكوه ده دكافرانونه ،چې دوئ جهالت په تورو تيارو كښې پراته وؤ ،نوالله ﷻ عظيم پيغمبرراوليږلو،عظيم الشان كتاب ئې وركړو،اوپاكيزه احكامات اوتعليمات ئې وركړل، نو دوئ باوجود دعلم نه محض د حسد اوعناد په وجه دهغې نه انكار اوكړو.

﴿مُنفَكِّينَ ﴾ اې تاركين كفرهميعنى دوئ ټول په خپل كفر باندې مضبوط وؤ اوهغه ئې نه پريخودلو ، ﴿حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ ٱلْبَيِّنَةُ ﴾تردې چې الله ﷻ پيغمبر اوكتاب ورته راغې نو څنو ايمان راوړلو اوځنې بدبخته بياهم په خپل كفر كښې پراته دي. البينه نه مراد نبى كريم ﷺ دې﴿رَسُولٌ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾دابدل دې د البينه نه. ﴿صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ﴾نه مراد قرآن مجيد دې چې دهرعيب او نقص نه پاک دې ﴿فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ﴾بل وصف دې دقرآن كتب په معنى داحكام سره دې او "قيمة"په معنى د "مستوية" او "محكمة"سره دې يعنى پكښې پاكيزه محكم احكامات دى.

﴿وَمَا تَفَرَّقَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ديكښې دهغه خلقو مذمت بيان دې چې بينه راتلو نه ورستوئى بيا كفركړې دې،چې دوئ خه دعلم باوجود محض حسد اوعناد په وجه انكار اواختلاف كړې دې.

**فائده:** دسورت البينه داابتدائى آياتونه دقرآن پاک دمشكل ترين مقاماتونه دى،ځكه چې دلته دآيت په ظاهر باندې ناقص علم په بنياد څلورسوالات راځي:

(۱)اول داچې ﴿لَمْ يَكُنِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ او﴿وَمَا تَفَرَّقَ ٱلَّذِينَ﴾كښې ظاهر تعارض دې ځكه چې اولنى آيت نه معلوميږى چې دوئ كفر منتهىٰ په "بينة"باندې كيږى او د "بينه"راتلو نه ورستو بيا كفر نشته،ځكه چې دلته﴿حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ ﴾ذكر دې، او حتىٰ دخپل مابعد دمقابل نه

مغائرت تقاضه کوی .اوبل طرف ته د ﴿وَمَا تَفَرَّقَ ٱلَّذِينَ﴾ نه ښه په صراحت سره معلومیږی.چې دوئ "بينة" راتلو نه ورستو کفر کړې دې.

(۲) ﴿حَتَّىٰ تَأۡتِيَهُمُ ٱلۡبَيِّنَةُ﴾کښې حتى نه ورستو ان ناصبه مقدردې.اودافعل مضارع په مستقبل سره خاص کوی،نودينه خوداثابتيږی چې دَ "بينة" ظهور به مستقبل کښې کيږی. حالانکه دې مصداق خونبی کريم ﷺ دې او دَ هغوئ بعثت خو شوې وؤ

(۳) اول آيت کښې دَمشرکينو اواهل کتابو دواړو ذکر دې چې ﴿مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ وَٱلۡمُشۡرِكِينَ﴾او دويم آيت کښې صرف دَاهل کتابو ذکردې،چې ﴿وَمَا تَفَرَّقَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ﴾، دې څه وجه ده؟

(۴) څلورم داچې اهل کتابو خودَنبی ﷺ بعثت نه مخکښې اختلاف کړې وؤ لکه دَقرآن په ډيرو آياتونو کښې دَدې ذکر شوې دې،لکه: وآتيناهم بينٰت من الامر، فما اختلفو الا من بعد ما جاءهم العلم بغياً بينهم (الزخرف) فما اختلف فيه الا الذين اوتوه من بعد ماجاءهم البينٰت( البقره) نوبيادَدې څه مطلب دې چې رسول کريم ﷺ راتلونه ورستو دوئ اختلاف اوکړو؟
**مفسرينو** دَخپل خپل ذوق دَدې **مختلف توجيهات** کړې دی:

(۱)څنی مفسرينو داتوجيه کړې ده چې"حتی"في الجمله مغائرت تقاضه کوی اوهغه ئې دلته ثابت کړې دې، چې دَ "بينة"راتلو نه مخکښې ټول په کفر کښې وؤ،او "بينة"راتلو نه ورستو بيا داحال نه وؤ، بلکه څنو ايمان راوړلو اوځنې کفر باندې قائم پاتې شو،اوکوم چې کفر باندې قائم پاتې شوې وؤ ، نو دَ هغوئ دَ کفر سبب په ومااتفرق الذين اوتوا الکتاب کښې بيان شو. نو دې توجيه مطابق دَڅلورو نکاتو جواب داسی کيږی:

(۱)اول آيت دَدې تقاضه هډو سره کوی نه چې بينه راتلو نه ورستو دوئ ټولو ايمان راوړې دې،بلکه في الجمله دَمغائرت تقاضه کوی چې څنو ايمان راوړلو اوځنونه راوړلو.

(۲)دويمې نکتې جواب دا شو چې حتى تاتيهم مجازاپه معنی دَ حتى اتتهم، سره دې.

(۳)دريمې نکتې جواب داشوچې دلته اهل کتابو به طور خاص تذکره اوشوه اومشرکين - پکښې ضمنا شامل دی، څکه دوئ اهل علم وؤ چې دوئ باوجود دَعلم نه اختلاف اوکړو

نومشرکین چې هغوئ جهلاوؤ. اوامور سماویه کښې خصوصاً ددوئ متبعین وؤ نو هغوئ خو به پطریق اولی دَدې مخالفت کړې وی

(۴)څلورمې نکتې جواب دادې چې قرآن باندې ایمان راوړل یوطرف نه دَدین حق اتباع وه نوبل طرف ته دَدوئ سابقه اختلافاتوخاتمه وه. نوچې دوئ ایمان رانه وړلو نو دوئ دهغې اختلافاتوتجدید اوکړو ورستو دَدینه چې دَهغې خاتمې اسباب موجود شوی وؤ

(۲)مفسرینو یوجماعت دَدې توجیه داسې کړې ده چې "لم یکن الذین کفروا"کښې دَ کفارو دعوه نقل ده به طور حکایت،اوپه "وما تفرق الذین اوتوالکتٰب"کښې دَدې ابطال دې. تفصیل ئې دادې چې اولنی آیت کښې الله ﷻ دَدوئ دعوی ،دوئ باندې دتعریض په طور ،نقل کوی . چې داهغه خلق دی چې نبی آخر الزمان بعثت نه مخکښې ئې دا لافې کولې چې کچرته دَده بعثت اوشو ، نومونږ به کفر پریګدو اوپه ده به ایمان راوړو اوپه دویم آیت ومانفرق الذین کښې دَدې ابطال اوشو چې کله نبی آخرالزمان مبعوث شو نوایمان راوړل خو پریګده دوئ ورسره حسد اوعناد شروع کړو دَمشرکینواواهل کتابو داقول اوپه دې ردقرآن کښې مختلف ځائونو کښې ذکر دې مثلاً مشرکینو په باره کښې راځی واقسموا باالله جهد ایمانهم لئن جائهم نذیر لیکونن اهد من احدی الامم،فلما جائهم نذیر مازاد هم الا نفورا ، اواهل کتابو په باره کښې سورت البقره کښې راغلی دی چې وکانوا من قبل یستفتحون علی الذین کفروا،فلما جاءهم ماعرفوا کفروابه .

دې توجیه مطابق داولنو دوه سوالونو جواب دا شو چې دلته اولنې آیت به طور حکایت دَ هغوئ کلام معنی نقل ده،نودې اعتبار سره ئې ورستو کلام سره تعارض هم نه راځی،ځکه چې قائلین بدل دی اومستقبل زمانه مراداغستلو کښې هم څه خرابی نشته.اوباقی دوؤ سوالونو جواب هغه دې چې مخکښې توجیه کښې مذکور دې.

(۳)ابن عاشور رحمه الله هم دلته یو عمده توجیه کړیده چې دَهغې حاصل دادې چې لم یکن الذین او ومانفرق الذین دوه جداجدا مستقل ردونه دی،اول کښې رد په مشرکینو اواهل کتابو دواړو باندې دې ، او دیکښې دَ"بینة" نه مراد بنی کریم ﷺ دې، او دا دَ دوئ قول وعمل کښې دَ تضاد بیان دَپاره به طور حکایت نقل شوې دې، اومقصود ترینه توبیخ دې په ایمان نه راوړلو باندې، چې تاسو هغه خلق نه یئ چې وئیل مو مونږ ایمان نه راوړو ترسو چې مونږ ته "بینة" نه

وی راغلی؟اوچې بینه راغله نو بیا ئی ولې مخالفت کوئ؟ اودوېم آیت کښې خاص په اهل کتابو باندې رد دې اودیکښې دبینة نه مراد حضرت عیسی ﷺ دې. او مقصود ترینه د دوئ ضد و عناد بیان دې.چې دوئ ته دبینه مخکښې هم بینه راغلې وه.دحضرت عیسی دبعثت وعده یهودوسره کړې شوې وه . خوچې کله مبعوث شو نوباوجود دعلم محض دعناد په بنیاد دوئ اختلاف اوکړو دې توجیه مطابق دځلوروسوالاتو جوابات بالکل واضح دی تفصیل ته ئې ضرورت نشته. في الاية توجيهات أُخَر تركناها مخافة التطويل

﴿وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا ﴾دیکښې اهل کتابو یهودو او نصاری عنادوضاحت دې چې دوئ ته مونږ تورات اوانجیل کښې بس دااحکامات ورکړی وو چې یودالله ﷻ عبادت کوئ. هغه سره څوک شریک مه ګرځوئ. مونځ قائم کوئ. اوزکات ورکوئ.اوقرآن مجید کښې هم ددې حکم دې اونبی کریم ﷺ هم ددې تعلیم ورکوی.دې باجود چې دوئ ایمان نه راوړی نو داصرف عناد دې.﴿مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾خالص اوصرف دالله ﷻ طاعت اوعبادت به کوئ. ﴿ حُنَفَآءَ﴾ جمع دحنیف ده.یعنی مائله دټولو عقائدوباطله ځنه.

﴿وَذَٰلِكَ﴾اشاره "الا" نه بعد مذکور اوامرو ته ده. ﴿ دِينُ ٱلۡقَيِّمَةِ ﴾ القيمة نه مراد شديدالاستقامة دې اودا صفت دې دموصوف محذوف اي دين الملة القيمة او دين الكتب القيمة او يا اضافت شويدې دموصوف خپل صفت ته اي الدين القيم او تاء په القيمة کښې یاد پاره د مبالغی ده اویادپاره دتانیث ده، خو"الدین" په معنی "الملة"سره دې.

| |
|---|
| إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ وَٱلۡمُشۡرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ |
| بې شکه هغه کسان چه کفرئې کړیدې داهل کتابونه اومشرکانونه دوئ به په اوردجهنم کښې وی همیشه به وی |
| فِيهَآۚ أُوْلَٰٓئِكَ هُمۡ شَرُّ ٱلۡبَرِيَّةِ ۞ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ |
| په هغې کښې.داخلق هم دوئ بدترین خلق دی په مخلوقاتوکښې.بې شکه هغه کسان چه ایمان ئې راوړیدې |
| وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ أُوْلَٰٓئِكَ هُمۡ خَيۡرُ ٱلۡبَرِيَّةِ ۞ جَزَآؤُهُمۡ عِندَ رَبِّهِمۡ |
| اوعملونه ئې کړیدی نیک داخلق هم دوئ بهترین خلق دی په مخلوقاتوکښې.بدله ددوئ په نیزدرب ددوئ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَنّٰتُ | عَدْنٍ | تَجْرِيْ | مِنْ | تَحْتِهَا | الْأَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَآ | أَبَدًا | رَضِيَ اللّٰهُ |
| جنتونه دهميشه اوسانې دي | چه بهيږي | به لاندې دهغې | | نه نهرونه، | | هميشه به وي | به هغې كښې | هميشه | راضي به وي الله ﷻ |
| عَنْهُمْ | وَرَضُوْا | عَنْهُ | ط | ذٰلِكَ | لِمَنْ | خَشِيَ | رَبَّهٗ ⑧ | | |
| ددوئ نه | اودوئ به راضي وي | دهغه نه، | | دادرجه دهغه | چاده چه | بريدلې وي | درب خپل نه | | |

﴿إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ تخويف اخروي دې ،يهودونصارىٰ وُاومشركينوته چه دوئ به هميشه په اوردَجهنم كښې وي، اودوئ په ټولومخلوقاتوكښې بدترين مخلوق دى.

﴿إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ بشارت اُخروي دې مؤمنانوته،چه ددوئ اُخروي ژوندبه په ښه نعمتونوكښې وي، اوپه ټولومخلوقاتوكښې غوره مخلوق دى.

﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ﴾ يعنى الله ﷻ ددوئ نه راضي دې اوددوئ دَالله نه راضي دي. ﴿ذٰلِكَ﴾ يعنى دامذكوره جزااورضادَالله ﷻ دَهغه چاده چه دَخپل رب نه هرحال كښې يريږي.

| ركوعاتها (١) | سورة الزلزال مدنية | اياتها (٨) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٩٩) وحسب النزول (٩٣)**

نزلت بعد سورة النساء و قبل الحديد

**ربط**: ماقبل سورة کښې شکوه وه په عناد دَ کفارو، دی سورة کښې ورته تخويف اخروی دي.

| |
|---|
| اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا ۙ﴿١﴾ وَاَخْرَجَتِ الْاَرْضُ اَثْقَالَهَا ۙ﴿٢﴾ وَقَالَ |
| کله چه اوخوزولې شي زمکه(نه سخت)خوزولودَی سره.اورااوباسي زمکه بوجونه خپل اواوبه وائي |
| الْاِنْسَانُ مَا لَهَا ۚ﴿٣﴾ يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخْبَارَهَا ۙ﴿٤﴾ بِاَنَّ رَبَّكَ اَوْحٰى لَهَا ۗ﴿٥﴾ |
| انسان څه شويدی دی لره.پدغه ورځ به بيانوی خبرونه خپل.په سبب دَدی چه رب ستاحکم کړيدي ديته |
| يَوْمَئِذٍ يَّصْدُرُ النَّاسُ اَشْتَاتًا ۙ لِّيُرَوْا اَعْمَالَهُمْ ۗ﴿٦﴾ |
| پدغه ورځ به راځي خلق ډلی ډلی.دَدی دپاره چه اووينی بدله دَعملونوخپلو |
| فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ ۗ﴿٧﴾ وَمَنْ يَّعْمَلْ |
| پس هغه څوک چه عمل کوی په اندازه دَيوی ذری نيک،نواوبه ئی وينی ثواب دَهغې اوڅوک چه عمل کوی |
| مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ ۠﴿٨﴾ |
| په اندازه دَيوی ذری بد،نواوبه ئی وينی(سزادَهغې) |

﴿اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ﴾ مراد دَزلزلې نه په نيز دَبعض مفسرينو هغه ده چه نفخه اولی په وخت به راځي، چه دی سره به عمارتونه، غرونه وغيره هيڅ پاتې نشي، هموارميدان به شي. اوځنې مفسرين فرمائي چې دينه مراد نفخه ثانيه ده، چې دينه ورستو مړی ژوندی کولې کيږي.

﴿زِلْزَالَهَا ﴾مفعول مطلق دي.دپاره دتاكيد. اي زلزالها اللائق هابعنى داسي به ئى اجرفوى خنكه چې پدې ورځ ددې جرقول مناسب وى لكه عرب وائى. اكرم العالم اكرامهيعنى دعالم شيان شان اكرام اوكه

﴿ وَأَخْرَجَتِ ٱلْأَرْضُ أَثْقَالَهَا ﴾جمع دثقل ده.مرادورنه مړى دى اودغه شان نورى دفينى. دا به دنفحه ثانيه په وخت كبن وى.مسلم شريف حديث مفهوم دې چې زمكه به خپلې تكړې دسرواوسپينو زروباهر ته راوباسى قاتل به راشى اوبه وائى.چې اوه.مادې دجهى نه قتل كړې ؤو قطع رحمى كونكې به راشى اوبه وائى چې اوه؛مادې دوجهى نه قطع رحمى كړې وه.غل به راشى هغه به داسى وائى بيابه ټول داخزانې داسى پريګدى اوڅه به ترينه نه اخلى

﴿وَقَالَ ٱلْإِنسَـٰنُ ﴾يعنى انسان به چې دامنظر اګورى نوحيران به پاتى شى اوډير په تعجب سره به وائى چې دې زمكې له څه چل شوې دې؟

﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ ﴾يعنى پدغه ورځ به زمكه خپلى خبرى خلقوته بيانوى.انسان چه څه عمل كړې وى كه خيروى كه شرهغه ټول به ښكاره كوى،الله ﷻ به ورته حقيقةً دخبركولو طاقت وركړى

په حديث كښ دى دابوهريره ﷺنه روايت دې چه حضور ﷺ داآيت كريمه﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا ﴾اولوستلو ،بيائى اوفرمائيل آياتاسوته پته ده چه څه دى خبرونه ددى، صحابؤعرض اوكړوچه الله ورسوله اعلم،دينه پس ئى اوفرمائيل چه ددى خبرى دادى چه ګواهى به وركوى په هرسړى اوښځى باندى چه څه ئى درباندى كړې وى،وائى به چه دا دا كار ئي په دى په دى ورځى كړې وؤ(ترمذى)

﴿بِأَنَّ رَبَّكَ أَوْحَىٰ لَهَا ﴾ باء سببيه ده،يعنى زمكه به هرڅه ځكه بيانوى چه الله ﷻ به ورته حكم كړې وى.

﴿يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ ٱلنَّاسُ﴾دینه مراد یادَقبرونو نه موقف اومیدان حشرطرف ته راتلل دی، نودې صورت کښې لیروا اعمالهم نه مراد اعمال نامې لیدل دی،یاحساب کتاب نه فارغیدلو نه ورستو تګ مراد دې اودې صورت کښې لیروا اعمالهم نه مراد داعمالونتیجه لیدل دی.

﴿فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾تفصیل دې،دَ﴿ لِّيُرَوْا﴾چه چاذره برابرنیکی کړی وی دَهغی بدله به ورته هم میلاویږی اوچاچه ګناه کړې وی ذری برابردَهغی بدله به هم ورته ورکولې کیږی.

دلته داسوال نشی واریدلې چې داآیت عام اومطلق دې چې چاڅه خیراوشرکړې وی،هغې بدله به ورته هم هغه شان میلاویږی حالانکه مؤمن که ګناه اوکړی اودَهغې نه توبه اوباسی نوبیاخوورته دهغې سزا نه میلاویږی،دغه شان کافر که ډیرې نیکئ اوکړی خوآخرت کښې ورته دهغې ثواب اواجر نه میلاویږی؟جواب دادې چې داپه هغه صورت کښې دې چې خیراوشر آخرت ته پاتې هم وی،اومذکوره صورتونو کښې خیراوشر پاتې نه دې ځکه چې ګناه په توبه کولو اودَحق تلافی اواداٸیګی سره ختم شو ،اوپاتې نشو نوځنګه وزله دې سزاورکړې شی.دغه شان دکافر ایمان نه راوړلو په وجه دَهغه نیک اعمال حبط شو اوآخرت ته پاتې نشو نوځنګه درله پرې اجر ورکړې شی«بیان القرآن»

| آیاتها (۱۱) | سورة العاديات مكيّة | ركوعاتها (۱) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۰) وحسب النزول (۱۴۰) دي**

نزلت بعد العصر و قبل الكوثر

**ربط**: ماقبل سورة کښې تخويف أخروى وو په عناد د کفاروباندى، دی سورة کښې شکوه ده په ظلم دَ کفاروباندی، چه څومره دَ الله ﷻ ناشکر گزاره دى.

**خلاصه**: ابتداء نه آيت (۶) پورى بيان دَمرض دې، چه انسان دَخپل پروردگارناشکره اونافرمانه دې، آيت (۷، ۸) بيان دَسبب دَمرض دې چه دَده دَناشکرئ سبب مال ودولت سره محبت دې، بیاترآخره علاج مرض دې، (تمت).

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْعٰدِيٰتِ | ضَبْحًا | ۙفَالْمُوْرِيٰتِ | قَدْحًا | ۙ۲ |

قسم دې په هغه اسونوتيززغليدونکوپه هوکيدلوسره. بیاقسم دې په هغه اسونو چې بسرکی اوچتونکی دی په خپووهلو سره

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَالْمُغِيْرٰتِ | صُبْحًا | ۙفَاَثَرْنَ | بِهٖ | نَقْعًا | ۙفَوَسَطْنَ |

بیاقسم دې په هغه آسونو چې حمله کونکی وی په سحر کښې بیا پورته کوی پدې منډووهلوسره دوړه. پس مینځ کښې

بِهٖ جَمْعًا ۙ۵

ورننوځی پدغه وخت کښې په جمعي (لښکر) دَدشمن کښې.

﴿وَالْعٰدِيٰتِ ضَبْحًا﴾ دادرې قسمونه دی په آسونو اودهغې مختلفو صفاتو باندې دَپاره دَاستشهاد په دې خبرې چې انسان دَخپل رب ډیر ناشکره دې.

﴿وَالْعٰدِيٰتِ﴾ دا اول قسم دې دَ "عدو" نه مشتق دې منډې اوتيز زغليدو ته وائی، او موصوف ئی محذوف دې چې هغه "الخيول" دې، يعنى قسم دې په هغه آسونو چې تيز زغليدونکی دې. ﴿ضَبْحًا﴾ "ضبح" هغه آواز ته وائی چې منډې په وخت کښې دَ اس سینې نه

را اوخي، او ' اح اح' کوي

﴿ فَٱلۡمُورِيَٰتِ ﴾ دويم قسم دې ايراء نه مأخوذ دې، اور اوباسلو او بسرکي اوچتولو ته واڼي، ﴿قَدۡحٗا﴾ وهلو او موږلو ته واڼي، يعني هغه اسونه چه کاڼړي جنه زمکي باندي تيزڼي سره تلو وخت کښې خپلې سوي (نوکونه) کاڼړوسره جنګوي. نو دَ هغې نه اوراو بسرکي پورته کيږي.

﴿فَٱلۡمُغِيرَٰتِ صُبۡحٗا ﴾ دريم قسم دې چې حمله اوغارت ګري کوي په وخت دَسحر کښې. اودَ سحر وخت تخصيص دَ عربو رواج په وجه اوشو، ځکه چې عربو عادت وؤ چه دَ سهار په وخت کښې به ئې په دشمن حمله کوله، چه دشمن ته پته اونه لږي.

﴿فَأَثَرۡنَ بِهِۦ﴾دَ ' اثارة' نه مشتق دې اوچتولو اوپورته کولو ته واڼي، ﴿نَقۡعٗا﴾غبار ته واڼي .﴿ فَوَسَطۡنَ بِهِۦ ﴾وسط په مينځ کښې ورننوتلو ته واڼي ﴿جَمۡعًا ﴾نه مراد دَدشمن جماعت دې يعني دا آسونه غبار اوچت کړي اودَدشمن په صفونو مينځ کښې ورننوځي.

﴿بِهِۦ ﴾ضمير مرجع په باره کښې دواړو آيتونو کښې څو احتماله دي:

(۱)دواړو آيتونو کښې ئې مرجع 'عدو' يعني منډه ده، يعني خپلو منډو سره دوړه اوچتوي او په منډه منډه دَدشمن په صفونو ورننوځي.

(۲)دواړو آيتونو کښې دَضمير مرجع ﴿صُبۡحٗا﴾دې يعني سحر وخت باوجود ددينه چې پرينه وريدلې وي اوخاوره ناسته وي، خو دا آسونه په دومره تيز رفتارئ سره زغلي چې پدې وخت کښې ګردې اوچت کړي اوددشمن په صفونوورننوځي.

(۳)اول ضمير 'عدو' ته راجع دې دويم 'نقعا' ته راجع دې يعني منډوسره دوړې ګردې اوچتې کړي اوبيا په دې ګردو کښې په دشمن حمله اوکړي.

(۴)اول ضمير 'ضبحا' ته او دويم 'نقعا' ته راجع دې، يعني سحر کښې ګردې جوړې کړي او بيا په دې ګردو کښې په دشمن حمله اوکړي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | الْإِنْسَانَ | لِرَبِّهِ | لَكَنُودٌ ۝ وَإِنَّهُ | عَلَىٰ | ذَٰلِكَ | لَشَهِيدٌ ۝ | |
| بې شکه | انسان | دخپل رب | خامخاناشکره دې اوبې شکه | انسان | پخپلې ناشکرئ | خامخاګواه دې | |
| وَإِنَّهُ | لِحُبِّ | الْخَيْرِ | لَشَدِيدٌ ۝ | | | | |
| اوبې شکه | دې | په | محبت | دمال | کښې | ډيرسخت | دې |

﴿إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ﴾ جواب قسم دې، **او قسم اوجواب قسم کښې مناسبت** دا دې چې ديکښې زجر دې انسان ته ، چې ده له داس په شان څناورنه عبرت اخستل پکاردی، چه هغه ته دَهغه مجازی مالک وابنه او دانه ورکوی، نودې څومره دَخپل مالک وفادار دې، چه کوم طرف ته ئې بوځی په تيزئ سره ځی، او دَډيرې منډې په وجه هوکيږی، اودَدشمن په جمع کښې ورننوځی ، خپل ځان قربانوی، حالانکه الله ﷻ دانسان حقيقي مالک دې اوډير زيات احسانات ئې پرې کړې دی اومسلسل کوی، خودې باوجود دې دَ هغه حکم منلوته تيار نه دې ؟!

دَ "کنود" په لغت عربی کښې ډيرې معنی بيان شوی دی(۱) نعمت ناشکری کونکې (۲)بخيل (۳) ګناه ګار (۴)اويو موقوف حديث کښې دَ"کنود" تفسير داسې بيان شوې دې الكنود الذي يمنع رفده وينزل وحده ويضرب عبده(الادب المفرد)يعنی "کنود" هغه کس دې چې چاله څه عطيه نه ورکوی ، يواځې خوراک کوی، بل ځان سره نه شريک کوی، اوخپل خادم نوکر، اوغلام وهی، دې وجهې نه بعض مفسرينو ئې معنی انتهائی نافرمان سره کړې ده، چې دادې تولو معنو لره جامع ده.

﴿وَإِنَّهُۥ عَلَىٰ ذَٰلِكَ﴾ ای علی کنوده، يعنی انسان پخپلې ناشکرئ باندی ګواه دې، ياپه لسانِ حال سره چه دَده حال دَناشکرئ دې، ياپه لسانِ قال سره خوپه آخرت کښې

﴿وَإِنَّهُۥ لِحُبِّ ٱلْخَيْرِ﴾ دادَبيمارئ سبب بيان دې چې هغه حب مال دې "انه" کښې ضمير منصوب انسان ته راجع دې "الخير" نه مراد مال دې لکه بل آيت کښې دَخير اطلاق په مال شوې دې ان ترک خيرا الوصية(البقره)او﴿لَشَدِيدٌ﴾ په معنی بخيل سره دې ،نودې تقدير باندې "لام" په "لحب الخير" کښې لام تعليل دې يعنی انسان دَمال محبت په وجه ډير بخيل اوکنجوس دې ،

حقوق نه اداکوی،یا "شدید" خپلی ظاهری معنی کښ دې،یعنی قوی اوسخت،او دې تقدیر باندې لام په معنی دَ "في" سره دې،یعنی انسان دَمال په محبت کښ ډیر پوخ اوکلک دې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَفَلَا | يَعْلَمُ | اِذَا | بُعْثِرَ | مَا | فِي | الْقُبُوْرِ ﴿٩﴾ | وَحُصِّلَ | مَا |
| آیادې نه پوهیږی پدی چه کله راپورته کړی شی هغه مړی چه په قبرونوکښ دی.اوښکاره کړیشی هغه پټی خبری | | | | | | | | |
| فِي | الصُّدُوْرِ ﴿١٠﴾ | اِنَّ | رَبَّهُمْ | بِهِمْ | يَوْمَئِذٍ | لَّخَبِيْرٌ ﴿١١﴾ | | |
| چه | په زړونوکښ دی.بی شکه | رب | دَدوئ | پدوئ | باندی | پدغه ورځ | خامخاخبرداردې | |

﴿أَفَلَا يَعْلَمُ إِذَا بُعْثِرَ﴾دې آیاتونو کښ دَبیماریٔ علاج بیان دې،چې هغه دَ آخرت یادول دې، یعنی انسان له هروخت دَدې خبرې استحضار پکاردې چې څمارب څمادَهر حالت نه خبر دې، څه به مرکیږم ،بیابه ژوندې کیږم،اوخپل رب مخکښ ته به پیش کیږم،هغهٔ به څمانه دَزرې زرې حساب اخلی.

﴿وحصل﴾پمعنی دَ اظهار او دَ جمع دې، یعنی دَزړه اعمال به جمع اوظاهر کړی اوحساب به ترینه واغستې شی نوظاهری اعمال په څه کښ دی!؟ ﴿إِنَّ رَبَّهُم بِهِمْ﴾یعنی الله ﷻ دربار به دَفیصلې لګیدلې ئی اودَهر بنده هر هرعمل به ورته پته وی اودَهغې مطابق به فیصله کوی.

| آیاتها (۱۱) | سورة القارعة مكيّة | ركوعاتها (۱) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دې شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۱۰۱) وحسب النزول (۳۰)**

- نزلت بعدسورة قريش وقبل القيامة.

**ربط**: ماقبل سورة کښې شکوه وه کافرانو ته په ناشکرئ دَهغوئ. دې سورة کښې ورته تخویف اخروی دې چه گرم اوردَجهنم ته به داخلیږي.

| |
|---|
| اَلْقَارِعَةُ ۝١ مَا الْقَارِعَةُ ۝٢ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْقَارِعَةُ ۝٣ يَوْمَ |
| هغه ټکونکې څیز، څه څیزدې دغه ټونکې، څه پته ده تاته چې څه دې داټکونکې په هغه ورځې |
| يَكُوْنُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوْثِ ۝٤ وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ ۝٥ |
| چه شی به ټول خلق په شان پتنګانوخواره واره اوشی به غرونه پشان دَرنګ داری وړئ جداجداکړې شوی |

﴿اَلْقَارِعَةُ ۝ مَا اَلْقَارِعَةُ﴾ قارعه نوم دې په نومونودَقیامت کښې، قارعه ورته ځکه وائی چه زړونه دَخلقوبه پخپلو اهوالوسره ټکوئ، بیدار وی، دَعذاب الهی نه به کافران خبره وی ، دَ قرآن دا اسلوب دَ دې حادثی هولناکئ طرف ته اشاره کوی چې داخه داسې واقعه نه ده چې سرې پرې سرسری تیر شی، بلکه ډیر هیبتناکه اوخوفناکه حادثه ده لهذا غورسره ئې احوال واوره.

﴿كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ﴾ په دغه ورځ به انسانان خواره واره پتنګانو په شان شی، پتنګانو سره تشبیه دَډیرو جهونه ورکړې شوې ده: (۱) کثرت کښې (۲) انتشارکښې (۳) بې بسئ اوضعف کښې (۴) بې اختیاره یوطرف ته تلو کښې.

﴿كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ﴾ عهن وړئ ته وائی، اوبعضو عهن رنګینې وړی سره خاص کړې دې. «المنفوش» په معنی دَ المتفرق اجزاء سره دې یعنی جداجداکړې شوې به وی، غرونو تشبیه وړئ سره دَخوو جهی نه ورکړې شوې ده: (۱) رنګینئ کښې ځکه چې غرونه هم

مختلف رنګونو والاوی.(۲)سپک والی کښ(۳)تفرق دااجزؤو کښ.یعنی دا مضبوط اوکلک غرونه به داسی ذرې ذرې شی لکه چې وړئ چاجد اجدا کړی وی.

| |
|---|
| فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ ﴿٦﴾ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴿٧﴾ وَأَمَّا مَنْ |
| پس هغه خوک چه دروندشی تول دنیکوعملونودهغه نوهغه به وی په ژوندمزیدارکښ اوهغه خوک |
| خَفَّتْ مَوَازِينُهُ ﴿٨﴾ فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ ﴿٩﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ ﴿١٠﴾ نَارٌ حَامِيَةٌ ﴿١١﴾ |
| چه سپک شی تول دنیکوعملونودهغه نواستونګه دده به هاویه کښ وی اوڅه پته ده تاته چه څه سی دې هغه هاویه اورګرم دې دجهنم |

﴿فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ﴾بشارت اخروی دې چه دقیامت په ورځ دچادنیکوعملونوتله درنه شی نوهغه په خوشحاله ژوندکښ وی، آیت سره متعلق څه مباحث سورة الاعراف(۸)کښ تیردی.﴿وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ﴾ تخویف اُخروی دې﴿فَأُمُّهُ﴾(۱)"ام"یاخپلی ظاهری معنی کښ دې او "هاویه" پمعنی د"هالکة" سره دې ، اي فامه هالکة ، چونکه موردبچی په درد درد یږی اوپه غم نی کړیږی، اودغه شان دهغه په خوشحالئ خوشحالیږی اوراحت اوسرور ورته میلاویږی، نو دې وجهې نه اهل عربو اسلوب دادې چې هغوئ دیوکس غم درد اوخوشحالئ بیان اوتعبیر د مور په درد اوخوشحالئ سره کوی، کلام عرب کښ د دې ډیرمثالونه دی لکه یو اعرابی «دیهاتی» دامام نه په مونځ کښ دا آیت واوریدلو واتخذالله ابراهیم خلیلا(الله ﷻ ابراهیم خپل خلیل اوګرځو) نو ده اوئی وئیل لقد اقرت عین ام ابراهیم (اوس دابراهیم مورسترګی یخې شوی) دغه شان چاته مصیبت اوتکلیف اورسی نوعرب وائی: هوت امه ، نودلته هم مراد ددې سری هلاکت دی اوتباهی ده خو تعبیر ترینه کنایتاً دمورپه هلاکت اوتباهئ سره شوې دې.

(۲)او داهم کیدیشی چې"ام" نه مجازی معنی "ماوی" او ټهکانه مراد وی، او"هاویه" نه مراد جهنم دې، "هاویه"اصل کښ مخ په کته ډوب ځائ ته وائی.اوداهم چونکه داووه زمکو لاندې ډوب دې نوځکه ورته "هاویه"وائی . بعضِ وائی"ام"معنی"دماغ ده،یعنی دماغ به ئې په هاویه کښ وی ځکه دې به ورته سردلاندی غورځولې کیږی(روح)

﴿مَا هِيَهْ﴾"ها" پکښ دسکتی لپاره ده په وقف کښ، اوپه حالت دوصل کښ ساقطه کیږی.

| رکوعاتها (۱) | سورة التكاثر مكيّة | آياتها (۸) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۲) وحسب النزول (۱۶) دي**

نزلت بعد الكوثر و قبل الماعون.

**ربط**: ماقبل سورتونو کښې تخویفات وؤاوس دې سورة نه دَسورة الکوثر پورې بیا دَتزهید من الدنیا مضمون ذکر کیږي.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلْهٰكُمُ | التَّكَاثُرُ ۝ | حَتّٰى | زُرْتُمُ | الْمَقَابِرَ ۝ | كَلَّا | سَوْفَ | تَعْلَمُوْنَ ۝ | |
| غافله کړئ | تاسو | فخر په ډیروالی تردې | چه لاړئ | قبرونوته هرگزداسی | مکوئ زرده | چه تاسوبه | پوهه شئ | |
| ثُمَّ | كَلَّا | سَوْفَ | تَعْلَمُوْنَ ۝ | كَلَّا | لَوْ | تَعْلَمُوْنَ | عِلْمَ | |
| بیاهرگزداسی | مکوئ زرده | چه تاسوبه | پوهه شئ. چرته هم داسې نه وه | پکار | . کچرته وې | تاسو ته | علم ، علم | |
| الْيَقِيْنِ ۝ | لَتَرَوُنَّ | الْجَحِيْمَ ۝ | ثُمَّ | لَتَرَوُنَّهَا | عَيْنَ | الْيَقِيْنِ ۝ | | |
| د یقینی امرنو داسې به نه کولې) | قسم دې چه خامخابه وینئ | تاسو جهنم | بیابه | خامخاوینئ جهنم | په لیدلو یقینی | ؤسره | | |
| ثُمَّ | لَتُسْئَلُنَّ | يَوْمَئِذٍ | عَنِ | النَّعِيْمِ ۝ | | | | |
| بیابه | خامخاتپوس کیږی | ستاسونه | پدغه ورځ | په باره | دَنعمتونوکښې | | | |

﴿أَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ دَدنیا طلب انسان په غفلت کښې واچوی. خپله حقیقی کامیابی په دیکښې گنړی، اوټوله زندگی ئې مال ،دولت،جاه اومنصب دَطلب نه عبارت وی، حتی چې مړ شی، او هر څه ترې پاتې شی، اوقبر ته لاړ شی، یوحدیث کښې راځی چې نبی کریم ﷺ داآیت تلاوت کړو اوبیائی اوفرمائیل: يقول ابن آدم مالي مالي،وهل لك من مالك الا ما اكلت فافنيت اولبست فابليت اوتصدقت فامضيت یعنی بنی آدم وائی چې: ځمامال، ځمامال،دَده مال

خه دي؟ بس دادي چي اوخوړو نوفنائي کړو، واچولو نو زوړ ئي کړو. يا ئي صدقه کړو نو هغه ئي خان ذپاره مخکښ اوليږلو(مسلم، مسند احمد)

﴿حَتَّىٰ زُرۡتُمُ ٱلۡمَقَابِرَ﴾تردي چي مړه شوئ اوقبرونه ته لاړئ.حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د دي آيت نه لطيف استدلال په بعث بعدالموت کړي دي،ميمون بن مهران رحمه الله فرمائي چي خه عمر بن عبدالعزيز رحمه الله سره ناست ووم، نو دا آياتونه ئي تلاوت کړل، الهاكم التكاثر حتى زرتم المقابر، بيا لگ ساعت خاموشه شو،او بيا ئي اوفرمائيل، ياميمون ماارى المقابر الازيارة و ما للزائر بد من ان يرجع الى منزله ، يعني اي ميمون قبر يو زيارت گاه دي او زيارت کونکي به خامخا خپل اصل منزل ته ترينه خي.(ابن کثير)دي وجهي نه بعضوعلماؤو ليکلي دي چي قبرباندي "آخري آرام گاه" ليکل صحيح خبره نه ده

﴿كَلَّا﴾ردعيه دي،يعني دنيا دفخر اوقابل توجه شي نه دي اوآخرت د،هيرولو امر نه دي

﴿سَوۡفَ تَعۡلَمُونَ﴾قبرته تلو سره به په تاسو داحقيقت کولاؤ شي﴿ثُمَّ كَلَّا﴾بياردع ده چي دنيا دفخر اوقابل توجه امر نه دي اوآخرت دغفلت والا امر نه دي﴿سَوۡفَ تَعۡلَمُونَ﴾قبرته تللو سره به دادرته معلوم شي.

﴿كَلَّا﴾دريم خلي ردعه ده چي گورئ دنيا قابل فخر اوتوجه شي نه دي اوآخرت دهيرولو امر نه دي چي تاسوئي هير وئ.

﴿لَوۡ تَعۡلَمُونَ﴾ دا بيان دي د ردعي ،اوعلم اليقين نه مراد علم الامر المتيقن دي ،چي هغه آخرت دي ،يعني کچرته تاسو ته د هغه يقيني راتلونکي امر علم وي ، نو بيا به تاسو خپله دا فيصله کړي وي چي واقعي دنيا د فخر شي نه دي ، بلکه د آخرت غم پکار دي،او ياد "علم اليقين"نه مراد علم قطعي دي چي دلائل قطعيه نه انسان ته حاصل شي،يعني کچرته تاسو د لائل قطعيه اتباع کړي وي نو تاسو به په دي حقيقت پوهه شوي وي ،

﴿لَتَرَوُنَّ ٱلۡجَحِيمَ﴾ديکښ دماقبل مضمون مزيد تشديد اوتخويف اخروى دي چي په دلائلو قطعيو باندي هم ستاسويقين نه راځي،چي کله ورته حاضر شئ نوبيا به درته خپله يقين راشي اوهيڅ انکارگنجائش به درسره نه وي.

﴿ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا﴾ تکرار دپاره دتاکید دي﴿عَيْنَ الْيَقِينِ﴾نه مراد رؤیت مشاهد دي

﴿ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ﴾خطاب یا کفاروته دي چه الله ﷻ دنعمتونو ناشکری کوی په سبب دَ کفر یا خطاب عام دي دنعمتونونه مراد دَالله ﷻ ټول نعمتونه دی لکه صحت، فراغت، امن، خوراک څکاک، کور، سورای، بی بی، وغیره.

| رکوعاتها (۱) | سورة العصرمكيّة | آياتها (۳) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دی شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۲۰۳) وحسب النزول (۱۳)**

نزلت بعدالانشراح و قبل العاديات

**ربط**: دی سورة کښې هم تزهيد من الدنيادي بطورترقی.او دَ کاميابئ څلوراصول ذکر کيږي. يعنی مال او اولاد په زياتوالی فخر مه کوئ،تاريخ دَزمانی پدی ګواه دي چه انسان په لويه خساره کښې دي، مګر هغه چه دا صفات پکښې پيدا شی ايمان، عمل صالح، ايمان محنت، اعمالو محنت.

جمعوا لكنوز لانفسهم وتركوها كما هيه   الاّ قبوراً دارِسة فيهاعظامٌ بالية

| | | | | | | | |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| وَالۡعَصۡرِ ﴿١﴾ | اِنَّ | الۡاِنۡسَانَ | لَفِيۡ | خُسۡرٍ ﴿٢﴾ | اِلَّا | الَّذِيۡنَ | اٰمَنُوۡا |
| قسم دي په زمانی.چه بی شکه انسان خامخاپه تاوان کښې دي.مګرهغه کسان په تاوان کښې ندی چه مؤمنان دی | | | | | | | |
| وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ | وَتَوَاصَوۡا | بِالۡحَقِّ ۙ | وَتَوَاصَوۡا | بِالصَّبۡرِ ﴿٣﴾ | | |
| اوعملونه ئی کړيدی نيک.اووصيت کوی يوبل ته دَايمان.اووصيت کوی يوبل ته دَصبر. | | | | | | | |

﴿ وَالۡعَصۡرِ ﴾وخت دَمازيګرورنه مراددي،يادَمازيګرمونځ.بعضِ وائی زمانه دَحيات دَحضورﷺورنه مرادده،اولی داده چه مطلق زمانه ورنه مراد ده. قسم برائی استشهاد دي يعنی تاريخ انسانی په دی ګواه دي،چه انسان په نقصان کښې دي،چه خپل قيمتی عمر او سرمايه دَ عمرپه فانی څيزکښې خرچ کوی،مال جمع کوی او فخرپری کوی.

﴿اِلَّا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا ﴾اول صفت دکاميابئ دي،چه ايمان ئی راوړي وی،دويم داچه ﴿وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ﴾دريم﴿وَتَوَاصَوۡا بِالۡحَقِّ ﴾صاحب دَجلالين دَ حق تفسيرپه ايمان سره کړيدي،يعنی دَايمان او يقين محنت کوی،څلورم﴿وَتَوَاصَوۡا بِالصَّبۡرِ ﴾يعنی دَاعمالو محنت کوی،دَمعاصيونه

منع كوي، امربالمعروف نهى عن المنكر كوي ، دَصبرنه مراددري واړه اقسام دَصبردي. صبرعن المعصية، صبرعلى الطاعات، صبرعلى المصائب.

حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي چې انسانيت دکاميابئ اوهدايت دَپاره صرف دا سورت هم کافي دي، حافظ ابن قيم رحمه الله په خپل کتاب مفتاح دارالسعاده کښ دَدې قول ډير عمده انداز سره تشريح کړيده، فرمائي چې کمال ته رسيدلو دَپاره څلور مراحل دي:

(۱) حق پيژندل

(۲) حق باندې عمل کول

(۳) دَحق تعليم اوتبليغ کول.

(۴) بيا په دې درې واړو امورو باندې استقامت اختيارول،

نو ((الذين آمنوا)) کښ اولې مرحلې بيان دې، ((وعملوا الصٰلحٰت)) کښ دَدېمې مرحلې بيان دې، ((تواصوبالحق)) کښ دَدريمې مرحلې بيان دې، او ((وتواصوا بالصبر)) کښ دآخرى مرحلې بيان دې.

| ركوعاتها (۱) | سورة الهمزة مكيّة | آياتها (۹) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۴) وحسب النزول (۳۲)**

نزلت بعد القيامة و قبل المرسلات

**ربط**: ماقبل سورة کښې تزهيد من الدنيا بيان وو، دې سورة کښې مال جمع کونکو او مال باندې اعتماد کونکو ته تخويف أخروي دې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيْلٌ | لِّكُلِّ | هُمَزَةٍ | لُّمَزَةٍ ۙ﴿۱﴾ | الَّذِيْ | جَمَعَ | مَالًا | وَّعَدَّدَهٗ ﴿۲﴾ |
| هلاکت دې لپاره د هرېښې شاه عيب ويونکې مخامخ عيب ويونکي هغه چه جمع کوي مال او شماری ئې | | | | | | | |
| يَحْسَبُ | اَنَّ | مَالَهٗۤ | اَخْلَدَهٗ ﴿۳﴾ | | | | |
| آياګمان کوي دې داچه مال دده به هميشه ژوندې اوساتی ده لره | | | | | | | |
| كَلَّا | لَيُنْۢبَذَنَّ | فِي | الْحُطَمَةِ ﴿۴﴾ | وَمَاۤ | اَدْرٰىكَ | مَا | الْحُطَمَةُ ﴿۵﴾ |
| هرګزنۍ نشي ساتلې، قسم دې خامخا وبه غورځولې شي په حطمه کښې څه پته ده تاته چه څه څيزدې حطمه | | | | | | | |
| نَارُ | اللّٰهِ | الْمُوْقَدَةُ ۙ﴿۶﴾ | الَّتِيْ | تَطَّلِعُ | عَلَى | الْاَفْـِٕدَةِ ﴿۷﴾ | اِنَّهَا عَلَيْهِمْ |
| داأور د الله دې بل کړې شويدې په امرد الله هغه أورچه رسيږي به زړونو د جهنميانو ته بې شکه داأور به پدوئ | | | | | | | |
| مُّؤْصَدَةٌ ﴿۸﴾ | فِيْ | عَمَدٍ | مُّمَدَّدَةٍ ﴿۹﴾ | | | | |
| بندکړې شوې وي. په ستنو اوږدو اوږدو کښې. | | | | | | | |

﴿ وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ ﴾ "همزة" او "لمزة" بروزن "فُعَلَة" د مبالغې صيغې دی، اي كثير الهمز و اللمز، او دينه مراد هغه خلق دی چې د بل تحقير کوي او عيبونه ئې بيانوي، علماؤ "همزه" او "لمزه" په باره کښې ډير اقوال ذکر کړي دي:

(١)خنی فرمائی چې همزة هغه چه پشی شاه عیب بیانوی. لمزة هغه دې چه مخامخ طعنه ورکوی(٢) بعض بالعکس وائی،(٣)خنی وائی همزة هغه دې چه په سترگو اولاسونو اشارو سره عیب بیانوی او لمزة هغه دې چه ژبی سره عیب بیانوی.دی نه علاوه نوراقوال هم پکښ شته چې حاصل ئی بس دادې چی دَبل تحقیر اوسپکاوی کول

﴿ٱلَّذِى جَمَعَ مَالاً ﴾بدل کل دې ماقبل نه،چه مال جمع کوی،اودَډیرمحبت پوجه ئی هروختی شماری،نفقات واجبه ورنه اداکوی.

﴿يَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُۥٓ ﴾دده طرزعمل نه داسې معلومیږی لکه چې دَده خیال داوی چې مال به دې همیشه دَپاره باقی ساتی.

﴿كَلَّا﴾ردعیه دې،یعنی هرگزبه ورته مال دَمرگ نه امان ورنکړی﴿لَيُنۢبَذَنَّ ﴾ جواب قسم دې دَمقدرای والله لینبذنّ.﴿ٱلْحُطَمَةِ ﴾ دَجهنم نوم دې، د حطام نه ماخوذ دې، چوره چوره کولو او زرې زرې کولو ته وائی،نو دیته هم حطمۃکه وائی چې داجهنم په دې انسان له هډوکی زرې زرې کړی.

﴿نَارُ ٱللَّهِ ﴾داجواب دې دَ "وما ادراک ماالحمطه"، او اضافت دَ نار "الله" ته دَپاره دَ تهویل دې چې داهغه هولناک اوردې چې الله ﷻ بل کړې دې.

﴿ٱلْمُوقَدَةُ ﴾صفت دې دَنار اودیکښ هم دَاوور هولناکئ بیان دې چې دوئ راتلو نه مخکښ اوپه جکم دَالله ﷻ سره بل کړې شوې دې.

﴿ٱلَّتِى تَطَّلِعُ عَلَى ٱلْأَفْـِٔدَةِ ﴾دویم صفت دې دَنار اودیکښ هم دَاورهولناکی بیان دې تطلع یا په معنی ختلوسره دې چې دااوربه دومره سخت وی چې لگیدو سره به ئی زړه ته اورسی،اویا په معنی دَعلم اواطلاع سره دې، یعنی دا اور به دَ زړونو نه گناه اوجرم پته اواندازه لگوی اوبیا به په هغه کس باندې هومره سختئ سره مسلط کیږی.

﴿إِنَّهَا عَلَيْهِم مُّؤْصَدَةٌ﴾دیکښ مزید تهویل دې یعنی دې اور کښ واچولې شی او دروازې به پرې بندکړې شی چرته به تختیدلې نشی.﴿فِى عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍۭ ﴾ عمد جمع دَعمودیا عماد ده

ستنې ته وائی ، ممددةپه معنی دطوَالْ سره دي، او في په معنی د باء سره دي، اوتقدير دَ آيت به داسی وی مؤصدة ابوابها باعمدة ممدودةيعنی جهنم دروازې به اوګده اوګدو اوسپنو سره کلکی بندې کړې شوې وی دوئ به ئی دَخلاصولو طاقت نه لری یا فی خپلې ظرفيت معنی کښ دی، يعنی دوئ په دَپائپ په شان اوګدواوګدو ستنوکښ اچولې شوې وی.اوهغې کښ به وربانده ی او رېليږي،اويوطرف نه بل طرف نه په ددې خوله بنده وی ، نعوذبالله منها

بهرحال داسخت عذاب په درې قسم مذموم صفاتوباندې دې.

(۱)په ژبې دَخلقو عيب بيانول.

(۲)په عمل سره دَخلقو عيب بيانول.

(۳)حب مال اوحرص.

| ركوعاتها (۱) | سورة الفيل مكيّة | آياتها (۵) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۵) وحسب النزول (۱۹)**

نزلت بعد سورة الكافرون وقبل الفلق

**ربط**: ماقبل سورة كښې تخويف أخروى وو په مال جمع كولو فخر كولو باندې، دې سورة كښې دَتخويف دنيوى نمونه ذكر كيږي، چه اصحاب الفيل دَدنيا په مال مغروره شول، دَايمان او توحيد مركز ختمولو كوشش ئې كولو، الله ﷻ پخپله هلاك كړل

| | | | | | | | |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| اَلَمْ | تَرَ | كَيْفَ | فَعَلَ | رَبُّكَ | بِاَصْحٰبِ | الْفِيْلِ ۞ اَلَمْ | يَجْعَلْ كَيْدَهُمْ |
| آياته نه ئى | خبرچه | څنګه | كاركړې | ووَرب | ستادَ | خاوندانودَهاتيانوسره، آيانه ئى | ووګرځولې تدبيردَهغوئ |
| فِيْ | تَضْلِيْلٍ ۞ | وَّاَرْسَلَ | عَلَيْهِمْ | طَيْرًا | اَبَابِيْلَ ۞ | | |
| په | بيكارئ كښې،ناكامئ كښې | اوليږلى ئى | ووپه | هغوئ | مارغان دلې دلې | | |
| تَرْمِيْهِمْ | بِحِجَارَةٍ مِّنْ سِجِّيْلٍ ۞ | فَجَعَلَهُمْ | كَعَصْفٍ | مَّاْكُوْلٍ ۞ | | | |
| چه ويشتل به ئى هغوئ | په كانړوچې په اوركښې پاخه شوى وو | پس اوئ ګرځول | په شان دَګياه | خوړلې شوى | | | |

﴿ اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ ﴾ دادَتخويف دنيوى نمونه ده ﴿بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ﴾ نه مراد ابرهه اودَهغه لښكردي، رؤيت نه مراد رؤيت قلبى دې، كنايه ده دَعلم نه، استفهام تقريرى دې، يعنى تامعلومه ده چه الله ﷻ اصحاب الفيل سره څنګه كاراوكړو، داواقعه چونكه په تواترسره حضور ﷺ ته رارسيدلې وه نوځكه ئې ورته علم وو، جمهور روائى چه دَحضور ﷺ ولادت په كال داواقعه شويده، پنځوس ورځې مخكښې، داواقعه دَحضور ﷺ دَبعثت لپاره توطئه اوتمهيدوو چه ديته ارهاص وائى.

اصحاب الفيل مختصره واقعه داده چه دَيمن حاكم (ګورنر) ابرهه دَحبشى بادشاه خوشالولو لپاره په صنعاء كښې يوه لويه ګرجا (عبادت خانه) جوړه كړه، اودا اعلان ئې اوكړو چه

خلق دي خانه کعبې په ځائې عبادت اوحج عمرې لپاره دلته راځي.عرب اګرچه بُت پرست وو.
ليکن دَخانه کعبه محبت دَهغوئ په زړونو کښې پروت وو، نو دا کار دوئ ته ډير بد ښکاره
شو، قريشونه يو کس راغي، دَشپې ئې په هغه عبادت خانې کښې اودس ماتې اوکړو،پليته ئې
کړه، ابرهه ته اطلاع اوشوه،نوډيرغصه شو،قسم ئې اوکړوچه څه به خانه کعبه ورانوم.بادشاه
نه ئې اجازت او مدد واخستو، او څه هاتيان ئې ځان سره کړل، راروان شو، په لاره کښې ورسره
دوه درې ځايه عربوجنګ هم اوکړو، ليکن شکست ورته اوشو. ځکه چه الله ﷻ دَبيت الله
شريف کرامت،عظمت ښکاره کولو، او دَ ابرهه رسوا کولو، کله چې دې مکې ته قريب راغې،
نو هلته دَ اهل مکه ؤ اوښان څريدل، هغه ئې اونيول. چه پکښې دَعبدالمطلب دوه سوه اوښان
ؤ، ابرهه يو سفيرمکې ته را اوليږلو چه سرداران دَ قريش دَ خپل مقصد نه خبرکړي،سفيرئې
مکې ته راغې، نو خلقو ورته عبدالمطلب اوښودلو چه هغه سره ميلاؤشه،عبدالمطلب سره
ميلاؤ شو، خپل مقصد ئې ورته بيان کړو،عبدالمطلب ورته اووئيل چه والله مونږنه جنګ
کوؤ، او نه ئې کولې شو، دا بيت الله دې،که الله ﷻ ئې منع کوی، نومنع به ئې کړي،که نوی
نو مونږ ئې دفاع نشوکولې، سفيردې دَځان سره ابرهه خواته بوتللو. عبدالمطلب ليدلوسره
ابرهه دَخپل تخت نه راکوزشو،په پوزې ورسره کيناستلو. دَترجمان په ذريعه ئې ورنه تپوس
اوکړو،ستاڅه حاجت دې،عبدالمطلب ورته اووئيل چه ماته خپل اوښان واپس کړه،ابرهه
اووئيل ستادَوجاهت په وجه ماته ډيرلوئ سړې ګنړلې،څه خوستاسوخانه کعبه ورانولولپاره
راغلې يم،هغې باره کښې مانه څه مطالبه نه کوې،اوخپل اوښان غواړې، عبدالمطلب اووئيل:
دَ اوښانومالک څه يم، اودَخانه کعبې رب شته دې، هغه به ئې حفاظت کوی،ابرهه اووئيل
هغه مانشي منع کولې.

ابرهه عبدالمطلب ته اوښان واپس کړل،عبدالمطلب راغې دَخانه کعبې غلاف ئې
اونيولو، دعاګانې ئې اوکړې دَحفاظت، بياسره دَقوم نه دَغرونو سر ته لاړل،ابرهه اودَهغه
لښکر چه راروان شو، او وادئ محسرته چه را اورسيدل، نوالله ﷻ وروباندې لښکر دَ مرغانو
را اوليږل،چه دَهغوئ سره په پنجواومخوکوکښې واړه واړه دَچنړې يامسورو برابرکانړې وؤ،
لښکر به ئې پرې ويشتلو،هرې يوې سره به درې درې کانړې وؤ،چاباندې چه به کانړې لږيدلو،
نودلاندې حصه نه به ئې اووتلو اوذرې ذرې به شو.(ابن کثيربالاختصار).

﴿وَأَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا أَبَابِيلَ ﴾ ابابيل اي جماعات یعنی ډلې ډلې. لفظ دَجمع دې، مفردنی نشته دې، بعضِ وائی دَ ابّالة جمع ده، بعضِ وائی دَ ابول جمع ده. لکه دَعجول جمع عجاجیل ده، بعضِ وائی دَ ابیل جمع ده، لکه دَسکین جمع سکاکین ده، بعضِ وائی دَ ابّال جمع ده، لکه دَمفتاح جمع مفاتیح ده (جلالین)

﴿بِحِجَارَةٍ مِّن سِجِّيلٍ ﴾ یعنی دَسجیل کانړی ﴿سِجِّيلٍ ﴾ دَ سنګ او ګل نه معرّب دې، سنګ کانړی ته وائی، اوګل ختی ته، دَختونه واړه واړه کانړی جوړشی اوپه اُورکښې پاخه شی هغی ته ﴿سِجِّيلٍ ﴾ وائی (روح المعانی) دا کانړی هم په جهنم اورکښې پاخه شوی وو.

﴿فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّأْكُولٍ ﴾ (١) عصف هغه پانړی ته وائی چې چینجی ورته لګیدلې وی اوهغه ئې دننه بالکل خوړلې وی اویوجال غوندې ئې په سطح باندې پاتې وی (٢) یادینه مراد ګیاه اوبوس دی چې څناور ئې اوخوری، بیائې غوشیانو شکل کښې رااوباسی بیا غوشې وچ شی اواجزا ئې اخوادیخوا منتشر شی، دې وخت کښې چې دااجزا څنګه ښکاری دغه شان الله ﷻ دَدوئ حال کړې وو.

| | | |
|---|---|---|
| ركوعاتها (۱) | سورة القريش مكيّة | آياتها (۴) |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۶) وحسب النزول (۲۹)**

نزلت بعد سورة التين و قبل القارعة

**ربط** : ددې سورة موضوع تزهيدمن الدنياده،چه دَشمنان دَتوحيداوبيت الله مې برباد کړل، قريشوته مې تجارتي سفرونونعمت ورکړو،خوتاسولره هم مناسب ده چه دَرب دَبيت الله بندګي اوکړئ،مال محبت کښې رانده کيږئ مه.

| |
|---|
| لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ ۙ﴿۱﴾ اٖلٰفِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَآءِ وَالصَّيْفِ ۚ﴿۲﴾ |
| دَوجې دَعادت کيدلو دَ قريشو . عادت کيدل دَ هغوئ دَ تجارتي سفر دَ ژمي او دَ ګرمۍ سره |
| فَلْيَعْبُدُوْا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ ۙ﴿۳﴾ الَّذِيْٓ اَطْعَمَهُمْ مِّنْ جُوْعٍ ۙ |
| نوپکارده چه عبادت اوکړی صرف دَرب دَدې خانه کعبې.هغه رب چه خوراک ئې ورکړودوئ ته دلوږې نه |
| وَّاٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ ﴿۴﴾ |
| اوامن ئې ورته ورکړودَخوف نه |

﴿ لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ ﴾داتزهيدمن الدنيا دې قريشو ته خاص طورباندې،چې الله ﷻ تاسوله دَ تجارت اسباب او مواقع درکړې دی ، ګرمئ کښې شام ته سفر کوئ اويخنئ کښې يمن ته، حالانکه مکه خوشې بيابان وؤ، نه پکښې څه تجارتي مرکز او بازار وو، اونه څه کروندې بندوبست، او بيا ئې ستاسو دا تجارتي سفرونه پرامن ګرځولي دی،دَبيت الحرام دَتقدس اوحرمت په وجه درته څوک هيڅ هم نه وائي(حالانکه داقتل وغارت او دَ داکوزمانه وه)، لهذا کوم رب چې درله داماال درکړې دې اودَبيت الله په وجه ئې عزت درکړې دې،دَهغه عبادت کوئ، اومال ودولت په وجه ،ددې بيت رب دَاحکاماتو نه سر کشئ مه کوئ.

لام: په "لايلاف" کښې لام اجليه دې، او جارمجرورمتعلق باره کښې دَمفسرينو ډيرزيات اقوال دی، بې تکلفه قول دادې چې دامتعلق دې دَمابعد "فليعبدو" سره.

﴿ إِۦلَٰفِهِمْ ﴾بدل دې دَ﴿ لِإِيلَٰفِ قُرَيْشٍ ﴾ نه﴿رِحْلَةَ ﴾مفعول به دې.

﴿ أَطْعَمَهُم مِّن جُوعٍ ﴾يعنی دَدی تجارتی سفرپه سبب دَدوئ لوږه ختمه کړه، اومکې کښې تجارتی مراکز قائم شول او اسباب اوضروريات زندګی ورته مهيا شول.

﴿ وَءَامَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ ﴾اوهر قسم خوف نه ورله امن ورکړو .تجارتی سفرونوکښې دوئ ته څوک څه نه وائی،مکه ئی حرم ګرځولې دې،څوک پرې حمله اوقتل وقتال پکښې نه کوی، کما في قوله تعالى:اولم يروا انا جعلنا حرما امنا ويتخطف الناس من حولهم

| ركوعاتها (۱) | سورة الماعون مكيّة | آیاتها (۷) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دی سروع کوم | | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۷) وحسب النزول (۱۷)**

نزلت بعد سورة التكاثر وقبل الكافرون

**ربط**: دی سورة کښې هم تزهید من الدنیا ذکر کیږی.

| |
|---|
| أَرَءَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ ۝ فَذَٰلِكَ الَّذِي يَدُعُّ الْيَتِيمَ ۝ وَلَا يَحُضُّ |
| آیاته وینی هغه کافرچه تکذیب کوی دقیامت نو داهغه دې چه رټی یتیم لره. اوترغیب نه ورکوی |
| عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ۝ فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ۝ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ |
| په طعام دمسکین پس هلاکت دې لپاره دهغه مونځ گزاروچه هغوئ دمونځ خپل نه |
| سَاهُونَ ۝ الَّذِينَ هُمْ يُرَاءُونَ ۝ وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ ۝ |
| غافله وی،پرواه نی نکوی، دوئ هغه دی چه ریاکوی اومنع کوی معمولی شئ هم |

﴿ أَرَءَيْتَ الَّذِي ﴾ رؤیت نه مراد رؤیت قلبی دې،چې آیاځه تاته اونه ښایم دآخرت تکذیب کونکي،آیاځه تاته معلومات درنکړم دآخرت نه دانکار کونکی؟.استفهام دلته دپاره دتشویق دې

﴿ فَذَٰلِكَ الَّذِي يَدُعُّ الْيَتِيمَ ﴾ دَ آخرت نه منکر دَ دنیا بنده اوغلام وی، چې دمخلوقاتو همدردی ئی به زړه کښې نه وی،چاسره څه احسان نه کوی،حتی چې دیتیم په شان قابل رحم انسان هم دخپل درگاه نه شړی.

﴿ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ﴾ یعنی خپله خوهسې هم چاله څه نه ورکوی چې بل کس له هم ددې ترغیب نه ورکوی.

﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ﴾ داورته زجر دي چې دادنيا غلامان اوبندګان دي هلاک شی، دَ دوئ هيڅ کار په خلوص باندې مبنی نه وی، خپل ذاتی او دنيوی مفاداتو تحت هر يو کار کوی، دَ منافقت نه ډک وی ، دَمونځ په شان عظيم الشان عبادت اول خو کوی نه ، اوکه کچرته ئی اوکړی ، نو هم دځه غرض په بنيادئی کوی، دَزړه نه غافله اوبل ته خودونکی وی.

﴿وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ﴾ اودَحرض ئی داحال دې چې معمولی غوندې شې ترينه هم تيرې نه وی، "الماعون" دکوردَضرورت معمولی سامان ته وائی، لکه کتوئ، ماچس، مالګه، وغيره.

| ركوعاتها (۱) | سورة الكوثر مكيّة | آياتها (۳) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۸) وحسب النزول (۱۵)**

**نزلت بعد العاديات و قبل التكاثر**

**ربط**: دی سورة تعلق دَسورة الاعلی دَدوارومضمونوسره دې،څکه چه دی کښې دَبدنی عبادت حکم دې چه﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ﴾نوداتوحیددې اودَمالی عبادت حکم دې چه﴿وَانْحَرْ﴾، نو دا تزهید من الدنیادې(تمت).

| إِنَّآ أَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ ۞ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ۞ إِنَّ شَانِئَكَ |
|---|
| بی شکه مونږدرکړیدې تاته ډیرخیر،حوض کوثرنوته مونځ کوه لپاره دَخپل رب اوقربانی کوه،بی شکه دَشمن ستا |
| هُوَ الْأَبْتَرُ ۞ |
| هغه به میرات وی. |

﴿ إِنَّآ أَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ﴾حضورﷺته تسلی ده،اوزجردې کافرانوته،دَحضورﷺ صاحبزاده قاسم وفات شو،کافرانواووئیل چه دې ابتر دې،میرات یعنی مقطوع النسل دې ، (نعوذبالله)عاص بن وائل اووئیل چه دې پریدئ،دې ابتردې ، چه کله وفات شی ، نو نوم نشان به ئی ختم شی، مونږ به ورنه خلاص شو،دی طعن باندی حضورﷺته ډیر تکلیف اوشو، نو دا سورة نازل شو،چه پکښې ورته تسلی ده چه ته دکافرانوپدی خبره مه خفه کیږه،مونږتاته ډیرخیر درکړیدې،روحانی اولادیعنی امت مو دومره درکړیدې چه دَقیامت په ورځ به ئی دَحوض کوثرنه سیرابه کوې.

﴿ الْكَوْثَرَ﴾ عربې کښې خیر کثیر ته وائی،دلته ترینه څه مراد دې؟نومفسرینودې په باره کښې دَشلونه پاڅه اقوال دی خوهغې کښې دوه قوله زیات غوره معلومیږی.

(۱)دینه مراد حوض کوثر دې ،حضرت انس ﷺ فرمائی چې یو خل نبی کریم ﷺ مونږ سره وو ،چې دیکښې نبی کریم ﷺ اوده غوندې شولو ،بیائی سرمبارک رااوچت کړو اومسکې وو ،مونږ ورته اوئیل اې دَالله رسول!ولې خاندې؟نواوئی فرمائیل چې اوس ماباندې سورت نازل شو ،اوبیائی مکمل داسورت تلاوت کړو ،بیائی تپوس اوکړو چې تاسو کوثر پیژنئ. مونږ ورته اوونیلو:الله ﷻ اودهغه رسول دَدې نه ښه خبر دې؟اوئی فرمائیل چې دایو نهر دې. چې څما رب ماسره دَدې وعده کړې ده، پدیکښې ډیر خیر دې، دایو حوض دې چې څما امت به ترینه قیامت په ورځ اوبه څکی،لوښی به ئی دَستورو په شماروی ..الخ

(۲)بعض روایاتو نه معلومیږی چې دابه جنت کښې یونهر وی، لکه بخاری شریف روایت کښې دی چې نبی کریم ﷺ فرمائی چې معراج په موقع باندې یو نهر خواه له راغلم، چې هغې دواړو طرفونو کنارو باندې غوندې "قبه نما" ملغرې لګیدلې وې. نو ما تپوس اوکړو چې اې جبرئیل!داڅه دی؟نوهغه اوئیل چې داکوثر دې.

مفسرینو دې دواړو اقوالو کښې تطبیق داسې کړې دې چې دانهربه جنت کښې هم وی اودهغې اوبه ، به میدان حشر حوض ته راغورځیږی.

(۳)بل قول دادې چې دینه مراد مطلقا خیر کثیر دې، نو دیکښې بیا حوض کوثر هم راغې ، نبوت، قرآن اور هر قسم خیر پکښې راغلو .داقول امام بخاری رحمه الله دَحضرت ابن عباس ﷺ نه نقل کړې دې.

﴿ فَصَلِّ لِرَبِّكَ ﴾یعنی دَدی خیرکثیرنعمت په شکریه کښې خپل رب په حضورکښې مونځ کوه،دیکښې نفی دَشرك فی العبادة ده﴿وَٱنْحَرْ ﴾ نحر اوښ ذبح کولوته وائی،دلته ورنه مراد مطلقاًقربانی کول دی،دیکښې نفی دَشرك فعلی ده،اوترغیب دې دَتزهید في الدنیا﴿ إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ ٱلْأَبْتَرُ ﴾یعنی ستا دشمن به ابتروی،دَهرخیرنه به محروم وی.

| ركوعاتها (۱) | سورة الكافرون مكيّة | آياتها (۶) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان ډیر رحم کونکې دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۰۹) وحسب النزول (۱۸)**

نزلت بعدالماعون وقبل الفيل

**ربط**: دې سورت کښې هم دَسورت الاعلى اول مضمون يعنى توحيد اونفى شرک بيان دې ، او دې سره سره دَ منکرينو دَ مقاطعې (بائيکاټ) اعلان هم دې،مفسرين وائى چه قريشودَحضورﷺ نه مطالبه اوکړه چه ته زمونږدَدين تابعدارى اوکړه مونږبه ستاددين اتباع اوکړو، ته زمونږ دَ آلهه ؤ يو کال عبادت کوه ، مونږ به ستا دَ معبود يو کال عبادت کوؤ. نو حضورﷺورته اوفرمائيل معاذالله يعنى دَالله ﷻنه پناه غواړم دَدينه چه غيرورسره شريک کړم، کافرانوورته اووئيل: زمونږ دَبعضو الهؤاستلام اوکړه.مونږبه ستادَمعبودتصديق اوعبادت اوکړو ،نوداسورة نازل شو، حضورﷺ مسجدحرام ته لاړو،دَ کافرانوسردارانوپه مجمع کښې ئې داسورة اولوستلو ،نوهغوئې نااميده شول(روح المعانى).

| |
|---|
| قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ﴿۱﴾ لَآ اَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ ﴿۲﴾ وَلَآ اَنْتُمْ |
| اوايه اې کافرانونه کوم څه اوس هم عبادت دَهغه معبودانوباطلوچه تاسونې عبادت کوئ اونه تاسو |
| عٰبِدُوْنَ مَآ اَعْبُدُ ﴿۳﴾ وَلَآ اَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدْتُّمْ ﴿۴﴾ |
| عبادت کونکی يئ دَهغه ذات چه څه ئې عبادت کوم.اونه يم څهاننده هم عبادت کونکې ستاسودَمعبودانو. |
| وَلَآ اَنْتُمْ عٰبِدُوْنَ مَآ اَعْبُدُ ﴿۵﴾ لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ ﴿۶﴾ |
| اونه تاسوعبادت کونکی يئ دَهغه ذات چه څه ئې عبادت کوم.ستاسولپاره ستاسودين دې اوځمالپاره ځمادين دې |

﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾مرادورنه کفارقريش دى خاص، الله ﷻته معلومه وه چه دوئ ايمان نه راوړى نوځکه خپل پيغمبرته دَهغوئ سره دَمقاطعى اعلان کوى.

﴿ لَآ أَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُونَ ﴾ کچری **څوک سوال اوکړی** چې مشرکينو خو الله ﷻ هم معبود گڼړلو . نو بيا ولا اعبدماتعبدون وئيل څنګه صحيح دی څکه چې ماعام ده اوديکښ خو الله ﷻ هم راخی ؟ **جواب دا دې** چه دلته مراد دَ معبودانو من حيث المجموعه ده، يعنی ستاسو چې کوم مجموعی معبودين دی، څه هغه مجموعه معبودين نه ګڼړم اونه دَهغې عبادت کوم ، نو دينه دانه لازميږی چې انفراداً هم په هغوئ کښ څوک معبود نه وی، بالفاظ ديګر و مختصر دا چی دا رفع دَ ايجاب کلی ده،سلبِ کلی نه دې،څکه دامعنی نده چه څه ستاسو دَ هيڅ معبودعبادت نه کوم،دامعنیٰ فاسده ده څکه چه دَدوئ معبودانوکښ الله ﷻ هم دې، بلکه رفع دَايجاب کلی ده،يعنی څه ستاسودَمجموعی اوکل معبودان چه دی،دَهغی عبادت نه کوم.

﴿وَلَآ أَنتُمۡ عَٰبِدُونَ مَآ أَعۡبُدُ ﴾يعنی څه چه دکوم ذات تن تنهاعبادت کوم تاسودَهغې نه کوئ،عبادت خپل په هغه پوری نه منحصرکوئ.

﴿وَلَآ أَنَا۠ عَابِدٞ مَّا عَبَدتُّمۡ﴾تکراريا تاکيدلپاره دې چه دکفاروطمع قطع شی،يااول کښ نفی دَعبادت ده حالأاودويم کښ نفی ده مآلأيعنی په آئنده کښ هم ئی عبادت نه کوم،يااول کښ نفی ده دَعبادت دَمشرکانودَمعبودانو،دويم کښ نفی ده دَطريقی دَهغوئ،يعنی دَغيرالله عبادت هم نه کوم،دَيوذات عبادت کوم،اوعبادت دَمشرکانوپه طريقی هم نه کوم بلکه څمادَعبادت طريقه هم دَخداوندی موافق ده.

﴿لَكُمۡ دِينُكُمۡ وَلِيَ دِينِ ﴾يعنی ستاسوچه کوم دين دې چه شرک دې هغه تاسوپوری محصور دې،ستاسو چه کومه طمع ده چه څه به هم شرک اوکړم دانشي کيدلې،اوځمادين ماپوری محصور دې،څکه الله ﷻ ستاسو دَ عملونو په وجه ستاسو په زړونو مهر دَ ضلالت لګولې دې، توحيد نه قبلوئ (روح). يا دَ "دين" نه مراد بدله او جزاء ده ، يعنی تاسو ته به ستاسو دَ عملونو بدله ميلاويږی،ماته به څمادَعملونو.

| ركوعاتها (١) | سورة النصر مدنيّة | آياتها (٣) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

**حسب التسلسل (١١٠) دي اودنزول په اعتبارسره دټولونه اخرى سورة دي، سورة التوبه نه ورستونازل دي**

**ربط** : ماقبل سورة كښې اعلان دمقاطعى وؤ، دى سورة كښې بطورِانعام اعلان دفتح دي، سورة ته "سورة التوديع" هم وائي ځکه پدى كښې دحضورﷺ دوفات كيدلو اودنيانه رخصت كيدلواشارةً ذكردي، په يوروايت كښې دى چه كله داسورة نازل شونوحضورﷺ خپله لور فاطمه رضي الله عنها اوغوښتله، ورته ئي اوفرمائيل: چه ماته ځمادمرګ خبرراكړې شويدي نوهغى اوجړل، حضورﷺ بيا ورته اوفرمائيل: چه ځمادمرګ نه بعد ځما په اهل كښې ټولونه اول به ته ماسره ملاويږې، يعنى وفات كيږې به، نوبيائى اوخاندل (روح بحواله بيهقى) قتاده رحمه الله وائى چه حضورﷺ ددى سورة دنزول نه ورستوصرف دوه كاله ژوندې وؤبياوفات شو.

| |
| --- |
| اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ ﴿١﴾ وَرَاَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ |
| كله چه راشى مدد دالله اوفتح (دمكى) اوته اووينى خلق چه داخليږى به په دين دالله جل جلاله كښې |
| اَفْوَاجًا ﴿٢﴾ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا ﴿٣﴾ |
| ډلې ډلې نوته پاكى بيانوه په حمد د رب خپل اوبخنه ورنه غواړه، بې شكه الله باربار توبه قبلونكې دې |

﴿ اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ ﴾ "اذا" دلته دپاره دماضى دې اوكه مستقبل؟ داموقوف دې په دې چې داسورت دفتح مكه نه مخكښې نازل شوې اوكه ورستو؟ دې په باره كښې دمفسرينو دواړه قوله موجود دى، كه دفتح مكې نه مخكښې نازل شوې وى لكه بعض ضعيف رواياتو كښې ددې ذكرراغلې دې، نوبيا "اذا" دمستقبل دپاره دې، اوكچرته داسورت دفتح مكى نه ورستو نازل شوې وى لكه ددې ذكر هم په متعدد رواياتو كښې راغلې دې اوځنې مفسرينو ورله ترجيح هم وركړې ده ، نو بيا "اذا" دماضى دپاره دې، يعنى چې كله دا امور واقع شو نو اوس ته دالله جل جلاله حمد اواستغفار كوه.

﴿نَصْرُ ٱللَّهِ وَٱلْفَتْحُ﴾ نصرت اوفتح کښ فرق دادې چې نصرت دمقصود اومطلوب حصول دپاره اعانت اومددته وئیلې کیږی او فتح دمقصود اومطلوب حصول ته وئیلې کیږی نو گویانصرت سبب دې اوفتح ئې غایت اومقصد دې، دلته ددې په مصداق کښ مفسرینو اختلاف دې (۱) بعض فرمائی چې دینه مرادمطلق نصرت اوفتوحات دی. (۲) څنې فرمائی چې نصرت نه اعانت او الفتح نه فتح مکه مراده.(۳) اوځنې فرمائی چې نصرت مصداق صلح حدیبیه او خیبر دې او الفتح مصداق فتح مکه ده.

﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ داجزاده یعنی کله چې داانعامات درباندې اوشول یا اوشی نوبیا دی کارونوله خصوصی توجه ورکړه:

(۱) تسبیح: چې دالله ﷻ په حمد سره تنزیه بیانه وه.

(۲) استغفار: حضرت عائشه ﷺ فرمائی دې آیت په تعمیل کښ به نبی کریم ﷺ په کثرت سره دا دعا وئیله: سبحانك اللّهم ربناوبحمدك، اللّهم اغفرلی (بخاری) یوروایت کښ دی چه نبی کریم ﷺ دعمر مبارک آخری زمانه کښ به ئی کثرت سره داوئیل: سبحان الله وبحمده، استغفرالله واتوبُ الیه.

| ركوعاتها (١) | سورة اللهب مكيّة | آياتها (٥) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (١١١) وحسب النزول (٦)**

نزلت بعدالفاتحه وقبل التكوير

**ربط**: ماقبل سورة کښې اعلان دَفتح وؤ ،دې سورة کښې دَدشمن دَهلاکت اعلان دې

**شان نزول**:ابن عباس ﷺنه روایت دې چه کله داآیت نازل شو :وانذرعشيرتك الاقربين (شعراء: ٢١۴)نوحضورﷺصفاغونډئ ته اوغوښتلو،قریشو ته ئې اعلان اوکړو،خلق ټول راجمع شول،که یوسړې به پخپله نشوراتلې ، نوبل کس به ئې اولیږلو،چه ورشه اوګوره څه خبره ده،چې کله دوئ ټول راجمع شول نو حضورﷺورته اوفرمائیل:کچرته څه تاسوته اووایم چه دَدې غونډئ نه ورستو یولښکر را روان دې، تاسوباندی حمله کوی،نوآیاتاسوبه داخبره منئ؟ ټولو اووئیل،هاؤ څکه چه مونږ باربارتجربه کړیده، ته موصادق موندلې ئې په هره خبره کښې،نوحضورﷺاو فرمائیل:فاني نذيرلكم بين يدى عذاب شديد.یعنی دَاللهﷻعذاب درباندی راروان دې څه ورنه تاسویروم، ایمان راؤړئ چه دَعذاب الهی نه بچ شئ،ابولهب ورته اووئیل:تبّالكَ يامحمّد، الهذاجمعتنا، یعنی (نعوذبالله)تباه شی دَداسی خبری لپاره دی مونږدلته راجمع کړو ،نو اللهﷻداسورة نازل کړو(روح).

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَبَّتْ | يَدَآ | اَبِىْ | لَهَبٍ | وَّتَبَّ ﴿١﴾ | مَآ | اَغْنٰى | عَنْهُ | مَالُهٗ وَمَا |
| تباه دی شی | دواړه | لاسونه | دَابولهب | اوتباه دې هغه . | فائده | ورنکړه | ده ته | مال دَده اوهغه څه |
| كَسَبَ ﴿٢﴾ | سَيَصْلٰى | نَارًا | ذَاتَ لَهَبٍ ﴿٣﴾ | وَّامْرَاَتُهٗ | حَمَّالَةَ الْحَطَبِ ﴿۴﴾ | | | |
| چه ګټلی ئې دی. | زرده چه داخل به شی | اورد | لمبو والا | تداوښځه دَده به ورسره هم وی، | چه بارونکې دَلرګوده | | | |
| فِىْ | جِيْدِهَا | حَبْلٌ | مِّنْ | مَّسَدٍ ﴿۵﴾ | | | | |
| په څټ دَدی کښې | به | رسئ | وه | دَکجوروډیټونونه جوړه شوی | | | | |

﴿ تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ ﴾دواړه لاسونه کنایه ده دپوره بدن نه.یعنی دې دی هلاك اوتباه شی ، دعربو محاوری مطابق تعبیردکل نه په جزء سره اوشو.او «یدا»راوړلو کښې دیته اشاره دهٔ چې لاسونه اګرچې آله اوذریعه ده دعذاب او تکلیف نه بچ کیدلو . خو دده دپاره ذریعه دعذاب اوګرځیدله، ځکه چې ده پرې نبی کریم ﷺ ته ایذا رسوله. اوبل داچې لاسونه ئی تباه شی نونور جسم خوبه ئی به طریق اولی تباه کیږی ځکه چې دبچ کیدلو ذریعه پاتې نشوه. ﴿ابي لهب﴾ "لهب" لمبی ته وائی، "ابو" حقیقی معنی پلار ده خو کله دمضاف الیه سره لزوم معنې باندې دلالت کولو دپاره هم استعمالیږی، لکه ابوهریره ،ابوالبرکات،وغیره، دلته هم دا دویمه معنی مراد ده ، د ده اصل نوم عبد العزی وو لیکن ډیر خائست دوجهې نه ورته خلقو ابولهب وئیلو ، اوپه دې سره مشهور وؤ، نودلته په قرآن کښې په کنیت سره ذکرکولو یووجه داهم ده چې دې پې کنیت معروف وؤ اونوم ئی غیر معروف وؤ . بله وجه داهم ده چې نوم ئی شرکیه دې، اودریمه وجه داهم ده چې کنیت دده اصل حال موافق اومناسب هم دې ځکه چې دیکښې دده جهنمی کیدلو طرف ته اشاره ده. ﴿وَتَبَّ﴾یعنی یقینًاچه هلاك شو،اول بددعاده دویم اخباردې.

﴿ مَآ أَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُۥ وَمَا كَسَبَ ﴾"ما"په"مااغنی" کښې یا استفهامیه ده یعنی څه نفع ورکړه ده له دده مال اوکسب،یا نافیه ده یعنی هیڅ فائده ورنکړو دله دده مال اوکسب،دمال "ودولت دوه فائدې وی کله ورسره دځان نه ضررلرې کوی اوکله ورسره نفع مند شې حاصلوې نو "ما اغنی عنه ماله"کښې داولې خبرې نفی اوشوه چې دده مال ده نه ضرر لرې نه کړواې ما بعد عنه ماله مضرة،او "ماکسب"کښې ددیمې خبرې نفی اوشوه اې وماکسب منفعة، دې تقدیر باندې دویمه"ما"هم نافیه ده،او دا هم کیدې شي چې دویمه "ما" موصوله وې ، نو چونکه مال نه فائده په دوه طریقو سره حاصلیږی، کله ئی خرچ کړی اوفدیه کښې ورکړی نوځان پرې بچ کړی اوڅه فائده حاصله کړی،اوکله دمال په بنیاد قائم،جاه ،رعب،اودبدبه دانسان دپاره فائده منداوګرځی،نو "ماله"کښې داولې طریقې نفی اوشوه اوپه "ماکسب"کښې ددویمې طریقی نفی اوشوه،دې تقدیر باندې دویمه "ما"موصوله ده،بهرحال "کسب" نه مرا دعام دې ،مال وی اوکه بل څه وی دې جهې نه حضرت ابن عباس ﷺ ددې تفسیر په اولاد سره کړې دې.

**فائده**

دابولهب دری خامن وو،عُتبه،معتب،عُتیبه،اول دوؤدَفتح مکی په موقع ایمان راوړي وو، جنگ حنین،طائف کښی شریك شوی وو،اوعتُیبه ایمان نه وؤراوړي.دَحضورﷺلور ام کلثوم دَده په نکاح کښی وه،رخصتی ئی نه وه شوی،اورقیهﷺدَعتبه په نکاح کښی وه،کله چه داسورة نازل شو،ابولهب دواړوته اوونیل چه دواړوته طلاق ورکړئ ، ورنه ځمااوستاسومینځ کښی به تعلق حرام وی،نودواړوطلاق ورکړو،عتبه صرف طلاق ورکړو. اوعتیبه بدبخته بد رد هم اوونیل اوحضورﷺته ئی توکړل،لیکن اللهﷻدَحضورﷺمخ مبارك ته اونه رسول، حضور پاكﷺدیرغصه شوبددعائی ورته اوکړه"اللّهم سلّط علیه کلبًامن کلابكَ"یاالله دَخپلو سپونه ورباندی یوسپی مسلط کړه.

یوځل شام ته قافله تلله چه پکښی عُتیبه اوابولهب هم وو،دوئ سره دَپیغمبرﷺدَ بد دعا فکر وو،خطره ورسره وه،یوځائ شپی لپاره پړاؤاوکړو،چه هلته درندگان هم وو،دَعتیبه دَحفاظت لپاره دَقافلی ټول سامان کیخودلي شو،دي ورباندی دپاسه اوده شو،اودَقافلی ټول خلق څلور واړو طرف ته دَحفاظت په نیت سملاستل،دَشپی یوزمری راغي دَټولوځلي ئی بوئ کړي،چاته ئی هم څه اونه وئیل،بیائی ټوپ کړو،سامان ته اورسیدلو،عُتیبه هلته ملاست وو، حمله ئی ورباندی اوکړه،سرئی ورله دَتن نه جداکړو.اوابولهب دَجنگ بدرنه وه«۷»ورځی ورستوپه یومتعدی مرض کښی مبتلاشو،څوك ورته دَخوف نه نیزدی کیدلي هم نه شول،دری ورځی پروت وو، بدبوئی شروع کړله کنده ئی ورته اوکنستله په یولرگی ئی پکښی ور اوغورځولو،دپاسه ئی ورباندی کانړی واچول او پټ ئی کړو«روح وغیره»دادَده اودَخوی دنیاوی سزاوه اوآخرت کښی بئ سزاداوی چه گرم اوردَجهنم ته به داخلیږی.

﴿سَيَصۡلَىٰ نَارٗا﴾یعنی هیڅ شی ورله نفع ورنکړه بلکه جهنم ته به داخلیږی.﴿وَٱمۡرَأَتُهُۥ﴾ دا عطف دي په ضمیر مستتر دَ"سیصلی" باندي،یعنی ښځه به ئی ورسره هم داخلیږی،دَښځي نوم ئی ام جمیل وو، دَابوسفیانﷺ خور وه ، داهم خپل خاوند سره دَنبی کریمﷺ په دشمنئ او هغه سره بغض وعداوت کښی برابر شریک وه، ﴿حَمَّالَةَ ٱلۡحَطَبِ﴾دادَدي بغض وعداوت یوصورت بیانیږی،چي باوجود دَدینه چي دا دَ سردار ښځه وه،نعمت پروره ،او نازبرداره وه،اودَخدمت دَپاره ئی نوکران اوخادمان وو، خودَنبی کریمﷺ سره بغض وعداوت دي حال

ته رسولې وه چې غاړې ته به ئې كجهورودَپوستكونه جوړه شوې يو معمولي غوندې رسئ پرته وه ،اوتله صحرا نه به ئې دازغوگيډې راوړلو ، اوبيا به ئې ازغي نبي كريم ﷺ په لار كښې اچول، يعني داهرڅه ئې دَنبي كريم ﷺ دشمنئ كښې برداشت كولو

اوځنې مفسرين فرمائي چې ديكښې دَدوزخ سزاكيفيت مذكور دې، چې دَدنيا نازونعمت به ئې هلته نه وي، په سربه ئې دَلرگو گيډې وي ، اوخپل خاوند عذاب سامان به ئې روان كړې وي، اوپه غاړه كښې به ئې دَزيوراتو په ځائې رسئ وي.

اوبعض مفسرينو د حمالة الحطب معنى چغلخورئ سره هم كړې ده، ځكه چې عرب دالفظ چغلئ په معنى هم استعمالوي· حطب به اي سعى اليه النميمة. "حمالة الحطب"منصوب دې بنا بر ذم، اي اذم حمالة الحطب﴿فِي جِيدِهَا ﴾·جيد·غاړې ته وائي،﴿مَّسَدٍ ﴾·مسد·غختلې شوې دَ كجهورو پوستكو نه.

| ركوعاتها (۱) | سورة الاخلاص مكيّة | آياتها (۴) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دی شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۱۱۲) وحسب النزول (۲۲)**

نزلت بعدسورة الناس وقبل النجم

**ربط**:دشمن سره دَ مقاطعې او متارکت او دَفتحې اعلان اوددشمن هلاکت نه ورستو اوس اعلان دَ توحید دې سرعام،چې اې پیغمبره!ته دَتوحید سرعام اعلان اوکه.

**شان نزول**:کافرانو،مشرکانو حضورﷺته اووئیل چه مونږته دخپل رب نسب بیان کړه، نوداسورة نازل شو.

**فضائل**:دَدی مختصرسورة ډیرفضائل په احادیثوکښ راغلی دی،په ډیرورواياتونوکښ دی سورة ته ثلث القرآن یعنی دَقرآن دریمه حصه وئیلې شویده.یعنی ثواب ئې دومره دې لکه دری حصی قرآن چه تلاوت کړې شی،حضرت عائشهؓفرمائی چه حضورﷺیوی علاقی ته دَصحابؤجماعت اولیږولو،یوکس ئی ورله امیرکړو،امیرصاحب به چه جمع ورکوله نوهر رکعت کښ به ئی داسورة لوستلو،واپسئ باندی داخبره چاحضورﷺته عرض کړه، حضورﷺ وفرمائیل دَوجی تپوس ورنه اوکړئ نوامیرصاحب عرض اوکړوچه داسورة دَرحمان صفت دې ځکه ورسره څماډیرمحبت دې،حضورﷺاوفرمائیل ده ته اوایئ چې اللهﷻپدی وجه دده سره محبت کوی.

دغه شان بل روایت کښ دی چه یوصحابی عرض اوکړویارسول الله!څمادی سورة سره ډیرمحبت دې حضورﷺورته اوفرمائیل دَدی محبت به تاجنت داخل کړی(ابن کثیر)دینه علاوه نورهم فضائل ابن کثیرؒلیکلی دی.

| قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۚ﴿۱﴾ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۚ﴿۲﴾ لَمْ يَلِدْ ۙ وَلَمْ يُوْلَدْ ۙ﴿۳﴾ |
|---|
| ته اووایه شان دادې چه الله یک یودې،اللهﷻبی نیازه دې،نه ئی څوې شته،اونه ئی پلارشته |

| وَلَمۡ | يَكُنۡ | لَّهُۥ | كُفُوًا | أَحَدٌۢ | ۝٤ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونشته | دي | دده | سره | برابرهيڅ | څوک |

﴿ قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ﴾ دادَتوحيد اعلان دي ديکښ رد دي په هغه خلقو چې هغه دَالله ﷻ دَوجود نه منکر وؤ، يا ئې د وجوب منکر وؤ، يا ئې دَتوحيدمنکروؤ ،چې الله ﷻ شته دي، واجب الوجود دي، اويکتادي. "هو"ضمير مبتدا دي او"الله احد" مبتداخبر جمله اسميه ورله خبردي، "هو"ضميرشان هم کيدي شي چې مرجع ئې نشته،اوداهم کيدي شي چې ضمير مرجع"رب"وی چه مذکوردي په سوال دَمشرکانوکښ، چه حضورﷺ ته ئې اووئيل،مونږته دَ خپل رب نسب اوصفت بيان کړه، نوجواب ورته اوشوچه الله ﷻ يك يو دي. ذات اوصفاتوکښ يکتادي،مثل نمونه ئې نشته،نسب ئې نشته ، نه ئې بچی شته نه ئې والد.

﴿ أَحَدٌ ﴾همزه پکښ اصلی ده يابدل ده دَ "واؤ" نه، دلته﴿ أَحَدٌ ﴾ذکرشو"واحد"ذکرنه شو،دواړومينځ کښ لفظی فرق هم دي اومعنوی هم،"احد" او "واحد" کښ علماؤو څوفرقونه ليکلی دی:

(۱)"واحد" نه دَ عدد افتتاح کيږی،دينه ورستو اثنان،ثلاثه،اربعه،راځی.اوپه "احد"سره دَ عدد انقطاع کيږی،مطلب داچې دينه ورستو اثنان ثلاثه،وغيره نشی راتلي.

(۲)"احد"نفی دَعموم کښ منصوص دي ، په خلاف ده "واحد" نه،يعنی چې کله اوئيلي شی چې "ليس في الدار احد"، نومطلب دادي چې هيڅ څوک هم نشته په کورکښ نو يو،نه دوه،نه دري،اوکله چې اوئيلي شی چې "ليس في الدار واحد"نودي مطلب دادي چې يوکس نشته ، خودوه دري وغيره کيدي شي.

(۳)په کلام مثبت کښ واحد باعتبار اتصاف عام دي ، او"احد"خاص دي، يعنی"واحد"سره هرڅوک متصف کولي شی،چې "رجل واحد،ثوب واحد"خو په "احد" سره هر څوک نشي متصف کولي،الا داچې مرکب استعمال ئې اوشی لکه "احد عشر،يوم الاحد، احدکما".

فرق معنوی دادي چه(۱)په"احد"کښ ثبوت اودوام دي په نسبت دَ"واحد"، لکه صفت مشبه کښ چه دوام اوثبوت وي،نو"احد"ابلغ دي په ثناء کښ،ځکه دلته ذکرشو.

(۲) دَ واحد اطلاق اکثرپه هغه څیزکیږي چه ثاني ئي نه وي. یعنی عدد فردی فائده کوي، او دَ احد اطلاق اکثرپه هغه څیز کیږي چه نظیر ئي نه وي، یعنی ذاتی حقیقی فائده کوي، نودَدی وجی نه دَ احد ترجمه په یك یو سره کیږی اودَ واحد ترجمه په یو سره کیږي (والله اعلم).

﴿ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ﴾ دیکښې رد دې په هغه خلقو چې هغوئ الله ﷻ سره په استعانت کښې شریکان ګرځولو، چې الله ﷻ صمدذات دې، صرف هغه ته رجوع کوئ بل چانه مدد مه غواړئ، دَ صمد معنی مکملی ادائیګی دَپاره په پښتو یا بله ژبه کښې متبادل لفظ نشته دې، چې څومره معنی بیان کړې شوی دی دَهغې ټولو خلاصه داده چې صمد هغه سردار چې خلق هغه ته محتاجه وی اودې چاته نه وی محتاجه، ابوهریره ﷺ نه روایت دې چې صمد هغه ذات چه مستغنی اوبی پرواه وی دَهرچانه، اوهرڅوك ده ته محتاج وی

﴿ لَمْ يَلِدْ ﴾ دیکښې رد دې په هغه مشرکانو چې هغوئ الله ﷻ لره نسب ثابتولو چې الله ﷻ لره اولاد دی، عیسایان وائی چې عیسی ﷺ دَالله ﷻ څوې دې، یهود وائی چې عزیر ﷺ دَ الله ﷻ څوې دې، اومشرکانو به وئیل چې ملائک دَالله ﷻ لونړه دی.

﴿ وَلَمْ يُولَدْ ﴾ دیکښې رد دې په هغه مشرکینو چې هغوئ دَبعض بشر اوانسانانو دَالوهیت قائل وؤ، مثلا بعض حضرت عیسی ﷺ ته دَالوهیت درجه درکوی.

﴿ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌۢ ﴾ دیکښې نفی دمماثلت، نظیر، اوشبیه ده یعنی هیڅ څوك دَالله ﷻ په شان نشته، نه ئی نظیر شته، نه مثل شته، نه برابر څوك شته، لهذا نه د هغه زوجه کیدې شی، نه دَهغه خاندان اوکنبه کیدې شی، اونه په مخلوق کښې څوك بل اله کیدې شی.

| ركوعاتها (۱) | سورة الفلق مكيّة | اٰياتها (۵) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكې دې شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۱۱۳) وحسب النزول (۲۰)**

نزلت بعد سورة الفيل و قبل النّاس

**ربط**: مخكنى سورت كښې سرعام دَتوحيد اعلانﷺ حكم وو. اوس دې سورت كښې دَدې خبرې بيان دې چې كله ته توحيد اعلان اوكړې ، نوستادشمنان به ستاخلاف مختلفې منصوبې جوړه وى، اوستاپه لاركښې به خنډونه اچوى چې هغې كښې سحر، جادو اوحسدوغيره سر فهرست دې لهذاته دَالله ﷻ نه دَحفاظت سوال اودهغه پناه غواړه.

**فضائل**: دَدى دواړوسورتونوفضائل په متعددحديثونوكښې راغلى دى، يوحديث كښې دى چه حضورﷺ اوفرمائيل: نن شپه ماباندى داسې آياتونه نازل شويدى چه دَدى په مثل ماچرته نه دى ليدلى، بيا حضورﷺ دادواړه سورتونه اولوستل (مسلم)

دَحضورﷺ معمول ووچه دَشپې به اوده كيدلونوسورة الاخلاص اودادواړه سورتونه به نى اووئيل په لاسونوبه ئى پوكړل او لاسونه مبارك به ئې په ټول بدن راخكل (بخارى).

**شان نزول**: په بخارى، مسلم وغيرهماكښې دَحضرت عائشهؓ نه روايت دې چه په حضور ﷺ باندى سحرشوې وو، دهغى اثر به داووچه يوكاربه ئى كړې وو. اوخيال به ئې داووچه مانه دې كړې، يوه شپه ئى الله ﷻ ته بارباردعااوكړه، بيائى اوفرمائيل ماته، چه الله ﷻ ماته څما دَ مرض باره كښې خبرراكړو، ماورته عرض اوكړوچه څنګه دې؟ اوئى فرمائيل چه ماته په خوب كښې دوه كسان راغلل، يوڅماخپوطرف ته كيناستلوبل سرته، نويوكس هغه بل ته اووئيل ده ته څه تكليف دې، بل ورته اووئيل: مطبوب يعنى مسحوردې، بل ورته ووئيل: چا ورباندى كړې دې؟ هغه ورته اووئيل: لبيدبن اعصم، بل ورته اووئيل: په څه شئ كښې ؟هغه ورته اووئيل: فى مُشطٍ ومشاطةٍ وجف طلعة يعنى ګمنزده په هغى كښې ويخته دى (دسرمبارك)، اوهغه ئى دَ كجورى دګنګ په غلاف اوپټ كښې ايخى دى، بل ورته اووئيل: هغه كوم ځائ دى؟، هغه ورته اووئيل: په " بئر ذى اروان " دَ ذى اروان په كوهى كښې، عائشهؓ فرمائى: دې خوب نه ورستو

حضورﷺ څخه سره څه صحابه کرام بوتلل. دهغې کوهي اوبه داسې سرې وې لکه نکريزي چه پکښې اچولې شوي وی. اود کجور د اونو سرونه داسې شوي وو لکه دشيطانانو سرونه يو کس کوهي ته کوزشو. د کجوري ګنګ ئې رااوباسلو. نوپه هغې کښې دحضورﷺ د سر مبارک ويخته او ګمنز وه. اودحضورﷺ صورت ئې هم دموم نه جوړکړې ووپه هغې کښې ئې ستنې خخې کړې وی. اوهغه ويختوته يولس (۱۱) غوټې ورکړې شوې وی. دايولس (۱۱) آياتونه نازل شول، حضورﷺ به يو آيت لوستلويوه غوټه به کولاويدله او ستنې به هم کولاويدلې، تردې چه ټولې غوټې کولاؤشوې، اوحضورﷺ ته راحت ميلاؤشو (روح المعاني).

| |
|---|
| قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ۙ﴿۱﴾ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ ۙ﴿۲﴾ وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ اِذَا وَقَبَ ۙ﴿۳﴾ |
| نه. اووايه چه څه پناه نيسم په رب دصبا. دشردټولومخلوقاتونه اودشردشپې نه چه کله خوره شي. |
| وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِي الْعُقَدِ ۙ﴿۴﴾ وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ اِذَا حَسَدَ ﴿۵﴾ |
| اودشردساحرانونه چه پوکې وهونکې وی په غوټو د تارونو کښې او د شر د حسد کونکي نه چه کله حسداوکړي. |

﴿قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ فلق چاودلوته وائي. کقوله تعالى انّ الله فالق الحبّ. دلته ورنه مراد صبا دې، چه تياره دشپې لرې کړي، رانړابنکاره کړي. تخصيص د فلق ځکه اوشو، چه لکه څرنګه الله ﷻ دشپې تياره ختم کړي اوورځ راولي. نودغه شان دخوف نه پناه غوښتونکوته پناه ورکولې شي اودهغوئ نه خوف او يره لرې کړي، ياداچه لکه څرنګه انسان په شپه کښې دطلوع صباح منتظروی نودغه رنګه خائف دکاميابئ اميدکوی

بعض مفسرينو دفلق نه مراد عام اغستې دې، ورځ چې شپې نه رااوځي، چينه چې دغرونه را اوځي، باران چې وريځونه را اوځي، دانه چې زمکې نه را اوځي (روح، قرطبي).

﴿مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ﴾ اول مستعاذمنه دې، يعنې دشردجميع مخلوقاتو، دانس، جن، دواب، هوام، نه او د شر د هر موذی نه چه الله ﷻ پيداکړيدې.

﴿وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ﴾ دويم مستعاذمنه دې غاسق نه مرادشپه ده ﴿اِذَا وَقَبَ﴾ اى اذادخل ظلامُهُ فى كلّ شئ (روح) يعنې چه خوره شي، چونکه دشپې په تياره کښې هرقسمه موذی

حیوانات، حشرات الارض،جنات،شیاطین خواره شی،اوجادوګرهم اکثردشپې جادوکوی پدې وجه دَشپې دَتیاری دَشرنه پناه اوغوښتلې شوه.

بعض وائی﴿غَاسِقٍ﴾نه مرادسپوږمۍ ده چه کله ئی تندراونیسی،توره شی،نوپدې وخت کښې جادوګرجادوکوی،په ترمذی وغیره کښې دی چه حضورﷺ یوځل سپوږمۍ طرف ته اوکتل، حضرت عائشه رضی الله عنها ته ئی اوفرمائیل:استعیذی بالله من شرّ هذا هوالغاسقُ اذا وقب، یعنی دَالله نه پناه غواړه دَشردَدینه داغاسق دې چه کله خوره شی(روح).

﴿وَمِن شَرِّ ٱلنَّفَّٰثَٰتِ﴾دریم مستعاذمنه دې،"نفاثات"صفت دې دَ"نفوس"محذوف. ای ومن شرّ النفوس النفّاثات،یعنی دَشردَهغه ساحرانونه پناه غواړم چه تارونه اوویخته غوټه کوی اوپه هغې کښې پوکی. یا"نفاثات"صفت دې دَ"النّساء"چونکه دَجادوپه کولوکښې لبیدبن اعصم سره خپلې لوریانی هم شریکې وې اودغه شان داکارونه اکثرزنانه کوی نوتغلیباً ئی مؤنث ذکرکړو.

﴿ وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ ﴾ داڅلورم مستعاذمنه دې،حضورﷺباندې جادوکول هم دَحسد په وجه وؤ، چه یهودیانودَمسلمانانوترقی نه شوه برداشت کولې.﴿ حَسَدَ﴾دیته وائی چه دَ چا دَ نعمت او راحت باره کښې دا تمنا کول چه دا د ده نه زائله شی،ماته که نه شی میلاؤ هم، نو دا حسدګناه کبیره ده،اوبله غبطه ده چه تمنادَحصول دَنعمت کول لپاره دَخپل ځان.نوداګناه نه دې، بلکه امرِمستحسن دې.

حسدئی مقیّدکړوپه﴿ إِذَا حَسَدَ﴾سره،ځکه چه که دَیوسړی په زړه کښې بی اختیاره حسد پیداشی خوهغه پخپل نفس ضبط اوکړی، او حسد ښکاره نکړی، بلکه دَاللهﷻپه فیصلی راضی وی، نودَهغه نه ضررمحسودته نه رسی،حسدهغه وخت کښې ضرر رسوی چه حاسدپه عملی طورسره خپل حسدښکاره کړی.

| ركوعاتها (١) | سورة الناس مكيّة | آياتها (٦) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکې دې شروع کوم | |

**دَ ترتيب قرانى اعتبارسره تولونه اخرى سورة دې اوحسب النزول (٢١) دې**

**ربط:** (١) مخکښې سورة کښې تلقين دَاستعاذې وؤمضراتو جسمانيؤنه، دې سورة کښې تلقين دې دَاستعاذې دَمضراتو روحانيؤنه.

(٢) ماقبل کښې دَخارجي شرنه پناه غوختل وو، ديکښې دَداخلي شره نه پناه غوختل دې.
مفسرين وائي چه ماقبل سورة الفلق کښې مستعاذبه يووؤ چه رَبّ الفلق وؤ، اومستعاذمنه يعنى چه دکوموڅيزونونه پناه غوښتلې شويده کثير وؤ، او دې سورة کښې مستعاذبه کثير دې، او مستعاذ منه صرف يودې چه دَ وسوسى شيطانى نه پناه غوښتلې شويده، نودې کښې اشاره ده چه وسوسه دَشيطان چه دا روحانى او دينى مضرت دې، دادَجسمانى مضرت نه سخت دې (کبير).

| |
| --- |
| قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۙ مَلِكِ النَّاسِ ۙ اِلٰهِ النَّاسِ ۙ مِنْ شَرِّ |
| نه اووايه څه پناه نيسم په رب دَخلقوسره چه مالک دې دَخلقو، معبوددې دَخلقودَشر |
| الْوَسْوَاسِ ۙ الْخَنَّاسِ ۙ الَّذِيْ يُوَسْوِسُ فِيْ صُدُوْرِ النَّاسِ ۙ |
| دَوسوسى اچونکى نه شيطان واپس کيدونکې دَزړه نه، هغه چه وسوسى اچوى په زړونودَخلقوکښې. |
| مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ ۝ |
| دَپيريانونه اودَخلقونه |

﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلنَّاسِ﴾ دې سورت کښې هم دَاستعاذې (پناه غوختلو) بيان دې، مستعاذ به (يعنى هغه ذات چې دَهغه پناه غوختلې شوې ده) الله ﷻ دې، او مستعاذ منه (چې کوم شې نه پناه غوختلې شوې ده) شيطانى وساوس دې.

((برب الناس ، ملک الناس ، اله الناس)) دیکښ د "مستعاذبه" درې صفاتو بیان دې.
ربوبیت ، مالکیت، اوالوهیت،دَدې درې صفاتو دَ استعاذې سره تعلق اومناسبت دَتوسل دې، ځکه چې انسان باندې کوم حالت راځی نو هغه دَهغې حالت موافق صفت په وسیلی دَالله ﷻ نه سوال کوی،چونکه وساوسو نه پناه غوختلو کښ ددې درې صفاتو ډیر غټ دخل دې، نوځکه دَدې بطور خاص ذکر اوشو ،

تفصیل ددې دادې چې"رب" معنی ده تربیت کونکې ،یعنی هغه ذات چې بنده هرهرحالت باندې ئی نظر وی ،که څه شی ورته ضرورت وی هغه ورله ورکوی.څه شی کښ ئی نفع وی هغه ورته رسوی، اوکه څه شې ورته نقصان ورکوی نو هغه ورنه لرې کوی.

"مالکیت"او"ملکیت"مطلب دادې چې قادر وی نفع رسولو اوضررلرې کولو. او "اله" مطلب دادې چې مستحق دَالوهیت وی بنده صرف دَهغه عبادت اواطاعت کوی . نو"رب الناس" کښ دَصفت ربوبیت اودَهغې اثبات وسیله ده،چې اي الله "ته مو رب ئی. ستاد ربوبیت تقاضه داده چې ته خپل بنده دَمضر اشیاؤ نه حفاظت اوکړې نوخاوسوسه ځمادپاره ډیرلونه لویه خطره ده اي الله "ته ځما دَدینه حفاظت اوفرمائی.

﴿ مَلِكِ ٱلنَّاسِ﴾کښ دَصفت مالکیت وسیله ده،چې اي الله"ته بادشاه اومالک ئی. دَبنده هم مالک ئی ، دَهغه زړه هم مالک،اودَوسوسو هم مالک ئی . داهرڅه ستاپه قبضه اختیار کښ دی، ستادَتصرف نه هیڅ هم باهر نشته،اي مالکه ذاته،مالک په خپل مملوک کښ هر قسم تصرف کولې شی، ته ځما دَزړه غلطې وسوسې ختمې کړه.

او﴿إِلَٰهِ ٱلنَّاسِ ﴾کښ صفت الوهیت اودَهغې اعتراف بطور وسیله پیش کیږی،چې اي الله مونږ د ،بادشاهانودادستور لیدلې دې چې هغه خپل فرمانبردار رعایا سره احسان کوی،په هغوئ کرم اونوازشات کوی اي اللهامونږ ستادَالوهیت اعتراف کوو،صرف تاخپل معبود گرځوو اوصرف ستااطاعت کوؤ، اي کریمه ذاته په مونږ کرم اوکړه ، اودې وساوسو نه راله نجات راکړه.

**فائده**:(۱)دې درې صفاتوسره اثبات دَتوحید هم اوشو علی سبیل الترقی من الادنی الی الاعلی،اوهغه داسې چې داځومونږ په سترگو وینوچې الله ﷻ دکائنات نظام روان کړې دې، ځومره تغیرات اوواقعاتو وقوع چې کیږی الله ﷻ ئی کوی، نودینه معلومه شوه چې الله ﷻ

رب دي دَ کائناتو ، چونکه دادومره عظيم الشان انتظام دَ کامل اومکمل بادشاهی تصرف او قدرت نه بغير نشی کيدې. لهذادينه معلومه شه چې الله ﷻ ملک الناس هم دې، او د ربوبيت مطلقه اومالکيت اعلی لازمی نتيجه دا ده چې الله ﷻ اله الناس دي

**فائده ۲**: دقرآن ابتدا دَالله کومو صفاتو سره شوې وه نوانتهائی هم داسې صفاتو سره اوشوه چې هغه دَابتدا سره ډير موافق اومناسب دي، رب الناس درب العالمين سره مناسب دي، ملک الناس دَمالک يوم الدين سره مناسب دې، اواله الناس دَ اياک نعبدواياک نستعين سره مناسب دي.

**فائده۳**: دلته صرف دَرب تخصيص الناس سره اوشو حالانکه الله ﷻ خورب العالمين دې ، نودا ځکه چې دلته دَ وسوسو بيان دې، او دا په انسان پورې خاص دی. اوبل دا چې ديکښ اظهار دَشرافت دانسان دي په ټولو مخلوقاتو باندې

﴿ مِن شَرِّ ٱلْوَسْوَاسِ ٱلْخَنَّاسِ ﴾ديکښ دَمستعاذ منه اودهغه دري صفاتو بيان دې .

"الوسواس" دا ئې اول صفت دې، صيغه د مبالغې ده، يعنې باربار وسوسه اچونکې . "الخناس" دويم صفت دې، دَخنس نه دې ، معنی ئې ظاهريدلو نه ورستو پټيدل ده، يعنی په يو موقع باندې ظاهر شی ، په بله موقع باندې بيا پټ شی،دَدې کيفيت مفسرينو داسې بيان کړې دې چې شيطان انسان ته مسلسل متوجه وی، دَهغه په زړه ناست وی. او وسوسی ورته اچوی ، خو چې کله دې دَالله ﷻ ذکر شروع کړی، نو په شا اوختی. دَ جنی شيطان دا کيفيت په رواياتو کښ راغلې دې او د انسی شيطان دا کيفيت مشاهد دې په مجالسو او پروګرامونو کښ، چې شريعت مطابق اوکړی شی نودوئ خفګان پرې کوی اوشرکت پکښ نه کوی.

او ځنی مفسرين ليکی چې ديکښ "وکان الانسان خذولا"طرف ته اشاره دهٔ، چې ګناه کولو موقع باندې ورته حاضر وی او ترغيب ورکوی،خوکله چې ګناه ترينه صادرکړی، نو بيا ترينه په شا شی او براءت اعلان اوکړی. کمافي قوله تعالی:کمثل الشيطان اذقال للانسان اکفر، فلما کفر قال انی برئ منک(الحشر)

﴿ٱلَّذِى يُوَسْوِسُ فِى صُدُورِ ٱلنَّاسِ ﴾دريم صفت دې ديکښ دَوسوسی سره دَمحل بيان هم دې اودرجه فعليت ذکر هم دې، ځکه چې ماقبل کښ دَوسوسې اچولو ذکر به طور وصف بالقوة وؤ،اودلته ئې ذکر به طور وصف بالفعل دې،لکه يو وی غل . او بل د هغه غلا کول

نو "غل" وصف بالقوة دي، او "غلاکول" دا ئې وصف بالفعل دې "صدور الناس" سينه دزړه دپاره درشل اوغولې حيثيت لري،شيطان زړه ته نه داخليږي، بل که سينې ته داخل شي او دې ځائ نه بيا القاء زړه ته اوکړي،دې وجهې نه فوسوس اليه الشيطان وئيلې شوې دې فوسوس فيه الشيطان نه دې وئيلې شوې.

﴿مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ﴾ديکښې تعميم دې دَشيطانانو،چې بعض دَجناتو دَقبيلې نه دی او بعض دَ انسانانو دَقبيلې نه دی، کمافي قوله تعالی:وکذلک جعلنا لکل نبی عدوا شيطان الانس و الجن".

الحمدلله پدې الفاظو تفسير خپل اختتام ته اورسيدلو.

الحمدلله الذي هدانا لهذا وماکنا لنهتدي لولا ان هدانا الله.وصلی الله علی سيدنا وحبينا ومولانا محمد صلی الله عليه وسلم.

۱۳جون۲۰۱۷ ، بمطابق ۱۷رمضان المبارک ۱۴۳۸هـ.

سورت الحشر



سورة الممتحنه



سورة الصف



سورت الجمعه

